بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

حنفی شافعی

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب وغیرہ۔

کفایت اللہ ابن صدیق

+923052488551
+923247442395






مالکی حنبلی




من يرد الله به خيراً يفقهه في الدين. [الحديث]

د پلچرخي په صليبي زندان کې د اهل السنت والجماعت
او د لامذهبو (جعلي اهل حديثو، مماتيانو بريلويان او مودوديانو ،) دعقايدو او د مسائلو په
تشريح کې ليکل شوی کتاب




# في الدفع عن المذهب الحق

مؤلف:
الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني الافغاني
کاتب: مولوي هدايت الله (بدر)

**پنځم ټوک**

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | احقاق الحق في الدفع عن المذهب الحق |
| ليکوال: | الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقانی الننجرهاری |
| زيار او تصحيح: | الشيخ الشهيد مولاناعبد السلام الحقانی الننجرهاری |
| اول چــاپ: | ۲۰۱٤م کال |
| دويم چاپ: | ۲۰۱۵م کال |
| پنځم چاپ: | ۲۰۱۹م کال |
| لسم چاپ: | ۲۰۲۰ م کال |
| تعــــداد: | ۱۱۰۰ ټوکه |
| کمپوز او ښايست: | مولوي هدايت الله همت بدر، حافظ حمزة مجاهد |



د ترلاسه کيــدو ځايونه:

اهل سنت والجماعت العالمي اداره

مسؤل: م بدر

داړيکو شمېرې: ۰۳٤۸٤۳۱۹۵٤۱-۰۳٤۷۰۰۵۰۹۰٤

بسم الله الرحمن الرحيم

# فسق یزید

الحمدلله وحده والصلوة والسلام علي من لانبي بعده.

محترمو مسلمانانو ! لکه څرنګه چې داهل سنت والجماعت پدې باندې پوره یقین او ایمان دی چې لکه څرنګه چې زمونږ پیغمبر محمد ﷺ دتولو پیغمبرانو څخه بهتر دی نو همدارنګه داهل سنت والجماعت په دی باندې هم پوره یقین او ایمان دی چه زمونږ دپیغمبر ﷺ صحابهٔ کرام ﷺ دنورو پیغمبرانو د صحابه وو څخه بهتر دي، زمونږ د پیغمبر ﷺ ازواج مطهرات دنورو پیغمبرانو دازواجو څخه بهتري دي، په اهل بیتو کی یو حضرت امام حسین رضی الله عنه دی، دحضرت امام حسین رضی الله عنه فضایل په مختلفو الفاظو باندی په احادیثو کی راغلی دی. مثلاً : الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ داحدیث تقریبًا د اتو صحابه وو څخه روایت دی:

| | |
|---|---|
| ۱-حضرت ابوسعیدخدری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. | مسنداحمد |
| ۲-حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. | طبرانی فی الکبیر. |
| ۳- حضرت علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. | طبرانی فی الکبیر. |
| ٤-حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. | طبرانی فی الکبیر |
| ٥-حضرت ابوهریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. | طبرانی فی الکبیر. |
| ٦- حضرت اسامه بن زید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | طبرانی فی الاوسط |
| ۷-حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ | طبرانی فی الاوسط |
| ۸-حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ. | ابن عدی |

همدارنګه رسول الله ﷺ فرمایي چې: الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّةِ ، وَأَبُوهُمَا خَيْرٌ مِنْهُمَا. داحدیث تقریبًا د څلورو صحابه وو څخه روایت شوی دی.

| | |
|---|---|
| ۱- حضرت ابن عمر رضی الله عنهما | ابن ماجه،مستدرک |
| ۲- حضرت مالک بن حویرث رضی الله عنه | طبرانی فی الکبیر |
| ۳-حضرت قرة بن ایاس رضی الله عنه | طبرانی فی الکبیر |
| ٤- حضرت ابن مسعود رضی الله عنه | مستدرک |

همدارنګه رسول الله ﷺ فرمايي چې: الْحَسَنُ وَالْحُسَيْنُ سَيِّدَا شَبَابِ أَهْلِ الْجَنَّـةِ الا ابنتى الخالـة عيسي بن مريم ويحى بن زكريا و فاطمة سيدة نساء أهل الجنة الا ما كان مـن مـريم بنت عمـران.
داحديث تقريبًا ددريو صحابه وو څخه روايت شوی دی:

| | |
|---|---|
| ۱-حضرت ابوسعيد خدری رضی الله عنه | مسنداحمد، صحيح ابن حبان، مسندابي يعلى |
| ۲- حضرت حذيفه رضی الله عنه | مجمع الزوايد |
| ۳-حضرت امام حسين رضی الله عنه | مجمع الزوايد |

په دې کې بعضی احاديث صحيح اوبعضی حسن، اوبعضی دضعيف په مرتبه کې دي، حافظ سيوطی رحمه الله ددې حديثونو مضمون ته متواتر ويلي دي، همدارنګه په نورواحاديثو کی دحضرت امام حسين رضی الله عنه فضايل په مختلفو مضمونونو سره بيان شوي دي.

ددې عظيم صحابي دشهادت واقعه دومره دردناکه ده چی ددې په اوريدلو باندې يوائې مسلمانان نه بلکې غيرمسلمانئی چی واوري هم دريږی، لکن نن سبا په مسلمانانو کې يوه دخوارجو ډله داسې هم راپيدا شوی ده چې هغوي دې مظلوم شهيد او دده فدائي ملګروته ملامته وائي اوددوی په خلاف ددوي دقاتل (يزيد) مدحې کوي، داسی مسلمانان به څرنګه دحضرت امام حسين رضی الله عنه په سرداری کې دحشر په انتظار وي؟ ددوي حشر به د اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ مطابق-ديزيد اوديزيديانو سره وي.

## افراط اوتفريط

يوه ډله دروافضو ده، چې دا عملي يزيديان دي اوبله ډله د روافض پلوو ده، چی دوي زباني يزيديان دي. په خوله باندی يزيدته کافر وايي لکن اعمال ديزيد په شان کوي، يزيد شراب خور وو دوي هم شراب خوري، يزيد دبيت الله شريف غلاف وسوزولو اوپه بيت الله شريف باندې يې دهغه وخت توپونه(په منجنيق کی تيګې) وورولې او روافضو هم لږه زمانه مخکې دبيت الله شريف سره همداسې

وكړل، اوروافض پلوه خلک په ژبه ديزيد مدحې كوي اوديزيد او دروافضو په دغې مشتركو اعمالوباندې د عملي رضا اظهاركوي.

په دې رساله كې به د الله جل جلاله په توفيق باندې ددې يزيديانو خارجيت په لنډو الفاظو كې الم نشرح كړو، ددې رسالې مضامين به په يوولسو (١١) عناوينو كې را خلاصه كړو.

(١) د حضرت امام حسين رضي الله عنه اجمالي تعارف...

(٢) مختصرسوال او جواب...

(٣) ديزيد نام نهاد حكومت او دده ظلمونه...

(۴) د يزيد په خلاف د حضرت امام حسين رضي الله عنه خروج.

(۵) د حضرت امام حسين رضي الله عنه شهادت...

(٦) د حضرت امام حسين رضي الله عنه د قاتلانو انجام...

(٧) ديزيد په فسق باندې اتفاق...

(٨) په يزيد باندې دلعن په باره كې درې قولونه...

(٩) ديزيد په تكفير او عدم تكفير كې اختلاف.

(١٠) د امارة الصبيان د حديث تشريح...

(١١) د مغفور لهم د حديث تشريح...

## د حضرت حسين رضي الله عنه اجمالي تعارف

حضرت امام حسين رضي الله عنه په څلورم كال د هجرت باندې د شعبان په مياشت كې پيدا شو، كله چې نبى اكرم صلى الله عليه وسلم د ده د ولادت مبارک څخه خبرشو نو تشريف ئې راوړو، په غوږ كې ئې ورته د توحيد الهى اواز پوكړو، بيائې د نوم په باره كې پوښتنه وكړه چاورته ووې چې نوم موورباندې (حرب) ايښى دى، د رسول الله صلى الله عليه وسلم دانوم خوښ نه شو، نو دا نوم ئې ورته په حسين باندې بدل كړو.

د رسول الله صلى الله عليه وسلم ورسره ډيره زياته مينه وه، اكثر وخت به ددې دواړو ورونو دليدلو لپاره د بى بى فاطمې رضي الله عنها كورته ورتللو لكن په اووه كلنى كې ترينه د نيكه د شفقت سورى أو چت شو.

دحضرت أبو بکرصدیق ﷺ دخلافت په زمانه کی بالغ شوی نه وو، دحضرت عمرفاروق ﷺ دخلافت په اخرو کلونو کی دشعور عمر ته رسیدلی وو، دحضرت عثمان ﷺ دخلافت په زمانه کی پوره ځوان وو او دحضرت عثمان ﷺ دخلافت په زمانه کی ئی په سنهٔ (۳۰هـ) کی دطبرستان په معرکه کی شرکت وکړو، بیاچی کله دباغیانو له طرفه حضرت عثمان ﷺ محاصره شو، نو حضرت علی ﷺ دا دواړه ورونه دحضرت عثمان ﷺ دحفاظت لپاره مامور کړل، باغیانو چی کله د دروازې له طرفه لاره پیدا نکړه نو د دیوال دشاله لارې پټ ورغلل او حضرت عثمان ﷺ ئی شهید کړو، کله چی حضرت علي ﷺ د حضرت عثمان ﷺ دشهادت څخه خبرشونو دخپلو دواړو زامنو سرهٔ ئی تشدد وکړو، چی ستاسو په موجودګی کی څرنګه باغیانو حضرت عثمان ﷺ شهید کړو؟

په سنهٔ(۴۰هـ) دهجرت کې چی کله په حضرت علی ﷺ باندې قاتلانه حمله وشوه او حالات ډیرنازک شول نو حضرت علي ﷺ خپل دواړه ځامن راوغوښتل او مفید نصیحتونه ئی ورته وکړل، بیا د پلار دشفقت دسوري څخه هم محروم شول.

بیا دحضرت امیر معاویه ﷺ په زمانه کی په سنهٔ(۴۹هـ) کی د حضرت امام حسن ﷺ کورودانې (جعده) حضرت امام حسن ﷺ ته زهرورکړل، چی ددې په نتیجه کی دمشر وروړ سوري هم ترینه اوچت شو.

بیا په سنهٔ(۶۱هـ) دمحرم په میاشت کی شهید شو.

سوال: آیاحضرت امام حسین ﷺ ته سید الشهداء ویلی شو؟

جواب: مولنا اشرف علی تهانوی رحمه الله فرمائی چی سید الشهداء لفظ لقب نه دی بلکه صفت دی، لهذا دحضرت حمزه ﷺ څخه ماسوی بل چاته هم دسید الشهداء دلفظ استعمال جایزدی، لکه په یو حدیث کی حضرت جعفربن ابی طالب ﷺ ته هم سید الشهداء ویلی شوي دي، کنزالعمال: ج: ۷/ص: ۲۸).

## دحضرت حسین ﷺ دشهادت وړاندوینه

(۱) قَالَتْ ام الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ فَدَخَلْتُ يَوْمًا إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعْتُهُ فِي حِجْرِهِ، ثُمَّ حَانَتْ مِنِّي الْتِفَاتَةٌ، فَإِذَا عَيْنَا رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُهْرِيقَانِ مِنَ الدُّمُوعِ، قَالَتْ: فَقُلْتُ: يَا نَبِيَّ اللهِ، بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي مَا لَكَ؟ قَالَ: أَتَانِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ، فَأَخْبَرَنِي أَنَّ

أُمَّتِي سَتَقْتُلُ ابْنِي هَذَا فَقُلْتُ : هَذَا ؟ فَقَالَ : نَعَمْ ، وَأَتَانِي بِتُرْبَةٍ مِـنْ تُرْبَتِـهِ حَمْـرَاءَ. [مظـاهرحق :ج٥/ ص:/٣٧٣ و المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم :٤٨١٨ و قال هَـذَا حَـدِيثٌ صَـحِيحٌ عَلَى شَرْطِ الشَّيْخَيْنِ ، وَلَمْ يُخَرِّجَاهُ.و رواه السيوطي فى الخصائص الكبرى فى باب إخباره {صلى الله عليـه وسـلم} بالشهاده لثابت بن قيس بن شماس).

حضـرت ام الفضـل بنـت الحـارث رضي الله عنها فرمـائی چی يـو ورځ مـې حضـرت امـام حسـين رضي الله عنه نبـی اکرم ﷺ ته وروړلو او دنبی اکرم ﷺ په غيږه مبارکه کی مې کيښـودلو بيا زما بل طرفتـه مخ شـو ، نـو چی بيرته متوجه شوم د رسول الله ﷺ د سترګو څخه اوښکې روانې وې.ماورتـه وويـل چـی يـا رسـول الله ﷺ! زمامور اوپلار دی در څخه قربان شي ولی ژاړې؟

نبي اکرم ﷺ وفرمايل چی اوس راته حضرت جبرئيل عليه السلام راغلو او خبرئی راته راکړو چی زما امت به په نيزدې وخت کې زما دا ځوی قتل کړي،ماورته ويل چی دا ځوی؟ نبی اکرم ﷺ راتـه وويـل چی هو همدا ځوی به می قتـل کړي، بلکې حضرت جبرئيـل عليه السلام دهغې ځمکې خاوره هم ماتـه راوړه پـه کومـه ځمکه کې به چی دا شهيديږی او هغه خاوره سره وه.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ : رَأَيْتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فِيمَا يَرَى النَّـائِمُ نِصْـفَ النَّهَـارِ أَشْـعَثَ أَغْبَرَ ، مَعَهُ قَارُورَةٌ فِيهَا دَمٌ ، فَقُلْتُ : يَا نَبِيَّ اللهِ ، مَا هَذَا ؟ قَالَ : هَـذَا دَمُ الْحُسَـيْنِ وَأَصْـحَابِهِ لَـمْ أَزَلْ أَلْتَقِطُهُمْ مُنْذُ الْيَوْمِ قَالَ : وَأُحْصِيَ ذَلِكَ الْيَوْمَ فَوَجَدُوهُ قُتِلَ ذَلِكَ الْيَوْمَ. ( مظـاهرحق:ج:(٥)ص:(٣٧٣ و المستدرك على الصحيحين للحاكم رقم :٨٢٠١ و قال هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ عَلَى شَرْطِ مسـلم ، وَلَـمْ يُخَرِّجَاهُ و قال الذهبي في التلخيص : على شرط مسلم و رواه الإمام أحمد بن حنبـل فى مسـنده رقـم : ٢٥٥٣ و قال شعيب الأرنؤوط : إسناده قوي على شرط مسلم و رواه البيهقي فى المعجم الكبـير رقـم : ١٢٦٦٦ و رواه الإمام أحمد بن حنبل فى فضائل الصحابة رقم : ١٣٨٩).

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما فرمائی چی يوورځ مې په غرمه کې نبی اکرم ﷺ په داسې حال کې په خوب کی وليدلو چی بربرسرئی وو اوپه ګردونو ککړوو اوپه لاس کې ئی يـو بوتـل وو، پـه هغې کې وينه وه،نو ماورته وويل چی يارسول الله! زمامور اوپلار دې ستا څخه قربان شي دا څه شی دی؟

نبی اکرم ﷺ راتـه وويـل چی دا د حضرت امـام حسـين رضی الله عنه او ده د ملګرو وينـه ده، دسهر څخه ئی تر اوسه پوري د حضرت امام حسين رضی الله عنه دشهادت ګاه څخه را ټولوم.

حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما فرمايي چی کله چی زه د خوب څخه را بيدارشوم نـو دا وخت مې دځان سره ياد وساتلو، بيا چی د حضرت امـام حسين رضی الله عنه دشهادت خبر راغلو نو بالکل په هغه وخت شهيد شوی وو په کوم وخت کې چی ما خوب ليدلی وو.

سوال: آيا د حضرت امام حسين رضی الله عنه سره د (عليه السلام) لفظ استعمالول جايز دي؟

جواب: (۱) دعلماوو په دې کی اختلاف دی چې د انبياو څخه علاوه دبل چا لپاره دصلوة اود سلام د الفاظو استعمال جايزدی او که نه؟ جمهور علماء فرمائی چی د دې الفاظو استعمال تر انبياو پورې خاص دی.

علامه طيبی رحمه الله فرمائی چی د انبياو څخه ماسوی دبل چا لپاره خلاف الأولی دی، بعضې علماو ورته مکروه او حرام هم ويلي دي، لکن صحيح خبره داده چی دغير نبي لپاره ابتداءً دصلوة اودسلام استعمال مکروه تنزيهي دی ځکه چی دبدعتيانو شعاردی اود أنبياو سره يوځای جايز دی، مثلا چی داسی ووائی چی صلی الله علی محمد وعلی آله واصحابه وسلم. [مظاهرحق: ج/۱/ ص/ ۵۹۶].

قاري محمد طيب رحمه الله فرمايي : د حضرت امـام حسـين رضی الله عنه په بـاره کی دعليـه السـلام دلفظ په استعمال کی اصلي شی فتوی ده، په فتوی باندې شرعي مسئله رامعلوميږی چی جايزدی او که نه؟

لکن د دې سره يو بل شی هم شته چی عرف عام دی، عرف هم په شريعت کی د حجت مرتبه لري، لهذا په عرف کی دعليه السلام لفظ دنبي لپاره استعماليږي.

اودصحابي لپاره درضی الله عنه لفظ استعماليږی، دعلماو دامت لپاره او دصلحاو لپاره درحمت الله عليه لفظ استعماليږي، نوزما په خيال دعرف رعايت بهتر دی، البته بعضې خلک دمحبت دغلبې له وجې داهل بيتو لپار د عليه السلام لفظ استعمالوي، لکه څرنګه چی زمونږ دبعضې اکابرو په تحريراتو کی هم ليدل کيږي، نو دا به صرف دجايز په مرتبه کې وي اويابه په غلبة الحال باندی ورحمل وي نو دعرف رعايت أولی دی

شهادت دحسين رضی الله عنه : ص: (۲۹۳) محمد طيب مهتمم دار العلوم ديوبند هند،

**سوال:** آيا حضرت حسين رضی الله عنه ته دامام دلفظ استعمالول صحيح دي؟

**جواب:** دامام معنی پیشوا او مقتدا ده، نو اهل سنت والجماعت په دې معنی باندې ټولو صحابه وو ﷺ بلکې بعضی تابعینو وغیره وو ته هم امامان وایي، لکن دا خبره په یاد لرئ چې دشیعه ګانو په نیز باندې دامام معنی ده عالم الغیب او معصوم عن الخطاء، په دې معنی هیڅ صحابي وغیره ته امام ویل صحیح نه دي، نو د حسنینو ﷺ د نومونو سره د امام د لفظ په استعمالولو کې چونکې دشیعه ګانو د معنی ایهام دی له دې وجې د دې د استعمال څخه احتراز پکار دی خیر الفتاوی:ج:(۱)ص:(۱۴۰) مفتیان خیر المدارس.

لکن د مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله په عباراتو کې ورته بیا بیا د امام لفظ استعمال شوی دی، دده په اقتداء کې به مونږ هم ورسره په بعضو ځایو نو کې د امام لفظ استعمالوو په معنی د پیشوا او د مقتداء.

## مختصر سوال اوجواب

**اول سوال:** د یزید د مسئلې په راپورته کولو کې څه فایده ده؟ یزید که هر څرنګه وي زمونږ څخه بیاهم ښه دی.

**جواب:** همیشه مسئله هغه څوک راپورته کوي چې نوی اختلاف شروع کوي، څوک چې دفاع کوي هغه ته د مسئلې د راپورته کولو نسبت غلط دی، مثلاً غیر مقلدین او مماتیان نوي نوي اختلافات راپیدا کوي، نو په غیر مقلدینو او مماتیانو باندې رد کول د مسئلې راپورته کول نه وي.

پاتې شوه دا خبره چې یزید زمونږ څخه ښه دی، نو دا صحیح خبره نده، د یزید یوه ګناه چې د حضرت حسین ﷺ قتلول دي د ټولو مسلمانانو په ګناه باندې حاوي ده.

**دوهم سوال:** یزید ته فاسق ویل د شیعه ګانو پیروي ده؟

**جواب:** یزید ته فاسق ویل د اهل سنت والجماعت پیروی ده، لکه څرنګه چې د را روان کتاب د مطالعې څخه معلومیږي، د روافضو پیروي نه ده ځکه چې روافض خو یزید ته کافر وایي.

**دریم سوال:** یزید تابعي دی او تابعي ته فاسق ویل نه دي جایز؟

**جواب:** یزید تابعي نه دی، ځکه چې تابعي خو هغه څوک وي چې صحابه ئی لیدلي وي او د هغوي اتباع او پیروي یې کړې وي او یزید خو د صحابه وو اتباع او پیروي نه ده کړې، بلکه صحابه ﷺ او د دوي اولادونه ئې په ډیرې بیدردۍ سره شهیدان کړل.

**څلورم سوال:** يزيد ته فاسق ويل دحضرت اميرمعاويه رضي الله عنه په خلاف باندې خلکو ته جرئت ورکول دي.

**جــواب:** د اهل سنت والجماعت مسلک د اعتدال دی، روافض دیزید سره د حضرت امير معاويه رضي الله عنه پسې هم بد او رد وائي او خوارج د حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه د صفائي سره ديزيد صفائي هم کوی، لکن اهل سنت يزيد ته فاسق وائي او د حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه صفائي بيانوي.

**پنځم سوال:** يزيد په خيرالقرون کې تيرشوی دی او نبي اکرم ﷺ د خيرالقرون صفت کړيدی، نو د ديوبند علماء څرنګه ورته فاسق وائي؟

**جواب:** مخکې مونږ وويل چې تابعي دی ته وائي چې د صحابه و دليدلو سره سره ئې د صحابه وو پيروي کړې وي او يزيد نه يوائې دا چې د صحابه وو پيروي يئې نه ده کړې، بلکه صحابه وو او د صحابه وو بچې ئې شهيدان کړي دي.

اوپاتې شوه دا خبره چې نبی اکرم ﷺ د خيرالقرون صفت کړی دی نو دا د اکثر په اعتبار سره دی.

شاولی الله رحمه الله فرمائی چې: ولا يمكن تفضيل كل احد من القرن الفاضل على كل احد من القرن المفضول كيف ومن القرون الفاضلة اتفاقًا من هومنافق اوفاسق ومنها الحجاج ويزيدبن معاويه رضي الله عنه.

[حجة الله البالغه:ص/ ۲۱۵/ مبحث الفتن]. نو وروسته به ته ولولې چې يزيد ته اول نبی اکرم ﷺ ظالم او قاتل ويلي دي، بيا ورته صحابه وو ويلي دي او بيا ورته دامت اسلافو ويلي دي، د ديوبند د علماوو فيصله بعينه د نبی اکرم ﷺ او د صحابه وو او د امت د اسلافو فيصله ده.

**شپږم سوال:** يزيديان اکثره دا اعتراض کوي چې د حضرت حسين رضی الله عنه او حضرت عبد الله بن زبير رضی الله عنه څخه ما سوی نورو ټولو صحابه وو ديزيد خلافت منلی وو؟

**جواب:** يزيديان دې د حوالې سره ديو يو صحابي بيعت ثابت کړي.

**۲-جواب:** کومو صحابه وو چې بيعت کړی وو هغوي ولې بيرته فسخ کړو؟

**۳-**چې ټولو صحابه وو بيعت کړی وو نو يزيد بيا د حرې په واقعه کې ولې په مدينه منوره کې په زرګونو قتلونه وکړل او ولې يې په مکه مکره د حملې لپاره لشکر وليږلو؟

**اووم سوال:** عبد الله بن عمر رضى الله عنهما د يزيد سره بيعت وكړو او فرمايل يې چې: انا قد بايعنا هذ الرجل على بيع الله ورسوله الخ (صحيح البخارى كتاب الفتن، باب اذا قال عند قوم شيئا ثم خرج فقال بخلاف)

**جواب ۱-** دعبد الله بن عمر رضى الله عنه سره دا ثارت دفتنې ويره وه په رضا او رغبت سره يې بيعت نه وو كړى له همدې وجې يې ديزيد ولي عهدې په وخت كې بيعت ونكړو (البدايه والنهايه ج ۸ص ۱۵۱) بلكې د امير معاويه رضى الله عنه د وفات څخه وروسته يې بيعت وكړو او بيا يې هم په تيزى سره بيعت نه دى كړى بلكې فرمايل به يې چې: اذا بايع الناس فلم يبق غيرى بايعت وكانوا يتخوفونه (البدايه والنهايه ج ۸ص ۱۴۸)

**۲-جواب:** دعبد الله بن عمر رضى الله عنه دبيعت څخه دا نتيجه اخستل غلط دي چې يزيد صلاح او عادل وو بلكې دعبد الله بن عمر رضى الله عنه بيعت په خپل اجتهاد باندې پدې حديث بنا وو چې امام كه ظالم هم وو نو دتفرقې څخه دبچ كولو لپاره يې اطاعت كوئ.

## ديزيدنام نهادحكومت اودده ظلمونه

ددې مضمون په تفصيل كى به دخپلو جملو په ځاى أكثر دخپلو أكابرو تحريرات رانقل كړو، ددې تحرير اتو څخه به داصل واقعې ټول جزئيات رابنكاره شي، ان شاء الله تعالى.

## دحضرت أميرمعاويه رضي الله عنه وفات اوديزيد په تخت باندى كيناستل

د رجب په مياشت كى حضرت أمير معاويه رضي الله عنه په سنهٔ (۶۰ھ) كې وفات شو، ددې څخه وروسته يزيد په تخت باندې كيناستلو.

## مولناقاسم نانوتوى رحمه الله

مولنا قاسم نانوتوى رحمه الله فرمائى چې:

ازاول ولى عهدى يزيد بحث ميكنيم بعد ازآن درشهادت حضرت سيد الشهداء عليه وعلى آباءه السلام حرف مى زنيم، تاوقتيكه حضرت اميزمعاويه رضي الله عنه يزيد پليت را ولى عهد خود كردند فاسق معلن نبود اگرچيزى كرده باشد درپرده كرده باشد، كه حضرت امير معاويه رضي الله عنه را ازآن خبرنبود، علاوه براين حسن تدبيردرجهاد آنچه كه ازو مشهورشد مشهوراست، مكتوب القاسمى.). (اول ديزيد د

ولي عهدی ځخه بحث کوم، ددې ځخه وروسته دسيد الشهداء عليه وعلی آبائه السلام په شهادت باندی بحث کوم په کوم وخت کې چې حضرت امير معاويه رضي الله عنه يزيد پليت خپل وليعهد مقرر کړو ،نو په هغه وخت کې يزيد علانيةً فاسق نه وو که کوم کارئی کړی وي نو په پرده کی به ئی کړی وي چی حضرت امير معاويه رضي الله عنه به ورباندې خبرنه وو، علاوه لا دا چې په جهاد کی د يزيد حسن تدبير مشهوروو.

## شيخ الاسلام مفتي محمدتقی العثماني رحمه الله

دعلماء وو راجح قول دادی چی وليعهدي ديو تجويز حيثيت لري، بيا دخليفه دوفات ځخه وروسته دامت داهل الحل والعقد اختيار دی چی وليعهد خليفه جوړوي اوکه دمشورې ځخه وروسته کوم بل يو خليفه جوړوي، لهذا دحضرت اميرمعاويه رضي الله عنه دوفات ځخه وروسته ديزيد خلافت ترهغه وخته پورې نه منعقد کيدلو ترکومه پورې چی دامت اهل حل اوعقد منظوري نه وه ورکړې. حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه اورتاريخی حقايق:ص:(۱۱۱)

## مفتي شفيع رحمه الله

دحضرت عثمان رضي الله عنه دشهادت ځخه وروسته چی کله دخلافت سلسله حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه ته ورسيدله نو په حکومت کی دخلافت راشده هغه مثالي رنګ نه وو پاتی کوم چی دخلفاء راشيدينو حکومت ته حاصل وو، خلکو به حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه ته مشوره ورکوله چی ډيره سخته دفتنو زمانه ده، نوتاسو دخپل ځان ځخه وروسته ځه انتظام وکړئ چی په مسلمانانو کی بياتوره راونه وزي اواسلامي خلافت دټوټه ټوټه کيدلو ځخه بچ شي، دحالاتو دتقاضی سره تراوسه پورې کومه غير معقول اوغيرشرعي کارهم نه ووشوی،لکن ددې سره يې دخپل ځوی يزيدنوم هم دراروان خلافت لپاره پيش کړی وو، دکوفې ځخه ځلويښت مسلمانان راتلل اويارا ليږل کيدل چی حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه ته درخواست وکړي چی ستاسو ځخه وروسته ستاد ځوی يزيد ځخه بل زيات ځوک دملکي سياست په چاروکی ماهرپه نظرنه راځي لـه دې وجی د ده لپاره دخلافت بيعت واخلئ،په ابتداء کی حضرت اميرمعاويه رضي الله عنه يو ځه ناځه متردد وو، دخپلو خاصو خاصو ملګروسره ئی مشوره وکړه، په دوي کې اختلافات وو چا دموافقت اوچا دمخالفت رايه ورکوله، په دغه وخت کی ديزيد فسق اوفجورهم ښکاره نه وو آخرئی اراده وکړه چی ديزيد لپاره بيعت واخلي. شهيد کربلا:ص:(۱۲)ازمفتی شفيع رحمه الله.

## داهل سنت والجماعت په نیزدخلافت مسئله

په مسلمانانو باندی دخلیفه انتخاب واجب دی اوددې انتخاب به دمسلمانانو جماعت کوي، دخلیفه څخه بغیر د حُمکې نظام نه چلیږي، صحابهٔ کرام رضي الله عنهم په دې باندې ښه پوهیدل، د رسول الله ﷺ ددفن څخه مخکې مخکې یې دخلافت مسئله جوړه کړه، چې خلافت نه وي نو دمسلمانانو داختلافاتو ختمول نه دي ممکن، لیکن په نصوصوکې دکوم شخص په نوم باندې تصریح نه شته بلکې دمسلمانانو جماعت ته ددې انتخاب حواله دی. [مسلم:ج: (۲)ص: (۲۷۳)].

## په اسلام کی دیزیددبیعت حادثه

اوازه داسی خپره شوه چی دشام، دعراق، دکوفې اودبصرې خلک دیزیدپه بیعت باندی متفق شول، مفتی شفیع رحمه الله فرمائی چی: په شام اوپه عراق کی دا نه وه معلومه چی کم قسم خلکو دیزید دبیعت اوازه خپره کړه اودې خبرې ته یې شهرت ورکړو، چی دشام، عراق، دکوفې اوبصرې خلک دیزیدپه بیعت باندې متفق شوي دي. [شهید کربلا :ص(۱۱۳)ازمفتي شفیع رحمه الله].

ددې څخه وروسته حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه دمکې اودمدینې امیر ددې کارلپاره وګمارلو چی دخلکو څخه دیزید لپاره بیعت واخلي، دمدینې منورې عامل مروان وو، مروان خلکوته تقریروکړو چی امیرالمؤمنین حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه دابوبکرصدیق رضي الله عنه اودعمرفاروق رضي الله عنه دسنتومطابق غواړي چی د خپل ځان څخه بعد دیزید دخلافت لپاره بیعت واخلي، نوپه دغه وخت کې حضرت عبدالرحمن بن ابی بکرصدیق رضي الله عنهما ورپورته شو، اوورته ویفرمایل چی د اخبره غلطه ده دحضرت ابوبکرصدیق اودعمرفاروق رضي الله عنهما طریقه دانه ده، بلکه دا دقیصر اودکسری طریقه ده، حضرت ابوبکرصدیق اوعمر فاروق رضي الله عنهما خپلو اولادونو ته خلافت نه دی نقل کړی اونه ئی خپلو قومیانو اوخپلوانوته نقل کړی دی. شهید کربلا :ص: (۱۴)ازمفتی شفیع رحمه الله.

دمدینې دخلکو نظر داوو چی دخلافت لپاره ډیر اهل حضرت حسین رضي الله عنه دی، لیکن بیاهم دمدینی خلک منتظروو، چی حضرت حسین بن علی رضي الله عنهما حضرت عبدالله بن عمرفاروق رضي الله عنهما، حضرت عبدالرحمن بن ابی بکرصدیق رضي الله عنهما، حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنهما او حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څه کوی؟

د دغو جليل القدرو صحابه وو نظردا وو چې اول خود كتاب اودسنت په رڼا كې اسلامي خلافت دنبوت خلافت دى چې ميراث په كى نه چليږي اودوهم ديزيد ذاتي حالت هم د دې اجازه نه وركوي چې دټول اسلامي مملكت خليفه شي، لهذا دې صحابه وو ﷡ د دې تجويز مخالفت وكړو چې د دوي اكثريت ترآخره پورې په مخالفت باندې كلك ولاړ وو چې د دې په نتيجه كى په مكه مكرمه،مدينه منوره،كوفه او كربلا كې دقتل عام واقعات پيښ شول. [شهيد كربلا :ص: ۱۴].

كله چې حضرت امير معاويه ﷛ خبرشو چې په مكه مكرمه او مدينه منوره كى جليل القدرصحابهٔ كرام ﷡ ديزيد سره بيعت كولو ته نه دي تيار، نوپه سنهٔ (۵۱ھ) كى يې پخپله د حجاز سفر وكړو، مدينې منورې ته لاړو اودغو صحابه وو ﷡ سره يې نرمې اوګرمې خبرې وكړې لكن بياهم دا صحابه پخپل مخالفت باندې ښكاره او كلك ولاړ وو. [شهيد كربلا : ص ۱۵].

د دې ځخه وروسته حضرت امير معاويه ﷛ حضرت عايشې ﷝ ته ورغلو اوشكايت ئى ورته وكړو چې داصحابهٔ كرام ﷡ زما مخالفت كوي، حضرت عايشې ﷝ ورته نصيحت وكړو چې ما اوريدلي دي چې ته د دوي سره جبر او زوركوى او دقتل اخطارونه ورته وركوى، حضرت امير معاويه ﷛ ورته وفرمايل چې ما داسې نه دي كړي، دا حضرات زما په نيز د احترام قابل دي، لكن دشام، عراق اودعامو اسلامي ښارونو خلك ديزيد په بيعت باندى متفق شوي دي اود خلافت بيعت مكمل شوى دى اوبياهم دا يو څو حضرات مخالفت كوي نو اوس تا سو ووائى چې مسلمانان په يوكس باندى متفق شوي دي او بيعت مكمل شويدى نو آيا زه اوس دا بيعت د مكمليدلو ځخه وروسته پرېږدم؟

حضرت عايشى ﷝ ورته وفرمايل چې هغه ستا رايه اوستا خوښه ده، لكن زه درته وايم چې د دې حضراتو سره تشدد ونه كړى، په احترام اوپه رفق ورسره ګفتګو كوه، حضرت امير معاويه ﷛ د حضرت عايشى ﷝ سره وعده وكړه. ابن كثير.

كله چې حضرت امير معاويه ﷛ په مدينه منوره كى وو، نو د حضرت حسين ﷛ او د حضرت عبد الله بن زبير ﷛ ګمان دا وو، چې مونږ مجبور ولى شو، له دې وجې دخپل أهل او عيال سره مكې مكرمې ته لاړل، حضرت عبد الله بن زبير ﷛ او حضرت عبد الرحمن بن ابى بكر صديق ﷞ حج ته تللي وو. [شهيد كربلا :ص: (۱۵) ازمفتي شفيع ﷫].

ددې ځخه وروستـه حضـرت اميرمعاويـهؓ دحـج لپـاره مکـې مکرمـې تـه لاړو هلتـه يـې اول حضرت عبدالله بن عمرؓ را وغوښتلو اوورته ويفرمايل چې ای عبدالله بن عمر! ددې لپاره چې زما ځخه وروسته دمسلمانانو ژوند بې اميره نه وي او د مسلمانانو په مابين کې ګډوډي رانشي زه ديزيد لپاره بيعت اخلم نو زه تعجب کوم چې تاسو ولې بيعت نه کوئ ؟لدې وجې زه تاتـه خبرداری درکوم چې جوړنظم مه خرابوه اوفسـادمه جوړه. شهيد کربلا :ص:(١٦) ازمفتـي شفيعؒ. حضرت عبدالله بن عمرؓ د اللہ تعالیٰ دحمد اوثنا ځخه وروسته وفرمايل چې ستا ځخه مخکې هم خلفاء تيرشوي دي اوهغوي هم ځامن لرل،ستاځوی دهغـوي ځخه بهترنه دی لکن هغـوي دخپلو ځامنو لپـاره هغـه رايـه نـه ده قايمه کړی کومه چی تـا دخپـل ځوی لپاره قايمه کړه،ستا ځخه مخکينو خلفاوو دمسلمانانو اجتماعي فايدې په نظر کې نيولې وې،بيايې ورتـه وويـل چې تاسـو مـا دمسلمانانو پـه مابين کې د انتشـارځخه داروئ خو دا واوره چې زه به هيځکله هم دمسلمانانو په مابين کې د انتشـار سبب نـه شم زه دمسلمانانو يوفرديم مسلمانان چې په هره لاره باندې ځي زه هم په هغه لاره باندې ورسره ځم.

ددې ځخه وروستـه حضرت اميرمعاويـهؓ دحضرت عبدالرحمن بن ابی بکرصديقؓ سره ديزيـد پـه بـاره کـې خبری وکړی،حضـرت عبـدالرحمن بـن ابـی بکـر صـديقؓ پـه ډيـر شـدت سـره انکاروکړو،بيائی حضرت عبدالله بن زبيرؓ راوغوښتلو هغه هم سخت انکار وکړو. شـهيد کربلا :ص:(١٦)ازمفتي شفيعؒ.

له دې ځخه وروسته حضرت امـام حسـينؓ او حضرت عبدالله بن زبيرؓ پخپله پـه اجتمـاعي طريقه باندې حضرت اميرمعاويهؓ ته ورغلل اوورتـه ئی وويـل چی تاتـه هيځکله دانـه ده مناسبه چی دخپل ځوی يزيد لپاره دبيعت په اخستلو باندی ټينګاروکړې،مونږ تاته درې تجويزه پيش کوو،کوم چی ستا ځخه دمخکينو سنت دي.

**اول**:ياهغه کاروکړه کوم چی نبي اکرمﷺ کړی وو، چی دخپـل ځان ځخـه وروستـه ئی دکوم معين شخص تعينن ونه کړو،بلکی خبره ئی دمسلمانانو مشورې ته پريښوده.

**دوهم**:ياهغه کاروکړه کوم چی حضرت ابوبکرصديقؓ وکړو چی نـه ئی خپـل ځوی وټاکلواونـه ئی خپل کوم خپلوان وټاکلو، بلکی يو داسې کس يې منتخب کړو، چې په هغه باندې دټولو مسلمانانو اتفاق وو.

**دریم**:یا هغه کار وکړه کوم چې حضرت عمر فاروق رضی الله عنه وکړو چې د خلافت کارئې د خپل ځان څخه وروسته شپږو باتجربه دیندارو کسانو ته حواله کړو، د دې څخه بغیر مونږ د بل کوم څلورم صورت منلو ته تیار نه یو، لکن حضرت امیر معاویه رضی الله عنه په خپله رایه باندې کلک وو او فرمایل به ئې چې اوس د یزید لپاره بیعت مکمل شوی دی لهذا تاسو ته اوس دده سره مخالفت کول نه دي جایز. [شهید کربلا :ص: ۱۷].

## دیزید حکومت په کومه طریقه باندې بناوو؟

مخکې د خلیفه د ټاکلو لپاره درې طریقې بیانې شوې، د دې څخه وروسته یوه څلورمه طریقه هم شته او هغه دا چې کوم سړی پخپل زور باندې ځان قدرت ته ورسوي، چې ده ته سلطان متغلب وایي، سلطان متغلب تر هغه وخته پورې قابل د اطاعت وي تر څو پورې یې چې د شریعت په احکامو کې تقصیر نه وي کړي، (معالم العرفان فی دروس القرآن:ص:(۱۵۱)صوفی عبد الحمید سواتی).

دیزید حکومت په دې څلورمه طریقه باندې مبنی وو، چې هغه هم لا تر اوسه پورې غلبه نه وه حاصله کړې ځکه چې کله چې حضرت امیر معاویه رضی الله عنه وفات شو، نو دیزید سره په بیعت کولو باندې د مشرانو صحابه وو رضی الله عنهم اتفاق نه وو راغلی، یا په نورو الفاظو باندې وو ایه چې دیزید سره په بیعت کولو باندې اجتماع نه وه.

او مخکې بیان شوه چې سلطان متغلب په هغه وخت کې قابل د اطاعت وي چې د شریعت د احکامو په تنفیذ کې سستي نه کوي او د دې بالعکس یزید د شریعت حدود تر پښو لاندې کړي وو، مثلا مونځ ئې نه کولو، شراب ئې خوړل. همدا رنګه ئې لا غلبه هم نه وه حاصله کړې، لهذا یزید د اطاعت قابل نه وو.

مفتي محمد تقی عثمانی رحمه الله فرمایي: کله چې حضرت امیر معاویه رضی الله عنه وفات شو نو حضرت امام حسین رضی الله عنه ولیدل چې د حجاز د اهل حل وعقد اکابرو د عبد الله بن عمر رضی الله عنهما په شمول لا تر اوسه پورې دیزید حکومت نه دي منلي، بل طرفته د عراق څخه د خطونو انبار را روان وو چې زمونږ امام نه شته، مونږ لا تر اوسه پورې دیزید سره بیعت نه دی کړی، په دې حالاتو کی د حضرت حسین رضی الله عنه موقف دا وو چې یوازې د شام د خلکو بیعت په ټول امت باندې لازم ندی، لهذا دیزید خلافت لا تر اوسه پورې نه دی منعقد شوی او د دې باوجود په ټول عالم اسلام باندې په زور سره د تسلط کوشش کوي، نو دده حیثیت د یو متغلب سلطان دی چې غلبه غواړي لکن تر اوسه پورې یې غلبه نه وي حاصله کړې، نو په دې حالت کې حضرت حسین رضی الله عنه دده سره مخالفت کول خپل فرض ګڼل، او د همدې وجې حضرت حسین رضی الله عنه د ټولو څخه مخکې د حالاتو د تحقیق لپاره

مسلم بن عقيل كوفې ته وليږلو ،نو كوفې ته دده سفر دفقهي نقطې له نظره بغاوت نه وو ، بلكه ديو متغلب سلطان دمخنيوي لپاره وو ،ځكه چې يزيد تر او سه پورې په ټول عالم اسلام باندې قابض شوى نه وو ، چې دسلطان متغلب په حيثيت سره قابل داطاعت شي نو د حضرت حسين رضي الله عنه په نظر كې تر او سه پورې ددې مخنيوى ممكن وو . [حضرت امير معاويه رضي الله عنه اور تاريخى حقايق: ۱۱۱].

## دحضرت اميرمعاويه رضي الله عنه دوفات څخه وروسته ديزيدحالت

مولنا قاسم نانوتوى رحمه الله فرمائى :

پس از انتقال او يزيد پاى خود از شكم بر آورد ، ودل بكام ودست بجام سپرد ، اعلان فسق نمود ، وترک صلوة داد ،بحكم بعضى مقدمات سابقه قابل عزل گرديدى ، واين قسم تحول احوال گفته آمده ام ممكن است محال نيست ، مگر درين وقت رائى اهل رايه وتدبير مختلف افتاد ، كسى راكه انديشه فتنه وفساد غالب افتاد ، ناچار دست به بيعتش بكشاد ، واحتراز عن المعصية شرط اتباع معروف درميان نهاد ، وآن راكه بوعده يک جماعت كثيره مثلا اميد غلبه ورجاء شوكت بنشرآمد حسبه الله برخاست وتهيه كارزار خاست پس هرچه حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما وامثال او شان كزدند بجا كردند وآنچه حضرت سيد الشهداء رضي الله عنه نموده عين حق وصواب نمودند ، بناءً اين اختلاف بر اختلاف درجو از آن مگر انجام كار بوجه نقض عهد كوفيان تدبير حضرت سيد الشهداء برنشانه ننشست وروز عاشورى قيامت قبل از قيامت درميدان كربلا برخاست. [مكتوب قاسمى ص ۴۰).

دحضرت امير معاويه رضي الله عنه دوفات څخه وروسته ديزيد حالت بدل شو پېښې يې دګيډې څخه را ويستلې زړه يې نفسي خواهش او لاسونه يې شرابو ته وسپارل، په ښكاره باندې يې فسق شروع كړو ،مونځ يې پرېښودلو دبعضې مخكنيو تمهيدونو په بنياد باندې دعزل قابل شو او ديزيد دحالاتو دا قسم تبديلي محاله نه ده ، بلكه ممكنه ده،لكن په دغه وخت كې دپوهو خلكو رأيې مختلفې شوې بعضو ته دا انديښنه پيدا شوه چې ډيره فتنه او فساد به راپيدا شي نو هغوي دمجبوريت څخه دبيعت لاس وراوګد كړو او دګناه څخه دبچ كيدلو لپاره يې داتباع دمعروف شرط ولګولو ، لكن كوم كس يعنى حضرت حسين رضي الله عنه ته چې د (كوفى دخلكو ) غټ جماعت له طرفه (دبيعت او ديزيد په خلاف جنګ) دوعدې په بناء باندې دكاميابى اميد په نظر راتلو هغه د الله جل جلاله لپاره راپورته شو او دجنګ عزم يې

وکړو، کوم کارچی حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما وکړو نو هم په ځای کارئی وکړو او کوم کارچی دشهیدانو سردار حضرت حسین رضی الله عنه وکړونو هغه بالکل حق او صواب وو، ددې اختلاف بنیاد دغلبې او دعدم غلبې داختلاف په بنیاد باندی وو، په دې باندې نه وو چی اصل فعل جایز دی او که نه دی جایز، لیکن په آخر کې دکوفیانو دوعده خلافی په نتیجه کې دحضرت حسین رضی الله عنه تدبیر ناکام شو، دمحرم په لسم تاریخی باندې دکربلا په میدان کې دقیامت څخه مخکې قیامت جوړ شو.

## یزیدچی کله په تخت باندی کیناستلو

یزید چی کله په تخت باندی کیناستلو، نو دده لپاره دهر څه څخه مخکې مهمه داوه چی دحضرت امام حسین رضی الله عنه اودحضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه بیعت واخلي، ځکه چی یوخو دې دواړو دحضرت امیر معاویه رضی الله عنه په مخکې د یزید سره دبیعت کولو څخه سخت انکار کړی وو اودوهم یزید په دې خبره باندې پوهیدلو چی ددې دواړو څخه دخلافت ددعوې امکان دی اوددوي دخلافت ددعوې په وجه ټول حجاز اودعراق اکثره حصې دیزید په خلاف باندې را اوچتیږی، نو د یزید دخپل حکومت دبقاء اودتحفظ لپاره ددوي دواړو څخه دبیعت اخستل ضروري ګڼل. سراج الصحابه: ج: (۴) ص: (۱۴۴).

لهذا یزید دمدینې منورې والي حضرت ولید بن عقبه رضی الله عنه ته ولیکل چې: أَمَّا بَعْدُ فَخُذْ حُسَيْنًا وَعَبْدَ اللّٰه بن عمرو عبد اللّٰه بن الزُّبَيْرِ رضی الله عنهم بِالْبَيْعَةِ أَخْذًا شَدِيدًا لَيْسَتْ فِيهِ رُخْصَةٌ حَتّٰى يُبَايِعُوا وَالسَّلَامُ. [البداية والنهاية: ج۸) ص۱٤۹)- طبری: ج٤) ص: (۲۵۰) وابن اثير: ج: (۲) ص: (۲٦۹).

حسین، عبد الله بن عمر او عبد الله بن زبیر د بیعت لپاره په سختۍ سره ګرفتار کړه او ترڅوئی چی بیعت نه وي کړی رخصت مه ورکوه، والسلام.

دوهم حکم ئی ورته داسی ولیږلو چی: عليک بالحسين بن علي وعبد اللّٰه بن زبير فابعث اليهما الساعة فان بايعا والا فاضرب اعناقهما قبل ان يعلن الخبر

مخکې له دې چی دحضرت امیر معاویه رضی الله عنه دوفات خبر اعلان شي حسین بن علي او عبد الله بن زبیر راوغواړه که بیعت ئی وکړو خو ډیره ښه ده او که نه نو سرونه ئی قلم کړه. [الاخبال الطول: ص: (۲۲۷) تجلیات صفدر: ج۱/ ص ۵۵٦]. چی کله دیزید داحکم دمدینې منورې والی حضرت ولید بن عقبه رضی الله عنه ته ورسیدلو نو حضرت ولید بن عقبه رضی الله عنه ته ددې حکم عملي کول ډیر مشکل شول،

نوخپل نایب مروان بن حکم یي را اوغوښتلو اومشوره ئی ورسره وکړه، مروان ډیرسخت مزاجه سړی وو، نو والي ته ئی وویل چی همدا اوس دواړه را وغواړه اودیزید لپاره ترینه دبیعت مطالبه وکړه که بیعت ئی وکړو نوډیره ښه ده اوکه نه د دواړو څخه سرونه غوځ کړه اوکه داسی دی ونه کړل اودوي دحضرت امیرمعاویه رضی الله عنه دوفات څخه خبرشول نو ممکنه ده چی هریو په یو ځای کی دخلافت دعوه وکړي بیابه ډیر مشکل جوړشي، سراج الصحابة:ج:(۴)ص:(۱۴۵)..

ددې مشورې څخه وروسته حضرت ولید رضی الله عنه دا دواړه حضرات را وغوښتل اول ئی دحضرت امیر معاویه رضی الله عنه دوفات څخه خبرکړل اوبیایې ترینه دیزید لپاره دبیعت مطالبه وکړه، ددې په اوریدلو سره حضرت حسین رضی الله عنه داعذر پیش کړو چې ځما غوندې سړي ته دانه ده مناسبه چی پټ په پټه بیعت وکړی، کله چی ته مسلمانان دعام بیعت لپاره را وغواړی نوزبه هم راشم.

نوچی عامو مسلمانانو کوم صورت اختیار کړو نوما ته به هم عذرنه وي، حضرت ولیدبن عقبه رضی الله عنه نرم اوخیرخواه سړی وو لەدې وجې خوشحاله شو،نومروان والي ته وویل چی: لا تخرجه حتي يبايع والاضربت عنقه.

دوي مه پریږده یادې بیعت وکړی اویائی سرونه قلم کړه. بیا دحضرت حسین رضی الله عنه اودمروان په مابین کی ترخې خبرې تبادله شوې،حضرت ولیدبن عقبه رضی الله عنه وفرمایل چی زما دی په الله جل جلاله باندی قسم وی چی که ځوک ماته ټوله دنیا راکړي نوبیابه هم حضرت حسین رضی الله عنه قتل نه کړم، په الله جل جلاله می دی قسم وی چی دحضرت حسین رضی الله عنه دقاتل تله په سپکه وي. البداية والنهاية:ج۸/ ص: ۱۵۰/ طبری ص/۲۵۱ والكامل لابن الاثيرج۲/ ص ۵۳۰).

په یوروایت کی راځي چه کله چی حضرت ولیدبن عقبه رضی الله عنه ته دیزید اول حکم راورسیدلو نوحضرت ولید رضی الله عنه حضرت امام حسین رضی الله عنه،حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما اوحضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه راوغوښتل او دیزید فرمان ئی ورته واورولو، نو دې حضراتو ورته وفرمایل چی ته خو پخپله هم صحابي یې ایاستا په نیز دیزید په شان فاسق اوفاجرسړی دمسلمانانو بادشاه کیدی شي؟

حضرت ولید رضی الله عنه ورته وفرمایل چې نه شي کیدلی لکن ماتاسو مصلحتًا خبرکړئ (تقاریر جمعه ج۱)ص:(۵۱۹).

## دمروان شرارت

مروان پټ په پټه د ولید بن عقبهؓ او ددې صحابه وو تـول جریـان یزید تـه ولیږلـو، یزید حضرت ولیدبن عقبهؓ په دې جرم باندې معزولـه کړو، چې ولې ئی ددې صحابه وو په وژلو کې تاخیروکړو اودده په ځای باندې ئی مروان بن حکم دمدینې منورې والي مقررکړو.

داصـحابهؓ دیزیـد او د مـروان دلاسـه متفرق شـول، حضـرت حسـینؓ او حضرت عبـد الله بـن زبیرؓ مکې مکرمې ته لاړل.[تقاریرجمعه:ج/۱/ ص۵۱۹].

## مروان څوک وو؟

مروان بن حکم بـن ابی العـاص بن امیه بن عبد شمس بن عبد مناف لأموي ألمدني، په دوهم کـال دهجرت باندی زیږدلی دی، لیکن صحابیت ئی نه دی ثابت ،دحضرت عثمانؓ دخلافت په زمانه کې دحضرت عثمانؓ کاتب او مشیروو اودحضرت امیرمعاویهؓ په زمانه کې څوځله دمدینې منورې والـي پـاتې شـوی دی، دیزیـد دمـرګ څخـه وروسـته تقریبًا د امویـانو دلاس څخـه حکومـت وتلـی وو، عبیدالله بن زیاد ورته دبیعت داخستلو مشوره وکړه، بالاخره په سنهٔ(۶۵ھ) کی خلیفه شو، لکن دخلافت موده یې شپږمیاشتی وه او د(۶۳)کالوپه عمرباندی په سنه(۶۵ھ)کی وفات شو.

مـروان دصـحیح بخـاري راوي دی، دقتـل دمشـورې پـه وجـه ورتـه فاسـق ویـل کیـدلی شـي، لکـن کافرورته نشی ویل کیدلی، اودفاسق اودفاجر روایت دمحدثینو په نیزباندې په دې شرط منلی شي چې دده روایت دده دفسق اودفجور اودبدعت په تائیدکې نه وي، په شرح نخبة الفکر کې فرمایي چې: ثـم البدعة اما ان تکون بمکفر کأن یعتقد مایستلزم الکفر اوبمفسق.

بیافرمائی چی: الجمهور یقبل من لم یکن داعیة الي البدعة. شرح نخبة الفکر:ص:(۹۰).

حافظ ابن حجرؒ فرمائی چی امام بخاریؒ دمروان بن حکم هغـه روایات راخستي دي چې د ده د امامـت او د خلافـت دکـارونو د شـروع کولو څخـه مخکنـي دي. [هـدی السـاری مقدمـة خیرالساری:ج/۱/ ص۶۱۹].

## دمدينې منورې دخلکو د يزيد سره بيعت ماتول

امام بخاری رحمه الله د دې په باره کې فرمايي چې: لَمَّا خَلَعَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ يَزِيدَ بْنَ مُعَاوِيَةَ. (بخاری:ج:(۲)ص:(۱۰۵۳) کله چې د مدينې منورې خلکو د يزيد سره بيعت مات کړو.

## دابيعت اهل مدينه وو ولې مات کړو؟

نو دصحيح بخاري محشي ليکی چې: وکان السبب في خلعه ماذكره الطبرى ان يزيد بن معاويه كان امرعلي المدينة ابن عمه عثمان بن محمد بن سفيان فاوفد الى يزيد جماعة من اهل المدينة منهم عبدالله بن غسيل الملائكة وعبدالله بن عمروالمخزوي في آخرين فاكرمهم واجازهم فرجعوا،فاظهروا عيبه و ينسبوه الي شرب الخمر وغيرذلک ثم وثبوا على عثمان فاخرجوه وخلعوا يزيدبن معاويه(الي اخرالقصة). بخاری:ج: ۲)ص: ۱۰۵۳)حاشية نمبر(۷).

ديزيد ديبعت دماتولو سبب طبري داسې بيان کړی دی، چې يزيد بن معاويه خپل دتره ځوئ عثمان بن محمد بن سفيان دمدينې منورې حاکم مقرر کړو، بيا ده دمدينې دخلکو يو وفد يزيد ته وليږلو، چې په دوي کی عبدالله بن غسيل الملايكة او عبدالله بن عمر المخزومي رضي الله عنه هم وو، يزيد د دې وفد عزت او اکرام وکړو کله چې دا وفد بيرته مدينې منورې ته راغلو نو ديزيد عيبونه يې افشاء کړل، يزيد ته يې دشرابو دخوړلو وغيره کارونو نسبت وکړو، بيا يې عثمان باندې توپ کړو، دمدينې منورې څخه يې وشړلو او ديزيد بيعت يې مات کړو.

## داوفد يزيدته دڅه لپاره وراستول شوی وو؟

حافظ ابن کثير رحمه الله فرمائی چی وجه يې دا وه چې دمکې مکرمې خلکو به يزيد ته په ښکاره فاسق ويلی، نو يزيد دمدينې منورې خلک بيا بيا مجبورول چی په مکه مکرمه باندی حمله وکړي، نو دمدينې منورې خلکو د دې مسئلې دحل لپاره يزيدته يو وفد وروليږلو، دوفد مشري حضرت عبدالله بن حنظله رضي الله عنهما او حضرت عبدالله بن مطيع رضي الله عنه کوله، کله چی دا وفد بيرته مدينې منورې ته راغلو نو دمدينې منورې خلکو ته ئی خپله کارګذاري داسې بيان کړه چی:

قدمنا من عندرجل ليس له دين،يشرب الخمر وتعزف عنده القينات المغارف وان نشهدكم انا قدخلعناه فتابعهم الناس على خلعه. [البداية النهاية:ج:(۸)ص:(۲۱۸)-تجليات صفدر:ج/۱

ص/۵۹۲]. يعنى يزيديو بى دينه سړى دى، شراب خوردى او ډمې ګډوي تاسو شاهدان اوسئ چى مونږ دده بيعت ختم کړو نو بيا خلکو (دبيعت په ختمولو کى) ددوي پيروي وکړه.

کله چى يزيد خبرشو نو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چى: فبلغ ذالک يزيد، فجهـزاليهم جيشًـا مـع مسلم بن عقبه المرى وامـره ان يـدعوهم ثلاثـًا فـان رجعـوا والافقـاتلهم. فـتح البـارى:ج: (۱۳) ص: (۷۵) دارالريان قاهره. يزيد چې خبرشو نود مسلم بن عقبه په مشرى کى ئى دمدينې منورې دخلکو په خلاف يو لښکر راوليږلو او دې لښکرته ئى حکم وکړو چى تر درې ورځو پورى (ديزيد دبيعت لپاره) دعوت ورکړئ که دخپلى خبرې څخه راوګرزيدل نوډيره ښه ده اوکه نه نو قتال ورسره وکړې.

مسلم بن عقبه ديزيد په امر باندى راغلو، دمدينې منورې خلکوته يې وويل چى ديزيد سره بيعت وکړئ دمدينې منورې صحابه وو اوتابيعنو انکار وکړو، بيا مسلم بن عقبه په مدينه منوره کې درې ورځې قتل عام وکړو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى چى: وأباح مسلم بن عقبة المدينة ثلاثا فقتل جماعة صبراً مـنهم معقـل بـن سـنان ومحمـد بـن أبي الجهـم بـن حذيفـة ويزيـد بـن عبـد الله بـن زمعـة، (فـتح البارى:ج:(۱۳)ص:(۷۵).

يعنى مسلم بن عقبه تردرې ورځو پورې مدينه منوره مباحه کړه، ډيرخلک يې صبرًا قتـل کړل، چى په هغوي کى معقل بن سنان، محمد بن ابى الجهم بن حذيفة اويزيد بن عبد الله بن زمعه هم وو.

په بل روايت کى داسى راځي چى: وَمِنْ رِوَايَةِ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما قَالَ لَمَّا مَاتَ مُعَاوِيَةُ رضي الله عنه أَظْهَرَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما الْخِلَافَ عَلَى يَزِيدَ بْنِ مُعَاوِيَةَ فَوَجَّهَ يَزِيدُ مُسْلِمَ بْنَ عُقْبَةَ فِي جَيْشِ أَهْلِ الشَّامِ وَأَمَرَهُ أَنْ يَبْدَأَ بِقِتَالِ أَهْلِ الْمَدِينَةِ ثُمَّ يَسِيرَ إِلَى بن الزُّبَيْرِ رضي الله عنهما بِمَكَّةَ قَالَ فَدَخَلَ مُسْلِمُ بْنُ عُقْبَةَ الْمَدِينَةَ وَبِهَا بَقَايَا مِنَ الصَّحَابَةِ فَأَسْرَفَ فِي الْقَتْلِ ثُمَّ سَارَ إِلَى مَكَّةَ فَمَاتَ فِي بَعْضِ الطَّرِيقِ. [فتح البارى: ج:(۱۳)ص:(۷۶)دارالريان قاهره].

کله چى حضرت امير معاويه رضي الله عنه وفات شو، نو حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنه ديزيد په خلاف راپورته شوى وو، نويزيد دمسلم بن عقبه په مشرى کى دشاميانو يو لښکر راوليږلو او امرئى ورته وکړو چى دجنګ شروع دمدينى منورى څخه وکړي بيادعبد الله بن زبير رضي الله عنه پسې مکې ته ورشي، نو مسلم بن

عقبه مدينې منورې ته راغلو په مدينه منوره کی په دغه وخت کې صحابه کرام ﷺ هم وو، نو دلته ئی ښه ډیر قتل وکړو بیا مکې مکرمې ته روان شو پس په لاره کې مړشو.

په یوروایت کی داسی راځی چی: وبطلت الجماعة من المسجد النبوی ﷺ ایامًا واختفت اهل المدينة ايامًا فلم يكون احدًا دخول مسجدها حتي دخلته الكلاب والذباب و بالت على المنبر. [الصواعق المحرقة:ص:(۲۲۲) تجليات صفدر:ج/ ۱/ ص ۵۸۷]. په مسجد نبوی کې ترڅو ورځو پوری جماعت نه کیدلو اهل مدینه پټ شوی وو، هیڅوک مسجد ته نه راتلل، سپي او لیوان مسجد ته راتلل او په منبر باندی ئی متیازکولی.

رسول الله ﷺ فرمائی چی: لايكيداهل المدينة احد الا انماع كماينماع الملح في الماء. [متفق عليه].

څوک داهل مدينه وسره دوکه کوي، نو هغه به داسې ویلي کیږي لکه مالګه چی په اوبو کې ویلي کیږي، لدې وجې داسلام په تاریخ کې بدنام ترین شخص یزید وو، چې کله د مدینې منورې د خلکو یې دومره بیعزتي وکړه نو الله ﷻ په یو مردار مرض باندې گرفتار کړو او مړشو. [مظاهرحق/ج/۲/ص ۷۵۵]. دې واقعې ته د حَرّې واقعه وائی حَرّه کاڼې جنې ځمکې ته وائی مراد ترینه مدینه ده.

ددې واقعې په زمانه کې تردريو ورځو پورې په مسجد نبوي کې نه اذان کیدلو او نه جماعت، صرف حضرت سعيدبن المسيب رحمه الله په مسجد کی وو، حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله فرمائی چی: اسمع اذانًا من قبل القبرالشريف. يعني مابه درسول الله ﷺ دقبر څخه اذان اوریدلو. [طبقات ابن سعد رحمه الله/ج/۵ص۱۳۲].

علامه سمهودي رحمه الله فرمائی چی: وقصة سعيدبن المسيب في سماعة الاذان و الاقامة من القبر الشريف ايام الحرة مشهورة. [وفاء الوفاء:ص:(۴۰۸)ج:(۲)طبع مصر].

د حرې په ورځو کې دنبی اکرم ﷺ دقبر څخه د حضرت سعيدبن المسيب رحمه الله د اذان اوريدل مشهوردي دا اذان به ئی هروخت اوريدلو ترڅو چی خلک بیرته راغلل. [خصایص کبری: ج۲/ ص۲۸۱/ زرقانی ج۵ ص۳۳۲ / والحادی للفتاوی ج۲/ ص ۱۴۸].

وقعة الحرة المشهورةالتى كانت تبيداهل المدينة عن اخرهم قتل فيهاالجم الكثيرمن الصحابة والتابعين وقيل المقتول فيها من الصحابة ثلاثة منهم عبدالله بن حنظله و نهبت المدينة وافتض

فيهاالف عذراء ولم تقم الجماعة ولا الاذان في المسجدالنبوی ﷺ مدة المقالة وهی ثلاثة يام. [اشرف الادب شرح نفحة العرب :ص١٦٥)

دحرې په وَاقعه کې دمدينې منورې خلک دبيخ څخه تباه شول، دصحابه وو ﷺ اودتابعينو يوغټ تعداد پکې شهيدان شول او بعضی وائی چی صحابه پکې درې کسان شهيدان شول، چې يو پکې حضرت عبدالله بن حنظله ﷺ وو اومدينه منوره لوټ شوه، تردرې ورځو پورې په مسجدنبوي کې اذان نه کيدلو اود زرو باکرو ښيانو سره پکې زنا وشوه.

خرج جابر بن عبدالله في يوم من تلک الايام وهوعمي يمشي في بعض أزقة المدينة وصاريعثر في القتلي ويقول تعس من اخاف رسول الله ﷺ فقال له قايل من الجيش من اخاف رسول الله ﷺ؟ فقال سمعت رسول الله ﷺ يقول من اخاف اهل المدِينة اخاف مابين جنبي فحمل عليه جماعة من الجيش ليقتلوه فاجازه منهم مروان و ادخله بيته قال السهيل وقتل في ذلک اليوم من وجوه المهاجرين والانصار الف وسبع مئاة وقتل من اخلاط الناس عشرة آلاف سوی النساء والصبيان فقدذکر ان امراة من الانصار دخل عليها رجل من الجيش وهي ترضع صبيها وقداخذها ما وجده عندها ثم قال لها هات الذهب والا قتلتک وقتلت ولدک فقال ويحک ان قتلته فابوه ابوکبشة صاحب رسول الله ﷺ وانا من النسوة اللاتي بايعن رسول الله ﷺ فاخذالصبي من حجرها وثديها فی فمه وضرب به الحايط حتي انتشر دماغه فی الارض فماخرج من البيت حتي اسود نصف وجهه وصار مثلة في الناس قال السهيلي واحسب هذه المرءة جدة للصبي لا اماله اذيبعد فی العادة ان يبايع امرء ة وتکن يوم الحرة فی سن من ترضع ولدًا صغيرًا لها ووقعة الحرة هذه من اعلام نبوته ففی الحديث ان عليه السلام وقف بهذه الحرة وقال ليقتلن بهذ المکان رجال هی خيار امتي بعد اصحابي. [اشرف الادب شرح نفحة العرب:ص:(١٦٦)

په دې ورځو کې يوه ورځ حضرت جابر ﷺ بهرته ووتلو، په سترګو معذور شوی وو، دمدينې منورې بعضې کوڅو کې تيريدلو، په مړو کې ئی پښې نښتلې اوفرمايل به ئی چی ذليله اوهلاک دی شی هغه څوک چی نبي اکرم ﷺ ئی وويرولو، نوديزيدي لښکر يوکس ورته وويل چی چا نبی اکرم ﷺ ويرولی دی؟ حضرت جابر ﷺ ورته وفرمايل چی ما د نبی اکرم ﷺ څخه اوريدلي دي چی چاچی اهل مدينه منوره ويرول نوزما دا ړخونو په مينځ کی (زړه)ئی وويرولو، ددې په اوريدلو سره دلښکر يوې ډلې په حضرت جابر ﷺ باندې حمله وکړه، لکن مروان ورته پناه ورکړه اوخپل کورته ئی

بوتلو، سهیل فرمائی چی په دغه ورځو کې دمهاجرینو اود انصارو ځخه مشران مشران خلک یوزرو اوه سوه کسان شهیدان شول اودعامو ځخه لس زره کسان شهیدان شول، داتعداد دښځو او دماشومانو ځخه علاوه دی ویل کیږي چی یویزیدي یو کورته ورغلو، په هغه کور کې چه څه ووتهول ئی لوټ کړل، داکور دیوې انصاری صحابي ﷺ وو، هغې خپل بچي ته تی ورکولو، نودې یزیدي ورته وویل چی سره زر راوړه اوکه نه تا او بچی به دې دواړه قتل کړم، هغې بي بي ورته وویل چی که دا دې ووژولو نودده پلار خو دنبي اکرم ﷺ صحابي ابو کبشه ﷺ دی اوزه دهغو بیبیانو ځخه یم چی دنبي اکرم ﷺ سره ئی بیعت کړی دی، هغه یزیدي ددې د غیږې ځخه بچی را واخستلو په دیوال باندې یې وویشتلو، چی ماغزه یې په دیوال باندې وشیندل شول، بیالا دکور ځخه وتلی نه وو، چی نیم مخ یې تورشو اودخلکو لپاره عبرت شو، سهیل فرمایي چیې زما په خیال دابي بي ددې ماشوم نیا وه، ځکه چې دحرې واقعه دنبي اکرم ﷺ دزمانی ځخه په دومره فاصله کی وه، چی دومره زنانه به ژوندی نه وه پاتې چې په دغه وخت کې یې دومره وړوکی ماشوم زیږولی وي، دحری واقعه دنبي اکرم ﷺ دنبنو ځخه یوه نبنه وه، ځکه چې یوه ورځ نبی اکرم ﷺ دحری په مقام کې ودریدلو او ویفرمایل چی په دې ځای کې به زما دامت ځخه داسې خلک شهیدان شي چې هغوي به دصحابه وو ځخه وروسته بهتر خلک وي.

## آیا د یزید امارت اجماعی وو؟

**مولناقاسم نانوتوی رحمه الله:** باقیماند که اومخالفت اجماع کرده اندجوابش اینست که اول اجماع مسلم نیست اگرباشد عدم مخالفت باشد باین همه اجماع برعدم جوازخروج برفساق است معنی آن هرچه است عرض کرده.شد ازاجماع برعدم جوازخروج برنفس فسق لازم نمی آید که خصوصیات زایده مراتب این کلی مشکک نیزموجب خروج نتوان شدباین همه اجماع غیرمسلم وقتیکه حضرات حسنین رضي الله عنهما وعبدالله بن زبیر رضي الله عنه واهل مدینه منوره کاری کرده باشد مخالفت آن رامجمع علیه چگونه توان گفت واگر بالفرض اجماع را تسلیم کنیم اجماع اگرمنعقد گردیده بعدازامام حسین رضي الله عنه منعقد گردید مخالفت این اجماع حضرت امام راچی مضر؟

غاية مافي الباب امام همام درزمان خوددریک مسئله مختلف فیها خطاء کردند ولامحذور فیه چنانچه عرض کرده شده (مکتوب قاسمی)

پاتی شوه داخبره چې حضرت امام حسین رضی الله عنه چې دیزید مخالفت وکړو، نو دائی داجماع مخالفت وکړو، نود دې جواب دادی چې اول خو مونږ دا اجماع نه منو، که کوم کار شوی وي نو هغه (دصحابه وو) عدم مخالفت دی، ددې باوجود دفاسق په خلاف چې په نه راپورته کیدلو اجماع ده نو دهغې معنی بلده لکه مخکې چې بیان شوه، دنفس فسق په خلاف باندې دخروج څخه دا نه لازمیږي چې ددې کلي مشکک درجات او خصوصیات زایده هم دخروج موجب نه دي ددې تولو خبرو باوجود اجماع مسلمه نه ده، کوم کار چې حسنینو رضی الله عنهما او حضرت عبدالله بن زبیر رضی الله عنه کړی وي نو د دې کار څخه مخالفت ته به څرنګه مجمع علیه وویلی شي؟ اوکه اجماع ومنونو بیا که اجماع منعقده شوي هم وي نود حضرت امام حسین رضی الله عنه دشهادت څخه وروسته به منعقده شوی وي چې ددې (مؤخری) اجماع څخه مخالفت حضرت امام حسین رضی الله عنه ته ضررنه رسوي، غاية مافي الباب حضرت امام حسین رضی الله عنه به په خپله زمانه کې په یوه اختلافي اجتها دي مسئله کې خطاء شوي وي، چې په دی کی هیڅ حرج نه شته، لکه څرنګه چې مامخکی عرض کړیدی.

مولنا قاسم نانوتوی رحمه الله فرمائی چې: اکنون وقت آنست که عبارت نووی دراین باره نقل کرده شود تا تفصیل اجمال و تصدیق این مقال بدست آید امام النووی گوید:

وَأَجْمَعَ أَهْلُ السُّنَّةِ أَنَّهُ لَايَنْعَزِلُ السُّلْطَانُ بِالْفِسْقِ وَأَمَّا الْوَجْهُ الْمَذْكُورُفِی كُتُبِ الْفِقْهِ لِبَعْضِ أَصْحَابِنَا أَنَّهُ يَنْعَزِلُ وَحُكِيَ عَنِ الْمُعْتَزِلَةِ أَيْضًا فَغَلَطٌ مِنْ قَائِلِهِ مُخَالِفٌ لِلْإِجْمَاعِ قَالَ الْعُلَمَاءُ وَسَبَبُ عَدَمِ انْعِزَالِهِ وَتَحْرِيمِ الْخُرُوجِ عَلَيْهِ مَا يَتَرَتَّبُ عَلَى ذٰلِكَ مِنَ الْفِتَنِ وَإِرَاقَةِ الدِّمَاءِ وَفَسَادِ ذَاتِ الْبَيْنِ فَتَكُونُ الْمَفْسَدَةُ فِي عَزْلِهِ أَكْثَرَ مِنْهَا فِي بَقَائِهِ، قَالَ الْقَاضِي عِيَاضٌ رحمه الله: أَجْمَعَ الْعُلَمَاءُ عَلَى أَنَّ الْإِمَامَةَ لَا تَنْعَقِدُ لِكَافِرٍ وَعَلَى أَنَّهُ لَوْطَرَأَ عَلَيْهِ الْكُفْرُ انْعَزَلَ قَالَ وَكَذَا لَوْ تَرَكَ إِقَامَةَ الصَّلَوَاتِ وَالدُّعَاءَ إِلَيْهَا قَالَ وَكَذٰلِكَ عِنْدَ جُمْهُورِهِمُ الْبِدْعَةُ قَالَ وَقَالَ بَعْضُ الْبَصْرِيِّينَ تَنْعَقِدُ لَهُ وَتُسْتَدَامُ لَهُ لِأَنَّهُ مُتَأَوِّلٌ قَالَ الْقَاضِي فَلَوْطَرَأَ عَلَيْهِ كُفْرٌ وَتَغْيِيرٌ لِلشَّرْعِ أَوْبِدْعَةٌ خَرَجَ عَنْ حُكْمِ الْوِلَايَةِ وَسَقَطَتْ طَاعَتُهُ وَوَجَبَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ الْقِيَامُ عَلَيْهِ وَخَلْعُهُ وَنَصْبُ إِمَامٍ عَادِلٍ إِنْ أَمْكَنَهُمْ ذٰلِكَ فَإِنْ لَمْ يَقَعْ ذٰلِكَ إِلَّا لِطَائِفَةٍ وَجَبَ عَلَيْهِمُ الْقِيَامُ بِخَلْعِ الْكَافِرِ وَلَا يَجِبُ فِي الْمُبْتَدِعِ إِلَّا إِذَا ظَنُّوا الْقُدْرَةَ عَلَيْهِ فَإِنْ تَحَقَّقُوا الْعَجْزَ لَمْ يَجِبِ الْقِيَامُ وَلْيُهَاجِرِ الْمُسْلِمُ عَنْ أَرْضِهِ إِلَى غَيْرِهَا وَيَفِرَّ بِدِينِهِ قَالَ وَلَا تَنْعَقِدُ لِفَاسِقٍ ابْتِدَاءً فَلَوْطَرَأَ عَلَى الْخَلِيفَةِ فِسْقٌ قَالَ بَعْضُهُمْ يَجِبُ خَلْعُهُ إِلَّا أَنْ تَتَرَتَّبَ عَلَيْهِ فِتْنَةٌ وَحَرْبٌ وَقَالَ جَمَاهِيرُ أَهْلِ السُّنَّةِ مِنَ الْفُقَهَاءِ وَالْمُحَدِّثِينَ وَالْمُتَكَلِّمِينَ لَايَنْعَزِلُ بِالْفِسْقِ وَالظُّلْمِ وَتَعْطِيلِ الْحُقُوقِ وَلَا يُخْلَعُ وَلَا يَجُوزُ الْخُرُوجُ عَلَيْهِ بِذٰلِكَ بَلْ يَجِبُ وَعْظُهُ وَتَخْوِيفُهُ لِلْأَحَادِيثِ الْوَارِدَةِ فِي ذٰلِكَ

قَالَ الْقَاضِي رحمه الله: وَقَدِ ادَّعٰى أَبُوبَكْرِ بْنُ مُجَاهِدٍ رحمه الله فِي هٰذَا الْإِجْمَاعَ وَقَدْ رَدَّ عَلَيْهِ بَعْضُهُمْ هٰذَا بِقِيَامِ الحسين وبن الزُّبَيْرِ وَأَهْلِ الْمَدِينَةِ رضي الله عنهم عَلٰى بَنِي أُمَيَّةَ وَبِقِيَامِ جَمَاعَةٍ عَظِيمَةٍ مِنَ التَّابِعِينَ وَالصَّدْرِ الْأَوَّلِ عَلَى الحجاج مع بن الأشعث وتأول هٰذا القائل قوله أن لا ننازع الْأَمْرَ أَهْلَهُ فِي أَئِمَّةِ الْعَدْلِ وَحُجَّةُ الْجُمْهُورِ أَنَّ قِيَامَهُمْ عَلَى الْحَجَّاجِ لَيْسَ بِمُجَرَّدِ الْفِسْقِ بَلْ لِمَا غَيَّرَ مِنَ الشَّرْعِ وَظَاهَرَ مِنَ الْكُفْرِ قَالَ الْقَاضِي رحمه الله: وَقِيلَ إِنَّ هٰذَا الْخِلَافَ كَانَ أَوَّلًا ثُمَّ حَصَلَ الْإِجْمَاعُ عَلٰى مَنْعِ الْخُرُوجِ عَلَيْهِمْ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ. (شرح النووی للمسلم)

داهل سنت والجماعت په دې خبره باندی اتفاق دی، چی بادشاه د فسق په وجه نه معزول کیږی او کوم قول چی دفقی په کتابونو کی بعضو ذکر کړی دی، چی بادشاه د فسق په وجه معزول کیږی او دا قول ئی د معتزله وو له طرفه بیان کړی دی، نو دی قایل غلطي کړی ده، د اجماع څخه ئی مخالفت کړی دی. علماو فرمایلي دي چی د فاسق د عدم معزوله کیدلو وجه داده چی په دې کی فتنه او خونریزي جوړیږي او خپل منځي اختلافات جوړیږي له دې وجې دده په معزوله کولو کې په نظر سره دده په پاتې کیدلو کې فساد ډیر دی، قاضي عیاض رحمه الله فرمایي چی د علماو په دې خبره باندې اجماع ده چې کافر امام نه شي جوړیدلی او په دې باندې هم اتفاق دی چی که په امام باندې کفر طاري شي، نو هم معزول کیږی، بیا قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چی همدا (د کفر په وخت کی د عزل حکم) په هغه کې هم دی چه کله امام د مونځ پابندي او مونځ ته دعوت پریږدی او د جمهور علماوو په نیز باندی همدا حکم د ارتکاب د بدعت په وخت کی هم دی، لکن بعضی بصریان وائی چی د عارضي فسق او بدعت والا امامت منعقد کیږی او د همیشه لپاره پاتې کیږی، ځکه چی دا عارضي دی، قاضي عیاض رحمه الله فرمائی چی کله چی په امام باندی کفر طاري شي او یا په شریعت کی تبدیلي راولي او یا د بدعت مرتکب شي نو بیا د امامت د حکم څخه خارجیږي او دده اطاعت ساقطیږي او په مسلمانانو باندې دده په خلاف راپورته کیدل او دده د غاړې څخه د خلافت ایستل او د عادل امام مقررول که ممکنه وه ضروري دی، نو که دا واقع نه شو نو بیا هم په یوې ډلې باندې د کافر د ولایت ختمول واجب دي او د مبتدع نه دي واجب مگر دا چې کله د دوي د غلبې غالب گمان وي، او کله ئی چی یقین د مغلوبوالي وي نو بیا نه دی واجب، لکن مسلمانان به دده د ځمکی څخه بل ځای ته هجرت کوی او خپل دین به بچ کوي او د فاسق لپاره ابتداءً خلافت نه منعقد کیږی او که فسق ئی عارضي وو، نو بیا بعضو فرمایلي دي چی د ده د خلافت ختمول واجب دي، که چیرته د فتنې او د جنگ راپارول نه وو، جمهور اهل ... فقهاء او محدثین او متکلمین فرمائی

چې ظالم، فاسق او د مسلمانانو د حقوقو معطل کونکی امام هم نه معزوله کیږي او د ده په خلاف باندی قیام نه دی واجب بلکه نصیحت کول او ویرول ئی پکار دي قاضي عیاض رحمہ اللہ فرمايی چې ابوبکربن مجاهد رحمہ اللہ په دی باره کی داجماع دعوه کړی ده او د حضرت امام حسین رضی اللہ عنہ د حضرت ابن زبیر رضی اللہ عنہ او د مدینې منورې د خلکو په فعل باندی ئی استدلال کړی دی، چې د بني امیه وو په خلاف باندی راپورته شول همدارنګه یې د قرن اول دیو جماعت په فعل باندې استدلال کړی دی چې دابن الاشعث سره د حجاج په خلاف باندی راپورته شول او دې قول والا د نبي اکرم ﷺ په دې حدیث کی هم تاویل کوي چې ان الاتنازع الامر اهله دوي وایي چې ددې څخه عادل امام مراد دی، لکن جمهور علماء فرمائی چې د حجاج په خلاف باندی قیام یوا ځې د ده د فسق له وجی نه وو، بلکی له دې وجې څخه وو چې حجاج شریعت بدل کړی وو او د کفر مظاهره ئی کړی وه قاضی عیاض رحمہ اللہ فرمائی چې دا اختلاف په اول اول کی وو بیا وروسته د خروج په ممانعت باندی اجماع وشوه. (انتهی).

مولنا قاسم نانوتوی رحمہ اللہ د دی عباراتو په تشریح کی فرمائی چې: پس از مطالعه این عبارت تصدیق اکثر مقدمات مذکوره حاصل مشود و بالجمله براصول اهل سنت حال یزید بسابق متبدل شد نزدبعضی- کافرشد ونزد بعضی کفر او متحقق نشت اسلام سابق مخلوط بفسق لاحق شد اگرحضرت امام حسین رضی اللہ عنہ کافرش پنداشتند درخروج بر او چه خطاکرد؟ امام احمد رحمہ اللہ را همین رائی پسند خاطر افتاد مگرچنانکه ممکن است که کفرکسی نزدیکی کسی متحقق شود ونزد دیگران متحقق نشود همچنین خروج درحق این وآن مختلف خواهدبود واتفاق درتکفیر، تفسیق،تعدیل وتخریج کسی ازضروریات دینی یا از بدیهات عقلی نیست که حاجت معذرت افتد ودرصورت فسق آنچه پیش کرده ام یادخواهدبود تاهم هیچ صعوبتی بر اهل سنت نیست،چه یزید آندرین صورت یافاسق معلن بودتارک صلوة وغیره یامبتدع بود چه ازروسائی نواصب است باین همه عموم خلافتش غیرمسلم، نظر براین وجوه بیادملفظات سابقه درخروج براو هیچ قباحتی نی و با این همه خروج برهمچنین کسانی تاحال نزدهمه جایز،واگر نزد همه نیست نزدبعضی جایز

چنانچـه ازمشـاهده عبـارت نـووی رحمه الله واضـح اسـت درمسـايل مختلفـه خـلاف يکـی مرديگران راموجب تفسيق اوشان را و بطلان اعمال او عندالله نمتوان شـد چنانچـه دانسـته شد واگرفرض کنيم برعدم خوازخروج برچنين کس اجـماع اسـت اجـماع حـادث اسـت اجماع قديم نيست تا بر اصول اهلسنت درشهادت امام همام ترددی را ه يابد زياده اززياده اگر کسگويد اين بگويد که حضرت امام در اين مسئله خطاء کردنـد لـيکن چه حـرج، المجتهـد يخطـی ويصـيب الـخ. (مکتـوب قاسـمی مطبوعـه اداره نشرواشـاعت ملتـان)

دمولناقاسم نانوتوی رحمه الله دتشريح خلاصه په څلورو جملو کښ داسې ده .

**اول:** يزيد دامام احمد رحمه الله اودبعضې علماوو په نيز باندی کافر شوی وو اوکيدی شي چی دحضرت امام حسين رضي الله عنه همدا نظر وو او دکافرپه خلاف باندی خروج واجب وي، لهذا حضرت امام حسين رضي الله عنه په دې خروج کی په حق وو.

**دوهم:** دبعضو نورو په نيزباندی کافرنه وو لکن دچاپه نيز چی کافروو، په هغوي باندې ددې نوروسره موافقت لازم نه وو، چی په حضرت امام حسين رضي الله عنه باندې دا واجبه کړو چی ولې دې ددې بلې ډلې سره اتفاق نه کولو؟

**دريم:** ديزيد خلافت لاترا وسه پورې متحقق شوی نه وو، عواموته اعتبارنه شته اوخواصو اکثرو ورسره بيعت نه ووکړی، لهذا په حضرت امام حسين رضي الله عنه باندی داعتراض نه شي کيدلی چی دخليفه په خلاف ئی خروج کړی وو.

**څلورم:** يزيدښکاره فاسق اودنواصبه وو څخه وو، نواصبه هغوخلکوته وائی چی حرامو شيانوته دخپلو نفساني دلايلو په بناباندی حلال وائی، يزيد به هم شراب خوړل او حلال به ئی ګڼل، اوبعضی علماء فرمائی چی په هغه وخت کی اجماعًا دښکاره فاسق په خلاف باندی قيام واجب وو اوبعضې علماء فرمائی چی اجماعًا قيام نه وو واجب، نو که اجماعًا نه وي واجب بلکې دبعضوپه نيز باندې واجب وي اودبعضو نوروپه نيز باندې نه وي واجب. نوبيا دحضرت امام حسين رضي الله عنه په نيزواجب وو، نو که په خپل اجتهاد کی حق ته رسيدلی وی الله جل جلاله به دوه اجره

ورکړي او که خطا شوی وي نو الله جل جلاله به ورته یو اجر ورکړي او بعضو نورعلماء فرمائی چې د فاسق په خلاف په عدم قیام باندی اجماع ده لکن مونږ وایو چې بالفرض که دا اجماع منعقده شوي وي نو دا د حضرت امام حسین رضی الله عنه څخه متاخره اجماع ده، چې د حضرت امام حسین رضی الله عنه په خلاف باندی دلیل نه شي کیدلی.

**قاري محمدطیب رحمه الله ددیوبندخلویښت کلن مهتمم :** دیزید خلافت اجماعي نه وو، ډیرو ډلو د همغه ابتداء څخه نه وو منلی چې په دوي کې حضرت امام حسین رضی الله عنه هم وو، له دې وجې په حضرت امام حسین رضی الله عنه باندی دیزید اطاعت نه وو واجب، چې د خروج اوبغاوت سوال پیدا شي.
(شهید کربلا و یزید ص:(۱۸۷)قاری محمد طیب)

**حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله:** د ظالم بادشاه په خلاف قیام په هغه وخت کی ناجایز وي چې د دې ظالم بادشاه تسلط کامل شوي وي او د ده په تسلط کی د هیچا نزاع او مزاحمت نه وي او ترا وسه پوری د مدینې منورې او مکې مکرمې خلک دیزید پلیت په تسلط باندې راضي نه وو او حضرت امام حسین رضی الله عنه، حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما او حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنه دیزید بیعت نه وو قبول کړی.

خلاصه د کلام دا چې حضرت امام حسین رضی الله عنه د دې لپاره دیزید په خلاف قیام وکړو چې دیزید تسلط دفع کړی دا غرض ئی نه وو چې دیزید تسلط رفع کړي، دفقی په مسایلو کې د دفعې او د رفعې په مابین کی فرق مشهور دی. [فتاوی عزیزی:ص:(۲۲۷)خارجی فتنه:ج:(۲)ص:(۳۱٦)قاضی مظهر حسین رحمه الله].

**مولنا ظفراحمد العثمانی رحمه الله:** عنوان لگوي په نوم د تحقیق خروج الامام حسین رضی الله عنه وامثاله علی ایمة الجور:د دی څخه وروسته فرمائی چې:

قلت ویمکن ان یقال ان الولاة الذین اخرجوا علیهم کانوا فسقة من اول الامر وقدعرفت ان الولایة لاتنعقد لفاسق ابتداءً عندالجمهور فلم یکن خروجهم علی الامام وهو المنهی عنه بل علي الامام...الخ

بیامخکې لیکي چی :فاولئک الذین خرجوا علی یزید والحجاج لعلهم ظنـوا مـن انفسـهم القدرة علي خلعها لکثرة من بایعهم علي ذلک فقد بایع علی یدمسلم بن عقیل للامـام حسـین بــن علي ﷺ عــددکثیرمن اهــل الکوفــة تزیــد عــدتهم علي اربعــین الفــا. (اعــلاء السنن:ج:(۱۲)ص:(٦۱۸)کشف خارجیت ص۳۸۸ قاضی مظهر حسین چکوالی رحمه الله.)

کله چی دا ثابته شوه چی دیزید خلافت اجماعي نه وو بلکې دسلطان متغلب حیثیت ئی لرلو او هغه هم لامکمل نه وو او دحضرت امام حسین ﷺ قیام دده په خلاف باندی په حقه وو، نواوس دحضرت امام حسین ﷺ دخروج علی الیزید اجمالي واقعه واوره

## دیزید په خلاف دحضرت امام حسین ﷺ خروج

دکوفې خلکو په ډیرتاکید اوکثرت سره دا تقاضی کوله چی مونږ دیزید سره موافق نه یو، لهذا مونږ امام نه لرو نوتاسو کوفی ته راشئ چې مونږ ستاسره بیعت وکړو اود فاسق اوظالم یزید په خلاف به جنګ وکړو، حضرت امام حسین ﷺ دمحمدبن حنیفه په مشوره باندې مکې مکرمې ته لاړو، په شعب ابی طالب کی دیره شو، دمکې مکرمې خلک وربانـدی رامات شو، دکـوفې مشـران راغلل اوعرض ئی وکړو چی تاسو زرترزره کوفې ته تشریف راوړئ دخلافت مسند ستاسو لپاره خالي دی اوزمونږ سرونه ستاسو په خدمت کی حاضر دي، حضرت امام حسین ﷺ ورتـه وفرمایل چی ستاسـو دهمـدردئ څخه مننه،لکن فی الحال تللوته تیارنه شو.

کله چی دکوفې څخه دخطونو اودخلکو تسلسل زیات شو نو حضرت امام حسین ﷺ دحالاتو دتحقیق دمعلومولو لپاره مسلم بن عقیل کوفې ته ورولیږلو، مسلم بن عقیل دوه ملګري نور هم دځان سره یوځای کړل اوکوفې ته روان شو، لکن دلارې د سختیوله امله ئی هغه نورو دواړه ملګري وفات شول کله چی مسلم بن عقیل کوفی ته ورسیدلو نودکوفې خلک ورتـه سترګې په لارو و لاسونه یې ورتـه په لاس کې ورکړل اودیزید سره ئی ښکاره مخالفت شروع کړو. سیر الصحابة:ج:(۴)ص:(۱۴۸).

دمسلم بن عقیل سره اتلسوزرو کسانو بیعت وکړو، لـه دې ظاهري وضعیت په لیدلو سره حضرت مسلم بن عقیل دحضرت امام حسین ﷺ په نوم یو خط ولیږلو چې دکوفې ټول خلک تاتـه په انتظاردي

نو فورًا تشریف راوړئ، حضرت امام حسین رضی الله عنه ته چی دا خط وروړسیدلو نو کوفې ته یې دسفر تیاری شروع کړو (سیر الصحابة: ص:(۱۵۶)

کله چی دیزید جاسوسانو یزید ته اطلاع ورکړه نو دخپل حکومت دبقاء غم ورسره شو، نو فورًا ئی خپل دبصرې حاکم عبید الله بن زیاد (ملعون) ته یو تاکیدي حکم نامه وروليږله، چی فورًا ورشه مسلم بن عقیل دکوفې څخه وباسه او که مزاحمت یې کولو نو فورا یې قتل کړه. (سیر الصحابة: ج:(۴)ص:(۱۴۹).

عبید الله بن زیاد کوفی ته راغلو دکوفی مسجد ته لاړو او په لاره کې یې د خلکو دانعرې اوریدلی چی مرحباً یابن رسول الله ﷺ. ابن زیاد جامع مسجد ته لاړو او خلکو ته یې ډیر غضبناک تقریر وکړو چی: ای دکوفې خلکو زه امیر المؤمنین یزید ستاسو دښار لپاره حاکم رالیږلی یم، ماته ئی امر کړی دی چی د مظلوم سره انصاف، دمطیع سره احسان او دباغي سره سختي وکړم، زه به دا حکم عملي کوم دفرمانبردارانو سره به پدرانه شفقت کووم، لکن دمخالفینو لپاره زهر قاتل یم. [سیر الصحابة: ج:(۴)ص:(۱۵۰).

مسلم بن عقیل دعبید الله بن زیاد داعلان له وجی د هانئ بن عروة کورته پناه ویوړه، هانئ بن عروه یو د هغو خلکو څخه وو چی کوفې ته ئی دحضرت امام حسین رضی الله عنه په راغوښتلو کی ډیر ټینګار کولو، هانی په اول کی مسلم ته په پناورکولو کی متردد وو، لکن وروسته ئی زنانه په یو محفوظ ځای کی پټې کړې او حضرت مسلم بن عقیل ته ئی پناه ورکړه، دهانئ کورته به خلک پټ پټ راتلل او د مسلم بن عقیل سره به ئی بیعت کولو. سیر الصحابة: ج:(۴)ص:(۱۵۰).

عبید الله بن زیاد یزیدي د مسلم بن عقیل دلټون لپاره جاسوسان مقرر کړي وو، لکن نتیجه په لاس باندی نه ورتلله آخرئی خپل غلام معقل د مسلم بن عقیل دځای دپیدا کولو لپاره مامور کړو، معقل مسجد ته لاړو، ځکه چی د مسجد څخه پټ حالات ښه معلومیږي، ځکه چی په مسجد کی هر قسم خلک را ټولیږي، نو معقل په مسجد کی یو سړی ولیدلو چی مسلسل مونځونه کوي، نو قیاس ئی وکړو چی دا مسلسل د مونځ کونکی به خامخا د حضرت امام حسین رضی الله عنه حامي وي، نو ده خواته ورغلو او ورته وې ویل چی زه شامي غلام یم الله تعالیٰ زما په زړه کی دنبي اکرم ﷺ د اهل بیتو محبت اچولی دی، زما سره درې زره درهم دي، ما اوریدلي دي چی دلته د حضرت امام حسین رضی الله عنه کوم داعي دی، نو زه غواړم

چې دا يو څه ناڅه روپۍ هغه ته ورکړم چې هغه يې د خير په کارونو کې مصرف کړي، هغه سړي د مسلم بن عقيل په اجازه باندې دا جاسوس ورو ستلو، د خدمت په بهانه باندې د شپې هم ورسره پاتې شو، سهار يې ابن زياد ته رپوټ ورکړو.

هانئ چونکه د علاقې مخور سړى وو، مخکې به ابن زياد ته تلوراتلو، لکن چې د کومې ورځې څخه د مسلم بن عقيل کارکن شو، نو د مريضۍ په بهانه باندې يې تلل راتلل پريښي وو، يوه ورځ محمد اشعث او اسماء بن خارجه د ابن زياد ملاقات ته ورغلل ابن زياد ترينه د هانئ پوښتنه وکړه، دوي ورته وويل چې هغه مريض دى، ابن زياد ورته وويل: چې دا څنګه مريض دى چې تولـه ورځ د خپل کور په دروازه کې ناست وي؟ دوي دواړه هانئ ته راغلل او د ابن زياد د بدګمانۍ څخه يې خبر کړو او ورته يې وويل چې فورًا ورشه خپله معامله ورسه صفا کړه، هانئ چې کله ورغلو ابن زياد ورته دا شعر وويلو چې:

اريد حباء ه ويريد قتلي عذيرک خليک من مرادِ

زه ورسره د احسان اراده لرم او هغه زما د قتل اراده لري، د مراد د قبيلې څخه خپل کوم دوست د معذرت لپاره راوله، هانئ چې دا شعر واوريدلو نو پوښتنه يې وکړه چې د دې شعر څه مطلب دى؟ ابن زياد ورته وويل چې د دې څخه غټ جرم شته چې مسلم دې پخپل کور کې پټ کړى دى او پټ په پټه ورته خلک د بيعت لپاره راغواړئ؟ هانئ چې کله د دې الزام څخه انکار وکړو، نو ابن زياد هغه معقل جاسوس راوغوښتلو، هانئ چه کله عيني شاهد و ليدلو نو انکار ورته سخت شو، صاف صاف اقرار يې وکړو، او قسم يې ورته وکړو چې ما پخپله مسلم نه دى راغوښتى او زه وعده درسره کوم چې زه اوس ورځم او مسلم د خپل کور څخه شړم، لکن ابن زياد ورته وويى چې تر څو پورې مسلم دلته نه وي راغلى تر هغې پورى ته نه شى تللى، هانئ ورته وويل چې زه خپل ميلمه چا ته نه شم حواله کولى، ابن زياد د غوصې څخه بيتابه شو او هانى ئى دومره سخت ووهلو چې د پوزې څخه ئى وينې روانې شوى او بيائى په يو کور کى واچولو، اخبار الطوال: ص: (۲۴۸).

بل طرفته او ازه خپره شوه چې هانئ قتل کړى شو، نو د هانئ د قبيلې په زرګونو خلکو د ابن زياد قصر محاصره کړو ابن زياد قاضي شريح ته وويل چې د هانئ معاينه وکړي او د قبيلې خلکو ته يې اطمنان ورکړي، قاضي شريح چې کله هانئ وکتلو نو هانئ ورته وويل چې دا شور د اسې ښکاري لکه

زما د قومیانو ، لهذا ته زما دا پیغام ور ورسوه چې که تاسو لس کسان هم راشئ زه بچ کیږم، لکن د قاضي شریح سره جاسوس رو ، له دې وجې یې دده پیغام دده قومیانو ته ونه رسولو ، بلکې صرف دهانئ د ژوند اطمنان یې ورکړو .(سیر الصحابه ج ۴ صـ ۱۵۳) بل طرفته چې مسلم بن عقیل دهانئ د مرګ اوازه واوریدله نو د خپلو اتلسو زرو کسانو سره یې په قصر باندې حمله وکړه، په دغه وخت کې دابن زیاد سره صرف پنځوس کسان وو چې دیرش پولیس او شل د کوفې مشران وو.

ابن زیاد قصر په مخ کې پاټک واچولو او د کوفې مشرانو ته یې وویل چې د قصر چت ته وخیژئ اواعلان وکړئ چې نن چې څوک دامیر اطاعت وکړي دهغه به ډیر اکرام کیږي او انعام به ورکول کیږي اوڅوک چې بغاوت وکړي هغه ته به سخته سزا ورکول کیږي، د دې اعلان په اوریدلو سره د مسلم ملګري وتښتیدل، د مسلم سره صرف شل کسان پاتې شول، مسلم چې کله دا غداري ولیدله نو د کنده محلې طرفته لاړو او پاتې شل کسان هم یو یو شو ، لهذا یوائې پاتې شو ، د کنده په محله کې دیوې طرعه نامې زنانه دروازې ته ودریدلو او به یې ترینه وغوښتلې هغې زنانه اوبه ورکړې او بیایې ورته وویل چې نور په خپله مخه باندې زه ،مسلم ورته وویل چې زه په دې علاقه کې مسافریم دلته څوک نه لرم، نو ته ماسره ولې داسې سلوک کوې؟ بیائې ورته ځان معرفي کړو هغه بي بي د الله ﷻ ځخه وویدله، نو په خپل کور کې ئې پناه ورکړه، د دې ځوی نه وو خبر، کله یې چې خپله مور د کور یوې کوټې ته په ډیرو تللو راتللو باندې ولیدله نو د سبب پوښتنه یې ترینه وکړه، هغې په اول کې رازنه ویلو ، لکن وروسته یې د سختې وعدې دا خستلو څخه ورته راز وویلو ، ابن زیاد د کوفې د کورونو د تالاشۍ حکم وکړو ، د دې بوډۍ بچی وډارشو ، عبد الرحمن بن محمد ته یې وویل چې مسلم زمونږ په کور کې پټ دی، عبد الرحمن قصر ته لاړو ابن زیاد یې خبر کړو ، ابن زیاد اویا کسان د مسلم د ګرفتاریئ لپاره راولیږل، مسلم سخته مقابله وکړه، آخر د بکیر بن حمران په یو ګذار باندې سخت زخمي شو ، لکن بیایې هم مقابله کوله ، کله چې د کور په چت باندې خلک راوختل نو مسلم بهر ووتلو او مقابله یې کوله، آخر ورته د شامي ډلګۍ مشر محمد بن اشعث وویل چې تر کومه پورې به یوائې مقابله کوې، زه تاته امان درکووم او یقین درکووم چې زه به ستاسره دوکه نه کووم، حضرت مسلم د زخمونو څخه بیتابه شو ، له دې وجې یې یو دیوال ته تکیه وکړه او کیناستلو ،محمد بن اشعث بیا ورسره د عهد تجدید وکړو ، لکن عمرو بن عبید

سلمى دا ونه منله تو ره يې ترينه واخستله په زخمي حالت کې يې په قچره باندې سپور کړو او د ابن زياد په طرف يې روان کړو. سير الصحابة: ج: (۴) ص: (١۵۵).

مســلم بن عقيل ژړل، عمرو بن عبيد ورته وويل چې د خلافت مدعي د مصيبتونو طاقت نه لري او ژاړي، مسلم وفرمايل چې د خپل ځان په غم کې نه ژاړم، بلکې د خپل خاندان په غم کې ژاړم، چې تاسو ته را روان دي، د حسين او د آل حسين په غم کې ژاړم، بيا يې محمد بن الاشعث ته وويل چې زما بچ کول ستا په طاقت کې نه دي، لکن ته صرف دومره همکاري راسره وکړه چې حضرت حسين رضي الله عنه ته زما دا پيغام وروررسوه چې دلارې څخه بيرته وګرزي او د کوفې په خلکو هيڅکله اعتماد ونه کړي، ابن الاشعث ورسره وعده وکړه چې قسم په الله جل جلاله چې دا کار به وکړم او بيا يې خپله وعده سرته هم ورسوله. ابن اثير ج ۴/ ص ٢۴/ سير الصحابة ج ۴ ص ١۵٦).

کله يې چې ابن زياد ته وروستلو، نو ابن الاشعث ورته وويل چې ما مسلم ته امان ورکړى دى، لکن ابن زياد ونه منله او ورته وې ويل چې ته ما صرف دده د نيولو لپاره ليږلى وې نو ابن الاشعث چپ شو. سير الصحابة: ص: (١۵٦).

مسلم بن عقيل ته چې کله د ابن زياد له طرفه د وژلو تياري شروع شو، نو مسلم بن عقيل د وصيت لپاره مهلت وغوښتلو.

د مسلم بن عقيل په قريبانو کې هلته عمرو بن سعد وو، مسلم ورته وويل چې زه تا ته درازيوه خبره کوم په بعضې رواياتو کې راځي چې عمرو بن سعد اول دا وريدلو څخه انکار وکړو، بيا چې کله ابن زياد پيغور ورکړو چې خپل د تره ځوى مه مايوسه کوه، نو اوريدلو ته تيار شو او په بعضو رواياتو کې راځي چې: عمرو بن سعد دا وصيتونه په ډيرې خوشحالۍ باندې واوريدل او له خبره يې ورته دا وکړه چې په کوفه کې ما شپږسوه روپۍ قرض کړي دي زما څخه وروسته هغه ادا کړه دوهم دا چې زما مړى ښخ کړه او دريــم دا چــې حضــرت حســين رضي الله عنه تــه څــوک وروليــږه چــى دلارې څخــه بيرتــه وګــرزي. [تــاريخ طبرى: ج: (٧) ص: (٢۵٦) سير الصحابة ۴ ص: (١۵٧).

دا وصيتونه يې محمد بن الاشعث ته هم کړي وو او دې دواړو عمل هم ورباندې کړى وو، حضرت حسين رضي الله عنه يې د کوفې د خلکو د بې وفايۍ څخه خبر کړې وو.

د دې ځخه وروسته د مسلم بن عقیل او د عبید الله بن زیاد په مابین کې ترخې خبرې تبادله شوې، عبید الله بن زیاد مسلم ته حضرت حسین ته او حضرت علی رضي الله عنه ته کنځلې وکړې او بیا یې جلادانو ته حکم وکړو چې مسلم بن عقیل د قصر چت ته وخیژوي هلته یې قتل کړي او مړی یې لاندې راوغورزوي، جلادانو همداسې وکړل او د حضرت حسین رضي الله عنه یو قوي مټ د منځه لاړو. تاریخ طبری: ج: (۷) ص: (۲۶۷) سیر الصحابة: ج: (۴) ص: (۱۵۸).

## د حضرت حسین رضي الله عنه شهادت

کله چې حضرت حسین رضي الله عنه کوفې ته د تللو پخه اراده وکړه، نو یزید حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما ته یو خط ورولیږلو چې د حضرت حسین رضي الله عنه د قتل تهدید پکې وو، د خط مضمون داسې وو چې:

ان سوف يتركـكم ماتدعون بهاقتلي تهاداكم العقبان الرخم، حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حضرت امام حسین رضي الله عنه ته ورغلو او ورته ویویل چې: والله اني لاظنک ستقتل غدًا بين نساءک وبناتک کماقتل عثمان رضي الله عنه بين نساءه وبناته، حضرت حسین رضي الله عنه ورته وفرمایل چې: لان اقتل بمکان کذا وکذا احب الیّ من أن أقتل بمكة وتستحل بي، قال: فبكى ابن عباس رضي الله عنهما. [البداية والنهاية: ج/۱ ص/۱۶۶].

حضرت امام حسین رضي الله عنه په دې پوهیدلو چې زما دوژلو لپاره به د حرم بیعزتي هم کیږي. تجلیات صفدر: ج: (۱) ص: (۵۵۷)

حضرت عبد الله بن زبیر رضي الله عنه ورته وفرمایل چې همدلته په حجاز کې د خلافت اعلان وکړه، مونږ درسره بیعت کوو او همکاري درسره کوو، لکن حضرت حسین رضي الله عنه وفرمایل چې زه چې د حرم ځخه یوه ولیشت بهر قتل شم دا راته د دې ځخه ښه ده چې په حرم کې قتل شم، ما د خپل پلار ځخه اوریدلي دي چې فرمایل یې چې دیوې چنډخې غوندې انسان به د حرم بې عزتي کوي، نو زه د ځان ځخه هغه چنډخه نه جوړوم، حضرت ابن الزبیر رضي الله عنه ډیر ټینګار وکړو، لکن حضرت حسین رضي الله عنه حصار نه شو. سیر الصحابة: ج: (۱) ص: (۱۶۱).

د مسلم بن عقیل په اولني دعوت باندې حضرت حسین رضي الله عنه کوفې ته روان شو، کله چې د حاجز په نوم باندې ځای ته ورسیدلو نو قیس بن مسهر صدادي ته یې خپل اطلاعي خط ورکړو او کوفې ته یې ولیږلو، لکن یزیدیانو مخکې د مخکې ځخه لارې بندې کړې وې، قیس بن مسهرئی د قادسي په مقام کې

ونيولو او ابن زياد ته ئې وروستلو ابن زياد امر وكړو چې د مسلم بن عقيل په طريقه باندې يې چت ته وخيژوئ او ويوغورځئ. كله يې چې چت ته وخيژولو نو امر يې ورته وكړو چې كذاب بن كذاب حسين بن علي ته كنځلې وكړه، قيس چې د حضرت حسين رضي الله عنه د فدايانو څخه وو، نو د كنځلو په ځاى يې خپله فريضه اداكړه او په زوره زوره يې آوازونه وكړل چې اى د كوفې خلكو ! زه د حسين بن فاطمه رضي الله عنها بنت رسول الله ﷺ له طرفه استازى يم، هغه د حاجز مقام پورې رارسيدلى دى، د هغه سره امداد كول ستاسو فريضه ده، د دې څخه وروسته يې په عبيدالله بن زياد او د ده په پلار باندې لعنت وويلو او حضرت علي رضي الله عنه ته يې استغفار وكړو، ابن زياد نور هم په غصه شو او د چت څخه لاندې يې راوغورزولو.

د حضرت حسين رضي الله عنه يو بل قاصد عبدالله بن يقطر هم د حصين بن نمير كسانو ونيولو، ابن زياد ته يې وروستلو هغه ته ئې هم وويل چې كذاب ابن كذاب حسين بن علي ته كنځلې وكړه، لكن هغه هم د قيس په طريقه باندې خپله فريضه اداكړه او د قيس په طريقه باندې يې دا هم شهيد كړو. [ابن اثير ج ۴) ص: (۳٦) سير الصحابة ج ۴) ص: (۱٦٦).

كله چې حضرت حسين رضي الله عنه د ثعلبه مقام ته ورسيدلو، يو كس چې د كوفې څخه راروان وو د حضرت مسلم بن عقيل او د هانئ د قتل څخه يې خبر كړو، حضرت حسين رضي الله عنه سخت خفه شو، حضرت حسين رضي الله عنه ته خيرخواهانو يو ځلې بيا وويل چې په كوفه كې ستا څوك خيرخواه نه شته، لهذا بيرته وګرزه، لكن د حضرت مسلم بن عقيل ورور په ضدا او په غوصه كې راغلو او وې فرمايل چې: قسم په الله جل جلاله چې ترڅو مو د مسلم بدل نه وي اخستى او يا ټول شهيدان شوي نه يو ترهغې پورې به بيرته ونه ګرزو، حضرت حسين رضي الله عنه وفرمايل چې دا خلك نه وي نو زما د ژوند څه مقصد شو؟ قافله يې نوره هم په مخ روانه كړه. سير الصحابة: ج: (۴) ص: (۱٦٦).

كله چې حضرت حسين رضي الله عنه مسلسل د دې دردناكو واقعاتو څخه خبريدلو، نو خپل ملګري يې راجمع كړل او تقريرېې ورته وكړو، چې د مسلم بن عقيل، هانئ ابن عروه، عبدالله بن يقطر دردونكي خبرونه رارسيږي، زمونږ شيعه وو (ډلو) زمونږ همكاري پريښيده، لهذا په تاسو كې چې څوك بيرته تلل غواړي هغه په خوشحالۍ باندې بيرته تلى شي، زمونږ له طرفهورباندې هيڅ پابندي نه شته، كله چې

خلکو دا تقرير واوريدلو نو اکثره خلک لاړل، صرف هغه فدايان ورسره پاتې شول چې د مکې څخه ورسره راغلي وو. سير الصحابة ج ۴ ص: (۱٦٧).

قافله مخکې لاړه ځان سره يې اوبه واخستې او د (ذی حشمه) په مقام کې يې دغره په غاړه خيمې ووهلې، په دې وخت کې ديزيديانو له طرفه حَر بن يزيد التميمي د زروکسانو سره د حضرت حسين رضي الله عنه او دده د ملګرو د نيولو لپاره راورسيدلو، د حضرت حسين رضي الله عنه قافلې ته مخامخ ئې قيام وکړو، حضرت حسين رضي الله عنه د ماسپښين لپاره د اذان حکم وکړو او د اقامت په وخت کې راووتلو د (حَر) د لښکر مخې ته ودريدلو او داسې تقرير يې وکړو چې: ای دکوفې! خلکو زه د الله تعالى او دستاسو څخه ښښنه غواړم، زه پخپل سر تاسو ته نه يم راغلی، بلکې ماپسې تاسو قاصدان او ستاسو خطونه راروان وو، چې مونږ امام نه لرو، تاسو راشئ کيدی شي چې ستاسو په ذريعه باندې الله تعالى مونږ ته سيده لاروښايئ او س زه راغلی يم که تاسو زما سره وعده کوئ او ماته پوره اطمينان راکوئ، نو زه ستاسو ښار ته درځم او که داسې نه کوئ او زما درتلل نه خوښوئ نو زه د همدې ځای څخه بيرته واپس کيږم. سير الصحابة: ج: (۴) ص: (۱٦٧).

خلکو چې دا تقرير واوريدلو ټول چپ شول، هيچا هيڅ جواب ورنکړو، حضرت امام حسين رضي الله عنه د اقامت حکم وکړو او د حر څخه ئې پوښتنه وکړه چې زما سره مونځ کوی او که زما څخه ئې بيل کوې؟ حر وويل چې ستاسو سره يې کوم، حر د حضرت حسين رضي الله عنه په اقتداء کې مونځ وکړو، دا د حر لپاره نيک فال وو، ځکه چې د امام په اقتداء کې يې مونځ وکړو. سير الصحابة: ج: (۴) ص: (۱٦٨)..

ددې څخه وروسته په ماذيګر کې حضرت حسين رضي الله عنه قافلې ته د کوچ کولو حکم وکړو، د کوچ څخه مخکې يې د ماذيګر مونځ په جماعت سره اداکړو، د جماعت څخه وروسته يې بيا تقرير وکړو چې: ای خلکو د الله تعالى څخه وډار شئ او د حقدارانو حق وپيژنئ، دا د الله تعالى د رضامندۍ سبب دی، د ظالمانو او په زور باندې د حکومت کونکو په مقابل کې مونږ اهل بيت د خلافت حقيقي مستحق يو، او که تاسو زما په راتګ باندې خفه يئ او ځمونږ حق نه پيژنئ او ستاسو رأيه د هغې څخه مخالفه وي کومه چې ستاسو د خطونو او ستاسو د قاصدانو څخه معلوميدله نو بيا زه بيرته واپس کيږم. [تاريخ طبری: ج: (۷) ص: (۲۹۷). ددې تقرير څخه وروسته ورته حر وويلې چې کوم خطونه او کوم قاصدان؟

دحر ددې استعجاب ځخه وروسته حضرت حسین رضي الله عنه دخطونو ځخه دکې دوه خلتې دحرپه مخکې خالي کړې، حرچې خطونه ولیدل نوویې ویل چې ددې خلکو سره زمونږ هیڅ تعلق نه شته، مونږ ته داحکم شوی دی، چې ستا ځخه جدا نه شو ترڅو چې دی، ابن زیاد ته ورولو، حضرت حسین رضي الله عنه ورته وفرمایل چې ستامرګ ددې ځخه ډیرنږدې دی دایې وویل اوبیایې قافلې ته حرکت ورکړو، لکن حرمزاحمت وکړو اوورته یې وویل چې صرف ماته داحکم شوی دی چې ودې نیسم اوکوفې ته دې ابن زیاد ته ورولم، لهذا اوس په داسې طرف باندې روان شه چې نه کوفې ته ورسیږئ اونه مدینې ته بیرته وګرزې، په دې زمانه کې به زه ابن زیادته خط ولیږم اوتاسویې یزیدته ولیږئ کیدی شي چې الله جل جلاله دعافیت کوم صورت راپیدا کړي اوزه ستاسو په معامله کې دامتحان ځخه بچ شم.

دحر ددې مشورې ځخه وروسته حضرت حسین رضي الله عنه دقادسې په چپ طرف باندې روان شو اوحرهم ورسره تللو.[سیرالصحابة:ج:(۴)ص:(۱۶۹)].

کله چې حضرت حسین رضي الله عنه د(عذب الهجانات) مقام ته ورسیدلو، نودکوفې ځخه د(طرماح بن عدي) په راهنمایي کې ځلور ملګري ورته راغلل اودکوفې خبریې ورته راوړو، حرد دوي مزاحمت وکړو، حضرت حسین رضي الله عنه ورته وفرمایل چې: دازما انصاردي اوزما دقافلې دخلکو سره یوبرابر دي، له دې وجې دخپل ځان په شان ددوي حفاظت هم په ما باندې لازم دی اوکه ته پخپله خبره ټینګ یې نو بیا جنګ ته تیارشه کله چې حرپوه شو، نوچپ شو، حضرت حسین رضي الله عنه ددوي ځخه دکوفیانو پوښتنه وکړه، مجمع بن عدی ورته وفرمایل چې دکوفې مشرانو غټ غټ رشپتونه اخستي دي، دهغوي لاسونه دروپو ځخه ډک دي، لهذا هغوي ټول ستاپه خلاف متحد شوي دي، البته دعوامو زړونه ستاسو طرفته مایل دي، لکن دهغوي توري هم ستاسو په خلاف دي ددې ځخه وروسته حضرت حسین رضي الله عنه دخپل قاصد (قیس بن مسهر صدادی) پوښتنه وکړه، نومعلومه شوه چې شهید شوی دی، دحضرت حسین رضي الله عنه دسترګو ځخه اوښکې روانې شوې اوپه ژبه باندې یې دا آیت جاري شو چې: (فَمِنْهُمْ مَنْ قَضَىٰ نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَنْ يَنْتَظِرُ) بیایې قیس ته دعاوکړه. [ابن اثیر:ج۴/ص۴۱/سیرالصحابةج/۴/ص:/۱۷۱).

قافله په تلو تلو کی (نینوا) ته ورسیدله، په دغه وخت کی دابن زیاد له طرفه حرته حکم راغلو چې امام حسین رضي الله عنه ونیسه او دداسې خالي میدان طرفته یې بوزه چې هلته هیڅ کوراو ونه نه وي حرد احکم حضرت

حسين رضي الله عنه ته واورولو حسيني لښکر ورته وويل چې مونږ پرېږده، مونږ پخپله په نينوا غاضريه او يا په شقيقه کې خيمې وهو حر ورته وويل چې زه ددې اجازه ځکه نشم درکولی، چې زما پسې جاسوس شته دی خلاصه داچې د محرم په دوهم تاريخ باندې په سنه (٦١) دهجرت، دنينوا په ميدان کربلا (کرب وبلا) کې قافلې خيمې ووهلې. ابن اثير: ج: (٢)ص: (٤٣)سير الصحابة: (۴)ص: (١٧٣).

ابن زياد د حضرت حسين رضي الله عنه د مقابلې په فکر کې شو، نو د حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه ځوی عمرو چې نوی ئې د رَی حاکم جوړ کړی وو، او د لمې د جنګ لپاره يې مامور کړی وو، هغه د ځان سره لښکر روان کړی وو،، د (حمام اعين) مقام ته رسيدلی وو، نو ابن زياد را وغوښتلو او ورته ئې وويل چې اول د حسين رضي الله عنه سره وجنګيږه بيا خپلې وظيفې ته لاړشه، عمرو بن سعد ورته وويل چې الله جل جلاله دې په امير باندې رحم وکړي ما ددې خدمت څخه معاف کړه، ابن زياد ورته وويل چې که دا کار نه کوې، نو بيا د رَی حکومت هم درته نه درکول کيږي، ددې اخطار څخه وروسته ابن سعد مهلت وغوښتلو، د مهلت په زمانه کې يې د خپلو خيرخواهانو سره مشوره شروع کړه، ټولو مخالفت کولو، حمزه بن مغيره ورته وويل چې د الله جل جلاله لپاره د حسين رضي الله عنه د وينو ګناه پخپل سرباندې مه اخله او قطع د صله رحمی مه کوه، چې حکومت د دنيا او مال ټول دې له لاسه ووزي نو دا هرڅه د برداشت قابل دي لکن د حسين رضي الله عنه په وينو باندې د لاسونو لړل نه دي پکار، ابن سعد ورته وويل چې ان شاء الله تعالی ستا په مشوره به عمل کوم. [سير الصحابة: ج: (۴)ص: (١٧۴)].

وروسته د حکومت شوق او مينې ابن سعد دې خطرناک کار ته تيار کړو، په دريم د محرم باندې ابن سعد د څلور زره کسانو سره نينوا ته ورسيدو، ابن سعد غوښتل چې عزره ابن قيس حمسي حسين رضي الله عنه ته ورولیږي او پوښتنه ترينه وکړي چې د څه مقصد لپاره راغلی يئ؟ لکن هغه عذر وکړو، ځکه چې دا هم يو په هغو کسانو کې وو چې حضرت حسين رضي الله عنه ته ئې خطونه ورليږل، بيا يې کثير بن عبد الله ورولیږلو، کثير ورته وويل چې زه ورځم که ستاسو زما د ليږلو څخه بل څه غرض وي هغې ته هم تيار يم د حضرت حسين رضي الله عنه وژلو ته يې اشاره کوله ابن سعد ورته وويل چې زه بل څه نه غواړم صرف ورشه او ورته ووايه چې د څه مقصد لپاره راغلی يئ؟

داسې بدزبانه اوبدمزاجه وو، دخپلې بدمزاجۍ په وجه يې دحضرت حسين رضي الله عنه پورې پيغام ونه رسولو او واپس راغلو، دده د واپسۍ څخه وروسته يې (قرة بن سعد) ورولېږلو (قرة بن سعد) پيغام ورته وررسولو حضرت حسين رضي الله عنه ورته وفرمايل چې زه تاسو د(کوفې خلکو) راغوښتې يم اوس که تاسو زما راتلل نه خوښوئ نوزه بيرته واپس کيږم، کله چې ابن سعد ته دحضرت حسين رضي الله عنه جواب راورسيدلو نوابن سعد داطمينان ساه واخيسته او ويويل چې اميد شته چې اوس الله تعالی مادحسين رضي الله عنه سره دجنګ څخه وساتي، ابن سعد خپل سوال اود حضرت حسين رضي الله عنه جواب ابن زياد ته ورولېږلو دابن سعد ددې مصالحانه تحرير څخه وروسته هم ابن زياد صلحې ته تيارنه شو. [سيرالصحابة:ج:(۴)ص:(۱۷٦).

ابن زياد ابن سعد ته وليکل چې ستاسو خط راورسيدلو، زه پوه شوم، ته أول دحسين اودحسني لښکر څخه ديزيد لپاره بيعت واخله، کله يې چې بيعت وکړو بيا به ګورو، کله چې ابن سعد ته خط راورسيدلو نو وې ويل چې داسې معلوميږي چې ابن زياد أمن او عافيت نه غواړي .تاريخ طبري ج ۷صـ ۳۱۲، سيرالصحابه ج ۴صـ ۱۷۷)

ابن زياد دوهم خط ورولېږلو چې په حسيني لښکر باندې اوبه بندې کړه، اوديزيد لپاره ترينه بيعت وغواړه، دبيعت څخه وروسته به زه دده په معامله باندې غور کوم، ددې خط په تعميل کې ابن سعدپنځه سوه کسان دفرات په غاړه باندې د اوبو دبندولو لپاره وګمارل، د اووم دمحرم الحرام څخه اوبه بندې شوې. تاريخ طبرى:ج:(۷)ص:(۳۱۲)سيرالصحابة:ج:(۴)ص:(۱۷۷).

کله چې حسيني لشکر ډيرتګى شونوحضرت حسين رضي الله عنه حضرت عباس بن علی رحمه الله دديرشو سپرو اودشلو پياده و وسره داوبو پسې وليږلو، دوي چينې ته ورسيدل، عمروبن حجاج مزاحمت وکړو، لکن عباس بن علی رحمه الله مقابله وکړه اومشکونه يې ډک راوړل. اخبارالطوال ص۲۲٦ سيرالصحابة ج ۴ ص:(۱۷۷).

ددې څخه وروسته حضرت حسين رضي الله عنه ابن سعد ته پيغام وليږلو، چې زه بيګاه ته ستاسره ستا او دخپل لښکرپه مينځ کې ګورم دحضرت حسين رضي الله عنه په خواهش باندې ابن سعد دشلو کسانو سره ورغلو، دحضرت حسين رضي الله عنه سره شل کسان وو، لکن حضرت حسين رضي الله عنه دخپلو کسانو څخه راييل شو ابن سعد چې د اوکتل نو هغه هم خپل ملګرى شاته کړل اودواړو يوائې په يوائې ترډيروخته پورې خبرې وکړې، لکن داخبرې څه شى وې؟ نوددې په باره کې صحيح معلومات نه شته.( سيرالصحابة:ج:(۴)ص:(۱۷۷).

کله چې ابن زياد دابن سعد دحيلو او دبهانو څخه خبرشو، چې جنګ وروسته وروسته کوي، نويو تهديدي حکم يې ورته وليږلو، چې ته مادديې لپاره نه يې ورليږلی چې دحسين سفارشي جوړشه اودهغه آرزوګانی پوره کوه، حسين ته زما حکم وروا وروه، که ويمنلو نوټول ماته راوله اوکه نه فورًا حمله ورباندې وکړه اوکه ته داکازنه شې کولی نو فوج (شمرذوالجشن) ته حواله کړه اوته لرې شه، زه چې کوم حکم درته کووم هغه زرترزره پوره کړه.[ابن اثيرج۴)ص۴۸/ سيرالصحابة:ج:(۴)ص/۱۷۹).

شمرذوالجشن فرمان راوړو، ابن سعد ته يې ورکړو، ابن سعد ډيرخفه شو اوورته يې وويل چې ماچې ابن زياد ته دصلح په باره کې څه ليکل دهغې دقبلولو څخه لکه چې تامنع کولو،شمرورته وويل چې اوس وايه څه کوې؟ دامردمطابق دده دشمنان وژنې اوکه فوج ماته حواله کوې؟ ابن سعددنيا دجاه اودجلال په طمع دحضرت حسين ﷛ سره جنګ ته تيارشو، شمرته يې وويل چې زه پخپله داکارکووم ته دپياده لښکرنګراني کوه، په نهم دمحرم باندې ئې دجنګ لپاره تيارياني شروع کړې. ابن اثير:ج:(۴)ص:(۴۷).

دمحرم په نهم تاريخ باندې ابن سعد ديوڅوکسانو سره دحضرت حسين ﷛ خيمې ته ورغلو حضرت امام حسين ﷛ ورته دراوتلو عزم وکړو، لکن حضرت عباس بن علی ﷠ منع کړو اوورته ويويل چې زه ورزم، عباس بن علی ﷠ ورغلو اودراتلو دمقصد پوښتنه ئې ترينه وکړه، هغه ورته خپل دراتللو مقصد بيان کړو، غالبًا چې دجنګ طرفته ئې اشاره وکړه ،حضرت عباس بن علی ﷠ ورته وويل چې ته صبروکړه زه ستا خبره امام ته رسوم، حضرت حسين ﷛ ئې خبرکړو، حضرت حسين ﷛ ورته وويل چې صحيح ده يوه شپه مهلت راکړئ چې زه په آخری شپه کی ښه مونځونه ،دعاګانی، توبه اواستغفار وکړم الله ﷻ ښه پوهيږي چې زما دمونځ ، دقرآن دتلاوت ، دعا او د استغفار سره څومره مينه ده، عباس بن علی ﷠ ورغلو، ابن سعدته ئې وويل چې تاسو نن شپه واپس لاړشئ مونږ به دشپې په دې معامله باندې سوچ وکړو، ابن سعد دخپلو ملګرو سره دمشورې څخه وروسته يوه شپه مهلت ورکړو. [سيرالصحابة:ج:(۴)ص:(۱۸۰].

حسيني لښکر دخپلو خيمو څخه ګيرچاپيره خندق ايستلی وواو دخيمو دحفاظت لپاره يې دخيمو څخه ګيرچاپيره لرګي درولي وو، کله چې په لسم دمحرم باندې يزيدي لښکرخيمې محاصره کړې

نو حسیني لښکر هغو لرګیو ته اور واچولو ، شمر چې کله د اور شعلې ولیدلې نو حضرت حسین رضي الله عنه ته یې په اوچت آواز باندې آواز ورکړو چې : حسین ته د قیامت څخه مخکې اور وررسیدلو ، حضرت حسین رضي الله عنه ورته وویل چې ته په دې کې زیات د سوزیدلو مستحق ئې ، (مسلم بن عوسجه) عرض وکړو چې یا ابن رسول الله! شمر زما د غشي هدف ته ښه برابر دی، اجازه وکړه چې دده کار ورخلاص کړم، حضرت حسین رضي الله عنه ورته وفرمایل چې: نه، زه د جنګ شروع نه کووم،په بعضې نورو روایاتو کې ددې آواز نسبت مالک بن عروه او په بعضې نورو کې د حوزه په نوم باندې کس ته شوی دی.

د جنګ د شروع کولو څخه مخکې حضرت حسین رضي الله عنه یزیدي فوج ته تقریر وکړو ، لکن پوه نه شول، زهیر بن قین ته ئې د ابن زیاد د ملګرتیا د پریښودلو دعوت ورکړو ، لکن هغه قبول نه کړو ، بلکې حضرت حسین رضي الله عنه ته ئې کنځلې وکړې او د ابن زیاد سره ئې خپله وفاداري ښکاره کړه، حر هم تقریر وکړو او یزیدي فوج ته ئې وویل چې د فرات ډاوبو څخه سپي، ګیدړان، لیوان، یهود او نصارا اوبه څښي، لیکن حسین رضي الله عنه او دده اهل او عیال نن د تندې څخه تږیږي، تاسو د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته د نبي اکرم ﷺ د اهل او عیال څه لحاظ وکړو؟ د حر ددې تقریر څخه وروسته ابن سعد خپل بیرغ پورته کړو او د جنګ د شروع لپاره یې اول غشې وارکړو.

په ابتداء کې د مبارزې لپاره د یزیدي فوج څخه یسار او سالم را ووتل، د حسیني فوج څخه یوائې عبید الله بن عمیر وروو تلو ، عبید الله بن عمیر په اول وار باندې یسار ختم کړو ،سالم په عبید الله بن عمیر باندې وار وکړو عبید الله بن غمیر د هغه وار په لاسونو باندې منع کړو ، ګوتې یې غوڅې شوې، لکن بیا یې هم په غوڅو ګوتو باندې د سالم کار ورخلاص کړو.

تر اوسه پورې د یو یو کس مقابله وه پدې مقابله کې د یزیدي فوج هر سړی به چې میدان ته راوتلو سر به یې غوڅیدو آخر عمرو بن حجاج چیغې کړې چې ای خلکو تاسو د داسې خلکو سره جنګیږئ چې هغوي په ځانونو باندې لوبې کوي، حالانکه دا دومره لږ خلک دي چې که تاسو یې په تیګو وولئ هم ختمیږي له دې وجې تنها مقابله مه کوئ د خپل امیر اطاعت وکړئ، د حسین په وژلو کې هیڅ شک او تردد مه کوئ، ابن سعد هم د عمرو بن حجاج رایه خوښه کړه، له دی وجی ئی د فردًا فردًا جنګ په ځای د عام جنګ اعلان وکړو.

دحسیني لښکرخیمو ته ئی اور واچولو، جنګ شدت پیدا کړو، تردې چې اهل بیت او د اهلبیتو حمایت کونکي تربچیانو پورې شهیدان شول، دحضرت حسین رضی الله عنه، حضرت زین العابدین او دیو څو شیرخورو ماشومانو څخه بغیر نورټول شهیدان شول، زین العابدین مریض وو.

په حضرت حسین رضی الله عنه باندې داووم دمحرم څخه اوبه بندې شوې وې، لدې وجې سخت تګی وو، تنها مقابلې ته ووتلو، ټول بدن یې زخمي زخمي شو، په زخمي زخمي حالت کې دفرات ترغاړې پورې ورسیدلو، په لپه کې یې اوبه را واخستې، یویزیدي ورته پیغور ورکړو چې ته اوبه څښې او بچي دې په خیمه کې له تندې څخه تړییږي، په یوروایت کې راځي چې حضرت حسین رضی الله عنه اوبه وڅښلې او په بل روایت کې راځي چې اوبه یې ونه څښلې، بلکې کله یې چې اوبه خولې ته رسولې نو په خوله کې په غشي باندې ولګیدلو او دخولې مبارکې څخه یې دوینو فوارې روانې شوې. (سیرالصحابة: ج: (۴) ص: (۲۰۳).

دحضرت امام حسین رضی الله عنه بدن ټول زخمي زخمي وو، لکن بیا هم چا دده دوژلو جرائت نه کولو، شمر ذوالجشن چې دخلکو دا تردد ولیدلو نو چیغې ئې پرې وکړې چې ولې ورته ګورئ؟ یوبدبخته په څټ کی په غشي باندې وویشتو، حضرت حسین رضی الله عنه چې غشې را اویستلو نوزرعه بن شریک په لاس دتورې ګذار ورکړو، بیا یې په څټ دتورې ګذار ورکړو، په حضرت حسین رضی الله عنه کې دپاڅیدلو طاقت ختم شو سنان بن انس په نیزه باندې ووهلو، حضرت حسین رضی الله عنه پرمخې راوغورزیدلو، ددې څخه وروسته بدبخته (خوله بن یزید) اویا سنان بن انس دحضرت حسین رضی الله عنه سرد تنې څخه جدا کړو او په لسم دمحرم سنه (۶۱هـ) کې داهل بیتو عظیم لمر ددینا څخه پناه شو، انالله وانا الیه راجعون.

سیرالصحابة: ج: (۴) ص: (۲۰۳).

په بعضې روایاتو کې راځي چې یزید چې دحضرت حسین رضی الله عنه دقتل څخه خبرشو او دحضرت حسین رضی الله عنه سرېې ولیدلو نو وې ژړل، دا روایت خو اول صحیح نه دی، بالفرض که صحیح شي نو د یوسف علیه السلام دورونو د ژړا پشان ژړا څه فایده لري؟ تجلیات صفدر: ج: (۱) ص: (۵۵۸).

قاری محمد طیب رحمه الله فرمایي چې: دیزید دټولو فتنو څخه سخته فتنه دحضرت امام حسین رضی الله عنه او داهل بیتو قتلول وه، په کوم باندی چې یزید ډیر خوشحال شو، او چی کله ئی خپل تیاره مستقبل ولیدلو نوظاهرًا ئی دغم اظهار وکړو، کوم چی په حقیقت کی دحضرت امام حسین رضی الله عنه په قتلولو باندی

نه وو، بلکې په ډېرې بې عزتۍ باندې وو، په دې طریقه دا سړی د رسول الله ﷺ د حدیث په اشاره باندې دنبی اکرم ﷺ د امت لپاره دهلاکت باعث شو. [شهید کربلا اور یزید ص/ ۱۶۴ ازقاری محمد طیب].

حافظ محمد اسحق دهلوي رحمه الله فرمایي چې: د حضرت حسین رضی الله عنه په شهادت باندې ظاهرًا یزید خفه وو، لکن په باطن کې انتهائی خوشحاله وو او د دې لپاره ثبوت دادی چې کله ابن زیاد دمشق ته ورغلو نو یزید یې انتهایي احترام او اکرام وکړو او خپل کورته یې د خپلو ښځو خواته بوتلو او دده په مدارات کې یې غټه حصه واخستله. (شهادت حسین: ص:(۵۸) از حافظ محمد اسحق دهلوی).

خپله ابن زیاد وایي چې: اماقتلي الحسین فانه اشار إلیّ یزید بقتله اوقتلي فاخترت قتله. مادیزید په اشاره باندې حضرت حسین رضی الله عنه قتل کړو. یزید ماته اشاره کړې وه چې که ته حسین مړنه کړې زه به تا ووژنم.[الکامل فی التاریخ ج۲/ ص:(۶۱۲ طبری/ج۴/ ص۴۰۲].

دیزید مور (مرجانه) خپل زوی ته وویل چې ای خبیثه تا د رسول الله ﷺ لمسی وژلی دی، ته به هیڅ کله جنت و نه ګوری. تجلیات صفدر: ج:(۱)ص:(۵۵۸).

## دحضرت حسین رضی الله عنه دقاتلانو انجام

امام زهري رحمه الله فرمائی چې دحضرت امام حسین رضی الله عنه په قاتلانو کې یو هم بچ نه شو، بلکې د آخرت دسزاء څخه مخکې ورته په دنیاکی هم سزاء ورکړل شوه څوک ووژل شو، دچا مخ تور شو او څوک مسخ شو.

## دحضرت امام حسین رضی الله عنه یوقاتل ړوندشو

سبط ابن جوزي فرمایي چې یو سړی د حضرت امام حسین رضی الله عنه په قتل کې شریک وو بیا ړوند شو، چا ترینه دسبب پوښتنه وکړه هغه ورته وویل چې یوه ورځ مې خوب ولیدلو دنبی اکرم ﷺ په لاس کې توره وه او دحضرت امام حسین رضی الله عنه قاتلان ئې حلالول، زه ئې څملولم او دحضرت امام حسین رضی الله عنه دوینو څخه ئې یو سلائی زما په سترګو کې وکړو، سهار چې راپاڅیدم دسترګو نظر مې ختم وو. شهید کربلا ص۹۴ مفتی محمد شفیع رحمه الله.

## دحضرت حسین رضی الله عنه دیوقاتل مخ تور شو

ابن جوزی رحمه الله فرمائی چې دحضرت حسین رضی الله عنه په قاتلانو کې یو خوبصورته سړی وو بیائی مخ تک تور شو، چا ترینه دسبب پوښتنه وکړه، هغه وویل چې دکومې ورځې څخه چې زه دحضرت

حسين رضي الله عنه په قتل کی شریک شوی یم نو هرشپه په خوب کی یوه دوه کسان راځي او ما اورته غورزوي په همدې حالت کې یو څو ورځې بعد مړشو. [شهيد کربلا: ص:(٩٥)مفتی محمد شفيع رحمه الله].

## يوقاتل په اوورکې وسوزيدلو

په يو مجلس کی چا دا خبرې وکړې چی د حضرت حسين رضي الله عنه قاتلانو ته ډير زرسزا ورکړل شوه، نو يو سړي وويل چی زه خوپخپله د حضرت حسين رضي الله عنه په قتل کی شريک ووم، ماخو هيڅ سزا ونه ليدله، کله چی دا سړی د دې مجلس څخه کورته لاړو، نو چراغ يی جوړولو چی اوورئی واخستلو او وسوزيدلو. شهيد کربلا: ص:(٩٥)مفتی محمد شفيع رحمه الله.

کوم سړي چی حضرت حسين رضي الله عنه په غشې ويشتلي وو هغه دومره تږی شو چی په هيڅ قسم اوبو باندې يې تنده نه ماتيده آخر دتندې د لاسه مړ شو. [شهيد کربلا: ص:(٩٥)مفتی محمد شفيع رحمه الله].

## ديزيد هلاکت

د حضرت حسين رضي الله عنه د شهادت څخه وروسته يزيد يوه ورځ هم په آرام باندی تيره نه کړه په ټولو اسلامي ملکونو کی د شهيدانو د وينو مطالبې اوبغاوتونه شروع وو، د کربلا د واقعی څخه وروسته صرف دوه کاله او اته مياشتی او په بل روايت کې درې کاله او اته مياشتی ژوندی وو په دنيا کې يې ذلت په برخه شو او د ذلت سره هلاک شو. شهيد کربلا: ص:(٩٦)

## په کوفه باندې دمختار تسلط

د حضرت امام حسين رضي الله عنه د شهادت د واقعې څخه پنځه کاله وروسته په سنه(٦٦هـ) کی مختار د حضرت امام حسين رضي الله عنه د قاتلانو څخه د انتقام اعلان وکړو، عام مسلمانان ورسره ملګري شو او په لږ وخت کی ئی کوفه او ټول عراق ونيولو او اعلان ئی وکړو چی د حضرت امام حسين رضي الله عنه د قاتلانو څخه بغير نورو ټولو ته امن دی، د حضرت امام حسين رضي الله عنه قاتلان ئی يو يو رانيولو او قتلولو به يې، په يوه ورځ کې يې په دی جرم باندی دوه سوه او اته څلويښت کسان ووژل او د دې څخه وروسته يې د خاصو خاصو قاتلانو لټون شروع کړو.

## عمروبن حجاج:

عمروبن حجاج ئې لمرته وغورزولو، دتندې شخه ډيرو تړپيدو، کله چې دتندې شخه بې هوشه شو نو ذبحه ئې کړو.

## شمرذو الجشن

شمرذوالجشن چې داهل بيتوپه وژلو کې يې ډيره دلچسپي لرله وې ووژلو اومړی يې سپيوته وغورزولو.

## عبدالله بن اسد جهني،مالک بن بشير او حمل بن مالک

دائې محاصره کړل، دوي درحم درخواست وکړو، مختار ورته وويل چې ظالمانو! تاسو د رسول اللهﷺ په اولاد باندې رحم نه دې کړی، لهذا په تاسوباندې رحم نه دې پکار، ټول ئې ووژل، دمالک بن بشير شخه ئې لاسونه او پښې غوڅ کړل لمرته ئې وغورزولو او هلاک شو. شهيد کربلا :ص:(۹۶)مفتي محمد شفيع رحمه الله.

## عمرو بن سعد

د حضرت حسين رضي الله عنه په خلاف ديزيدي لښکر مشر عمرو بن سعد ئې ووژلو اودده ځوی حفص ئې دده شخه مخکې نيولی وو، کله ئې چې دابن سعد سر دمختار دربارته راوړو، نو حفص ته ئې وويل چې دا پيژنې دادچا سردی؟ هغه ورته وويل هو، لکن دده شخه وروسته زما هم ژوند نه دی پکار، مختار وويل چې د ابن سعد وژل دحضرت امام حسين رضي الله عنه په بدل کې دي او دحفص وژل دعلی بن حسين رضي الله عنه په بدل کې دي. شهيد کربلا :ص:(۹۴)مفتي محمد شفيع رحمه الله.

ددواړو سرونه ئې محمد بن الحنيفه ته ورولېږل، ابن کثير رحمه الله فرمائې چې مختار محمد بن الحنيفه ته وليکل چې قدبعثت اليک برأس عمروبن سعد وابنه وقدقتلنا من اشترک في دم الحسين واهل بيته کل من قدرناعليه. [البداية والنهاية:ج/ ۸/ ص۲۷٤].

## حکیم بن طفیل

ده حضرت امام حسین رضی الله عنه په غشي باندې ویشتلی وو نو دائی په غشو وویشتلو او هلاک شو.

## زید بن رفاد

ده د حضرت امام حسین رضی الله عنه وراره د مسلم بن عقیل ځوی عبدالله په غشي باندې په تندي ویشتلی وو عبدالله خپل لاس تندي ته نیولی وو، نو لاس یې د تندي پورې میخ شوی وو، نو دا ظالم ئی اول په غشو باندی وویشتلو او بیائی ژوندی وسوزولو.

## سنان بن انس

د کوفې څخه وتښتید لو مختار دده کور وسوزولو. شهید کربلا: ص: (۹۷)

## عبیدالله بن زیاد

امام ترمذی رحمه الله فرمائی چی: عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عُمَيْرٍ، قَالَ: لَمَّا جِيءَ بِرَأْسِ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ زِيَادٍ وَأَصْحَابِهِ نُضِّدَتْ فِي الْمَسْجِدِ فِي الرَّحَبَةِ فَانْتَهَيْتُ إِلَيْهِمْ وَهُمْ يَقُولُونَ: قَدْ جَاءَتْ قَدْ جَاءَتْ، فَإِذَا حَيَّةٌ قَدْ جَاءَتْ تَخَلَّلُ الرُّءُوسَ حَتَّى دَخَلَتْ فِي مَنْخَرَيْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ زِيَادٍ فَمَكَثَتْ هُنَيْهَةً، ثُمَّ خَرَجَتْ فَذَهَبَتْ حَتَّى تَغَيَّبَتْ. ثُمَّ قَالُوا: قَدْ جَاءَتْ، قَدْ جَاءَتْ، فَفَعَلَتْ ذَلِكَ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلاَثًا.

[ ترمذی: ج: (۲) ص: (۲۱۸) رقم: ۳۷۸۰ وقال هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ و قال الشيخ الألباني: صحيح الإسناد و رواه الطبراني فی معجم الكبير رقم: ۲۷۶۳ و الأحكام الشرعية الكبرى للاشبيلي جز ٤ ص ۳۳۸ وقال هذا حديث حسن ]

کله چی د مختار د کسانو په لاس باندی د ابن زیاد او د ده د ملګرو سرونه په موصل کی غوڅ شول، نو عماره بن عمیر فرمائی چی د دوي سرونه ئی جامع مسجد ته راوړل، زه هم په دغه وخت کی د مسجد په چوتره باندی وم، نو خلکو داسی آوازونه کول چی راغلو راغلو، ماچی وکتل نو یو مار راغلو او دا ابن زیاد په پوزو کې ننوتلو، تر ډیره وخته پورې هلته ورک وو، بیا راووتلو او لاړو لږ وروسته بیا راغلو تر دې چی دوه او یا درې ځلی یې داکار وکړو.

## مختار څوک وو؟

دا ديو جليل القدر صحابي حضرت ابو عبيده ابن مسعود الثقفي رضي الله عنه ځوی وو، مختار د هجرة په اولنو کلونو کې پيدا شوی وو، لکن د رسول الله ﷺ سره ئی ملاقات نه وو شوی، په ابتدا کی په علم او په فضل او په تقوی باندې مشهور وو، لکن وروسته معلومه شوه چی باطن يې د خباثت څخه ډک دی، صرف د دنيا سازۍ لپاره يې د تقوی لباس اغوستی دی، په ابتدا کې يې د اهل بيتو سره سخته دشمني وه، بيا وروسته يې قدرت ته د رسيدلو لپاره د اهل بيتو سره د محبت دعوه وکړه، په يو حديث کی راځي چی زما په امت کې به د ثقيف د قبيلې څخه يو مبير يعنی هلاکونکی او يو کذاب را پيدا شي، مبير حجاج وو او کذاب مختار وو، ده د اهل بيتو سره د محبت د دعوې څخه وروسته د پيغمبرۍ دعوه وکړه، خلاصه دا چی مختار پخپله ظالم وو، چی وروسته بيا مرتد هم شو، لکن د سلط الظالمين بالظالمين مصداق وو الله جل جلاله دا ظالم په هغو ظالمانو باندې مسلط کړی وو کوم چی د حضرت حسين رضي الله عنه قاتلان وو..

## دحضرت حسين رضي الله عنه دقاتلينو لپاره د حضرت زينب رضي الله عنها ښيرا:

کله چی حضرت حسين رضي الله عنه شهيد شو، نو د حضرت امام حسين رضي الله عنه قاتلينو د خپلو جرمونو د پټولو لپاره د سينو وهل شروع کړل، حضرت زينب رضي الله عنها چی کله د دې شيعه و ماتم اوژړا وليدله نو حضرت زينب رضي الله عنه د حمد او د ثنا څخه وروسته ورته وفرمايل چی ای د کوفې خلکو! تاسو اوس ژاړئ او ماتم کوئ؟ په الله جل جلاله مې دې قسم وي چی تاسو به ډير وژاړئ او لږ به وخاندئ الله جل جلاله دا ښيرا دا سې قبوله کړه چی تر قيامته پورې بلکې د قيامت څخه وروسته به هم دوی ژاړي او سينې به وهي. تجليات صفدر: ج: (۱) ص: (۵۴۷).

## ديزيد په فسق باندی اتفاق

**يزيد د الله عَزَّوَجَلَّ په محکمه کې:** الله جل جلاله فرمائی چی: فَخَلَفَ مِنْ بَعْدِهِمْ خَلْفٌ أَضَاعُوا الصَّلَاةَ وَاتَّبَعُوا الشَّهَوَاتِ فَسَوْفَ يَلْقَوْنَ غَيًّا (مريم / ۵۹).

بيا د دوي څخه وروسته دا سې نا اهله خيلفګان را پيدا شول چی مونځ ئی ضايع کړو او د خپلو خواهشاتو پسې روان شول، نو پس زر دی چی دوي به ملاقي شي د کندې د جهنم سره.

حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمائي چي ما د افرمان اوريدلی دی چی شپيته کال وروسته به داسې نا اهله راظاهر شي چې مونځ به ضايع کوي او د خپلو خواهشاتو پسې به روان وي. البداية والنهاية:ص:(۲۳۳). او په شپيتم کال باندې ديزيد حکومت شروع شو.

**يزيد د رسول الله ﷺ په محکمه کې:** (۱) رسول الله ﷺ فرمائي چي زما امت به په انصاف باندی کلک وي، تردې پورې چې دبنی أميه وو څخه ديزيد په نوم يو سړی به پکې اختلاف راولي. [مجمع الزوايد :ج:(۵)ص:(۲۴۱)تجليات صفدرج۱ص/۵۸۶).

(۲)نبی اکرم ﷺ فرمائي چي: عَنْ أَبِي ذَرٍّ ، قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ : أَوَّلُ مَنْ يُبَدِّلُ سُنَّتِي رَجُلٌ مِنْ بَنِي أُمَيَّةَ يقال له يزيد. [رواه مُصنف ابن أبي شيبة رقم : ۳۷۰۲۷ الصواعق المحرقه:ص۱۲۱] زماسنت به دټولو څخه مخکې دبنی أميه وو يزيد بدل کړي، ديزيد په باره کی دنبي اکرم ﷺ پيشن ګو يانی به دامارة الصبيان د حديث په تشريح کې وليکو. ان شاء الله تعالی.

**يزيد دابن عباس رَحِمَهُ ٱللَّهُ په محکمه کې:**

يزيد عبد الله بن عباس رضي الله عنهما ته خط ليږلی وو ، حضرت عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما ورته د خط په جواب کی وليکل چی تازما څخه غوښتنه کړی ده چی زه د خلکو په زړونو کې ستا محبت او د ابن زبير رضي الله عنه څخه دنفرت کوشش وکړم، نو دا کار بالکل نه کوم، ماته نه ستا خوشحالي منظوره ده او نه ستا اعزاز، حالانکې تا حضرت امام حسين رضي الله عنه او نوجوانان عبد المطلب قتل کړل، تاته حضرت حسين رضي الله عنه دصلحی پيشنهاد هم وکړو، لکن تا چونکی په دغه وخت کی بې کسه وليدلو نو دده دخاندان قتل عام دی وکړو، داسې دې وو ژل لکه څرنګه چی خلک مشرکان او کافران وژني، نو دا ماته ډيره عجيبه ښکاري چی اوس هم زما د دوستی غوښتونکي يې، حالانکې تازما دنيکه خاندان وو ژلو او ستا دتورې څخه زمونږ وينې څڅيږي، ته زما دانتقام هدف يې ته نن په دی خيال باندې يې چی زمونږ په خلاف باندې دې فتحه حاصله کړه، نو په دې مه مغروره کيږه، مونږ به هم کومه ورځ په تا باندې فتح حاصلو و. [الکامل فی التاريخ:ج:(۲)ص:(۶۰۴) تجليات صفدر:ج:(۱)ص:(۵۸۹].

**یزید د عبدالله بن زبیر ﷛ په محکمه کې:** حضرت عبد الله بن زبیر ﷛ به په خطبه کی فرمایل چی: یزید القرود شارب الخمور تارك الصلوة منعكف على القينات. [البداية والنهاية: ج۸/ص۲۲۲].

دشادیانو یزید، شراب خوړونکی، مونځ پرېښودونکی، په ډموباندی همیشه والی کونکی، حضرت ابن زبیر ﷛ بـه دا خطبه پـه حـرم کـې لوستله او هیڅـا ورتـه نـه ویـل چـی ای دنبـي اکـرم ﷺ صـحابی! ای د ابوبکر صدیق ﷛ لمسیه! په حرم پاک کې ولې دروغ وایې؟

**یزید دحضرت عبدالله بن حنظله ﷠ په محکمه کې:** حضرت عبد الله بن حنظله ﷠ په مدینه منوره کی قسمیه بیان کولو چی: والله ماخرجنا على يزيد حتى خفنا ان نرمى بالحجارة من السـماء ان كان رجـل يـنكح امهـات الاولاد والبنـات والاخـوات ويشـرب الخمرويـدع الصـلوة. [الصـواعق المحرقه: ص۲۲۱) تجليات صفدر ج۱ ص۵۸۷).

په الله ﷻ باندی قسم چی مونږ دیزید په خلاف ترهغه پورې قیام نه کولو ترڅو چی وډارشوم چی هسې نه چی دعدم قیام په صورت کې را باندې دآسمان څخه تیګې را ونه وریږي، یزید د پلار د ام ولدو سره صحبت کوي او د لورګانو او دخورګانو سره هم صحبت کوي، شراب خوري او مونځ نه کوي.

**یزید د منذر بن زبیر ﷛ په محکمه کې:**

إن يزيد يشرب الخمر ويترك الصلاة ويتعدى حكم الكتاب. [البداية والنهاية: ج۸/ ص۲۳۶) تجليات صفدر: (۱) ص: (۵۹۲) تاريخ الإسلام ووفيات المشاهير والأعلام. لذهبي و فوات الوفيـات جـز ٤ ص۳۳۸، مختصر تاريخ دمشق مولفه محمد بن مكرم بن منظور الأفريقي المصري جز ۸ ص ۲۵۶]

یزید شراب خوري، مونځ نه کوي او د کتاب الله د احکامو څخه تجاوز کوي.

**یزید دخپل ځوی معاویه بن یزید په محکمه کی:** دیزید ځوی معاویه بن یزید د خپل پلار په باره کی وائی چی زما پلار حکومت وینولو. لکن ددې اهل نه وو، د رسول الله ﷺ د لمسي سره یې جنګ وکړو، هغه یې ووژلو او د هغه نسل کشي یې وکړه، او دخپلو ګناهونو دذمه واری سره دفن شو، دائی وویل او بیا په ژړا شو او بیائی وویل چی ددې کار خراب انجام ماته معلوم دی، یزید یقیني چی د رسول الله ﷺ لمسي قتل کړل، شراب یې مباح کړل. بیت الله یې برباد کړو. [الصواعق المحرقـه: ص: ( ۲۲۴) تجلیات صفدر ج۱ ص: (۵۸۵].

**يزيد د ابن ز ياد په محكمه كې:** يزيد ابن زياد ته حكم وكړو چې د مكې مكرمې په حرم كې په عبدالله بن زبير رضي الله عنه باندې حمله وكړه. نو ابن زياد ورته وويل چې: لا اجمعهما للفاسق ابدًا اقتل ابن بنت رسول الله ﷺ واغزو البيت. طبري ج٤ ص٣٧١). ابن زياد انكار وكړو: وېويل چې زه د فاسق لپاره دواړه كارونه نكوم، چې هم مې د نبي اكرم ﷺ لمسي ووژل او هم په بيت الحرام كې جنګ وكړم.

**يزيد د حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمه الله په محكمه كې:** چا به چې د حضرت معاويه رضي الله عنه پسې بد وويل نو حضرت عمر بن عبد العزيز رحمه الله به درې دورې وهلو او چا به چې يزيد ته امير المؤمنين وويلې، نو هغه به ئې شل دورې وهلو، همدا كار خليفه مهدي هم كولو. [الصواعق المحرقه: ص٢٢١].

**يزيددشاولي الله الدهلوي رحمه الله په محكمه كې:** دګمراهئ او ضلالت داعي په شام كې يزيد او په عراق كې مختار وو. [مبحث فتن از حجة الله البالغ: تجليات صفدر ج١ /ص٥٨١].

په خير القرون كې اتفاقًا داسې خلك موجود وو كوم چې منافقان او يا فاسقان وو، په دوي كې حجاج، يزيد او مختار وو. [حجة الله البالغة: ص٢١۵/ تجليات صفدر: ج/ ١ص/٥٨٦].

**يزيد دمجددالف ثاني رحمه الله په محكمه كې:** بدبخته يزيد صحابي نه وو، دده په بدبختئ كې هيڅ خبره نه شته، كوم كار چې دې بدبخته وكړو هغه كار كافر او فرنګي هم نه كوي، په اهل سنت والجماعت كې بعضې خلك په يزيد باندې په لعنت ويلو كې توقف كوي، دوي دا خبره په دې بنا نه ده كړې چې په دې باندې راضي وو، بلكې په دې باندې بناء ده چې د توبې او د رجوع احتمال شته. [مكتوبات، دفتر اول، مكتوب نمبر: (۵۴)ج: ١/ص: ١٢٨).

**يزيد دشاه عبدالعزيز رحمه الله په محكمه كې:** كله چې د شام او د عراق بدبختان راجمع شول، نو د پليت يزيد په امر او د رئيس اهل البغض والفساد ابن زياد په تحريض باندې يې امام همام په كربلا كې شهيد كړو. تحفه اثناعشرية: ص: ١١/ تجليات صفدر ج١/ ص٥٨٦).

يو سړي د شاه عبد العزيز رحمه الله څخه پوښتنه كړې ده چې په يزيد او په حضرت امام حسين رضي الله عنه كې څوك په حقه وو؟

شاه عبد العزيز رحمه الله ورته فرمائي چې د ميزان په تله كې به د حضرت امام حسين رضي الله عنه صبر د دې مردود په ظلم باندې غالب شي. [كمالات عزيزى: ص: (١١) تجليات صفدر: ج/ ١/ ص٥٨٢].

**يزيد د مولنا قاسم نانوتوى رحمه الله په محكمه كــې:** اهل سنت والجماعت خلفاء اربعه ووتـه بالترتيب دنبي اكرم ﷺ جانشينان وائـى، اوخلفـاء راشـدين ئـى گنړي او د دوي څخـه عـلاوه حضرت امير معاويه رضي الله عنه، اوهمدارنګه يزيد پليت او عبد الملک خلفاء راشدين نه ګڼي. [اجوبه اربعين: ص: (٨٥) تجليات صفدر: ج: (١) ص: (٥٨٢).

**يزيد د مولنا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله په محكمه كې:**

د خلفاء خمسه وو حقيقت او د يزيد پليت تغلب دلمر په شان ظاهر شو، كه كوم باطني روند وړاندى نه پو هيږى نو د چا څه قصور دى؟ [هدية الشيعة: ص: (٩٥) تجليات صفدر: ج: (١) ص: (٥٨١).

بعضى خلكو چى د يزيد په كفر كى توقف كړيدى، نو هغه په دى بناء دى چى دا خبره لا ترا وسه پورى يقيني نه ده ثابته چى د حضرت حسين رضي الله عنه وژل ئى حلال هم ګڼل او كه نه؟ لدې وجې د كافر په ويلو كى احتياط پكار دى، لكن فاسق يقيني دى. فتاوى رشيدية: ص: (٤٩).

**يزيد د مولنا اشرف على تهانوي رحمه الله په محكمه كې:**

يزيد فاسق وو او د فاسق ولايت اختلافي دى. [امداد الفتاوى: ج: (٥) ص: (٥٤) تجليات صفدر ج١ ص٥٨٢).

**يزيد د مولنا حسين احمدمدنى رحمه الله په محكمه كې:**

حضرت امير معاويه رضي الله عنه ته د يزيد د فسق معلومات نه وو، يزيد چى پټ كوم كارونه كول حضرت امير معاويه رضي الله عنه پـه هغې بانـدې نـه وو خبر. [مكتوبات شيخ الاسلام: ج: ١/ ص: ٢٧١/ تجليات صفدر: ج١ ص٥٨٢].

**يزيد دقاري محمدطيب رحمه الله په محكمه كې:**

د يزيد پـه فسق باندى پـه هغـه وخت كى د موجودو ټولـو صحابه وو اتفـاق وو، مبايعين وو او كه مخالفين، بيا څلور واړه امامان هم په دې متفق دي او د دوي څخه وروسته راسخين علماء او محدثين لكه علامـه قسـطلانى رحمه الله، علامـه بدرالـدين عينـي رحمه الله، علامـه هيثمـي رحمه الله، علامـه ابـن الجـوزي رحمه الله، علامـه سعد الدين التفتـازاني رحمه الله، ابـن الهمـام رحمه الله، حـافظ ابـن كثيـر رحمه الله

اوعلامه الكيا الهراسي رحمه الله ټول دده په فسق باندې متفق دي، نو ددې څخه زيات ديزيد په فسق باندې داتفاق شهادت څرنګه کيدلی شي؟[شهيد کربلا اوريزيد :ص:(۱۵۲)قاری محمد طيب رحمه الله].

## يزيد دمولنا عبد الشكور لكهنوى رحمه الله په محكمه كې:

دحضرت امام حسين رضي الله عنه واقعه دعبرت لپاره کافي ده، چې ديو فاسق سره يې بيعت ونه کړو اودخپلو سترګو لاندې ئې ټول خاندان شهيد شو اوخپله هم شهيد شو. [ابو الايمه حضرت علي کې مقدس تعليمات:ص: ۲۴/ تجليات صفدر:ج:۱/ص: ۵۸۳].

## يزيد د مولنا حبيب الرحمن اعظمى رحمه الله په محكمه كې:

دې په يوځای کې يزيدته دانسانيت په لمن باندې داغ، مردار اوخبيث وايي. [تاريخ الخلفاء:ص: ۱۳۰/ کشف خارجيت:ص: ۴۳۷/ قاضي مظهرحسين.

## يزيد دحضرت بنوري رحمه الله په محكمه كې:

دعصر محدث مولنامحمديوسف بنوري رحمه الله فرمائی چې:يزيدلاريب فی کونه فاسقًا: ديزيد په فسق کی هيڅ شک نه شته. [معارف السنن:ج:(٦)ص:(۱۸)تجليات صفدر:ج:(۱)ص:(۵۸۳)].

## يزيد دحضرت احمدعلي لاهوري رحمه الله په محكمه كې:

حضرت حسين رضي الله عنه ديزيدسره بيعت ځکه ونکړو چې يزيد فاسق اوشرابي اوظالم وو. شهادت حسين:ص:(۲۵۷).

## يزيددمفتي محمدشفيع رحمه الله په محكمه كې:

دحضرت حسين رضي الله عنه دشهادت څخه وروسته يزيد يوه ورځ هم په آرامه تيره نه کړه او په ټولو اسلامي ممالکو کی دشهيدانو دوينو مطالبې اوبغاوتونه وو، ددې څخه وروسته دده عمر صرف دوه کالهاواته مياشتې اوپه يو روايت کی درې کاله اونهه مياشتې وو، په دنيا کې هم ذليله شو اودهمدې ذلت سره هلاک شو. شهيد کربلا :ص:(٩٦).

**يزيد دمفتي جميل احمد اودمفتي عبدالشكور ترمذي رحمه الله په محكمه كې:**

څوک چې په دې کې مصروف دي چې يزيد ته عادل خليفه ووايي او حضرت امام حسين رضي الله عنه ته باغي ووايي نو د دوي دانظريه داهل سنت والجماعت په نيز باطله ده، دانظريه دخوارجو کيدلی شي، لکن داهل سنت والجماعت دمذهب سره ددې هيڅ تعلق نه شته. [تجليات صفدر:ج:(۱)ص:(۵۸۴) کشف خارجيت:ص: ۷۰ قاضی مظهر حسين رحمه الله تاييد رساله دفاع صحابه:ص۳].

**يزيد دحضرت لدهيانوی شهيد رحمه الله په محكمه كې:**

ديزيد درې کلن يا څلور کلن مختصر حکومت ددريو شيانو څخه عبارت دی: دکربلا حادثه، دحَرِې واقعه او په بيت الله شريف باندی دتيکوباران، په دی حوادثاتو کی دنبی اکرم ﷺ په آل باندی قيامت جوړ شو، مدينة النبی ﷺ دمهاجرينو اودانصارو لپاره مَقتَل جوړ شو او دبلد الله الحرام عزت پايمال شو چې په نتيجه کې ديزيد نوم دهميشه لپاره دنفرت اودملامتيا نښه شوه. (گمراه کن عقايد اورنظريات اورصراط مستقيم:ص: ۲۵۴]

**يزيد دصوفي عبدالحميدسواتي رحمه الله په محكمه كې:**

يزيد دساداتو مکمل ختمول غوښتل، په اهل بيتو کی ترينه صرف يو کس دخپلی مريضی له وجې بچ پاتی شو اوس وگورئ، د الله جل جلاله قدرت ته چې دهغه يو کس څخه دحضرت حسين رضي الله عنه نسل څومره ډيرشو، په هرځای کی سيدان شته اود دې په خلاف ديزيد پنځلس لورکانې اوپنځه ځامن وو، ابن کثير رحمه الله په البداية والنهاية کی فرمايي چی په دوي کې يو هم پاتې نه شول. [معالم العرفان فی دروس القران:ج:(۴)ص:(۸۷).

**يزيد دسيدعطاء الله شاه بخاري رحمه الله په محكمه كې:**

حضرت عطاء الله شاه بخاري رحمه الله دخپل پير په مدحه کی فرمايي چی:

هرکه بدگفت خواجه مارا    هست اوبيگمان يزيدپليد

[سواطع الالهام:ص:(۱۰۳) تجليات صفدر:ج:(۱)ص:(۵۴۸).

**خلاصه:** ديزيد فسق اتفاقي دی او په احاديثو کی دفاسق دتعريف اوتوصيف څخه منع راغلی ده رسول الله ﷺ فرمائی چی: اذا مدح الفاسق غضب الرب واهتزله العرش. (بهيقی فی شعب الايمان و

المعجم (معجم أبي يعلى) رقم : ۱٦۸ و ۱٦۹ فتح الباري شرح صحيح البخاري لابن الحجر جز ۱۰ ص ٤۷۸ و التيسير بشرح الجامع الصغير ل الإمام الحافظ زين الدين عبد الرؤوف المناوي جز ۱ ص ۲۵۷)
کله چې د فاسق صفت وکړی شي نو رب په قهرشي او عرش په حرکت راشي.

## ديزيد تکفير او عدم تکفير

### امام احمدبن حنبل رحمه الله:

دامام احمد بن حنبل رحمه الله په نيز باندی يزيد کافر وو، علامه ابن الهمام رحمه الله فرمائی چی:
**واختلف فی کفريزيد قيل نعم، لما روی عنه مايدل علی کفره من تحليل الخمر ومن تفوهه بعد قتل الحسين واصحابه، انی جازيتهم بما فعلوا باشياخ وصناديدهم فی بدر وامثاله ذلك ولعل وجه ماقال الامام احمد بتکفيره لماثبت عنده نقل تقريره. شرح فقه اکبر: ص: (۸۸).**

ديزيد په کفرکی اختلاف دی بعضو ورته کافرويلي دي ځکه چی کله چی حضرت امام حسين رضی الله عنه او اهل بيت په کربلا کی شهيدان شول نويزيد وويل چی ماپه بدر کی د خپلو وژلو شويو مشرانو بدل واخستلو، همدارنګه په ئی شرابو ته حلال ويل، امام احمد بن حنبل رحمه الله چی يزيد ته کافر ويلی دی نوکيدی شي چی دا خبرې ورته ثابتې وی.

قاري محمد طيب رحمه الله فرمائی چی ددې څخه واضحه شوه چی اختلاف ديزيد په کفرکی دی، امام احمد بن حنبل رحمه الله ديزيد په کفر قايل دی او چی په کفر کی اختلاف شو، نوفسق خوئی اتفاقی شو. (شهيد کربلا اوريزيد :ص:(۱۳۹). لکه دلقمان په نبوت کې چې اختلاف دی ،نوولايت يې اتفاقي شو ،همدارنګه چې دچاپه کفر کې چې اختلاف وي نو فسق يې اتفاقي وي.

### حافظ ابن تيميه رحمه الله:

**ومن قال ايضًا انه کان کافرًا، اوان اباه معاوية کان کافرًا وانه قتل الحسين تشفيا اخذ کبار اقاربه من الکفار فهو ايضًا مفتر. [متن الکتاب يزيد بن معاوية: ص: (۳۸) ابن تيميه رحمه الله].**

څوک چی ديزيد او دده والد رضی الله عنه ته کافروائی او وائی چی يزيد حضرت امام حسين رضی الله عنه د دې لپاره ووژلو چی زړه ورباندې يخ کړي او دخپلو کافرو نيکونو انتقام واخلي نو دا ويونکي هم دروغژن دی.

**مولنا رشيد احمد گنگوهی رحمه الله:**

دمولنا رشيد احمد گنگوهی رحمه الله څخه پوښتنه شوې ده چې يزيد کافر دی او که فاسق؟ نو مولنا رشيد احمد گنگوهی رحمه الله ورته په جواب کی وفرمايل چې مسلمان ته کافر ويل نه دی پکار، يزيد مسلمان وو، او د حضرت حسين رضي الله عنه د قتل په وجه فاسق شو، د کفر حال يې نه دی معلوم. [تاليفات رشيديه: ص: ٦٣].

**مولانا الوسی رحمه الله:**

**وانا اقول الذی يغلب علی ظنی ان الخبيث لم يكن مصدقا برسالة النبی ﷺ ..الخ** (روح المعانی: سورة محمد: آيت نمبر: (۲۲) زما په غالب گمان باندی يزيد کافر وو، د حرم بي عزتي د اهل بيتو بيعزتي، دا ټول دده کفر دلايل وو او دده حال د هيچا څخه پټ نه وو، لکن د چا ورسره د مقابلې طاقت نه وو.

## لعن يزيد

په يزيد باندی په لعن ويلو کی د علماوو درې قوله دي:

اول قـول دا دی چې پـه يزيد بانـدی لعنت ويـل جـايز دي، دا قـول د امـام احمـد رحمه الله، علامـه ابـن جوزی رحمه الله، علامه تفتازانی رحمه الله، قاضی ابويعلی الموصلی رحمه الله، الکيا الهراسي رحمه الله، علامه الوسی رحمه الله، قاضی ثناء الله رحمه الله پانی پتي او د علامه سيوطي رحمه الله دی.

او دوهم قول دا دی چې په يزيد باندی د لعن ويل نه دي جايز، دا قول د امام غزالی رحمه الله، حافظ ابن تيميه رحمه الله، حافظ ابن حجر رحمه الله، علامه هيثمي رحمه الله او د حافظ ابن الصلاح رحمه الله وغيره وو دی.

او دريم قـول د جمهورو محقيقينـو دی چې پـه لعـن کـی يې سکوت پکـار دی، دا مسـلک د علامـه مصطفی بـن ابراهيم التونسـي الحنفي رحمه الله، د قاسم بن قطلوبغا رحمه الله، د علامه زبيدي رحمه الله دی او په متاخرينو کی د مولنا عبد الحی لکهنوی رحمه الله، د مولنا زکريا رحمه الله، د قاری محمد طيب رحمه الله او د مولنا اشرف علی تهانوي رحمه الله او د نورو د ديوبندی علماوو دی. [کشف الباری عما في صحيح البخاری: ص: (٦٩٠) کتاب الجهاد].

علامه ابن حجر مكي الهيثمي رحمه الله فرمائی چی: وبعد اتفاقهم علي فسقه اختلفوا في جواز لعنه بخصوص اسمه اجازه قوم منهم ابن الجوزی رحمه الله ونقله عن احمد وغيره. الصواعق المحرقه:ص:(۱۳۲).

صاحب دنبراس فرمائی چی: وبعضهم اطلق اللعن عليه منهم ابن الجوزی المحدث وصنف كتابًا سماه الرد علي المتعصب العنيدالمانع عن ذم يزيد ومنهم الامام احمدومنهم القاضي ابويعلي. نبر اس:ص:(۵۵۳).

الكيا الهراسی الشافعی رحمه الله فرمائی چی: واماقول السلف ففيه لكل واحدٍ من ابي حنيفة ومالك واحمد قولان تصريح وتلويح ولناقول واحد التصريح دون التلويح وكيف لايكون كذلك وهو المتصيد للفهد واللاعب بالنرد ومدمن الخمر. [شهيدكربلا اوريزيد:ص:(۱٤۲)قاری محمدطيب رحمه الله].

مجدد الف ثانی رحمه الله فرمائی چی: یزید بی دولت اززمرهٔ فسقه است توقف درلعنت اوبراصل مقرر اهل سنت است که شخص معین را اگرچه کافرباشد تجویزلعنت نه کرده اند مگرانکه بیقین معلوم کنند که ختم اوبرکفر بوده. [مکتوبات:ج۱/ ص:۶۰/ دفتراول حصه چهارم].

شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمائی چی: دیزید په باره کی روایات مختلف دي، په بعضو کی دحضرت امام حسین رضي الله عنه په قتل باندی دیزید خفګان راغلی دی اوپه بعضو کی راغلي دي چی یزیدپلید دحضرت امام حسین رضي الله عنه په قتل باندی خوشحاله شو، نوبعضي اول روایت ته ترجیح ورکوي اودلعن څخه منع کوي اوبعضي دوهم روایت ته ترجیح ورکوی اولعن ته جایزوائی اوبعضی نور دتعارض درواياتوله وجې توقف کوي. [فتاوی عزیزی ملخصًاص ۲۲۲).

الشيخ الامام الزاهد قوام الدین الصفاری رحمه الله فرمائی چی: په یزید باندی په لعنت ویلو کی هیڅ خطرنه شته. [خلاصة الفتاوی:ج:(۴)ص:(۳۹۰)تجلیات:ج:(۱)ص:(۵۷۴).

په فتاوی بزازیه کی دي چی: والحق ان يلعن يزيد على اشتهاركفر وتواتر فظاعة شره.[ بزازيه على الهندية:ص:(۳٤٤) تجلیات:ج:(۱)ص:(۵۷٤).]

مفتی عزیزالرحمن رحمه الله په فتاوی دیوبند کی فرمايي چی په یزید باندی دلعنت په ویلو اوپه عدم ویلو کی اختلاف دی، صحیح داده چی لعنت ویل ورباندی مناسب نه دي او دیزید کفرثابت نه دی، البته فاسق وو، نو احوط عدم لعنت دی. [فتاوی دیوبند:ج۱/ ص: ۱۷۴]

علامه الوسی رحمه الله دسورة محمد آیت نمبر (۲۲) لاندی لیکی چی: ان الامام احمد لماساله ولده عبدالله عن لعن یزید قال کیف لایلعن من لعنه الله في کتابه؟ فقال عبدالله قرئت کتاب الله تعالي فلم اجدفیه لعن یزید فقال الامام ان الله تعالي یقول فهل عسیتم أن تولیتم أن تفسدوا في الارض وتقطعوا ارحاکم اولئک الذین لعنهم الله (الآیة) وأیّ فساد وقطیعة اشد ممافعله یزید...وقدجزم بکفره وصرح بلعنه جماعة من العلماء فمنهم الحافظ ناصرالسنة ابن الجوزی وسبقه القاضي ابویعلي وقال العلامه التفتازاني لانتوقف في لعنه بل في ایمانه لعنت الله علیه وعلي انصاره واعوانه وممن صرح بلعنه الجلال السیوطي وانااقول الذی یغلب علي ظني ان الخبیث لم یکن مصدقاً برسالته ﷺ.وانا اذهب إلی جواز لعن مثله علی التعین. (روح المعاني سور محمدآیت نمبر:(۲۲).

## په شمر او په ابن زیاد باندی لعنت

شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمائی چی په شمراوپه ابن زیاد باندی په لعنت ویلو کی هیڅ تردد نه شته ځکه چی په یقیني طورباندې دا دواړه دحضرت امام حسین رضی الله عنه په قتل باندی راضي وو اوپه دې باره کی د روایاتو هیڅ تعارض نه شته. فتاوی عزیز:ص:(۲۲۲)خارجی فتنه:ج:(۲)ص:(۱٦۱).

**خلاصه:** خلاصه دا چی دیزید پلید فسق اتفاقي دی اوپه کفر کی ئی تردد دی، راجح داده چی کافرنه وو او د لعن مدارپه کفردی، نوچی کفرئی یقینی نه دی نوپه لعن کی ئی توقف په کاردی.

## دامارة الصبيان دحديث تشريح

دیزید حکومت اودده حکومت نوعیت اودیزید فاسقانه اقدامات په احادیثو کی په اجمالي طور سره ذکر شوي دي:

(۱) قَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ سَمِعْتُ الصَّادِقَ الْمَصْدُوقَ يَقُولُ هَلَكَةُ أُمَّتِي عَلَى أَيْدِي غِلْمَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ [ بخاري كتاب الفتن:ص:(۱۰٤٦).رقم : ۷۰۵۸ فی بَابُ قَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلَاكُ أُمَّتِي عَلَى يَدَيْ أُغَيْلِمَةٍ سُفَهَاءَ و رواه احمد بن حنبل فی مسنده رقم: ۱۰۹۲۷و ۱۰۹٤۰ ج ۲ ص ٥۳٦ .]

حضرت ابوهريرة ﷺ فرمائي چي زما دامت هلاکت به ديو څو قريشي هلکانو دلاسه وي حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چي: قلت قديطلق الصبي والغليم بالتصغير على ضعيف العقل والتدبير والدين ولوكانه محتلمًا وهوالمراد ههنا. (فتح الباري: ج:١٢/ص:١٣).

دصبي اودغليم دلفظ اطلاق په هغه بالغ باندی هم کيږي چي ضعيف العقل ضعيف التدبير او ضعيف الدين وی او داسی سړی فاسق وي، د دوي دلاسه به دا امت څرنګه هلاکيږی؟ نوپه يوبل حديث کی ئی تشريح راځی چی: اَل ابن بَطّالٍ جَآءَ الْمُرَادُ بِالْهَلَاكِ مُبَيَّنًا فِي حَدِيثٍ آخَرَ لِأَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ أَخْرَجَهُ عَلِيُّ بْنُ مَعْبَدٍ وبن أَبِي شَيْبَةَ رَحِمَهُمَا اللهُ مِنْ وَجْهٍ آخَرَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ رَفَعَهُ أَعُوذُ بِاللهِ مِنْ إِمَارَةِ الصِّبْيَانِ، قَالُوا وَمَا إِمَارَةُ الصّبيان؟ قَالَ إِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ هَلَكْتُمْ أَيْ فِي دِينِكُمْ وَإِنْ عَصَيْتُمُوهُمْ أَهْلَكُوكُمْ أَيْ فِي دُنْيَاكُمْ بِإِزْهَاقِ النَّفْسِ أَوْ بِإِذْهَابِ الْمَالِ أَوْبِهِمَا. (فتح الباري: ج:(١٢) ص:(١٣)).

ابن بطال فرمائي چي دابوهريرة ﷺ په حديث کی دهلاکت څخه مراد دابوهريره ﷺ په بل حديث کی تشريح شوی دی، چی رسول الله ﷺ وفرمايل چی يا الله! ماته دامارة دصبيانو څخه پناه راکړی چاعرض وکړو چی امارة الصبيان څه شی دی؟.

نبي اکرم ﷺ ورته وفرمايل چي که تاسو د هغوي اطاعت کوئ نوستاسو دين به تباه شي اوکه تاسو دهغوي نافرماني وکړه نوهغوي به يا تاسو تباه کړي اويا به ستا سومال اويا دواړه تباه کړي.

قاري محمد طيب رحمه الله فرمائي چي ددی دوهم حديث څخه دنبي اکرم ﷺ مراد پوره واضحه شو، چی دامت دهلاکت څخه مراد دامت داجتماعيت يعنی دامارت اودخلافت تباهي ده، ددې صورت به دا وي چی خام خام هلکانو قدرت ته ورسيږی، سياسي اقتدار ددوي لاسونوته راشي، ددوي سره بيا دمشرانو هيڅ احترام نه وي. شهيد کربلا اوريزيد :ص:(١٥٦).

پدې حديث کی دامارة الصبيان نوعيت هم ښکاره شوی دی، چی ددې حکومت په پيروئ کی به دين تباه کيږی اود دی حکومت څخه په بغاوت کی به دنيا تباه کيږي، داسلامي حکومت معيار دين دی او ددې حکومت په پيروي کی به دين تباه کيږي.

## دا صبياني ډله څوک وو؟

ددې صبياني ډلې چې دشيوخو نظام به ختم کړي، په احاديثو اوپه اثارو کې تعين شويدی، ددوي دزمانې تعين په لاندې احاديثو او اثارو کې ولولئ.

وفي رواية ابن ا بي شيبه ان اباهريرةؓ كان يمشي في السوق ويقول اللّٰهُمَّ لاتدركني سنة ستين ولاامارة الصبيان. [فتح الباری:ج:(١٢/ ص:١٣].

حضرت ابی هريرةؓ به په بازار کې ګرزيدلو او فرمايل به يې چې يا الله! ماترشپتمې هجرې پورې مه پريږده او مه مې تر امارة الصبيان پورې پريږده، په داسې مواردو کې موقوف دمرفوع په حکم کې وي، نو دا دنبی اکرمﷺ تعين شو، چې امارة الصبيان به په سنه(٦٠هـ)کې وي، چې دا د يزيد دحکومت دابتدا کال وو، دحضرت ابوسعيد خدریؓ په حديث کې صراحةً مرفوع روايت دی: يقول سمعت رسول اللهﷺ يقول يكون خلف بعد ستين سنة اضاعو الصلوة واتبعو الشهوات فسوف يلقون غيًا. البداية والنهاية ج٨/ ص: ٢٣٠).

دشپيمتی هجری څخه وروسته به داسې نااهلان پيداشي، چې مونځ به نه کوي اود خواهشاتو پيروي به کوي دوي به په نږدې وخت کې دجهنم په کنده کې وغورزول شي، نو سنه(٦٠هـ) دابوهريرهؓ په حديث کې هم راغله او د ابوسعيدخدریؓ په حديث کې هم راغله فرق صرف دومره دی چې دحضرت ابوهريرهؓ په حديث کې دسنه (٦٠هـ)دابتداء ذکردی، په يوروايت کې د راس الستين لفظ هم راغلی دی، نودفتنو ابتداء به د (٦٠هـ)څخه وي او د حضرت ابوسعيدخدریؓ په روايت کې هغو حوادثو ته اشاره ده چې دسنه (٦٠هـ) دشروع څخه وروسته واقع شوي دي.

صاحب دمظاهرحق فرمايي چې ديزيد حوادث او د بنی اميه و وروستني ظلمونه کلونه مخکې دنبوت نظر ته ديوکلاوکتاب په شان باندې وو، درسول اللهﷺ فراست دهغې زمانې ادراک کولوچې په هغه کې به دمسلمانانو اجتماعی هيئت ديوڅو مفادپرستو اودنيا دارو حکمرانانو له لاسه داقتدار طلبی او د عيش پرستی څخه قربان شي. مظاهرحق:ج:(١٢)ص:(٦٥٩).

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چی: وفي هذا اشارة الى ان اول الاغيلمة كان في سنة ستين(يزيد)وهوكذلک فان يزيد بن معاويه استخلف فيها وبقي الى سنة اربع وستين فمات. فتح الباري:ج: ١٢/ ص/١٣).

په حديث کی دې ته اشاره ده چی ددې صبيانو ابتداء به د سنه (٦٠هـ) څخه وي او همدارنګه وه، ځکه چی يزيد په سنه (٦٠هـ) کی(نام نهاد) خليفه شو او ترسنه(٦٤هـ)پوری حاکم وو، يزيد به مشران برطرفه کول او دهغوي په ځای به يې د خپلو انو څخه نوجوانان مقررول.

علامه عينی رحمه الله فرمائی چی: واولهم يزيد (عليه مايستحقه) وكان غالبًا ينزع الشيوخ من امارة البلد ان الكبار ويوليها الاصاغر من اقاربه.[عمدة القاري:ج/١١ ص:٣٣٤].

اوددې صبيانو اول يزيد وو ، الله جل جلاله دې ورسره هغه معامله وکړي دکومی چې مستحق دی، ده به مشران معزولول او د خپلو اقاربو څخه کشران به ئی مقررول، دا حکم اکثري دی، يزيد د بدنامئ له ويری په يو يو ځای کی کوم يو مشر هم پريښی وو.

ددې امارة الصبيان نتيجه دا شوه چی په سنه(٦٠هـ) کی ئی حکومت ونيولو ، په سنه(٦١هـ)کی ئی حضرت امام حسين رضي الله عنه شهيد کړو، په سنه(٦٣هـ)کی ئی په مدينه منوره باندی حمله وکړه، دحَرِی واقعه مخې ته راغله چی په زرګونو مسلمانان ئی ووژل، په سنه(٦٤هـ)کی يې په مکه مکرمه باندې حمله وکړه، دهغی وخت په توپونو منجنيق باندئی کعبه وويشته، دکعبې شريفې غلاف ئی وسوزلو، مکه مکرمه اومدينه منوره او اهل بيت، حسي او معنوي بنيادونه وو، په کومو باندې چی ديني اجتماع ولاړه وه.

## په بعضی احاديثوکی ديزيد په نوم باندی تصريح

حافظ ابن کثير رحمه الله بعضې داسې حديثونه ذکر کړی دی چی په هغه کی په دې تصريح ده چی يزيد به ددې امت دهلاکت لپاره سبب وی، ابوعبيده دنبی اکرم صلی الله عليه وسلم څخه روايت کوی چی: لايزال امر هذه الامة قايمًا بالقسط حتي يكون اول من يثلمه رجل من بني اميه يقال له يزيد. [البداية والنهاية:ج:٨ /ص: ٢٣١]. زما دامت امر به په عدل باندی قايم وي تردې چی دبنی اميه وو يو سړی يزيد به ئی تباه کړي.

قاری محمد طيب رحمه الله فرمائی چی ددې روايتونو په سند کی کلام دی، له دې وجې په عمومی روايتونو باندی به اکتفاء وکړو. شهيد کربلا اوريزيد :(١٦٤).

دمشکوة په حديث کی الفاظ داسې دي چی: تعوذوا بالله من راس السبعين وامـارة الصـبيان.په دې حديث کې داوومې لسيزې بيان دی چی ابتداء ئی سنه(٦٠ھ)څخه ده.

ددې په تشريح کی ملاعلی القاری رحمه الله فرمائی چی : بکسر اوله ای ومن حکومت الصغار کيزيـد بن معاويه واولاد الحکم بن مروان وامثالهم يعنې دلفظ په کسرې دهمزی باندی اِمارة دی په فتحه باندی اَمارة نه دی اوددوي څخه يزيد اودحکم بن مروان اولادونه مراد دي، بيا وروسته ليکي چی:رَاَهُـمُ النـبي ﷺ في منامه يلعبون على منبره ﷺ. نبي اکرم ﷺ په خوب کی ليدلي ووچی دنبی اکرم ﷺ په ممبر باندی ئی لوبی کولی. خلاصه داچی دصبياني ډلې علامې په احاديثو کې داسې راغلي دي.

(١) ددی ظهور به په(٦٠ھ)کې وي.

(٢) ددې ډلې نوعيت به داوي چی مشران به معزولوي اوکشران به مقرروي، ددوي په پيروی کې به دين تباه کيږی اوپه نافرمانۍ کې به يې دنيا تباه کيږي، چی ددې علامو اولين مصداق يزيد وو.

## د (مغفور لهم) دحديث تشريح

ام حرام رضي الله عنها فرمائی چی: سَمِعَتِ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم يَقُولُ أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْـزُونَ الْبَحْرَ قَدْ أَوْجَبُوا قَالَتْ أُمُّ حَرَامٍ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَنَا فِيهِمْ قَالَ : أَنْتِ فِيهِمْ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليـه وسلم أَوَّلُ جَيْشٍ مِنْ أُمَّتِي يَغْزُونَ مَدِينَةَ قَيْصَرَ مَغْفُورٌ لَهُمْ فَقُلْتُ أَنَا فِيهِمْ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ : لاَ. ،

رسول الله ﷺ فرمائی چی زما په امت کی اول هغه لښکر چی بحري جهاد به کوي نو په تحقيق سره دوی دځان لپاره جنت واجب کړو،ماورته وويل چی يارسول الله! زه به په هم دوي کی يم؟ نبی اکرم ﷺ وفرمايل چی ته به په دوي کې يې، بيا نبي اکرم ﷺ وفرمايل چی زما په امت کې اول هغه لښکر چی دقيصر په پايتخت کی به جهاد کوي هغوي ببښلی شوي دي، ماورته وويل چی يارسول الله ﷺ زه به هم په دوي کی يم؟ نبی اکرم ﷺ وفرمايل چی نه.

## دقيصرڅخه څه شی مراددی؟

دقيصر څخه قسطنطنيه مراد ده، چی په هغه وخت کې دقيصر پايتخت وو.[فتح الباری ج٦/ ص: ١٠٢).

جمهور شارحين فرمائي چې ددې ځخه د قسطنطنيې اول جنګ مراد دی او د اکثرو محدثينو په نظر باندې دا جنګ ديزيد په مشرۍ کې په سنه (۵۲ھ) کې وشو.

او بعضې علماء فرمائي چې په سنه(۴۹ھ) اويا سنه (۵۰ھ) کې وشو. په دې جنګ کې غټ غټ صحابه لکه حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه، حضرت ابن عباس رضي الله عنهما، حضرت ابن عمر رضي الله عنهما، حضرت ابـن زبيـر رضي الله عنه او حضـرت امـام حسـين رضي الله عنه شـريک وو. الکامـل: ج: (۳) ص: (۲۲۷) تکملـه فـتح الملهم: ج: (۳) ص: (۴۵۶).

ددې حديث ځخه علامه مهلب رحمه الله ديزيد په فضيلت باندې استدلال کړی دی، ځکه چې يزيد ددې لښکر مشر وو او ددې لښکر لپاره دبښلو زيرې ورکړل شوی دی. کشف الباري وشرح ابن بطال ج۵ ص۱۰۷).

علامه بدر الدين عينی رحمه الله فرمايي چې:

وقال المهلب فِي هٰذَا الحَدِيث منقبة لمعاوية رضي الله عنه لِأَنَّهُ أوّل من غزا الْبَحْر، ومنقبة لوَلَده يزِيد، لِأَنَّـهُ أول مـن غزا مَدِينَة قَيْصر. انْتهى. قلت: أَي منقبة كَانَت ليزِيد وحاله مَشْهُور؟ فَإِن قلت: قَالَ، صلى الله عَلَيْهِ وَسلم، فِي حق هٰذَا الْجَيْش: مغْفُور لَهُم. قلت: لَا يلْزم، من دُخُوله فِي ذٰلِك الْعُمُوم أَن لَا يخْرج بِدَلِيل خَـاص، إِذْ لَا يخْتَلف أهـل الْعلم أَن قَوْله، صلى الله عَلَيْهِ وَسلم: مغْفُور لَهُم، مَشْرُوط بِأَن يَكُونُوا من أهل الْمَغْفِرَة حَتَّى لَو ارْتَدَّ وَاحِـد مِمَّـن غَزَاهَـا بعـد ذٰلِـك لـم يـدْخل فِـي ذٰلِـك الْعُمُـوم، فَـدلَّ على أَن الْمُـرَاد مغْفُـور لمـن وجـد شَرط الْمَغْفِـرَة فِيـهِ مِـنْهُم. عمـدة القاری: ج: (۱۴) ص: (۳۵۷).

مهلب فرمائي چې په دې حديث کې د حضرت امير معاويه رضي الله عنه مدحه ده، ځکه چې اول بحري جهاد حضرت امير معاويه رضي الله عنه کړی وو، همدارنګه ديزيد مدحه ده، ځکه د قيصر جنګ يزيد وکړو، زه وايم چې ديزيد کوم منقبت د ذکر کولو قابل دی؟ ديزيد حال خو مشهور دی، که ته ووائې چې دې لښکر تـه دبښلو زيرې ورکړل شوی دی، نو زه وايم چې په دې عموم کې ديزيد د داخليدلو ځخه دا نه لازميږي چې هغه دې په کوم بل دليل باندې ددې ځخه خارج نه کړلی شي، ځکه چې علماء په دې باندې متفق دي چې په مغفور لهم کې هغه ځوک داخل دي چې هغه ددې اهل وي، حتی که د همدې لښکر ځخه ځوک مرتد شوي وي (معاذ الله) نو هغه د مغفور لهم لاندې نه داخليږي، نو دا ددې دليل دی چې د مغفور لهم ځخه هغه ځوک مراد دی چې هغه ددې اهل وي، علامه عينی رحمه الله مخکې ليکې چې د قيصر په خلاف باندې د حضرت امير معاويه رضي الله عنه په زمانه کې ځو ځو ځلې جنګ شوی دی او په دې کې شک نه شته چې په دې

جنګونو کی به کوم واری دیزید مشري هم راغلي وي، لکن ددې ځخه دا نه لازمیږي چې یزید دی داول جنګ امیر وي دکومو لپاره چې نبي اکرم ﷺ دبښلو زیری ورکړی دی ،علامه عینی رحمه الله فرمائی چې حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه یو لښکر دسفیان بن عوف په قیادت کې لیګلی وو چې درومیانو په ښارونو کې ورننوتی وو اوپه دې لښکر کې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ،حضرت ابن زبیر رضي الله عنه او حضرت ابو ایوب انصاری رضي الله عنه شریک وو. عمدة القاری ج ۱۴ ص ۱۹۸).

بیا مخکې لیکي چې زیاته ظاهره داده چې دا تمام حضرات دسفیان بن عوف سره وو، دیزید سره نه وو، ځکه چې یزید ددې لپاره اهل نه وو، چې دومره مشران صحابه کرام رضي الله عنهم دده په قیادت کی جهاد وکړي. [عمدة القاری:ج:(۱۴)ص۱۹۸].

دبعضې روایاتو ځخه معلومیږی چې حضرت امیرمعاویه رضي الله عنه دسفیان بن عوف په مشری کی لښکر لیږلی وو بیایې وروسته ورپسې یزید ورولیږلو ،ابن اثیر رحمه الله په الکامل کی لیکي چې :

في هذه السنة(٤٩ھ)سیرمعاویه رضي الله عنه جیشًا کثیفًا الي بلاد الروم للغزاة وجعل علیهم سفیان بن عوف وامریزید بالغزاة معهم فتثاقل واعتل فامسک عنه ابوه فاصاب الناس في غزاتهم جوع ومرض شدیدفانشاء یزید یقول:

**شعر:** ما ان ابالي بمالاقت جموعهم بالغ قدونة من حمي و من موم
اذ اتکات علی الانماط مرتفقًا بدیر مرّان عندی ام کلثوم

وام کلثوم امراته فبلغ معاویة رضي الله عنه شعره فاقسم علیه لیلحقن بسفیان في ارض الروم یصیبه مااصاب الناس فسار ومعه جمع کثیراضافهم الیه ابوه . [الکامل:ج:(۳)ص:(۲۲۸)معجم البلدان للحموی:ج۲ ص٥٣٤].

په سنه(۴۹ھ)کی حضرت معاویه رضي الله عنه دسفیان بن عوف په مشرئی کی یو غټ لښکر درومیانو طرفته ولیږلو اویزید ته ئی هم وویل چې ته هم ورسره لاړشه، لکن یزید سستي وکړه او ځان ئی مریض کړو، حضرت امیر معاویه رضي الله عنه نور څه ورته ونه ویل، په دی غزوه کی مسلمانان دسختې ولږې اومرض سره مخامخ شول، یزید چې د مسلمانانو ددې تکلیف ځخه خبرشو، نو یو ځو اشعارئی وویلی چې مضمون ئی داسی وو چې دقُدُونه په مقام کی دمسلمانانو لښکر ته دتبې مریضي اوپریشاني

رسیدلی ده زه ئی پروا نه لرم ځکه ما د دیرمران په مقام کی په قالینو باندی تکیه لګولی ده، او زما سره ام
کلثوم ده، چی دیزید منکوحه وه، کله چی حضرت امیر معاویه رضی الله عنه دده دا شعارو ښځه خبرشو نو قسم ئی
وکړو چی ته به هم ورځی او په هغه تکلیف کی به شریکیږی دکوم سره چی خلک مخامخ شوي دي،
نو یزید د یو لښکر سره روان شو، نو که دا روایت صحیح ثابت شي نو بیا یزید د مغفورلهم لاندې نه راځي
ځکه د مغفورلهم زیری اولو غزاکونکو ته دی. [تکلمه فتح الملهم: ج: ۳/ ص۴۵۷].

**خلاصه:** خلاصه دا چی علماء وو دعلامه مهلب رایه ددرې وجهو ښځه رد کړی ده:

(۱) د مغفورلهم په زیري کی هغه څوک داخل دي چی د مغفرت اهل وي او یزید ددې اهل نه وو.

(۲) د قسطنطنیې لپاره معاویه رضی الله عنه بیابیا لښکرې لیږلي دي او س معلومه نه ده چی یزید په اول لښکر کې وو او که نه؟.

(۳) اول لښکر د سفیان بن عوف په قیادت کې تللی وو چی مشران صحابه هم پکی وو. روایات اګرچی په دې باب کی مختلف راغلي دي، لکن د اکثرو روایاتو ښځه معلومیږي چې د اولنی لښکر قیادت دیزید سره وو مثلاً په مسند احمد: کی روایت دی چی: غزا ابو ایوب مع یزید بن معاویه. [طبقات ابن سعد: ج: (۳ص/۴۸۵].

شهد ابوایوب بدرًا...قال فمرض وعلى الجیش یزید بن معاویه فاتاه یعوده، ددې مرض ښځه مرض الموت مراد دی او په دې باندې اتفاق دی چی حضرت ابو ایوب انصاری رضی الله عنه په قسطنطنیه کی وفات شوی دی. [کشف الباری کتاب الجهاد: ص: (۲۸۰-۲۸٦].

شاولی الله رحمه الله فرمائی چی:

قوله مغفورلهم تمسک بعض الناس بهذا الحدیث في نجاة یزید، والصحیح انه لایثبت بهذا الحدیث الاکونه مغفورله ماتقدم من ذنبه على هذه الغزوة لان الجهاد من الکفارات وشان الکفارات ازالة اثارالذنوب السابقة علیها لا الواقعة بعدها نعم لوکان مع هذالکلام انه مغفورله الى یوم القیمة لدل على نجاته واذلیس فلیس بل امره مفوض الى الله تعالي فیما ارتکبه من القبایح بعدهذه الغزوة من قتل الحسین وتخریب المدینة والاصرار على شرب الخمر ان شاء عفا عنه وان شاء عذبه کماهومطرد فى حق سایرالعصاة. (رساله شرح تراجم ابواب البخاری المطبوع مع صحیح البخاری:ص:(۳۱))

مولنااشرف علي تهانوی رحمه الله فرمائی چی پاتې شو په دې حديث باندې استدلال نو دا انتهائی ضعيفه دی ځکه چی هغه مشروط دی، همدارنګه يزيد ته مغفورويل سخت زياتی دی، ځکه چی مغفور والیٰ مشروط دی په وفات علي االايمان باندی اودامجهول دی نوښه داده چی دده امرمفوض کړوعلم الهی ته اوپخپله څه ونه وايو. امدادالفتاوی:ص:(۴۲٦).

قـاري محمـد طيب رحمه الله فرمـائی چی: مـونږ ددې حـديث څخـه انکارنـه کـوو اونـه ددی څخـه انکارکوو چی يزيد ددې حديث په عموم کی داخل دی اوددې سره ددې څخه هم انکارنه کوو چی که ددې حديث عموم يزيدپه مقبولينو کی داخلوي نوهمدارنګه يې د بخاري وغيره دامارة الصبيان والا احاديث دمقبولينو څخه خارجوي اوکه مهلب يزيد ددې حديث مصداق ګرزوئ اودده په فضيلت باندې استدلال کوئ نوهمدارنګه حافظ ابن حجر اوعلامه بدرالدين عينی رحمه الله ئی دامارة الصبيان دحديث لپاره مصداق ګرزوي اوديزيد په فسق باندی ا استدلال کوي، دمهلب رحمه الله سره په استدلال کی صرف دحديث عموم دی اوددې جمهورو محدثينو سره دحديث عموم او دصحابه وواقوال اوتاريخي واقعات دي، همدارنګه دمغفورلهم حديث په دې طبعي شرط باندې مشروط دی چی په دوی کی هغه قلبی کيفيات اوجذبات پاتی وي کوم چی په دې وخت کی ورسره وو مثلانبي اکرم ﷺ فرمائی چی :امتي امة مرحومة،نوددې څخه خوهرفردنه دی مراد، بلکې هغه فردمراد دی چی په امت اجابت کې داخل شي اوپه دې کيفيت باندې وفات شي. شهيد کربلا ملخصًا:ص:(١٦٩).

مولنامحمدامين صفدر اوکاړوی رحمه الله فرمائی چی په ابوداؤد شريف کی حديث دی چې أسلم ابی عمـران فرمـائی چی مـونږ دمـدينې منـورې څخـه دعبـدالرحمن بـن خالـد بـن وليـد پـه قيـادت کـی دقسطنطنيې جنګ ته روان شو دعبدالرحمن بن خالد وصال په سنه(٦۴هـ) کی په حمص کی شوی دی اودا دقسطنطنيی په خلاف باندی اول لښکروو، په دې کې څوک ديزيدشمول نه شي ثابتولی. تجليات صفدر:ج:(١)ص:(٥٨٨).

وعن ابن عمر رضي الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ اذالقيت الحاج فسلم عليه وصافحه ومره ان يستغفرلك قبـل ان يدخل بيته فانه مغفورله.[رواه احمد].

په دې حديث کی حاجي ته مغفورله ويل شويدي، ددې حديث چی کومه توجيه ده همغه توجيه دقسطنطنيې دلښکر په باره کی دمغفورلهم هم ده، همدارنګه دنوي مسلمان سره هم دمغفرت وعده شوی ده، نو مادحين ديزيد دې ووائی چی د حاجيانو مؤاخذه په آخرت کی شته او که نه؟

**الحاصل:** جمهور اهل سنت والجماعت نه دروافضو په شان يزيدته کافروايي اونه ورته دخوارجو په شان عادل وايي، بلکې دافراط اودتفريط په مينځ کې ديزيد په فسق باندی قول کوي.

وآخردعوانا ان الحمد لله رب العلمين.

❋ ❋ ❋

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده

امابعد:

محترمو مسلمانانو ورونړو! کفارو دمسلمانانو د اتفاق او داتحاد د ختمولو لپاره مختلفې انجيوګانې په کار اچولې دي، زمونږ په دې ملکونو کې دمسلمانانو په مابين کې د اختلاف دراپيدا کولو لپاره ډير کارد قاديانيت، درافضيت، لامذهبيت، مودوديت، مماتيت، او دبريلويت، په جامه کې وشو.

دلامذهبيت يو څه تفصيل مخکې وشو، اوس به لږ غوندې تفصيل دهغې ډلګۍ وکړو چې هغه دلامذهبيت لپاره دپول په طريقه استعماليږي، چې هغه دمماتيانو ډلګۍ ده، مماتيان خپله ډلګۍ د اشاعت التوحيد والسنة په نوم يادوي، دوي نيمچه غيرمقلدين او نيمچه لا مذهبه دي، او دلامذهبيت لپاره د پول حيثيت لري، په دې پول باندې ډېر مماتيان لامذهبيت ته واوختل او حتى چې بعضو خو په کې اسلام ته دمتارکې سلام وکړو، زمونږ په علاقو کې نيازمحمد عرف امين الله پشاوري اول مماتي اشاعتي وو چې وروسته غير مقلد شو، عبد السلام رستمي اول مماتي وو وروسته غيرمقلد شو، نن سبا دجلال اباد په ښار او په نور افغانستان کې چې کوم غيرمقلدين د لامذهبيت پرچار کوي دوي اکثر اول مماتيان وو، همدرانګه احمد سعيد ملتاني اول مماتي وو او مماتيانو به د اشاعة التوحيد والسنة دباني په لقب باندې يادولو لکن وروسته منکر حديث شو، او د (قران مقدس بخاري محدث) په نوم باندې يې د بخاري په خلاف کتاب وليکلو.

**خلاصه:** دا چې مونږ داسې ويلي شو چې (المماتية قنطرة اللامذهبية)، لکه علماء وو چې فرمايلي دي چې: اللامذهبية قنطرة اللادينية.

## دمماتيانو (اشاعة التوحيد والسنة) خطرناک مسائل

لکه څرنګه چې غير مقلدين درفع اليدين او د آمين بالجهر مسائل د ځان لپاره د ډال په طريقه استعمالوي او خپلې د ګند څخه ډکې عقيدې ورباندې پټوي، نو همدارنګه مماتيان د توحيد شعار د ډال په طريقه استعمالوي او خپلې ګنده عقيدې ورباندې پټوي، دوي په کانفرانسونو او په جلسو کې وايي چې مونږ خلک د نذر لغير الله څخه منع کوو، مونږ خلک په مافوق الاسباب کې د استعانت من غير الله څخه منع کوو، مونږ خلک قبرونو ته د سجدې او د طوافونو څخه منع کوو، وغيره لکن مونږ وايو چې د دې کارونو څخه خو ټول علماء منع کوي، د احنافو په ټولو کتابونو کې د دې کارونو څخه منعه راغلې ده، د ديوبند اکابرو په ډېر زور سره د دې کارونو ترديد کړی دی او د ديوبنديانو د قربانيو په نتيجه کې تقريبا د دې کارونو مخنيوی شوی دی، نو د دې کارونو څخه منعه ستاسو مابه الامتياز کار نه دی، بلکه ستاسو مابه الامتياز هغه مسائل دي چې د هغوئ په وجه تاسو د اهل سنت والجماعة د مسلک څخه خارج يې، د هغوئ په وجه تاسو ضال او مضل يې، د هغې په وجه تاسو مبتدع في العقيده يې، او د هغوئ په وجه ستاسو پسې مونځ کول مکروه تحريمي دی، او هغه مسائل يو څو په لاندې ډول دي:

د اهل سنت والجماعت او د أهل بدعت (مماتيانو) د عقايدو په منځ کې فرقونه:

| د أهل سنت والجماعت عقايد. | د مماتي أهل بدعتو عقائد. |
|---|---|
| ۱- ټول پيغمبران او بالخصوص محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله روضه مبارکه کې بالجسد العنصري الدنيوي ژوندي دي او په عبادت مصروف دي او د دوي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ارواحو د دوي د اجسادو عنصريه وو دنيويه وو سره تعلق دی، دا عقيده په قرآن، سنت او په اجماع د امت باندې ثابته ده، (نشر الطيب صـ۲۱۰) مقام حيات صـ۲۶۷. | ټول پيغمبران او بالخصوص محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله روضه مبارکه کې ژوندي نه دي، د پيغمبرانو د ارواحو د اجسادو عنصريه وو سره هيڅ تعلق نشته، څوک چې د حيات الانبياء والا عقيده ساتي، هغه بدعتي دی، او ګمراه دی، (المسلک المنصور صـ۶۳، مسلک الاکابر صـ۴۵، البرهان الجلى، صـ۱۴۴، المسامير الناريه صـ۱۹۱) شرک کياهى صـ۴. |
| ۲- سماع النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عند القبر حق دی، يعنې څوک چې د نبی عليه السلام د روضې مبارکې په خوا کې | نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په مدينه منوره کې عرض کړی شوی درود او سلام أوري، او نه يې |

| | |
|---|---|
| درود او سلام ووايي، نو نبی علیه السلام يې پخپله اوري او جواب ورکوي او څوک چې دلرې څخه درود او سلام ووايي نو نبی علیه السلام ته د ملايکو په ذريعه رسول کيږي او نبی علیه السلام يې جواب ورکوي (المهند ص ۴۰، نشر الطیب ص ۲۱۱، اب حیات ص ۴۰) | دلرې څخه اوري او نه جواب ورکوي. مسلک الاکابر ص ۳۱، عقاید علماء اسلام ص ۴۸۴) |
| ۳-عرض الاعمال حق دی، يعنې هره ورز نبي ﷺ ته د امت اعمال اجمالا پيش کولی شي، (احسن الفتاوی ص ۵۱۸، تفسیر کابلی ص ۳۸۸، نشر الطیب ص ۲۱۰) | عرض الاعمال د شیعه ګانو عقیده ده. عقاید علماء اسلام ص ۴۴۹، تسکین القلوب ص ۱۰۳، اقامة البرهان ص ۲۴۵) تحفه عجیبه ص ۳۴۰. |
| ۴-استشفاع بالنبی ﷺ جایز دی، يعنې رسول الله ﷺ ته دا عرض کول چې یارسول الله زما لپاره د الله څخه ببښنه وغواړه دا جایز دی. (اب حیات ص ۴۰، نشر الطیب ص ۲۴۵، معارف القران ص ۴۵۹) | استشفاع بالنبی ﷺ بدعت سیئه او ګمراهي ده. (عقاید علماء اسلام ص ۶۴۹، اقامت البرهان ص ۳۱۲، القول المسند ص ۳۱) |
| ۵-سفر بنیة زیارت قبر النبی ﷺ د واجباتو او د فرایضو څخه وروسته بهترین عبادت دی. (وفاء الوفاء ص ۱۷۷، فتح القدیر ج ۳ ص ۷۴، درمختار ج ۴ ص ۶۳) | د نبی کریم ﷺ د قبر په نیت باندې سفر کول بدعت دی. (تحقیق الحق ص ۳۵) |
| ۶-د نبی ﷺ روضه مبارکه د کائناتو د هر شي څخه بهتر ده حتی چې د عرش او د کرسی څخه هم بهتره ده. (فضایل حج ۱۷۷، تسکین الاذکیاء ص ۴۸۶) | د نبی ﷺ روضه د عامو ځایونو په شان یو ځای دی، د عرش او د بیت الله څخه بهتره نه ده، د نبی ﷺ قبر د عامو قبرونو په شان یو قبر دی، په نورو قبرونو باندې يې هیڅ فضیلت نشته (ندای حق ص ۴۷۴، عقاید علماء الاسلام ص ۴۸۶) |
| ۷-توسل بالانبیاء والاولیاء قبل الوفات وبعد الوفات جایز او مستحب دی. (احسن الفتاوی ص ۴۲۲) | توسل بالانبیاء والاولیاء شرک او بدعت عمل دی (البصایر ص ۲۵۲، کشف الحجاب ص ۹۳، البرهان الجلی ص ۲۰۰) |

| | |
|---|---|
| ۸-دشهيد ژوند جسماني او روحاني دواړه دی (تسکين الأذکياء صـ۷۴) | دشهيد عنصري جسد دعامو مړو پشان بې روحه دی دانعاماتو تهولې وعدې د روح سره شوي دي (ندای حق صـ۳۲۶) |
| ۹-کرامت بعد الوفات حق دی (فتاوی فريديه ج اصـ۵۴۵) | کرامت بعد الموت هيڅکله نه دی ثابت (تحقيق حق صـ۷) |
| ۱۰-په قرآن او په حديث کې چې په هرځای کې د قبر لفظ راغلی دی، نو دهغې تولو څخه همدغه زميني قبر مراد دی، په همدې زميني قبر کې ثواب او عذاب دی همدا زميني قبر حقيقي، شرعي، لغوي، او عرفي قبر دی .(تسکين الصدور صـ۸۲، فتاوی دارالعلوم ديوبند صـ۴۸۲) | اصلي قبر په عليين، او په سجين کې دی، د ازمکنی قبر عرفي قبر دی، دې زميني قبر ته قبر ويل دقرآن څخه انکار دی (اقوال مرضيه صـ۹۹، مسلک الأکابر صـ۲۵، المسک المتصور صـ۳۷) |
| ۱۱-دوفات څخه وروسته اعاده د روح حق ده دوفات څخه وروسته روح همدې زمکني قبر ته را واپس کولی شي؛ ددې عنصري جسد سره يې تعلق قايم وي چې ددې تعلق په وجه متوفی ثواب او عذاب محسوسوي.(تسکن الصدور صـ۸۲) | د اعادې د روح عقيده د نصوصو څخه مخالفه ده . البرهان الجلي صـ۱۷۳) |
| ۱۲-د روح ددې جسد عنصري سره تعلق دی او ددې تعلق په وجه په همدې زمکني قبر کې انسان ته ثواب او يا عذاب ميلاويږي . شرح فقه اکبر صـ۱۰۱) | عذاب او ثواب په دې زمکني قبر کې نشته، د روح د جسم سره هيڅ تعلق نشته، دې جسم عنصري ته هيڅ تکليف او راحت نه ورکول کيږي، دا جسم يو جماد دی، څوک چې د روح او ددې جسم د تعلق قائل دي هغوي معتزله دي، دهغوي دقرآن او دسنت سره هيڅ تعلق نشته، عقايد علماء اسلام صـ۶۱۷، صواعق مرسله صـ۲۵۸) |
| ۱۳-راجح قول دا دی چې عام مړي او ريدل کوي او دسلام جواب ورکوي (ابن کثير ج ۳صـ۴۳۸) | دسماع الموتی عقيده دکفر او دشرک عقيده ده، څوک چې دسماع الموتی قائلين دي هغوي مشرکان دي . (اقوال مرضيه صـ۵۶، کيامردی سنتی هی. |
| يصال ثواب حق دی، مالي صدقات وي او که عبادات وي، ددې فائده روح او جسم دواړو ته رسيږي (راه سنت،۲۴۹) | ايصال ثواب نشته، ځکه چې د روح د جسم سره هيڅ تعلق نشته نو جسم ته هيڅ فائده نه ميلاويږي. |

| ۱۵-ټول پيغمبران او خصوصاً نبي ﷺ په خپلو قبرونو کې اوس هم د رسالت او د نبوت په وصف باندې حقيقةً موصوف دي لکه څرنګه چې په عالم الدنياء کې وو، د وفات په وجه د نبوت او د رسالت په وصف کې هيڅ تغير نه دی راغلی (رحمت کاينات ۳۵۷) | نبوت او رسالت په اصل کې د روح صفت دی د جسم عنصري مع الروح صفت نه دی. نداء الحق ج ۱ ص ۵۰۸) |
|---|---|

همدارنګه د دوي په نيز د نبي عليه السلام جسم انسان ندی (معاذالله)- نداء الحق ج ۱ ص ۲۷۴، همدارنګه دوي په نيز د صحابي قول او فعل حجت ندی (نداء الحق ج ۱ ص ۱۹) او يزيد ته عادل وايي همدارنګه ليکي: چې د جمهور و سلفو اکابرو په کېپسولنو کې څومره زهر دي (نداء الحق ج ۱ ص ۱۸) وغيره

## د مماتيت فرقې مؤسس

ددې فرقې مؤسس سيد عنايت الله شاه بخاري دی، يوه عجيبه لطيفه دا ده چې يوه بله فتنه ده په نوم د تحريک خاکسار د هغې د مؤسس نوم هم عنايت الله مشرقي دی، د بريلويانو د مشهور مناظر نوم هم عنايت الله دی، د لامذهبو د مشهور مناظر نوم هم عنايت الله اثري ګجراتي دی.

ددې ټولو په مابين کې قدر مشترک دا دی چې دوي ټول د قرآن کريم تفسير د خپلې رائې مطابق کوي.

ددې مماتي فرقې مؤسس د (سيد عنايت الله شاه بخاري) د پلار نوم سيد جلال الدين دی، د کشمير د ګويل په علاقه کې پيدا شوی دی، د حديثو کتابونه يې اکثر په مدرسه امينيه ډهلي کې لوستلي دي، په (۱۹۵۷) ميلادي کال کې يې د جمعيت اشاعة التوحيد والسنة بنياد کېښودلو، په ابتداء کې ددې جماعت امير قاضي نور محمد وو او عنايت الله يې نائب امير وو، کله چې هغه په (۱۹۶۲) ميلادي کال کې وفات شو، نو بيا مرکزي امير شو تر (۱۹۸۵) کال پورې امير وو او ددې څخه وروسته تر وفات پورې ددې جماعت اعزازي سرپرست وؤ. [1]

ددې جماعت مرکزي غړي دادي:

(۱) سيد عنايت الله شاه بخاري ګجرات، مرکزي امير.

(۲) مولنا قاضي شمس الدين ګوجرانواله. نائب امير برای صوبه پنجاب.

(۳) مولوي محمد طاهر پنجپير. نائب امير برای صوبه سرحد.

---

[1]- جمنستان اشاعة التوحيد والسنة ص (۹۰).

(۴) مولوي عبدالرؤف حيدر اباد .نائب امير براى صوبه سند .

(۵) مولوي عرض محمد .نائب امير براى بلو جستان .

(٦) ناظم اعلى مولنا غلام الله خان.مهتمم درالعلوم تعليم القران راولپنډى.

(۷) نائب ناظم مولوي محمد يوسف خان ، راولپنډى.

(۸) خازن حاجي فيروز الدين.پنډى. (۱)

يو څه وخت وروسته ديو څه اختلافاتو له وجې مولوي محمد طاهر پنجپيري دا جماعت پرېښودلو، دخپل امارت اعلان يې وکړو او نن سبا ددې جماعت مركزي امير دده ځوى مولوي محمد طيب پنجپيرى دى .

ددوي داختلاف ظهور داسې وشو چې په (۱۹۵۶)ع كې په جامعه خيرالمدارس ملتان كې ددستار بندۍ سالانه جلسه وه ، پدې جلسه كې عنايت الله شاه مماتي په ستيج باندې خپله عقيده بيان كړه او دحيات النبى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه يې انكار وكړو ، چونكې عوام ديوبنديان وو او دمماتيت ددې نوي عقيدې څخه بالكل بې خبره وو، نو ټول خفه شوه او ددې نوې عقيدې په باره كې يې خبرې شروع كړې، بالأخره مولانا خيرمحمد جالندهرى رحمه الله ، حضرت مولنامحمد على جالندهري رحمه الله ته حكم وكړو چې دعوامو پريشاني ختمه كړي، مولانا محمد علي جالندهري رحمه الله په ډير سخت علمي انداز باندې تقرير وكړو ، او په عنايت الله شاه بخاري باندې يې سخت ردونه وكړل، كله چې دعنايت الله شاه په اور باندې اوبه واوختلې نو دخپلو حواريينو سره دجلسې څخه پاڅيدلو او ددې په ځاى چې په خپلو خبرو نظرثاني وكړي دامسئله يې دخپل عزت مسئله وګرزوله او په هرځاى كې يې همدا مسئله دخپلو تقريرونو مركزي نقطه كړه او د اختلافاتو بازارونه يې ګرم كړل.

## دصلحې كوششونه :

په اول كې دخيرالمدارس دجامعې له طرفه دافهام او تفهيم يو اجلاس جوړ شو، په اجلاس كې دديوبند أكابرو شركت وكړو او دعنايت الله مماتي دپوهولو كوشش يې وكړو ، لكن عنايت الله ددې په ځاى چې دديوبند مسلك ته بيرته رجوع وكړي نوريې هم اور واخستلو ، اجلاس بې نتيجې ختم شو او نظرياتي جنګ نور هم تيز شو ، چې دديوبند په نمايندګۍ مولانا محمد علي جالندهري رحمه الله او مولانا لال حسين اختر رحمه الله ددې مماتي فرقې سخته مقابله وكړه (۲) بيا په (۱۹۶۰) ع، كې مولانا أحمد علي لاهوري رحمه الله دصلحې لپاره يو اجلاس جوړ كړو او دې اجلاس ته يې دديوبنديانو او دمماتيانو غټ

---

۱ـ اشاعة التوحيد والسنة تعارف ص (۲۳).

غټ علماء راوغوښتل، دا اجلاس دعلماوو لپاره صرف مشورتي اجلاس وو ، لکن مماتيانو په عوامو کې دا خبره مشهوره کړه چې په لاهور کې مناظره ده او چيغې يې شروع کړې چې لاهور چلو لاهور چلو ، کله چې دعوامو هجوم ډير شو نو دصلحې دا کوشش هم ناکام شو.

(۳) په (۱۹٦۱) کې مولنا ظفر احمد عثماني او مولّنا احتشام الحق تهانوي رحمه الله ددې فتنې د خاموشولو لپاره کوشش وکړو.

په سکر کې يې يوه غټه جلسه جوړه کړه، ددواړو ډلو علماوو يې راوغوښتل، لکن دالله تعالى فيصله وه ديو تقرير له وجې دمولانا محمد على جالندهري رحمه الله دګرفتارۍ وارنټ جاري شوی وو ، نو جلسه ونه شوه، بيا مولانا ظفر احمد العثماني رحمه الله او مولانا احتشام الحق رحمه الله دخپل سهولت لپاره ددواړو ډلو څخه په کتابتي شکل باندې خپل موقف وغوښتلو مولانا محمد علي رحمه الله او مولانا لال اختر رحمه الله وروليږلو ، لکن عنايت الله شاه په کتابتي شکل دخپل موقف دليږلو څخه انکار وکړو ، لهذا دصلحې دا کوشش هم ناکام شو،

۴-دديوبند څلويښت کلن مهتمم قاري محمد طيب رحمه الله په (۱۹٦۲) ميلادي کال کې پاکستان ته راغلو او ددې فتنې دخاموشولو کوشش يې وکړو.

دعنايت الله شاه بخاري او دمولانا غلام اللهِ خان په پنډۍ کې دقاري طيب رحمه الله سره ملاقات وشو، قاري محمد طيب رحمه الله ورته ددې اختلافاتو سخت شکايت وکړو ، دې دواړو هم ورته ددې اختلافاتو څخه دخلاصولو وړانديز وکړو او ورته وې ويل چې ددې اختلافاتو په وجه مونږ دأهل سنت والجماعت ديوبند څخه دخارجيدلو په حال کې يو ، لهذا که ستاسو په ذريعه باندې دا مسئله حل شي،نو ډيره به ښه وي، قاري طيب رحمه الله دا موقع غنيمت وګڼله او په (۱۹٦۲ع) دجون په (۲۲) يې په پنډۍ کې يو اجلاس راوغوښتلو او ددواړو ډلو څخه يې په لاندې مضمون باندې ددستخط غوښتنه وکړه.

بسم الله الرحمن الرحيم

دوفات څخه وروسته په عالم برزخ کې دنبي کريم ﷺ دجسد اطهر سره د روح دتعلق په وجه جسد اطهر ته حيات حاصل دی، چې ددې حيات په وجه د روضې په خواکې دحاضرينو صلوة او سلام اوري.

په مضمون باندې خپله قاري طيب رحمه الله ، مولانا محمد علي جالندهري رحمه الله ، مولانا غلام الله خان، او قاضي نورمحمد دستخطونه وکړل ، لکن عنايت الله بخاري دې اجلاس ته رانغلو ، بيا دې دستخط کونکو حضراتو عنايت الله شاه مماتي ډير پوه کړو ، لکن هغه بيا هم په خپل ضد باندې ټينګ

پاتې شو، او په دې مضمون باندې يې د دستخط كولو څخه انكار وكړو، كله چې عنايت الله شاه بخاري د دستخط څخه انكار وكړو، نو قاضي شمس الدين د خپلو نورو ملګرو سره يو ځاى بيا قاري طيب رحمه الله ته ورغلل او په دې مضمون كې يې ترينه د تغير او تبديل غوښتنه وكړه، قاري طيب رحمه الله چونكې سبا ته ديوبند ته روان وو، نو دا مسئله يې مولانا خير محمد جالندهري رحمه الله ته پريښودله او د روانيدلو څخه مخكې يې ورته يو خط هم وليكلو چې د هغې مضمون داسې وو، چې په پنډۍ كې چې كومه صلح وشوه هغه دوه خطونه وو يو د نفس مسئلې په باره كې وو او دوهم د عنايت الله شاه په باره كې وو، نفس مسئله خو مخكې ذكر شوه، د عنايت الله شاه په باره كې يې داسې ليكلي وو چې قاضي نورمحمد او مولانا غلام الله خان به پوره كوشش كوي چې د عنايت الله شاه څخه دستخط واخلي، لكن كه بيا هم عنايت الله شاه دستخط ونكړو، نو دا دواړه به د حيات النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مسئله كې د عنايت الله شاه څخه براءت اعلانوي، او د دې فرقې په جلسو كې به د حياة النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مسئله باندې تقريرونه نه كوي او نه به ورسره د دې مسئلې په باره كې په مناظرو كې شركت كوي، قاري طيب رحمه الله مولانا خير محمد رحمه الله ته دا هم وليكل چې: مهرباني وكړه د دواړو ډلو علماء راجمع كړه او د دې دوهم تحرير په ځاى باندې يوه نوې معاهده وليكه، مولانا خير محمد رحمه الله د قاري طيب رحمه الله د هدايا تو مطابق د دواړو ډلو پنځه پنځه علماء راوغوښتل او په (۱۹۶۲ع) د جولائي په مياشت كې يې په خير المدارس ملتان كې يو اجلاس جوړ كړو، د ډيرې اوږدې مباحثې څخه وروسته داسې فيصله وشوه، چې: مولانا غلام الله خان او عنايت الله شاه به په يوه جلسه كې هم د حيات النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مسئله باندې تقرير نه كوي او مولانا غلام الله خان به د عنايت الله شاه سره د حيات النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مسئلې څخه بغير په نورو مناظرو كې شركت كوي، په دې فيصله د اول فريق څخه مولانا خير محمد جالندهري رحمه الله، مولانا محمد علي جالندهري رحمه الله، مولانا لال حسين اختر رحمه الله او مولانا عبد الرحمن ميانوي رحمه الله، او مولانا عبد الله رحمه الله دستخطونه وكړل او د مماتيانو د ډلې څخه ورباندې، مولانا غلام الله خان، عنايت الله شاه، مولانا شمس الدين، احمد حسين سجاد، محمديار، او منور حسين دستخطونه وكړل، لكن پدې صلح نامه كې په شوې وعدې يې هم وفا ونكړه، خپل كارونه يې نور هم تيز كړل، مخكې صرف په يوه مسئله كې اختلاف وۀ، وروسته يې

نور مسايل هم شروع کړل، او په پوره طريقه باندې يې د أهل سنت والجماعت ديوبند مسلک پرېښودلو، اختلافاتو ته يې دومره هوا ورکړه چې دا مسايل يې دکفر او داسلام معيار وګرزول.

کله چې دصلحې کوششونه ناکام شول نو دديوبند علماوو ددې فتنې د مخنيوي لپاره ديو مدلل کتاب د ليکلو تجويز پيش کړو او ددې کار لپاره يې امام اهل سنت والجماعة مولنا سرفراز خان صفدر رَحِمَهُ اللّٰهُ مقرر کړو، سرفراز خان صفدر رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې فتنې په خلاف دتسکين الصدور په نوم باندې مدلل کتاب وليکلو بيا دملتان په اجلاس کې د ديوبند لاندې اکابرو ددې کتاب تصديق وکړو.

مولنا فخرالدين احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ مفتي سيد مهدي حسن رَحِمَهُ اللّٰهُ، قاري محمد طيب رَحِمَهُ اللّٰهُ، مولنا حبيب الرحمن اعظمي رَحِمَهُ اللّٰهُ، مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللّٰهُ، مولنا ظفراحمد العثماني رَحِمَهُ اللّٰهُ، مولنا محمد يوسف بنوري رَحِمَهُ اللّٰهُ، مولنا خيرمحمد جالندهري رَحِمَهُ اللّٰهُ، مفتي جميل احمد تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ، مفکر اسلام مفتي محمود رَحِمَهُ اللّٰهُ مولنا محمد عبد الله درخواستي رَحِمَهُ اللّٰهُ، مولنا شمس الحق افغاني رَحِمَهُ اللّٰهُ، مولنا سيد ګل بادشاه رَحِمَهُ اللّٰهُ، خواجه خواجګان خان محمد رَحِمَهُ اللّٰهُ وغيرهم.

### دعنايت الله شاه مماتي دعلم حدود:

عنايت الله شاه دفراغت څخه وروسته په هيڅ کومه مدرسه کې مستقل تدريس نه دی کړی، (فرقه مماتيت کا تحقيقي جائزه ص-۴۴، اقتباس از سوانح حيات ص ۳۱)

همدارنګه يې هيڅ کوم کتاب نه دی ليکلی، سوانح حيات ص ۴۵.

مناظرهم نه وو کله چې په (گجرات کالری) دروازه کې خطيب شو، نو دبريلويانو مناظر مفتي احمد يار خان نعيمي هم پاکستان چوک کې اوسيدلو، او په غوثيه مسجد کې خطيب وو ددواړو په مابين کې په (۱۴) دذو القعدې (۱۳۶۱) هق کې دسې شنبې په ورځ د (لاله فضل پگانواله) په ځای کې مناظره وشوه په هغې کې يې عنايت الله شاه پړ کړو او په لاندې مسايلو يې ترينه دستخط واخستلو: په قبرونو ګنبدې جوړل جايز دي، عرس مستحب دی، حقيقت محمدي دعالم په هره ذره کې موجود دی، محفل ميلاد مستحب دی، صلی الله عليک يارسول الله دهرمانځه څخه وروسته په جمعه لوستل مستحب دي، دامناظره بيا ديو اشتهار په ذريعه نشر شوه داشتهار نوم وو (جگھڑی کا خاتمہ) پنځلس کاله وروسته عنايت

الله يو بل اشتهار وليکلو په نوم د (اعلان حق) او په هغې کې يې وليکل چې په هغو مسايلو باندې په دستخط کولو کې زما څخه غلطي شوې ده.

حاصل دا چې ددې بدعتي ډلې فرقې مؤسس مولوي عنايت الله شاه گجراتي دی په (۱۹۵۷) کې يې ددې بدعتي ډلې بنياد ايښی دی، دوي ځانته اشاعت التوحيد والسنة وايي او په پنجاب کې ورته خلک: ۱-مماتيان ۲-پتهريان ۳- پنچپيريان ۴- اشاعتيان ۵- او چترورپيان وايي.

## داسلامي عقائدو اصول

داسلامي عقائدو اهم اصول درې دي (۱) توحيد (۲) رسالت (۳) معاد

**توحيد او مماتي:** دمماتيانو په نيز د توحيد معنی گانې دوه دي، اول دالله تعالی دقدرت څخه انکار، ځکه چې مماتيان اکثر دکشف او دکرامت څخه منکر دي او دکشف او دکرامت تعلق د الله تعالی د قدرت سره دی.

**دوهم:** دا چې د الله تعالی په کلام کې دشفا څخه انکار، دوي د الله د کلام ليکل او په غاړه کې يې اچول شرک گڼي، مماتيانو په باره خيبر ايجنسۍ کې ډېر داسې خلک شهيدان کړل چې د الله تعالی په کلام کې د شفاء قائل وو.

**رسالت او مماتيان:** مماتيان دهغو تمامو احاديثو څخه منکر دي چې (۱) دحيات الانبياء (۲) سماع النبي ﷺ، (۳) توسل بالنبي ﷺ، (۴) استشفاع من قبر النبي ﷺ، (۵) زيارت قبر النبي ﷺ (۶) عرض الاعمال على النبي ﷺ (۷) او اعادة الروح وغيره سره يې تعلق دی، همدارنگه دهغوئ ټولو احاديثو څخه منکر دي دکومو تعلق چې دسماع الموتی او د برزخ د حالاتو سره دی.

**معاد او مماتيان:** دمعاد لپاره مقدمه قبر دی، او مماتيان هغه قبر ته قبر نه وايي کوم ته چې په قران او په حديث کې قبر ويلی شوی دی او په کوم قبر کې چې د ثواب او دعذاب عقيده په مسلمانانو کې را روانه ده.

**قران او مماتيان:** په قران او په احاديثو کې دتصوف نوم (تزکيه) او (احسان) راغلی دی، الله تعالی فرمايي: ان الله يحب المحسنين، لېکن مماتيان ورته مشرکان او بدعتيان وايي، دمماتيانو د قران دمنلو طريقه هغه ده کومه چې دعبد الله بن زبعری وه، عبد الله بن زبعری، به هغه اياتونه چې دبتانو په

باره کې راغلي دي په پیغمبرانو باندې تطبیقول (۲) همدارنګه ددوي دقران دمنلو طریقه هغه ده کومه چې د خوارجو ده، خوارجو به دکفارو په باره کې نازل شوي ایاتونه په مسلمانانو باندې تطبیقول(۲).

دخوارجو په باره کې رسول الله ﷺ فرمایي چې ددوي دحلق څخه به قران نه ښکته کیږي او دوی به د اسلام څخه د اسې وزي لکه څرنګه چې غشي د ښکار څخه ووزي، بخاري ص (۱۰۲۴).

لکه څرنګه به چې خوارجو حضرت علي ؓ او دده ملګرو ته دقران څخه منکرین ویل او خپلو ځانونو ته به یې دقران منونکي او دقران شیخان ویلې، حضرت علي ؓ فرمایي: ځې يقرؤن القـران يحسبون انه لهم وهو عليهم (ابوداود ج ۲ ص ۳۰۸).

دوي داګمان کوي چې قران ددوي لپاره دليل دی، حالانکې قران ددوي په خلاف دليل دی، همدا حال د مماتيانو دی، په قران او په متواترو احاديثو کې دقبر يوه معنی ده چې زميني قبر دی، او مماتيان د زميني قبر څخه انکار کوي او بله معنی ورته بيانوي چې عليين او يا سجين دی، په قران کې د شهيد لپاره جسماني ژوند په عبارت النص کې راغلی دی او دانبياوو لپاره په دلالة النص کې راغلي دی او مماتيان ترې نه منکردي، په قران او په حديث کې د جسم مثالي ذکر نه دی راغلی او مماتيان يې خپل ځان څخه دجوړې شوې عقيدې په بناء باندې مني، په قران کې د مرګ دوه معنا ګانې راغلي دي اول دا چې د ابتداء څخه د روح او د بدن په مابين کې بالکل تعلق نه وي راغلی، لکه انسانانو ته چې د ولادت څخه مخکې الله تعالی اموات ويلي دي، الله تعالی فرمايي چې (كيف تكفرون بالله وكنتم آمواتا) او بتانو ته هم په همدې معنی اموات ويلی شوي دي.

دوهم دا چې يو ځلې روح په جسد کې داخل شوي وي او بېرته وتلی وي، لکه الله تعالی چې فرمايي (ثم يميتكم ثم يحييكم) او دا موت د انسانانو بعد الحيات دی، او مماتيان د موت لپاره صرف دوهمه معنی بيانوي او اوله معنی نه بيانوي او دا ځکه چې دوي خو دبتانو په باره کې راغلي اياتونه په انبياوو او په اولياوو باندې ور تطبيقوي، لهذا دوي د موت لپاره صرف همدا يوه معنی بيانوي.

اهل سنت والجماعت وايي چې حيات اصلي صفت دی او موت عارضي شی دی، او غير ممتد او يوه ذايقه ده كل نفس ذائقة الموت، سمدستي ختميږي او مماتيان وايي چې موت فعل ممتد دی ددوي په نيز

موت اګر چې ذائقه ده، لکن دا ذائقه دوامداره ده، ددې په وجه دجسم صفات چې فهم، شعور، حس او ادراک دي ټول ختم شو، او همدا دمشرکانو عقيده هم وه چې مرګ عدم دی ددې په وجه هرشی ختميږي.

## اشاعة التوحيد والسنة او که اشاعت التلبيس والالحاد والضلالة؟

(۱) دمشرکانو دا عادت وو چې بوت به يې جوړ کړو دهغې عبادت به يې کولو او په هغې باندې به يې ديو پيغمبر او يا ديو بزرګ نوم کېښودلو، خلکو ته به يې دا په ذهن کې وراچوله چې مونږ ددې پيغمبر او يا ددې بزرګ په طريقه باندې روان يو.

(۲) يهودو او نصاری وو به دکوم پيغمبر پسې د ځان ځخه ددرغو قيصې جوړ کړې او بيا به يې ورته دتورات او يا د انجيل او يا د زبور نوم کېښو دلو، الله تعالی ددوي دا خراب عادت داسې ذکر کوي چې (يكتبون الكتب بأيديهم ثم يقولون هذا من عندالله).

(۳) ددې مبتدعو فرقو هم همدا عادت دی، چې د ځان لپاره يوه نوې ډله جوړه کړی، او بيا ورته يو غوړ نوم په قران او يا په حديث کې وګوري، مثلا مسعود احمد يوه ډله جوړه کړه او دهغې لپاره يې نوم دجماعة المسلمين کېښودلو او په هرځای کې وايي چې په قران کې چې په هر ايت کې دمسلمين لفظ راغلی دی دهغې ځخه مونږ مراد يو، همدارنګه مودودي يوه ډله جوړه کړه او نوم يې ورته دجماعت اسلامي کېښودلو، رسول الله ﷺ فرمايي: چې په اخره زمانه کې به د اسلام صرف نوم پاتې شي، نن سبا د اپيشن ګويي بالکل پوره شوی ده، نوم اسلامي لګوي او کار حرامي کوي، همدارنګه مسعود الدين يوه نوې ډله جوړه کړه او نوم يې ورته په قران کې وکتلو، نو حزب الله يې دخپلې ډلې لپاره نوم کړو، او دعوه کوي چې د حزب الله ځخه زما ډلګې مراده ده، قاديانيانو د پنجاب په علاقه کې دچناب د درياب په غاړه يو نوی ښار جوړ کړو او نوم يې ورته په قران کې وکتلو نو (ربوه) يې ورباندې کېښودلو، او دعوه کوي چې په قران کې د " وأويناهما الى ربوة ذاة قرار ومكين" ځخه زمونږ دا ښار مراد دی، دنعيم په نوم باندې يو کاذب دپيغمبری دعوه وکړه، بيا يې دعوه وکړه چې په قران کې راځي چې ( ولتسئلن يومئذٍ عن النعيم) نو ويل به يې چې ددې ځخه زه مراد يم، همدرنګه معتزله وو يوه ډلګۍ جوړه کړه او نوم يې ورباندې د اصحاب العدل والتوحيد کېښودلو، دنن سبا مماتيانو هم ځان ته يوه نوې ډلګۍ جوړه کړې ده او نوم يې ورباندې اشاعة التوحيد والسنة ايښی دی، دوي مخې ته قران نيولی وي او کنځلې، تکفيرا ونور خرافات بيانوي، خلکو ته په ذهن کې دا وراچوي

چې دا زما ټولې کنځلې او خرافات په قران کې دي، تاسو به په را روان بحث کې وګورئ چې دا ډلګی اشاعة التوحيد والسنة نه بلکې اشاعة التلبيس والضلالة کوي.

## دمماتيت د فتنې په خلاف باندې ليکل شوي کتابونه

(١)حياة الانبياء للبيهقي (٢) شفاء السقام للسبكي (٣) كتاب الروح لابن القيم (٤) جلاء الافهام لابن القيم(٥) القول البديع للسخاوي(٦) التذكرة للقرطبي (٧) شرح الصدر للسيوطي(٨) البدور السافره للسيوطي(٩) جذب القلوب للمحدث عبد الحق الدهلوي (١٠) اب حيات للنانوتوي.

دا يو څو هغه کتابونه وو چې دعنايت الله شاه بخاري د اشاعة التوحيد والسنة په نوم دتنظيم څخه مخکې ليکل شوي دي، په دې نوي نوم باندې ددې فتنې د ظهور څخه وروسته هم ددوي په خلاف ډېر کتابونه وليکل شول، چې يو څو يې دادي:

(١) عالم برزخ . قاري محمد طيب ۴٠ کلن مهتمم ديوبند (٢) احوال برزخ، مفتی عاشق الهی بلند شهري (٣) تسكين الصدور، سرفراز خان صفدر (۴) المسلک المنصور، سرفراز خان صفدر (۵) سماع موتی، سرفراز خان صفدر (٦) الشهاب المبين، سرفراز خان صفدر (٧) ارشاد العلماء، شيخ الحديث عبد القدير (٨) شیخ طیب معتزلی عذاب قبر کا منکر کیوں؟ ابو يحی مدني (٩) مجموعہ سوالات وجوابات (١٠) معیار صداقت (١١) قبر کے زندگی (١٢) اسلام کی نام پر ہوا پرستی (١٣) منکرین حیات قبر کے خوفناک چالیس (١۴) البرهان القوي في حياة النبي ﷺ (١۵) عذاب قبر کے صحیح صورت کے منکر کا شرعی حکم (١٦) عقیدہ حیات قبر اور علم وفہم میت کے حدیث، د نهم نمبر څخه تر شپاړسم پورې د مولنا نور محمد قادري تونسوي تصنيفات دي (١٧) فرقہ مماتیت کا تحقیقی جائزہ لمولنا الیاس گھمن (١٨) البصائر لمولنا حمد الله جان الداجوي رحمه الله (١٩) خلاصه عقائد علماء ديوبند عبد الشكور ترمذي (٢٠) القول النقي في حيات النبي ﷺ، مولنا عبد الله بهلوي، (٢١) پنجپیری حضرات دیوبندی نہیں (٢٢) عادلانه دفاع (مفتي سرادر صاحب شيخ الحديث دار العلوم تېل) وغيره.

❋ ❋ ❋

بسم الله الرحمن الرحيم

## مسئله د عذاب قبر او د حياة في القبر

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لآ نبي بعده

امابعد!

محترمو لوستونكو! د مماتيانو په مقابله كې داهل سنت والجماعت دعقيدې خلاصه داده ۱- چې دمرګ څخه وروسته، مكمل انسان (روح مع الجسد) دعالم الدنيا څخه عالم البرزخ ته نقل شو ۲- همدا ځمكنى قبر، شرعي قبر دى او د برزخ فرد دى، نو ميت په همدې ځمكني قبر كې هم دى او په برزخ كې هم دى ۳- ثواب او عذاب په همدې ځمكني قبر كې مكمل انسان (روح مع الجسد) ته ور كول كيږي، (تفسير مظهري ج ۱۱ص ۸۷ ط: ايچ ايم سعيد كمپني) د دې په خلاف دمنكرينو دعذاب قبر (اشاعتيانو) نظريه دعذاب قبر په باره كې داسې ده چې:

(۱) دغه زمكنى قبر شرعي قبر ندى، (۲) شرعي قبر په عليين او سجين كې دى (۳) عليين په اووم اسمان كې دى او سجين د اومې ځمكې لاندې دى (نداء الحق ج ۱ص ۹۹) (۴) په عليين او سجين كې الله تعالى ارواحو ته نوى اجساد مثاليه وركوي او ارواح په همدې اجسادو مثاليه وو كې حلول كوي (۵) عذاب او ثواب په همدې عليين او سجين كې روح مع الجسد المثالى ته وركول كيږي (نداء حق ج ۱ص ۳۱۰، عقائد علماء اسلام ص ۱۳۳)

(۶) اجسام عنصريه دونيويه، برزخ ته نه دي تللى بلكې همدلته په دونيا كې پاتې دي (۷) عذاب او ثواب د دونيوي جسد سره تعلق نه لري (نداء حق ج ۱ص ۳۷) *عذاب او ثواب کا مسئلہ عالم دنیا اور عالم اجساد کی ساتھ متعلق نہیں ص-(۳۷)* (۸) اجسامو عنصريه وو ته نه اعاده د روح كيږي او نه يې ورسره كوم تعلق پاتې كيږي ،بلكې اجسام عنصريه دونيويه همدلته پدې عرفي قبرونو كې بې روحه مړه پراته دي چې د حيات هيڅ شايبه پكې نه شته.

دا عقيده ددوي په مختلفو كتابونو كې ليكل شوې ده لكه : نداحق ج اصـ ۳۷، صـ۴۸، صـ ۲۴۶، صـ ۲۲۶، صـ ۳۵۷، صـ ۲۹۸، ج۳صـ ۱۴۴، مجموعه رسايل نيلوي ج ۲صـ۹۹، صـ ۱۲۳، صـ ۱۲۴، البرهان الجلي صـ ۱۵۸، ۱۸۱، ج اصـ ۱۴۳، صـ ۱۸۴، مسالك العلماء ،عقايد علماء اسلام صـ ۱۳۴، صـ ۱۳۶، صـ۱۳۸، صـ ۱۳۳، صـ ۱۸۹، صـ ۳۹۴، مسلك الاكابر صـ ۱۲، صـ۲۵)

(۱) داشاعت التوحيد والسنة موجوده امير مولوي محمد طيب پنجپيري ليكي چې:

اس بحث کے ضمن میں یہاں اس نکتہ کے وضاحت بھی ضروری ہے کے میت کو برزخی حیات کہاں ملتے ہے ؟ ہمارے مخالفین اسے مدفن ارضی میں عذاب وثواب قبر ثابت کرنی پر تلی بے ٹھی ہیں [5]

ددې بحث په ضمن كې ددې نكتې وضاحت هم ضروري دى چې مړي ته برزخي ژوند په كوم ځاى كې وركول كيږي ؟ زمونږ مخالفين په دغه زمكني قبر كې د ثواب او دعذاب د ثابتولو كوشش كوي.

(۲) فضل الرحمن مماتي ليكي چې: واضحه دې وي چې هغه شرعي قبر داوومې ځمكې لاندې دى[6].

همدارنګه ليكي چې: دقبر څخه دغه خاصه كنده او عرفي قبر بالكل نه دى مراد بلكه د برزخ شرعي قبر مراد دى ، التحقيق الانيق صـ ۳۴).

(۳) دمماتيانو مشهور مناظر خضر حيات ليكي چې : قبر شرعی صرف عالم برزخ ہے نہ کہ یہ گڑھا .

المسلک المنصور ص- 32) : قبر شرعي صرف عالم برزخ دى نه دا كنده .

(۴) مولوي امير محمد مماتي ليكي چې: زمكنۍ كندې ته قبر ويل د نصوصو څخه انكار دى .

الاقوال المرضيه مولوي اميرمحمد ، والقول المرعي لحسين شاه نيلوي ص۹۹/۵۴.۱۰۱].

## د اعادې دروح په باره كې دمماتيانو عبارات

۱-داعادې دروح او دتعلق د روح قائلين دقرآن ، سنت او د مذهب دأهل سنتو څخه جاهل او ناخبره دي (المسلك المنصور صـ ۲۲)

۲-داعادې دروح قول دقرآن سنت او دصحابه وو د اقوالو څخه مخالفت دى ، عقايد علماء الاسلام صـ ۵۲۳)

---

[5]ـ مسلك اكابر ص ۲۵

[6]ـ التحقيق الانيق صـ ۳۰

۳- حيات او دبدن سره د روح تعلق نه د قرآن څخه ثابت دی او نه د صحيح حديث څخه، (الصواعق المرسله صـ ۲۷۲، اقامة البرهان صـ ۱۶۱، رد منكرات حياة الأموات ،صـ۲۲)

۴- مولوي حسين نيلوي په نداء الحق ، (ج ۱ صـ ۲۴۶) کې ليکي چې: تحقیق یہ ہے کہ حیات کے معنی ہیں روح کابدن کے ساتھ تعلق اور قبر میں روح کابدن کے ساتھ سری سے تعلق ہے نہیں ہے، یعنی اس حیات کا تعلق اس بدن عنصری سے نہیں ہے. (الارشاد المفيد صـ ۱۶،)

خلاصه دا چې حيات د روح د بدن سره تعلق ته وايي او د روح دبدن سره تعلق نشته، په نداء حق (ج ۱ صـ ۲۲۶) کې ليکي چې: اور قبر میں فقط مردہ جسم ہی ،همدارنګه په صـ (۳۵۷) کې ليکي چې: لیکن مرنے والی کے روح کا تعلق بدن سے کلی طور پر منقطع ہو جاتا ہے، نہ ظاہری طور پر تعلق ہوتا ہے، نہ اندرونی، همدارنګه په صـ (۲۹۸) کې ليکي چې: لکن تعلق میت کے روح کا تو بدن سے بلکل منقطع ہو جاتا ہے ، همدارنګه (ج ۳ صـ ۱۴۴) کې ليکي چې: اور قبر بھی برزخ کا نام ہے اس گڑھے کا نام نہیں ہے... حالانکی اس ظاہری قبر میں نہ تو کوئی فراخی ہوتی ہین نہ کوئی تنگی... ان احادیث سے صاف معلوم ہوتا ہے کہ سوال صرف روح سے ہوتا ہے، اور وہ بھی عالم البرزخ میں، نہ کہ اس مٹی کے گڑھے میں... پھر یہ بھی کہا جاتا ہے کہ روح اور بدن عنصری میں ایک تعلق اور کشش ہے سو یہ بھی غلط ہے، اس کا ثبوت کسی صحیح حدیث سے نہیں ملتا، محض قیاسی بات ہے. همدارنګه وګوره: مجموعه رسائل نيلوي (ج ۲ صـ ۹۹، ج ۲ صـ ۱۲۳ صـ ۱۲۴، ج ۱ صـ ۳۶۸، صـ ۱۴۳ صـ ۵۸۶)

۵- همدارنګه وګوره: البرهان الجلی صـ ۱۴۸، صـ ۱۸۱، صـ ۱۵۸)

۶- همدارنګه وګوره مسالک العلماء ، صـ ۵۹، صـ ۶۰، ۶۳، ۶۴،

۷- همدارنګه وګوره عقائد علماء اسلام، صـ ۱۳۴ دلته ليکي چې په دې زمکني قبر کې او دې جسم ته ثواب او عذاب نشته، همدارنګه وګوره عقائد اسلام صـ ۱۳۶، ۱۳۷، ۱۳۸، ۱۴۱، ۲۸۰، ۲۸۹، ۲۹۴، ۳۲۷)

۸- طيب معتزلي ليکي چې: اور قبر میں اصلا روح کا بدن سے تعلق نہیں ہوتا (مسلک الاکابر ص-۲۶)

ددې فتنې وړاندوينه په حديث کې شوې ده، حضرت عبد الله بن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې: سمعت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وهو يقول : أنه سيخرج قوم منا بعدكم يكذبون بعذ القبر ،

ويكذبون بالرحمن ويكذبون بالدجال ، ويكذبون بالحوض ، ويكذبون بقوم يخرجون من النار ، مسند احمد ج ۱صـ ٤۱)

درسول الله ﷺ ددې پيش گوئي مطابق دحيات بعد الممات يعنې دعذاب القبر دمنكرينو مختلفې ډلې پيدا شوې ، لكه معتزله ، كراميه، روافض ، قاديانيان، عثمانيان، چكړالويان، پرويزيان ، چترورپيان، حزب الله ، جماعت المسلمين ، غيرمقلدين ، داشاعت مماتيان.

## داهل سنت والجماعة دلايل

شپږ خبرې په ياد لرئ اول دعقيدې معنى، دوهم د موت او دحيات تعريفونه، دريم تعين دقبر، ځلورم دبرزخ مفهوم، پنځم د قبر مفهوم، شپږم اعاده د روح جسم ته په دغه ځمكنې قبر كې يعنې حيات فى القبر.

### د عقيدې معنى:

عقيده په لغت كې غوټې ته وايي او په اصطلاح كې هغه مضبوط يقين ته وايي چې د شک او شبهې گنجايش په كې نه وي په اسانه الفاظو كې د عقيدې دوهم نوم ايمان دى، نو ايمانياتو ته عقايد وايي.

**د موت تعريف:** موت قبض الروح ته وايي

چې په جسم كې روح نه وي او د جسم سره د روح تعلق هم نه وي ، يعنې: انقطاع الروح عن الجسد والانتقال من دارٍ الى دارٍ(حاشيه تسكين الصدور صـ ۱۰٤، نداء حق صـ ٤٤٤)

فائده: موت قبض الروح ته وايي ،الله تعالى فرمايي چې: ﴿ اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا ﴾او د قبض دوه كيفيتونه دي اول: خروج الروح عن الجسد ، دوهم: حبس الروح، دمولانا قاسم نانوتوي رحمه الله په نيز د انبياء وو د موت كيفيت دوهم دى.

### د حيات تعريف:

چې په جسم كې روح وي يا د جسم څخه بهر وي ، لكن د جسم سره يې تعلق وي، لكه د ويده په باره كې الله تعالى فرمايي چې: ﴿ اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا ﴾ نو د خوب په حالت كې روح د جسم څخه وتلى وي، لكن بيا هم جسم ژوندى وي ، ځكه چې د روح ورسره تعلق وي.

**قران کريم څخه د زمکني قبر ثبوت :**

(۱) فَبَعَثَ اللهُ غُرَابًا يَّبْحَثُ فِي الْاَرْضِ لِيُرِيَه كَيْفَ يُـوَارِيْ سَـوْءَةَ اَخِيْـهِ: کله چې قابيل هابيل ووژلو او دښخولو چل يې نه ورتلو نو الله تعالی يو کارغه راوليږلو چې بل کارغه يې ښخولو نو قابيل ترينه د ښخولو چل ياد کړو او هابيل يې ښخ کړو، نو قابيل هابيل په دغه زمکني قبر کې ښخ کړو.

(۲)وَّ لَا تَقُمْ عَلٰى قَبْرِه (سورة توبه اية ۸٤) ترجمه: او دده په قبرباندې مه دريږه.

په دې ايت کې نبي ﷺ منع شو چې درئيس المنافقين په قبر باندې مه دريږه او ظاهره دا ده چې نبي ﷺ د رئيس المنافقين په دغه زميني قبر باندې دريدلی وو او دعايې ورته کړې وه۔سجين ته نه وو تللی.

(۳) وَ اَنَّ اللهَ يَبْعَثُ مَنْ فِي الْقُبُوْرِ (الحج ايت ۷) ترجمه: اوله دې وجې چې الله تعالی ټول خلک دوېم ځل را ژوندي کوي کوم چې په قبرونو کې دي.

**استدلال:** دلته د هغو اجسامو د راپورته کولو ذکر دی په کومو کې چې د کفارو شک وو، او دکفارو شک په دغې عنصري جسمونو کې وونه په اجسامو مثاليه وو کې، نو قبر به هغه ځای ته وايي په کوم ځای کې چې دا جسد عنصري ښخ شوی دی او هغه زمکنی قبر دی.

(۴) وَ اِذَا الْقُبُوْرُ بُعْثِرَتْ (انفطار اية٤) ترجمه: او چې کله قبرونه څيري او لاندې باندې شي او مړي ترينه راپورته کړل شي.

**استدلال:** په دې اية کريمه کې قبر هغه ځائې ته ويل شوی دی د کوم ځای څخه چې جسم راپورته کولی شي او جسم د زمکني قبر څخه راپورته کولی شي، ځکه چې حساب او کتاب د دغې جسد عنصري سره کيږي کوم چې اعمال کړيْ دي جسم مثالي خو عمل نه دی کړی.

(۵) اَفَلَا يَعْلَمُ اِذَا بُعْثِرَ مَا فِي الْقُبُوْرِ (عاديات ايـة٦) ترجمه: ايا هغه وخت ورته نه دی ياد چې راپورته کړل شي هغه چې په قبرونو کې دي.

**استدلال:** په دې ايت کريمه کې قبر هغه ځای ته ويل شوی دی په کوم ځای کې چې دا ناشکره جسم ښخ کړی شوی دی او هغه زميني قبر دی.

(٦) كَمَا يَئِسَ الْكُفَّارُ مِنْ اَصْحٰبِ الْقُبُوْرِ (الممتحنه اية ۱۳) ترجمه: لکه څرنګه چې نا اميده دي کافران د هغه خلکو څخه په قبرونو کې ښخ کړی شوي دي.

**استدلال:** کافران د دې جسد عنصري څخه نا امېده دي، نو چې کافران د دې اجساد و عنصريه وو څخه نا امېده دي نو اصحاب القبور به همدا اجساد عنصريه وي او اجساد عنصريه په دغه زمکني قبر کې ښخ کړي شوي دي.

(۶) مِنْهَا خَلَقْنٰكُمْ وَ فِيْهَا نُعِيْدُكُمْ وَ مِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً اُخْرٰى (طه اية ۵۵)

(۷) حَتّٰى زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ(التكاثر اية ۲) په دې دواړو اياتونو کې همدغه زمکني قبرونه مراد دي.

## احاديث مباركه او دقبر مفهوم:

(۱) عبد الله بن مسعود ﷺ فرمايي: چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې: إِذَامَاتَ أَحَدُكُمْ فَلَا تَحْبِسُوهُ وَأَسْرِعُوابِهِ إِلٰى قَبْرِهِ وَلْيُقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِهِ فَاتِحَةُ الْكِتَابِ وَعِنْدَ رِجْلَيْهِ بِخَاتِمَةِ الْبَقَرَةِ فِى قَبْرِهِ. (شعب الايمان للبيهقى فصل فى زيارة القبور).

ترجمه: کله چې يو کس په تاسو کې مړشي نو مه يې حصار وئ او زر زر يې قبر ته وړئ او سرته دې يې فاتحة الكتاب او پښو ته دې يې دسورة بقرې اخيزي اياتونه ولوستل شي.

**استدلال:** دا دزميني قبر بيان دی.

(۲) رسول الله ﷺ په يو څو قبرونو باندې تېرېدلو، نو او ښه يې وتربدله، رسول الله ﷺ وفرمايل: چې د دې قبرونو والا څوک پېژني؟ يو سړي وويل چې زه يې پېژنم، رسول الله ﷺ وفرمايل: چې دوئ کله مړه شوي دي؟ هغه سړي وويل چې دشرک په زمانه کې، رسول الله ﷺ وفرمايل: چې پدې امت باندې په قبر کې ابتلاء راځي، که دا ويره راسره نه وی چې تاسو به بيا مړي ښخ نه نکړئ نو ما به دعا کړې وی چې تاسو ته يې عذاب قبر درښکاره کړی وی، الحديث (مسند ابى يعلى رقم ۱۲۹۹۶)

**استدلال:** دا ټول بيان د زميني قبر دی، نبي ﷺ چېرته سجين او يا علين ته نه وؤ تللی.

(۳) عبد الله بن عباس ﷺ فرمايي: چې نبي ﷺ په دوو قبرونو باندې تېرېدلو نو وې فرمايل: چې په دې دواړو قبرونو کې مړوته عذاب ورکول کيږي او په ډېر سخت کار کې نه ورکول کيږي، يو به نمامت کولو او بل به ځان د متيازو څخه نه ساتلو، بيا يې دوه لمدې لختې را واخستلې او يوه يوه يې په دواړو قبرونو باندې ښخه کړه، او وې فرمايل چې کېدی شي چې الله تعالى د دوي په عذاب کې تخفيف راولي ترڅو چې دا وچې شوې نه وي. (بخاري ج ۱ ص ۱۸۴)

**استدلال:** دلته نبي ﷺ دسجين او يا دعلين په قبر باندې نه دی تير شوی، بلکه په دغه زمکني قبر باندې تبرېدلو او په همدغه زمکني قبرونو باندې يې لختې ښځې کړی وی.

(٤) عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ: «لَمَّا مَاتَ النَّجَاشِيُّ رحمه الله كُنَّا نَتَحَدَّثُ أَنَّهُ لَا يَزَالُ يُرٰى عَلٰى قَبْرِهِ نُورٌ». (رواه ابو داود باب فی النوريری عند قبر الشهيد)

**استدلال:** حضرت عائشه رضي الله عنها د زمکني قبر بيان کوي، چې د نجاشي په زمکني قبر باندې انوار راورېدل.

(٥) يوه بي بي وه مسجد به يې جارو کولو، بيا وفات شوه صحابه کرامو يې جنازه وکړه، نبي ﷺ خبر نه وو نو چې يو څو ورځې يې ونه ليدله د صحابه وو کرامو څخه يې دهغې په باره کې پوښتنه وکړه، صحابه کرامو وفرمايل چې يارسول الله ﷺ هغه وفات شوه او مونږ ته خبر نه کړی او ښخه مو کړه، نبي ﷺ وفرمايل چې (دلوني على قبرها) ماته يې قبر را وښايې، بيا نبي ﷺ ورغلو او په قبر يې ورته جنازه وکړه او بيا يې وفرمايل چې دا قبرونه د تيارو څخه ډک دي (وان الله ينورها لهم بصلاتي عليهم) زما د جنازې له وجې يې الله ورباندې رڼا کوي (مسلم ج ١ ص ٣٠٩)

دا ټول معامله د زمکني قبر سره شوې وه، نبي ﷺ سجين او يا علين ته نه وو تللی، په دې باب کې احاديث تقريبا تواتر ته رسيدلي دي.

(٦) امام بخاري په کتاب الجنائز کې لاندې بابونه لګولي دي:

باب مايكره من اتخاذ المساجد على القبور، باب زيارة القبور، باب قول الرجل للمرأة اصبري، باب الصلوة على القبر بعد مايدفن، باب من يدخل قبر المرأة، باب دفن الرجلين والثلاثة فى القبر الواحد، باب الاذخر والحشيش فى القبر باب هل يخرج الميت من القبر واللحد لعلة (باب اللحد والشق فى القبر، باب الجريد على القبر، باب موعظة المحدث عند القبر) ددې ټولو څخه او پدې کې دذکر شوو احاديثو څخه زمکنی قبر مراد دی، عليين او يا سجين ترېنه نه دی مراد.

(٧) دمسلم په کتاب الجنائز کې داسې بابونه دي: باب جعل القطيفة فى القبر باب الامر بتسوية القبر، باب النهى عن تجصص القبر، باب النهى عن الجلوس على القبر، باب ما يقال عند دخول القبور، باب استيذان النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ربه عز وجل فى زيارة قبر امه) ددې ټولو څخه زمکنی قبر مراد دی.

(۸) امام ابو داود دكتاب الجنائز لاندې داسې بابونه لګولي دي: باب جمع الموتى في قبر ، باب في تعميق القبر ، باب كراهية العقود على القبر ، باب الاستغفار عند القبر ، باب المشى بين القبور فى النعل ، ددې ټولو ځخه زمكنى قبر مراد دى .

(۹) اما ترمذي د كتاب الجنائز لاندې داسې بابونه لګولي دي : باب ما يقول اذا ادخل الميت قبره ، باب كراهية الوطى على القبور والجلوس عليها .

(۱۰) امام نسائي دكتاب الجنائز لاندې داسې بابونه لګولي دي : باب ما يستحب من اعماق القبر ، باب مايستحب من توسيع القبر ، باب اخراج الميت من القبر.

(۱۱) ابن ماجه د كتاب الجنائز لاندې داسې بابونه لګولي دي: باب ما جاء في الصلوة على القبر ، باب ماجاء في ادخال الميت القبر ، باب ماجاء فى حفر القبر ، ددې ټولو بابونو ا ويدې كې د ذكر شوو ټولو احاديثو ځخه د لمر په شان دا خبره ظاهريږي چې دقبر شرعي ځخه مراد همدغه زمكنى قبر دى نو عذاب او ثواب به هم په همدې قبر كې وي .

(۱۲) په يو حديث كې راځي چې: يقال للارض التئمي عليه فتختلف اضلاعه داحديث صراحة دأهل سنت والجماعت دموقف تائيد كوي .

(۱۳) عن سفيان التمار أنه رأى قبر النبى ﷺ مسنما (بخاري ج ۱صـ ۱۸٦، مشكوة صـ ۱٤۸)

سفيان التمار رحمه الله فرمايي چې دنبى كريم ﷺ قبر داسې وو لكه د ا وښ بوكان .

(۱۴) فى حديث معاذ بن جبل رضي الله عنه : لعلك أن تمر بمسجدي وقبري ، مشكوة صـ ۵۴۵، اى معاذه ! كيدى شي چې ته به زما په مسجد او په قبر تيريږې، پدې دواړو حديثونو كې دزمكني قبر بيان دى.

## اهل لغت او دقبر مفهوم

(۱) المَقبرة والمِقبرة موضع القبور والجمع مقابر (مفردات القران ماده ، ق ، ب، ر، صـ ۳۹۰ )

(۲) القبر مدفن الانسان وجمعه قبور (لسان العرب ج ۵ صـ ٦۷ )

(۳) القبر مقر الميت وجمعه قبور (معجم الفاظ القران ج ۲ صـ ۳۳۱ )

(۴) قبر دانسان دښخولو ځاى (قاموس القران صـ ۴۱۳ )

(۵) قبر دانسان د ښخولو ځای (مصباح اللغات صـ ۶۵۴)

په لاندې ټولو کتابونو کې ئې همدا معنی لیکې ده:

(۶) صحاح (۷) تاج العروس (۸) مجمع بحار الانوار (۹) المعجم الوسیط (۱۰) معجم الصحاح وغیره

خلاصه: دا چې ټول اهل لغت د قبر لپاره حقیقي لغوي او اصلي معنی همدا ذکرکوي.

## د دیوبند اکابر او دقبر مفهوم

(۱) په بهشتي زیور صـ ۴۳ کې یې دقبر څخه همدا زمکنی قبر مراد کړی دی.

(۲) کله چې مړی په قبر کې ښخ کړی شي او خاورې پرې واچول شي نو دا خاورې د ملائکو د ورتللو څخه مانع نه ګرزي. (احکام اسلام عقل کے نظر میں ص-۲۵۹)

(۳) د قبر حقیقت د مړي ځای دی (امداد الفتاوی ج ۴ صـ ۴۶۷)

(۴) دنکیر او منکر دسوال او دجواب وخت هغه دی چې کله خلک دقبر څخه واپس شي او انساني روح دغې خاکي جسم ته را معاد شي. (عقائد اسلام صـ ۵۹)

(۵) قبر ددغه ځای نوم دی په کوم کې چې د مړي اجزاء پراته دي. (فتاوی حقانیه ج ۱ صـ ۱۸۲)

## دمماتیانو وسوسې

(۱) بعضې اکابرو فرمایلي دي چې د قبر څخه مراد عالم البرزخ دی.

**الجواب:** د اکابرو داقول د اسلام ددشمنانو جواب دی، د اسلام دشمنان اعتراض کوي چې بعضې خلک خو په قبرونو کې ښخ شوي نه دي، نو هغوي ته به عذاب القبر او ثواب القبر څنګه ورکول کیږي؟ نوعلماوو جواب ورکړو چې دقبر څخه مراد صرف دا کنده نه ده، بلکې عالم البرزخ دی او عالم البرزخ دمرګ څخه واخله ترقیامته پورې ټولې زمانې ته وایي، په دې زمانه کې چې مړی په هرځای کې وي نو هغه په عالم البرزخ کې دی، نو دعلماوو مقصد دقبر په مفهوم کې وسعت پیدا کول دي، ددې زمکني قبر څخه انکار نه دی، خلاصه: دا چې قبر دمړي لپاره ظرف مکان دی او برزخ ورته ظرف زمان دی او قانون دادی چې دیو مکان سره نفې دبل مکان راځي، مثلا یو څوک ووایي چې زید په مسجد کې دی، نو په کور کې نه شوه همدا رنګه دیو زمان سره نفې دبل زمان راځي لکه یو څوک ووایي چې زید سږ کال صرف په رمضان کې عمرې ته تللی دی، نو په شوال کې به نوي تللی، لکن دیو مکان داثبات په وجه نفې دزمان نه راځي،

بلکې دواړه سره جمع کيدلی شي مثلا يو څوک ووايي چې زيد دشپې په مسجد کې تهجد وکړل، نو مسجد ظرف مکان شو او شپه ظرف زمان شوه، همدارنګه ديو زمان داثبات په وجه نفې دمکان نه راځي مثلا يو سړي ووايي چې زيد نن ورځ په مدرسه کې سبق وويلو ،نو مدرسه ورته مکان شو او نن ورځ ورته زمان شو ،همدارنګه برزخ دعذاب او ثواب الميت او حيات الميت لپاره زمان دی او قبر ورته مکان دي ددواړو په مابين کې تضاد نشته، دبرزخ داثبات په وجه دقبر نفې نه راځي.

(۲) وسوسه دمماتيانو دمرکزي کتاب نداء الحق ص (۹۴) خلاصه داده چې الله تعالی فرمايي چې: (ثم اماته فأقبره) ددې څخه معلوميږي چې دغه زميني قبر قبر نه دی، اول: له دې وجې څخه چې (فاقبره د اماته) په شان د الله تعالی فعل دی او الله تعالی خپل ځان ته منسوب کړی دی نو د هر سړي پورې به د اماتت دفعل تعلق راغلی وي او دهر سړي پورې به داقبار دفعل تعلق راغلی وي، اوس که دقبر څخه مراد دغه زمکنی قبر شي نو بيا خو بعضې انسانان په دغه زمکني قبر کې نه دی ښخ شوي، دوهم: له دې وجې څخه چې په دې اية کې داقبار فعل الله ته منسوب شوی دی او په زمکني قبر کې اقبار دبندګانو فعل دی.

**الجواب:** داية سياق اوسباق په دې خبره باندې دلالت کوي چې په دې ايت کې دقبر څخه دغه زمکنی قبر مراد دی.

**دوهم جواب:** کوم سړي ته د زمکې قبر نه دی په نصيب شوی؟ که تاسو وايي چې بعضې خلک مرغانو خوړلي دي او بعضې لېوانو خوړلي دي نو مونږ وايو چې بيا هغه مرغان او لېوان څه شول؟! يا هغوئ نه مړه کيږي او نه خاورې کيږي؟ نو حاصل دا چې هر سړی به خاورو ته ځي، څوک لږ مخکې او څوک لږ ورسته.

**دريم جواب:** کوم سړي ته چې قبر په نصيب نه شي نو دهغه په باره کې ددې خداوندي وعدې سره څه کوئ چې (منها خلقنكم وفيها نعيدكم ومنها نخرجكم تارة اخرى).

**څلورم جواب:** اماتة هم بالذات دالله تعالی فعل نه دی بلکه بالذات دملائکو فعل دی او که د قبر څخه عليين او يا سجين واخلی نو بيا خو هلته هم (اقبره) دبندګانو يعنې د ملائکو فعل شو، خلاصه دا چې په دواړو ځايونو کې امر بالاماتة او امر بالاقبار مراد دی.

(٣) وسوسه :انما مرَّ رسول الله ﷺ على يهودية يبكي عليها اهلها قال انهم يبكون عليها وانها لتعذب في قبرها. (بخاري ج ١ ص ١٧٢ باب قول النبي ﷺ يعذب الميت ببكاء اهله عليه)

نو دا ښځه لا ښخه شوې نه وه چې نبي ﷺ وفرمايل چې دې ته په قبر کې عذاب ورکول کيږي، معلوميږي دا چې قبر د روح مستقر ته وايي دغه زمکني قبر ته نه وايي.

**الجواب** (١) امام احمد رحمه الله فرمايي چې: **الحديث اذالم تجمع طرقه لم يفهمه والحديث يفسر بعضه بعضًا** حديث مكمل چنين است: عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ الْمَيِّتَ لَيُعَذَّبُ بِبُكَاءِ أَهْلِهِ عَلَيْهِ» فَذُكِرَ ذٰلِكَ لِعَائِشَةَ رضي الله عنها فَقَالَتْ: وَهِلَ تَعْنِي ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنه إِنَّمَا مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَبْرٍ، فَقَالَ: «إِنَّ صَاحِبَ هٰذَا لَيُعَذَّبُ وَأَهْلُهُ يَبْكُونَ عَلَيْهِ» ثُمَّ قَرَأَتْ: {وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرٰى} [الأنعام: ١٦٤] قَالَ: عَنْ أَبِي مُعَاوِيَةَ رضي الله عنه عَلَى قَبْرِ يَهُودِيٍّ (ابوداود ج ٢ ص ٩٠ باب في النوح كتاب الجنائز)

(٢) د دې تفصيلي حديث څخه معلومه شوه چې نبي ﷺ د يهودي په قبر باندې تېرېدلو.

(٣) دبخاري په روايت کې دي چې (انها لتعذب) يعنې د مضارع صيغه د ه د نورو رواياتو څخه معلوميږي چې دلته حال نه بلکه استقبال مراد دی، معنی دا چې عنقريب به دې ته عذاب ورکړل شي.

(۴) په دې حديث کې راغلي دي چې نبي ﷺ د دې مړي په جسد عنصري باندې تېرېدلو نو معلوميږي دا چې ثواب او عذاب دی جسد عنصري ته دی او مماتيان د دې څخه منکر دي، نو دا حديث خو د مماتيانو خلاف شو.

(۵) متيقن الوقوع نازل کولی شي په منزلة د واقع.

اکثر مماتيان بعضې عبارتونه د قطع او د برېد سره پيش کوي، په هغې باندې مه دوکه کيږئ کله چې مسئله په ادله وو اربعه وو باندې ثابته شي نو بيا د چا شخصي رائې ته ضرورت نه وي، کوم عبارتو نه چې مماتيان اشاعتيان منکرين د قبر پيش کوي هغه په اصل کتابونو کې وګورئ. په هغې کتابونو کې هېڅوک هم د دې ارضي قبر څخه منکر نه دي، اکثر داسې وي چې مصنيفينو د کوم اعتراض جواب کړی وي نو هلته مماتيان د خپلې خوښې مطابق عبارت را أخلي او چې هملته مصنف د ارضي قبر او په همدې ارضي قبر کې د ثواب او د عذاب خبره کړې وي هغه نه رانقلوي.

## دبرزخ مفهوم

**لغت:** د برزخ لغوي معنی پرده ده، په قران کریم کې په دوه ځایونو کې دبرزخ لفظ دپردې په معنی کې استعمال شوی دی مثلا :

(۱)ومن وراء هم برزخ الی یوم یبعثون ، (۲)بینهما برزخ لا یبغیان .

همدارنګه اهل لغت فرمايي: چې البرزخ الحاجز بين الشيئين (القاموس المحيط صـ۳۱۸ ) برزخ ددوو شیانو په منځ کې پردې ته وایي. (مصباح اللغات صـ ٥٦) البرزخ مابین الشیئن (فقه اللغة صـ٦٥ )

**اصطلاحا:** الْبَرْزَخُ: مَا بَيْنَ كُلِّ شَيْئَيْنِ، وَفِي الصِّحَاحِ: الْحَاجِزُ بَيْنَ الشَّيْئَيْنِ. وَالبَرْزَخُ: مَا بَيْنَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ قَبْلَ الْحَشْرِ مِنْ وَقْتِ الْمَوْتِ إِلَى الْبَعْثِ، فَمَنْ مَاتَ فَقَدْ دَخَلَ الْبَرْزَخَ (لسان العرب ج ۳ صـ۸)

## دبرزخ اقسام

الْبَرْزَخُ عَلَى ثَلَاثَةِ أَقْسَامٍ: مَكَانٌ وَزَمَانٌ وَحَالٌ، فَالْمَكَانُ مِنَ الْقَبْرِ إِلَى عِلِّيِّينَ، تَعْمُرُهُ أَرْوَاحُ السُّعَدَاءِ. وَمِنَ الْقَبْرِ إِلَى سِجِّينٍ تَعْمُرُهُ أَرْوَاحُ الْأَشْقِيَاءِ.

وَأَمَّا الزَّمَانُ فَهُوَ مُدَّةُ بَقَاءِ الْخَلْقِ فِيهِ مِنْ أَوَّلِ مَنْ مَاتَ أَوْ يَمُوتُ مِنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ.

وَأَمَّا الْحَالُ فَإِمَّا مُنَعَّمَةٌ وَإِمَّا مُعَذَّبَةٌ أَوْ مَحْبُوسَةٌ حَتَّى تَتَخَلَّصَ بِالسُّؤَالِ مِنَ الْمَلَكَيْنِ الْفَتَّانَيْنِ، انْتَهَى. (الحاوی للفتاوی ج ۲ صـ۱۷٥).

برزخ مکان ته وایي چې دقبر څخه شروع تر علیین او یا تر سجین پورې دی همدرانګه هغه زماني ته وایي چې د وفات د ورځې څخه شروع کیږي د اسرافیل علیه السلام تر دوهمې شپېلۍ پورې، همدرانګه هغه حالت منعمه او یا معذبه او یا محبوسه ته وایي چې په دې زمانه کې مکلف وزسره مخامخ کیږي .

## دقبر او دبرزخ په مابین کې نسبت

دقبر او دبرزخ په مابین کې نسبت دعموم او دخصوص مطلق دی : کما قال: کل قبر برزخ ... وبعض البرزخ قبر ... وبعض البرزخ لیس بقبر. نو چې قبر په هرځای کې وي هلته برزخ شته دی .

## دقبر اود برزخ په مابین کې منافات نشته

برزخ قبر او دمړي هرځای ته شامل دی، یعنې برزخ په اعتبار دمکاني معنی سره مقام المیت دی نو قبر دبرزخ په مفهوم کې دخل شو ، لهذا ددوي دواړو په مابین هیڅ قسم تضاد او منافات نشته، لکه

ځرنګه چې علامه ابن کثير رحمه الله ددې ايت په تشريح کې چې: (النار يعرضون عليها غـدوًا وعشـيا) فرمايي، چې: (وهذه الاية اصل کبير في استدلال اهل السنة على عذاب البرزخ فى القبور) دا ايةپه قبر کې دعذاب برزخي لپاره قاعده ده، فلهذا مړی په يو وخت کې په قبر کې هم وي او په برزخ کې هم وي همدارنګه په اعتبار دزمانې معنى سره هم منافات نشته ځکه چې قبر دمړي لپاره ظرف مکان دی او برزخ ورته ظرف زمان دی او مظروف په يو وخت کې په ظرف زمان او ظرف مکان دواړو کې وي.

مثلا يو طالب دشپې په مسجد کې وي نو ته داسې هم ويلی شی چې طالب په مسجد کې دی او داسې هم ويلی شئ چې طالب په شپه کې دی، ځکه چې مسجد مکان او شپه زمان دی. (فتاوی حقانيه ج ۱ ص ۱۸۲).

نو کله چې ووايي چې انبياء په برزخ کې ژوندي دي نو په قبرونو کې ژوندي شول، او څوک چې وايي چې په برزخ کې ژوندي دي لکن په قبر کې مړه دي نو ددې داسې مثال دی چې مثلا زيد دشپې په مسجد کې ناست دی نو يو سړی ووايي چې زيد دشپې ژوندی دی لکن په مسجد کې مړ دی.

## په قبر کې د روح اعاده (يعنې حياة فى القبر)

(۱) يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَ فِي الْاٰخِرَةِ(ابراهيم اية ۲۷).

د حياة فى القبر لپاره اسانه دليل دادی چې د دې ايت لاندې چې دهرسني مفسر تفسير ګورې، نو عقيده د حياة فى القبر به يې ليکلې وي.

فانقيل: چې دا ايت مکي دی او دصحيح حديث څخه دا ثابته ده چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم ته دعذاب القبر علم په مدينه کې ورکړل شو، نو څرنګه به دا ايت دعذاب القبر په باره کې شي؟.

قلنا: مولانا ادريس کاندهلوي جواب کوي چې په ايت کريمه کې (فى الاخرة) لفظ راغلی دی او أخرت په دوه قسمه دی، اول: اخرت قريبه، يعنې عالم البرزخ او دوهم: اخرت بعيده، يعنې عالم الحشر، يا داسې ووايه چې يو اخرت مجازي دی يعنې عالم البرزخ او يو أخرت حقيقي دی يعنې عالم الحشر، رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دتثبيت او اضلال فى الاخرة يو جز په مکه مکرمه کې منکشف شوی وو چې تثبيت فى عالم الحشر دی او د تثبيت او اضلال دوهم جزء ورته په مدينه کې منکشف شو چې هغه تثبيت او اضلال فى عالم البرزخ دی، معارف القرآن لمولانا ادريس کاندهلوي ج ۴ (ص ۱۳۷) او مولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله فرمايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دعذاب القبر علم په مکه کې ورکړل شوی وو، لکن اجمالي وو او په مدينه منوره کې ورته دتفصيلاتو علم هم ورکړل شو. (احکام القرآن ج ۴ ص ۸۳)

عن ابي هريرة ﷺ قال: تلا رسول الله ﷺ يثبت الله الذين الاية قال: ذاک فى القبر من ربّک وما دينک (الحديث درمنثور ج ۸ صـ ۳۵۰ )

وعن ابن مسعود قال ان الميت اذا مات أجلس في قبره فيقال له من ربّک و ما دينک ومن نبيک (الحديث درمنثور ج ۸ صـ ۲۲۶ )

عن البراء بن عازب ﷺ قال : وذكر قبض روح المؤمن فتعاد روحه في جسده ويأتيه ملكان فيجلسانه فى القبر (الحديث) قرطبي ، طبري ، بغوي ، كشاف ، بيضاوي ، مدراک ، خازن ، ابن كثير ، درمنثور ، ابو السعود ، دې ټولو ددې ايت لاندې د اعادې د روح احاديث راوړي دي، د دې ايت په تفسير کې مفتي شفيع صاحب فرمايي چې دقبر ژوند په لسو آيتونو کې اشارةً او په اويا وو (۷۰) متواترو احاديثو کې صراحةً ذکر شوی دی (معارف القرآن اردو ج ۵ ص ۲۳۶)

(۲) كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللهِ وَ كُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ١ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ(بقره اية ۲۸ )

واخرج وكيع وابن جرير عن ابي صالح قال يميتكم ثم يحييكم فى القبر ثم يميتكم (درمنثور، ابن كثير ، طبري)

(۳) د براء بن عازب ﷺ مشهور حديث دی چې د انسان د وفاتېدلو تفصيل په کې دی يوه جمله يکې داسې ده : فَيَقُولُ اللهُ عَزَّوَجَلَّ: اكْتُبُوا كِتَابَ عَبْدِي فِي عِلِّيِّينَ، وَأَعِيدُوهُ إِلَى الْأَرْضِ، فَإِنِّي مِنْهَا خَلَقْتُهُمْ، وَفِيهَا أُعِيدُهُمْ، وَمِنْهَا أُخْرِجُهُمْ تَارَةً أُخْرَى". قَالَ: "فَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ، فَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ. ( الحديث) مسند احمد رقم ۱۸۵۳٤ مشكوة ج ۱ صـ ۲۸ باب اثبات عذاب القبر] دا حديث صحيح دی بيهقي ورته صحيح ويلي دي. (شعب الايمان ج ۱ صـ ۳۵۷ )

حافظ ابو نعيم ورته صحيح ويلي دي . (مجموع الفتاوی ج ۵ صـ ۲۱٦ )

امام هيثمي ورته صحيح ويلي دي . (مجمع الزوائد ج ۳ صـ ۱۷۰ )

حاكم ورته صحيح على شرط الشيخين ويلي دي ، امام حاكم فرمايي چې: هذا حديث صحيح على شرط الشيخين ، قد احتج جميع بالمنهال بن عمرو ، وزاذان وفى هذا الحديث فوائد كثيرة لأهل السنة وقمع للمبتدعة (مستدرک حاكم ج ۱ صـ ۳۹، دار الفكر بيروت ، حافظ ابن قيم رحمه الله ورته صحيح او مشهور ويلي دي هذا حديث ثابت مشهور مستفيض صححه جماعة من الحفاظ ولا نعلم أحدا طعن فيه بل رووه فى كتبهم وتلقوه بالقبول و جعلوه اصلا من اصول الدين فى عذاب القبر ونعيمه، ومسألة منكر و نكير ،و قبض الارواح وصعودها بين يدى الله ثم رجوعها الى القبر،(كتاب الروح صـ ۵۹) .

اول اعتراض: بعضې خلکو اعتراض کړی دی چې زاذان د(يعاد روحه) په نقل کولو کې متفرد دی ، قلنا اولاً چې زاذان ثقه دی، وزيادة الثقه مقبولة ډيرو علماوو دزاذان توثيق کړی دی، يحيى بن معين فرمايي چې: ثقة لايسئل عن مثله، حميد بن هلال فرمايي چې: هو ثقه لاتسئل عن مثل هؤلاء ، (تهذيب التهذيب ج ۳صـ ۳۰۳، کتاب الروح صـ۵۹) ونقـول ثانيـا: چې زاذان متفرد نه دی بلکې ډير متابعات يې دي، حافظ ابن القيم رحمه الله فرمايي چې : وقد رواه عن البراء بن عازب جماعة غير زاذان منهم عدى بن ثابت، ومحمد بن عقبه ومجاهد. کتاب الروح صـ ٥٦) ددې ځخه وروسته يې د متابعت روايات په تفصيل سره ذکر کړي دي ، مثلا اخبرنا محمد بن يعقوب بن يوسف قال حدثنا محمد بن اسفار اخبرنا ابو النضر هاشم بن القاسم حدثنا عيسى بن المسيب عن عدى بن ثابت عن البراء بن عازب رضى الله ، پدې حديث کې د (فتعاد روحه) په ځای (فترد روحه) دی، په دې سند کې د حضرت براء شاګرد زاذان ندی ، بلکې عدي بن ثابت دی او د عدي شاګرد منهال ندی، بلکې عيسى بن مسيب دی، همدارنګه محمد بن سلمه عن خصيف الجزري عن مجاهد عن البراء بن عازب ،که بالفرض دا سند بالکل معدوم فرض کړو، نو بيا هم مخکې د مفتي شفيع صاحب په حواله ذکر شو چې حيات فی القبر د قران د لسو ايتونو او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د اويا متواترو احاديثو ځخه ثابت دی.

دوهم اعتراض: بعضې خلکو دا اعتراض کړی دی چې دزاذان سماع د حضرت براء بن عازب ځخه نه ده حاصله لهذا دا روايت منقطع دی ، لکن دا الزام بالکل غلط دی ، ځکه چې په صحيح ابی عوانه کې د سماع تصريح موجود ده ، يعنې ذاذان دا حديث د سمعت البراء په صيغه روايت کړی دی،(کتاب الروح صـ۵۹) ، همدارنګه د اسماء الرجال په ټولو کتابونو کې ليکل شوي دي چې زاذان چې د کومو صحابه وو ځخه روايت کوي په هغوي کې حضرت براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دی (کما فی تهذيب التهذيب ج ۳صـ ۳۰۲)

دريم اعتراض: بعضې خلکو دزاذان په شاګرد (منهال) باندې دضعف الزام لګولی دی ، لکن دا الزام هم نه دی صحيح ځکه چې حافظ ابن القيم رحمه الله دده په باره کې ليکي چې: فالمنهال احد الثقات العدول، قال ابن معين المنهال ثقة وقال العجلي : کوفی ثقة ، کتاب الروح صـ ۵۹، )

بعضې خلکو ليکلي دي چې دده دکور ځخه دسندرو اواز راوتلو ، قال وهب بن جرير عن شعبة اتيت منزل المنهال فسمعت منه صوت الطنبور فرجعت ولم اسئله، نو وهب بن جرير ورته وفرمايل:

فهلا سئلته عسی کان لا يعلم . (تهذيب التهذيب ج ۱صـ ۳۲۰) نو همدلته جواب وشو چې کيدی شي منهال ددې څخه نه وو خبر، او يا نه وو موجود او دا هم کيدی شي چې دا او ازيې دګاونډي دکوروو، همدارنګه منهال په دې زيادت کې متفرد نه دی .

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: فليس علی المنهال جرح فی ما حکی ابـن ابی حـازم فـذکر حکايته المتقدمة، په اٰخر کې فرمايي چې وجرحه بهذا تعسف ظاهر (تهذيب التهذيب ج ۱صـ ۳۲۰)

ابومعاوية الضرير صدوق وهو فی الاعمش ثقة وفي غير الاعمش فيه اضطراب (تـاريخ بغـداد ج۲ صـ۱۱۵) په دې حديث کې دده استاذ اعمش دی .

(٤) عَنْ أَبِی هُرَيْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كَانَ رَجُلٌ يُسْرِفُ عَلٰی نَفْسِهِ فَلَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ قَالَ لِبَنِيهِ: إِذَا أَنَا مُتُّ فَأَحْرِقُونِی، ثُمَّ اطْحَنُونِی، ثُمَّ ذَرُّونِی فِی الرِّيحِ، فَوَاللّٰهِ لَئِنْ قَدَرَ عَلَیَّ رَبِّی لَيُعَذِّبَنِّی عَذَابًا مَا عَذَّبَهُ أَحَدًا، فَلَمَّا مَاتَ فُعِلَ بِهِ ذٰلِكَ، فَأَمَرَ اللّٰهُ الْأَرْضَ فَقَالَ: اجْمَعِی مَا فِيكِ مِنْهُ، فَفَعَلَتْ، فَإِذَا هُوَ قَائِمٌ، فَقَالَ: مَا حَمَلَكَ عَلٰی مَا صَنَعْتَ؟ قَالَ: يَا رَبِّ خَشْيَتُكَ، فَغَفَرَ لَهُ. (بخاري باب حديث الغار ج ۱ صـ۴۹۵)

په دې حديث کې همدې بدن عنصري ته د روح د اعـادې ذکر دی او همدې بدن عنصري ته د ثواب او د عذاب ذکر دی .

(۵) عن جابر رضي الله عنه قال قـال رسـول الله صلی الله عليه وسلم احسـنوا اکفـان موتـاکم فـانهم يتباهون ويتزاورون في قبور هم . (کتاب الروح صـ ۲۶، صـ ۳۰)

## د حيات فی القبر او اعادة الروح احاديث متواتر دي

دمحدثينو او دمفسرينو د تصريحاتو مطابق په قبر کې مړي ته د روح د اعادې احاديث متواتر دي .

(۱) حافظ ابن تيميه رحمه الله فرمايي چې: الاحاديث متـواترة علی عـودة الـروح الی البـدن وقـت السؤال .(بحواله شرح حديث النزول صـ ۵۱)

(۲) همدا خبره علامه سيوطي هم رانقل کړې ده. (شرح الصدور للسيوطي ج ۱ ص۱٤۷)

(۳) شوکاني ليکلي دي چې: وقد وردت بذالک احاديث کثيرة بلغت حدا لتواتر (نيل الاوطار ج ٤ صـ ۱۳۸ )

(٤) د لامذهبو سر ګروه نو اب صديق حسن خان ليکي چې: (احاديث متواتره اند بر آنکه عود مى کند روح سوى بدن وقت سؤال واين تعلق هميشه ماند اگر چه جسد جان دريده ومتفرق ومنقسم) د اعادې د روح احاديث متواتر دي (التنکيت فی شرح اثبات التثبيت صـ ۲۳)

(۵) دې احاديثو ته تلقي بالقبول هم حاصله ده (فتاوي ابن تيميه ج ۵ صـ ۲۲۰) کتاب الروح صـ ۵۶)

(۶) په اعادې د روح باندې د اسلافو اتفاق دی: وقد اجمع اهل السنة على اثبات الحياة فی القبور (شفاء السقام صـ ٤۲۵)

(۷) مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللّٰهُ دسورة ابراهيم د (۲۷) نمبر ايت (يُثبت الله الذين) په تشريح کې فرمايي چې حيات فی القبر د قرآن د لسو ايتونو څخه اشارةً او د اوياوو متواترو احاديثو څخه صراحةً ثابت دی.

**فائده: اشاعت التوحيد والسنة والا په منافقانه انداز د عذابِ قبر څخه منکر دي.**

دعذاب قبر سره حيات فی القبر لازم دی، دحيات فی القبر څخه انکار دعذاب فی القبر څخه انکار دی، او دعذاب قبر څخه منکر کافر دی او د انکار لپاره دوه صورتونه دي، يو صراحةً انکار دی، لکه معتزله يې چې کوي او بل په منافقانه انداز باندې دی، لکه مماتيان چې وايي: مونږ عذاب القبر منو، لکن بيا ددې مفهوم لپاره مصداق بدلوي، لکه ملحدين چې صلوة مني لکن مصداق او شکل ورته بدلوي، حکماء جنت او جهنم مني لکن مصداق او شکل ورته بدلوي، قاديانی ختم نبوت مني، لکن مصداق او شکل ورته بدلوي، همدارنګه مماتيان وايي چې عذابِ قبر حق دی لکن دقبر څخه مراد برزخ دی او دبرزخ څخه عليين او يا سجين مراد دی او کله وايي چې دقبر څخه د روح قبر مراد دی چې عليين او يا سجين دی، هلته په عليين او يا سجين کې الله تعالى روح په بل جسم مثالي کې داخلوي هغه جسم مثالي ته ثواب او يا عذاب ورکول کيږي، او که ورته روايئ چې دترمذي صـ ۶۹، وغيره احاديثو کې دزمکني قبر دعذاب ذکر دی، نو مماتي وايي چې دلته دبرزخ ځمکه مراده ده او که ورته روايئ چې عذاب ځناور هم اوري (مسلم ج ۱ صـ ۲۱۷) نو مماتيان وايي چې ددې څخه دبرزخ ځناور مراد دي او که ورته روايئ چې دقرآن او دسنت څخه دا ثابته ده چې په ثواب او په عذاب کې جسم هم شريک دی، نو دوي بيا تاويل کوي چې دجسد څخه جسد مثالي مراد دی او که بيا ورته په قطعي دلايلو باندې دا خبره

ثابته کړي چې په عالم القبر يعنې په عالم البرزخ کې جسد عنصري ته عذاب او يا ثواب ورکول کيږي (مسلم ج ۲ص ۳۸۶، بخاري ج ۲ص ۴۹۵)

نو مماتيان بيا تأويل کوي چې دا دالله تعالى دقدرت بيان دى، قانون ندى، يعنې کله کله الله تعالى دعبرت لپاره د خپل قدرت مظاهره کوي او په جسم عنصري باندې عذاب راولي او دالله تعالى قانون دا ندى چې مړي ته عذاب او يا ثواب ورکړي د اهره معامله د روح سره کيږي او که ورته ووايې چې نبى کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پدې زمکني قبر کې پخپله عذاب ليدلى ده لکه څرنګه چې دصحاح ستة وو په احاديثو کې ذکر شوي دي، نو دوي وايي چې دا دنبى کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معجزه وه ، حالانکې يو دمړي عذاب دى او بل دعذاب ليدل دي، عذاب دائمي دمجرم دجرم سزاء ده، معجزه نه ده، معجزه دنبى کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ليدل وو.

## حياة فى القبر (يعني) اعادة د روح او علماء

**امام اعظم ابو حنيفه** رَحِمَهُ اللّٰهُ: اعادة الروح الى جسد العبد فى القبر حق. (القول الفصل شرح الفقه الاكبر صـ ۳۷۹، ابو المنتهى صـ ۲۶)

**امام احمد بن حنبل** رَحِمَهُ اللّٰهُ: وعذاب القبر والايمان بملک الموت بقبض الارواح ثم ترد فى الاجساد فى القبور. (كتاب الصلوة صـ٤٥ تسكين الصدور صـ١٥٥)

**امام نووي** رَحِمَهُ اللّٰهُ: ثم المعذب عند اهل السنة الجسد بعينه او بعضه بعد اعادة الروح اليه او الى جزء منه الخ (شرح مسلم ج ۲ صـ ۳۸٦) باب عرض مقعد الميت من الجنة والنار، امام نووي رَحِمَهُ اللّٰهُ ډير تفصيلي کلام کړى دى او د منکرينو د شبهاتو جوابونه يې ذکر کړي دي.

**حافظ ابن حجر** رَحِمَهُ اللّٰهُ: وَذهب بن حزم وبن هُبَيْرَةَ إِلَى أَنَّ السُّؤَالَ يَقَعُ عَلَى الرُّوحِ فَقَطْ مِنْ غَيْرِ عَوْدٍ إِلَى الْجَسَدِ وَخَالَفَهُمُ الْجُمْهُورُ فَقَالُوا تُعَادُ الرُّوحُ إِلَى الْجَسَدِ أَوْ بَعْضِهِ كَمَا ثَبَتَ فِي الْحَدِيثِ وَلَوْ كَانَ عَلَى الرُّوحِ فَقَطْ لَمْ يَكُنْ لِلْبَدَنِ بِذَلِكَ اخْتِصَاصٌ.

ددې څخه وروسته په جمهورو باندې د اعتراضاتو څخه جوابات کوي، بيا فرمايي چې: وَقَدْ ثَبَتَتِ الْأَحَادِيثُ بِمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ الْجُمْهُورُ كَقَوْلِهِ إِنَّهُ لَيَسْمَعُ خَفْقَ نِعَالِهِمْ وَقَوْلُهُ تَخْتَلِفُ أَضْلَاعُهُ لِضَمَّةِ الْقَبْرِ وَقَوْلُهُ يَسْمَعُ صَوْتَهُ

إِذَا ضَرَبَهُ بِالْمِطْرَاقِ وَقَوْلُهُ يُضْرَبُ بَيْنَ أُذُنَيْهِ وَقَوْلُهُ فَيُقْعِدَانِهِ وَكُلُّ ذٰلِكَ مِنْ صِفَاتِ الْأَجْسَادِ (فتح الباري باب ماجاء في عذاب القبر ج ۳ صـ ۲۳۵)

**علامه عيني** رحمه الله: وهو قول الاكثر من اهل السنة (عمدة القاري باب قتل ابي جهل ج ۱۲ ض ۳۰)

**علامه قسطلاني** رَحِمَهُ اللهُ: وهذا يدل على وجود حيوة فى القبر صلح معها التعذيب (صحيح البخاري ج ۱ صـ ۱۸۳، حاشية ۷، باب ماجاء فى عذاب القبر).

**ملا علي القاري** رحمه الله: (فَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ) ظَاهِرُ الْحَدِيثِ أَنَّ عَوْدَ الرُّوحِ إِلَى جَمِيعِ أَجْزَاءِ بَدَنِهِ، فَلَا الْتِفَاتَ إِلَى قَوْلِ الْبَعْضِ بِأَنَّ الْعَوْدَ إِنَّمَا يَكُونُ إِلَى الْبَعْضِ، وَلَا إِلَى قَوْلِ ابْنِ حَجَرٍ رحمه الله إِلَى نِصْفِهِ، فَإِنَّهُ لَا يَصِحُّ أَنْ يُقَالَ مِنْ قِبَلِ الْعَقْلِ بَلْ يَحْتَاجُ إِلَى صِحَّةِ النَّقْلِ (مرقات ج ۵ صـ ۳۵۵).

همدارنګه فرمايي چې: اعلم أن اهل الحق اتفقوا على أن الله يخلق فى الميت نوع حياة فى القبر بقدر ما يتألم ويلتذ ولكن اختلفوا فى أنه هل يعاد الروح اليه؟ والمنقول عن أبى حنيفة التوقف الا أن كلامه ههنا يدل على اعادة الروح اليه اذ جواب الملكين فعل اختياري فلايتصور بدون الروح (شرح الفقه الاكبر صـ ۱۲۲) د مشكوة د باب اثبات عذاب القبر د دوهم نمبر حديث په تشريح كې فرمايي چې: وَفِيهِ دَلَالَةٌ عَلَى حَيَاةِ الْمَيِّتِ فِي الْقَبْرِ لِأَنَّ الْإِحْسَاسَ بِدُونِ الْحَيَاةِ مُمْتَنِعٌ عَادَةً، وَاخْتَلَفُوا فِي ذٰلِكَ فَقَالَ بَعْضُهُمْ: يَكُونُ بِإِعَادَةِ الرُّوحِ، وَتَوَقَّفَ أَبُو حَنِيفَةَ فِي ذٰلِكَ اهـ. وَلَعَلَّ تَوَقُّفَ الْإِمَامِ فِي أَنَّ الْإِعَادَةَ تَتَعَلَّقُ بِجُزْءِ الْبَدَنِ أَوْ كُلِّهِ (مرقات ج ۱ صـ ۱۹۸)

**علامه الوسي** رحمه الله: وَالْجُمْهُورُ عَلَى عَوْدِ الرُّوحِ إِلَى الْجَسَدِ أَوْ بَعْضِهِ وَقْتَ السُّؤَالِ. (روح المعاني ج ۲۱ صـ ۵۷).

**حافظ ابن القيم** رحمه الله: الْمَسْأَلَةُ السَّادِسَةُ وَهِيَ أَنَّ الرُّوحَ هَلْ تُعَادُ إِلَى الْمَيِّتِ فِي قَبْرِهِ وَقْتَ السُّؤَالِ أَمْ لَا فقد كفانا رسول الله ﷺ أمر هذه المسالة وأغنانا عن أقوال النَّاس حَيْثُ صرح باعادة الرّوح إِلَيْهِ. (كتاب الروح صـ ۴۸) بل الْعَذَاب وَالنَّعِيم على النَّفس وَالْبدن جَمِيعًا بِاتِّفَاق أهل السّنة وَالْجَمَاعَة (كتاب الروح، صـ ۷۲، صـ ۱۷۵) همدارنګه فرمايي چې: قَالَ شيخ الْإِسْلَام الْأَحَادِيث الصَّحِيحَة المتواترة تدل على عود الرّوح إِلَى الْبدن وَقت السُّؤَال وسؤال الْبدن بِلَا روح قَول قَالَه طَائِفَة من النَّاس وَأنكرهُ الْجُمْهُور وقابلهم آخَرُونَ فَقَالُوا السُّؤَال للروح بِلَا بدن وَهَذَا قَالَه ابْن مرّة وَابْن حزم وَكِلَاهُمَا غلط وَالْأَحَادِيث الصَّحِيحَة ترده وَلَو كَانَ ذَلِك على الرّوح فَقَط لم يكن للقبر بِالروح اخْتِصَاص (كتاب الروح ۶۲)

**مولنا عبد العزيز فرهاري** رحمه الله: ان الاحاديث الصحيحة ناطقة بان الروح يعاد فی الجسد عند السؤال (النبراس صـ ۲۰۹).

**علامه ابن ابي العز** رحمه الله: فان عود الروح الى ا لجسد ليس على الوجه المعهود فی الدنيا (شرح العقيدة الطحاويه ج ۲ صـ ۶۰۹) .

**امام تقي الدين السبكي** رحمه الله: وقد ورد عن البراء بن عازب حديث طويل جامع الاحكام الموتى وفيه التصريح بعود الروح الى الجسد (شفاء السقام صـ ٤۲۰ )

**حافظ ابن تيميه** رحمه الله: فقد صرح الحديث باعادة الروح الى الجسد وباختلاف اضلاعه وهذا بين فی ان العذاب على الروح والبدن مجتمعين (مجموع الفتاوى ج ٤ صـ ٥٧ )

**ابن الهمام** رَحِمَهُ ٱللَّهُ: ولذا كان الحق أن الميت المعذب فی قبره توضع فيه الحيوة بقدر مايحس بالألم والبنية ليست بشرط عند اهل السنة... والخلاف فيه ان كان بناء على انكار عذاب القبر امكن والا فلا يتصور من عاقل القول بالعذاب مع عدم الاحساس (فتح الباري ج ٤صـ ٤٦۰)بيروت.

**علامه شبير احمد العثماني** رحمه الله: وقوله: السلام عليكم اشارة الى انهم يعرفون الزاير ويدركون كلامه وسلامه (فتح الملهم ج ۱ صـ ٤۱۳).

**مفتي عزيزالرحمن** رحمه الله: په قبر کې د روح تعلق وي او اصل استقرار په عليين او يا په سجين کې وي. (فتاوى دارالعلوم ديوبند ج ۵ صـ ۲۸۹/۳۱۱).

**مولنا اشرف علي تهانوي** رحمه الله: په قبر کې د مړي سره د روح تعلق وي. (امداد الاحکام ج ۱ صـ ۸۱۸ ج ۵ صـ ۴۲۴) .

**مفتي رشيد احمد لدهيانوي** رحمه الله: دخاورې کېدلو څخه وروسته هم اعاده د روح په داسې طريقه چې مونږ وربانديې نه پوهيږو دالله تعالى د قدرت څخه خارجه نه ده (احسن الفتاوى ج ۴ صـ ۲۰۴).

**مولنا خير محمد جالندهري** رحمه الله : دسلفو يو مسلک د روح اعاده ده د حديث د ظاهر څخه هم همدا معلوميږي (خير الفتاوى ج ۱ صـ ۱۷۹).

**علامه انورشاه کشميري** رحمه الله : ثم السؤال عندي يكون بالجسد مع الروح (فيض الباري ج۱ ص۱۸۵).

**نواب قطب الدين** رحمه الله: مظاهر حق ج ۱ صـ ۱۸٦ )

**مولنا نصيرالدين الغور غشتوي** رحمه الله : حاشيه مشكوة ج ۱ صـ ۲٦ حاشيه ٤ ) ناقلا للمرقات وصـ ۲٥ ج٤)

**شاه عبدالعزيز محدث دهلوي** رحمه الله: خلاصه دا چې د بدن د تغير ځخه وروسته هم د روح ورسره تعلق پاتې کيږي (فتاوی عزيزي صـ۱۹۲ )

**مولنا خليل احمد سهارنپوري** رحمه الله : وتعاد روحه في جسده بعد دفنه فى القبر (بذل المجهود ج ٥ صـ ۲۸۸)

**مولنا ادريس کاندهلوي** رحمه الله: کله چې خلک دقبر ځخه واپس شي نو روح ورته را معاد شي (عقائد اسلام صـ۵۹ ).

**مفتي محمد شفيع** رحمه الله: د وفات او دفن کولو ځخه وروسته په قبر کې دوېم ځلې ژوند تقريبا دقران د لسو اياتونو، او دنبي ﷺ د اويا احاديثو متواترو ځخه ثابت دی چې د مسلمانانو لپاره پکې دشک کولو گنجايش نشته. (معارف القران ج ۵ صـ۲۴۸ ).

**مولنا زکريا** رحمه الله: ولامانع فى العقل من ان يعيد الله الحياة في جزء من الجسد او في الجميع على خلاف بين الاصحاب فيثيبه ويعذبه (اوجز المسالک ج ۲ صـ ۳۰۷ )

## د روح او دجسد قوي تعلق

الله تعالى په هر شي باندې قادر دی،که وغواړي روح بغير دجسد ځخه چلولی شي او جسد بغير د روح ځخه چلولی شي ، لکن د الله تعالى طريقه داده چې روح بغير دجسد ځخه نه چلوي، په دنيا کې روح دجسد په سترګو ليدل کوي، دجسد په ژبه غږيږي، دجسد په غوږونو اوريدل کوي، که دجسد سترګې ، غوږونه، او ژبه نه وي نوروح ړوند، کوڼ او ګونګی دی ، همدارنګه په أخرت کې هم د ارواحو سره داجسادو حشر کيږي: (وَالبعث بعد الموت) داجسادو حشر مرکزي عقيده ده الله تعالى فرمايي چې: (بَلٰى قٰدِرِيْنَ عَلٰى اَنْ نُّسَوِّيَ بَنَانَه) همدارنګه په عالم الارواح کې هم روح بغير دجسد ځخه نه چليدلو ، نو

ا الله تعالى ورته واړه واړه اجسام پيدا کړل ، له څرنګه چې مفسرينو د (ألست بربكم) په تفسير کې ليکلي دي ، په دې درې واړو عالمونو (عالم الدنيا، عالم الأخرت، عالم الارواح) کې د روح او دجسد په مابين کې تعلق ثابت دی اګر چې په تعلقاتو کې به يې فرق وي خو نفس تعلق يې يقيني دی، دمخکنيو، قرآني، نبوي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، او اجماعي دلايلو سره سره په تيرو دريو عالمونو باندې قياس هم ددې تقاضی کوي چې په عالم البرزخ او عالم القبر کې هم د روح او د جسد په مابين کې تعلق شته.

## انواع التعلق

اول تمهيد واوره! چې يو عالم الدنيا ده او بل عالم البرزخ دی په عالم الدنيا کې د روح او د جسد تعلق وي او په عالم البرزخ کې هم د روح او جسد تعلق وي، په دنيا کې جسم اصل او روح يې تابع دی، احوال اولاً په جسم واردېږي او ثانياً وبالتبع په روح واردېږي، لکه روح افزا شربت چې اولاً جسم ته لذت ورکوي او ثانياً روح ته لذت ورکوي، ځکه ورته روح افزا شربت وايي او په عالم البرزخ کې روح اصل او جسم يې تابع دی، احوال اولاً په روح واردېږي او ثانياً وبالتبع په جسم واردېږي، لکه په احتلام کې ټول حالات اولاً په روح باندې تيرېږي ، خو ثانياً وبالتبع جسم ته هم خوند حاصلېږي، دوهمه تمهيدي خبره دا واوره چې د روح تعلق د جسد سره په درې قسمه دی اول: تعلق التصرف ، دوهم: تعلق التدبير ، دريم: تعلق الحيات.

تعلق التصرف: يعنې داسې تعلق چې ددې په وجه جسم خوراک او څښاک کوي او ګرځي.

تعلق التدبير: يعنې داسې تعلق چې ددې په وجه په خپله په جسم کې وينه ګرځي او ددې په وجه د هضم نظام چلېږي او په خپله زړه حرکت کوي او ساه چلېږي.

تعلق الحيات: چې ددې په وجه جسم ژوندی وي، په عالم الدنيا کې په حالت د يقظت کې د روح او د جسم درې واړه تعلقه وي او په حالت د نوم کې دوه تعلقه وي تعلق التدبير او تعلق الحيات او په عالم البرزخ او قبر کې صرف يو تعلق وي چې تعلق الحيات دی.

د تمهيد څخه وروسته جواب:

کله چې د روح او د جسم تر منځ درې واړه تعلقات وي، نو په روح باندې وزن ډير وي ، نو د روح پرواز کم وي او څومره چې تعلق کمېږي همدومره د روح پرواز قوي کېږي ، په حالت النوم کې يو تعلق کم شي ، نو روح په ثانيه وو کې مکې مکرمې او مدينې منورې ته رسيږي او په عالم البرزخ کې تعلق ډير کم شي صرف يو تعلق الحيات پاتې وي نو د روح پرواز ډير قوي شي روح په عليين کې وي او دهغه ځای

څخه یې د جسم سره تعلق وي او په همغه علیین کې خبره بالذات اوري او د روح په تبع یې جسم هم اوري، په عالم الدنیا کې بالذات د جسم غوږ اوریدل کوي او بالتبع یې روح اوري د جسم او د روح درې واړه تعلقات دي، د روح پرواز او طاقت کم دی، لهذا نبي کریم صلی الله علیه وسلم د نزدې څخه هم د صحابي جواب وانه وریدو او بعد الوفات په عالم البرزخ کې د روح او د جسم تعلق ډیر کم دی یوازې تعلق الحیات دی، لهذا د روح پرواز او طاقت دومره زیات دی چې د روضې مبارکې په خوا کې ډیر په قلاره صلاة او سلام اوري.

## عالم القبر او عالم النوم

عالم القبر فی الجمله داسې دی لکه عالم النوم، له دې وجې علماء فرمایي چې: النوم أخ الموت انسان چې اوده شي نو دده روح قبض کړی شي، الله تعالی فرمایي چې: ﴿وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا﴾ دده د جسم ماشین بالکل معطل ښکاري، ددنیا د خلکو په نظر کې دده سترګې بندې وي، ژبه یې خاموشه وي، لاسونه او پښې یې بې حرکته وي او په حقیقت کې روح د جسد عنصري سره یو ځای په سیر او سیاحت باندې مصروف وي، دجسد عنصري په سترګو لیدل کوي، دجسد عنصري په غوږونو او ریدل کوي، دجسد عنصري په ژبه غږیدل کوي، دجسد عنصري په پښو باندې مزل کوي، په روح باندې چې کوم حالات تیریږي په هغو ټولو کې ورسره جسد شریک وي، له دې وجې کله اوده سړی وژاړي، کله وخاندي، نو لکه په عالم النوم کې چې جسد په کټ کې پروت وي، لکن بیا هم د روح سره سیر او حرکت، غم او خوشحالي کوي، نو همدارنګه په عالم القبر کې هم جسد په قبر کې پروت وي، لکن بیا هم د روح سره په غم او په خوشحالۍ، تنعیم او تعذیب کې شریک وي او لکه څرنګه چې د عالم النوم معاملات د عالم الدنیا د خلکو د نظر څخه پناه وي، حتی چې د أوده سړی په خوا کې ناست سړی هم پدې نه پوهیږي چې په دې أوده سړي باندې څه تیریږي، نو همدارنګه د عالم القبر معامله هم د عالم الدنیا د خلکو د نظر څخه پناه وي.

لاندې علماء وو پدې تصریح کړې ده چې عذاب او ثواب روح او جسد دواړو ته ورکول کیږي:

- مولانا عبدالحی، (عمدة القاري ج ۲ ص ۲۳۱، فتاوی عبدالحی ص ۸۲ مرقات شرح مشکو ا ص ۱۹۷) مولانا سیوطي (شرح الصدور ص ۸۲)
- مولانا ادریس کاندهلوي رحمه الله، (عالم برزخ ص (۲۳)

- امام غزالی رحمه الله ، (احیاء العلوم ج ۴ صـ ۴۸۴)
- مولانا زکریا رحمه الله ، (فضایل درود صـ ۳۷)
- مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله (التکشف حصه سوم صـ ۱۴)
- مولنا منظور نعماني رحمه الله (معارف الحدیث ج ا صـ ۱۸۶)
- علامه سندهي رحمه الله (زهر الربی حاشیه نسائي صـ ۱۰۹)
- ابن تیمیه رحمه الله (فتاوی ابن تیمیه ج ا صـ ۳۵۱)
- تفتازاني رحمه الله ، (شرح العقائد صـ ۹۸)
- شاه ولی الله الدهلوي (حجة الله البالغه ج ا صـ ۸، الفتاوی الکاملیه صـ ۸، قسطلاني شرح بخاري ج ۳ صـ ۳۸۵، انوار الباري ج ۳ صـ ۱۵۹)

داهل سنتو په علماوو کې لا تر اُوسه پورې هیڅ یو داسې خبره نده چې د ثواب او عذاب روح او جسد دواړو ته ورکول کیږي او دواړو ته دعذاب او دثواب صحیح صورت دادی چې ددواړو په مابین تعلق وي، اودغې تعلق ته حیات فی القبر وایي ، همدارنګه حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ او ابن عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ دسماع الموتی قایل دی (بخاري ج ا صـ ۱۸۳) حضرت انس رَضِیَ اللهُ عَنْهُ هم دسماع الموتی قایل دی ، بخاری ج اص (۱۸۳) حضرت ابو سعید خدري رَضِیَ اللهُ عَنْهُ دکلام المیت قایل دي (بخاری ج ا صـ ۱۸۴)

حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ابن عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ حضرت عایشه رضی الله عنها دعذاب المیت قایل دي (بخاري ج ا صـ ۱۷۱) حضرت عایشه رضی الله عنها دعلم او دفهم المیت قایله ده (بخاري ج ا صـ ۱۸۳، مسند احمد ج ۷ صـ ۲۴۴) حضرت براء بن عازب رَضِیَ اللهُ عَنْهُ داعادې د روح قایل دی (ابوداؤد ج ۲ صـ ۳۰۶) حضرت عمرو بن العاص رَضِیَ اللهُ عَنْهُ دأنس المیت قایل دی (مسلم ج ا صـ ۷۶)

حضرت انس ابن مالک دصلوة الانبياء في القبور قایل دی (مسلم ج ۲ صـ ۲۶۸) او سماع المیت ، کلام المیت، علم المیت، فهم المیت، صلوة المیت، اعادة روح المیت، تعلق الروح والجسد غواړي او دغه تعلق حیات فی القبر دی .

## د مماتیانو وسوسې او د هغې جوابونه

**(۱) فانقیل: بعضې مفسرین دحیات روحاني ذکر کوي؟**

**قلنا:** مفسرین چې دحیات روحاني ذکر کوي نو ورسره دحیات جسماني نفې نکوي ،بلکې هغوي دحیات فی القبر اودعذاب فی القبر صورت او نقشه بیانوي ، په دنیا کې جسد ظاهر او روح مخفي دی او دثواب او د عذاب په مسئله کې جسد اصل او روح یې تابع دی ، په دنیا کې چې خلک دجسماني اذیت ذکر کوي نو ددوي مقصد د روحاني اذیت نفې نه وي، او نه د روحاني اذیت نفې راځي ، په عالم البرزخ کې روح اصل او جسد یې تابع دی نو ددې نقشې دبیانولو لپاره خلک په روحاني عذاب او په روحاني حیات باندې تعبیر کوي.

**خلاصه:** دا چې لکه په دنیا کې چې دجسماني عذاب او حیات په ویلو سره دروحاني عذاب نفې کول حماقت دی، نو همدارنګه د روحاني عذاب او حیات په ذکر کولو سره دجسماني حیات او عذاب نفې هم حماقت دی.

**(۲)فانقیل: د اعادې د روح په باره کې د بعضې سلفو په کلام کې توقف ذکر شوی دی؟**

قلنا: دهغوي مراد په نفس اعاده کې توقف نه دی، بلکې په کیفیت د اعادې کې توقف دی.

**(۳)فانقیل: د بعضو عباراتو څخه نفې د اعادې رافهمیږي؟**

قلنا: په هغو عباراتو کې دنفس اعادې نفې نده، بلکې نفې د اعادې کاملې ده

**(۴) فانقیل: که په قبر کې حیات حاصل شي نو بیا خو دانسان لپاره درې ژوندونو نه راغلل** یو دونیوي ،بل برزخي او قبري او بل أخروي ، حالانکې ژوندونه دوه دي، الله تعالی فرمایي چې: ﴿رَبَّنَآ أَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ﴾

**قلنا:** دقبر ژوند دأخرت دژوند لپاره مقدمه ده مستقل ژوند نه دی، لکه دمور دګیډې ژوند چې ددنیا دژوند لپاره مقدمه ده مستقل ژوند نه دی، یا داسې ووایه چې دقبر ژوند ددنیا دژوند لپاره تکمله ده او دأخرت د ژوند لپاره مقدمه ده، نو کله ددنیا او کله داخرت دژوند په ضمن کې ذکر کولی شي.

۲- همدارنګه پدې ایت کې دحیاتینو څخه مراد حیات کامله او مطلقه دی حیات کامله او مطلقه دیته وایي چې د روح دجسد سره تعلق دتدبیر او دتصرف راشي او داسې حیاتونه دوه دي، یو په دنیا کې دی

اوبل په أخرت کې دى، په قبر کې حيات کامله مطلقه نه دى بلکې نوعٌ من الحيات دى. يعنې د روح د جسد سره تعلق الحيوة دى، لکن تعلق دتدبير او دتصرف نه دى.

۳- دمماتيانو په نيز دو نشد سه شد متل صادقيږي، ځکه چې د دوي په نيز دري حياته او دري مرګه دي، ځکه چې دوي وايي چې دمرګ څخه وروسته روح په بل جسد مثالي کې حلول کوي او دقيامت په ورځ د جسم مثالي څخه راويستلى شي نو دا د جسد مثالي مرګ شو نو د دوي په نيزيو دونيوي حيات شو بل دجسد مثالي او بل اخروي.

**(۵) فانقيل: اهل بدعت معتزله چې پنجپيريان، مماتيان، پتهريان، چهتروړيان او اشاعتيان ورته وايي د حيات فى القبر او د اعادې د روح دمتواترو احاديثو څخه دانکار لپآره بهانه کوي چې دا احاديث د قران څخه مخالف دي، ځکه چې په قران کريم کې د مماتيانو.**

**د پرويزي نظر مطابق، نفې داعادې ذکر شوې ده، الله تعالى فرمايي چې:** ( اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا ۚ فَيُمْسِكُ الَّتِيْ قَضٰى عَلَيْهَا الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الْاُخْرٰٓى اِلٰٓى اَجَلٍ مُّسَمًّى ۭ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ).

**قلنا:** د دې ايت دوه معنى ګانې دي: يوه د انکار د احاديثو لپاره اشاعت په جامه کې د منکرينو د احاديثو اختراعي معنى ده او بله داحاديثو او د اهل سنت والجماعت دعقيدې مطابق صحيح معنى ده، ذ اشاعت په جامه کې منکرين داحاديثو د (يمسک) څخه امساک الروح عن الجسد الى يوم القيمة مراد وي، يعنې دمرګ څخه وروسته تر قيامته پورې الله تعالى روح جسد ته نه راليږي او امساک الروح عن الجسد د اعادې د روح الى الجسد او دتعلق الروح بالجسد سره منافي دى، لهذا دوي وايي چې داعادې د روح احاديث منکرت دي (معاذ الله) او اهل السنت والجماعت فرمايي چې د اعادې د روح الى الجسد احاديث صحيح دي او د ايت سره يې هيڅ تعارض نشته، ځکه چې د ايت معنى امساک الروح عن الجسد ندى، بلکې د ايت معنى ده امساک الانسان عن العود الى الدنيا، يعنې مکمل انسان (روح مع الجسد) په عالم البرزخ کې حصارول او بيا عالم الدنيا ته نه راليږل، د ټول ايت معنى داسې ده چې الله تعالى دمرګ په وخت کې نفسونه قبضوي او دخوب په وخت کې هغه نفسونه هم قبضوي د کومو چې مرګ نه دى راغلى، بيا هغه نفسونه حصاروي په کومو چې دمرګ حکم شوى دى، او پاتې نفسونه تريو معين وخت پورې خوشې کوي، پدې کې هغو خلکو ته دلايل دي چې دفکر کولو عادت يې وي، خلاصه دا چې الله تعالى مکمل انسان (روح مع الجسد) پخپله قبضه کې اخلي، بيا چې د چا د مرګ فيصله شوې وي هغه عالم الدنيا ته نه راليږي د عالم الدنيا څخه يې بندوي او په عالم البرزخ کې

يې حصاروي، نو د يمسک څخه امساک الروح ندی مراد ،بلکې امساک الانسان مراد دی.

## د يمسک لپاره د مماتيانو په معنی اعتراضات

(۱)اول اعتراض: دادی چې داشاعت په جامه کې منکرين دا حاديثو چې وايي چې دا ايت دهغو احاديثو سره معارض دی په کومو کې چې اعاده د روح الی الجسد ذکر شوی ده ، نو بيا مونږ وايو چې بيا ولې دا ايت د ارسال حلولي الی الجسد المثالي سره معارض نه دی ؟مماتيان خو ارسال حلولي د روح الی الجسم المثالي مني، تعجب دی چې د احاديثو د شمنۍ دومره ړانده کړي دي چې ايت دهغې اعادې سره معارض ګڼئ کومه چې په صحيحو متواترو احاديثو کې ذکر شوې ده، چې جسم عنصري ته اعاده ده او دهغې اختراعي ارسال حلولي سره يې معارض نه ګڼئ چې تاسو فرض کړې ده چې په جسم مثالي کې حلول دی.

ستاسو دمفروض حلول اعادې او په صحيحو احاديثو کې د يقيني اعادې څخه فرق دی چې امساک ديوې سره معارض او دبلې سره ندی معارض؟

(۲) دوهم اعتراض: که د (يمسک) څخه امساک الروح عن الجسد العنصري مراد شي، نو خپله د اشاعتي منکرينو د حديثو دعقيدې عمارت به راونړيږي، ځکه چې په (فَيُمْسِكُ الَّتِيْ قَضٰى عَلَيْهَا الْمَوْتَ)کې ديمسک او دقضی مفعول يو دی، په چا چې امساک واقع شوی دی په همغه فيصله د مرګ شوې ده، نو چې امساک د روح شوی دی، نو فيصله د مرګ به هم په روح شوې وي،يعنې روح به مړ شوی وي او چې روح مړ شو نو د مماتيانو روحاني زندګي ختمه شوه او چې روح مړ شو، نو د مماتيانو جسدمثالي هم مړ شو ، ځکه چې د مړو روح په وجه خو مړ جسد مثالي نه ژوندی کيږي او چې روح او جسد مثالي دواړه مړه شو نو برزخي زندګي هم ختمه شوه، داشاعتيانو معتزله وو د مذهب عمارت په روح چليږي او چې روح مړ شو نو دمماتيانو د مذهب عمارت راوړنړيدلو.

(۳) دريم اعتراض: اشاعتي معتزله وايي چې دامساک الروح عن الجسد له وجې جسد ميت (مړ) دی، نو ددوي په نيز دميت مصداق يواځې جسد شو ، حالانکې يواځې جسد ميت ندی ،بلکې ميت مکمل انسان (روح مع الجسد ) دی په (انک ميت) کې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ذات يعنې روح مع الجسد مجموعې سره د مرګ وعده شوې ده ، د ابو بکر صديق رضی الله عنه په خطبه کې راځي چې (فان محمد قد مات) محمد د مکمل انسان يعنې روح مع الجسد نوم دی.

(۴) څلورم اعتراض: اشاعتي معتزله جسد ته مړ وايي او روح ته ژوندی وايي، نو نيم انسان مړ ګڼي اونيم ژوندی ګڼي.

(۵) اعتراض: اشاعتي معتزله جسد په دنيا کې ګڼي او روح په برزخ کې ګڼي او بيا وايي چې اعاده د روح جسد ته اعاده الی الدنيا ده ، حالانکې مکمل انسان يعنې جسد مع الروح دواړه عالم البرزخ ته تللي دي او د همدې مکمل انسان (روح مع الجسد) امساک د عالم الدنيا څخه په عالم البرزخ کې شوی دی.

فائده: که د يمسک څخه امساک الروح عن الجسد مراد شي، نو بيا مونږ وايو چې امساک الروح عن الجسد بالکليه ندی مراد ، بلکې خاص امساک مراد دی چې هغه امساک عن تعلق التصرف والتدبير الدونيوي دی ،علامه الوسي فرمايي چې: يقبضها عن الأبدان، بأن يقطع تعلقها، تعلق التصرف (روح المعانی تحت هذه الآية) يعنې داسې اعاده او ارسال يې نه کيږي چې دهغې په وجه د دونيا والا مخکني حالت ته راشي.

داسې تعبير هم کولی شي چې دامساک الروح څخه مراد د اعادې کاملې نفې ده چې دهغې په وجه حيات کامله حاصليږي او انسان دونيوي حالت ته راګرځي.

**(٦) فانقيل: چې حيات فی القبر ثابت شو نو بيا ورته ميت ولې وايئ؟**

**قلنا:** ميت ورته باعتبار عالم الدنيا وايو او ژوندی ورته باعتبار عالم البرزخ وايو .

**(۷) فانقيل: چې بعضې اهل سنت خو حيات فی القبر ته حيات دونيوي وايي دهغوي څخه حکم دی؟**

**قلنا:** دهغوي مقصد دانه دی چې دا اموات په عالم الدنيا کې ژوندی دی، بلکې دهغوي مقصد دادی دامواتو همدغه دونيوي عنصري اجسام ژوندي دي او همدا دونيوي اجسام په ثواب او عذاب کې شامل دی.

خلاصه داچې: په قران کريم کې حيات فی القبر ثابت دی د(يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْاٰخِرَةِ ۚ وَيُضِلُّ اللّٰهُ الظّٰلِمِيْنَ ۙ وَيَفْعَلُ اللّٰهُ مَا يَشَآءُ ۝) په تفسير کې هر سني مفسر حيات فی القبر ليکلي دي او مفتي شفيع صاحب ددې ايت لاندې ليکلي دي چې حيات فی القبر دقرآن د لسو ايتونو او دنبي کريم صلی الله عليه وسلم د اويا وو متواترو احاديثو څخه ثابت دی، نورو ډيرو محققينو علماوو هم تصريح کړې ده چې حيات فی القبر.

په احاديثو کې په تواتر ثابت دی، ابن تيميه رحمه الله فرمايي چې الاحاديث الصحيحة المتواترة تدل على عود الروح الى البدن وقت السؤال، (بحواله شرح النزول صـ ۵۱) شوکاني ليکي چې: وقد وردت بذلک احاديث کثيرة بلغت حد التواتر (نيل الاوطار ج ٤صـ ۵۷)

په حيات فی القبر اجماع هم ده،وقد اجمع اهل السنة على اثبات الحيات فی القبور (شفاء السقام صـ ٤۲۵)

او په ايت کې (يمسک) د اعادې او دتعلق سره منافي ندی، ځکه چې د اعادې او تعلق با وجود دانسان ميت امساک عن عالم الدنيا راغلی دی که چيرته انسان عالم الدنيا ته راغلی وی، نو بيا به د امساک سره منافات راغلی وو.

**(۸) فانقيل: چې دمرګ څخه وروسته جسد د ميّت فرد دی او که نه؟**

قلنا: چې د مرګ څخه وروسته مکمل انسان (روح مع الجسد) باعتبار عالم الدنيا د ميت فرد ګرځي يعنې مکمل انسان (روح مع الجسد) باعتبار عالم الدنيا ميت دی او باعتبار عالم البرزخ ژوندی دی.

ددې زماني معتزله دموت نسبت جسم ته کوي او دحيات نسبت روح ته کوي جسم ته مړ وايي او روح ته ژوندی وايي ،يعنې نيم انسان ته مړ وايي او نيم ته ژوندی وايي ، حالانکې په انک ميت کې د رسول الله صلی الله عليه وسلم ذات (يعنې روح مع الجسد مجموعي) سره د مرګ وعده شوې ده، دابو بکر صديق په خطبه کې راځي چې (فان محمداً قد مات) محمد مجموعې د روح او جسد ته وايي ، نو مجموعه د ميت فرد شو.

**(۹) فانقيل: چې دميت په باره کې دارسال الروح عقيده صحيح ده او که د امساک الروح؟**

**قلنا:** چې په سوال کې دوه مغالطې دي، اول دا چې ميت يوازې جسد ندی ، بلکې ميت روح مع الجسد يعنې مکمل انسان دی او په سوال کې يوازې جسد ته ميت ويلي شوي دي، ځکه چې د امساک الروح عن الجسد څخه دمماتيانو په نيز دوهم تعبير امساک الروح عن الميت دی، نو ميت فقط جسد شو او بل دا چې په سوال کې ديمسک معنی په امساک الروح شوی ده، حالانکې د يمسک معنی امساک الانسان عن عالم الدنيا دی،ځکه چې د و الذی قضی عليه الموت مصداق مکمل انسان دی.

خلاصه چې د پنچپيريانو د امساک الروح عقيده غلطه ده، ځکه چې هغوي امساک الروح عن الجسد الی يوم القيامة بالکلية مراد وي او دا معنی د ارسال الروح سره منافي ده، او د امساک صحيح معناګانې دوه دي.

اوله: امساک الانسان ، دوهمه: امساک الروح عن تعلق التصرف الدونيوي، او دا دواړه معنی ګانې د نفس ارسال الروح سره منافي ندي ،بلکې د کامل ارسال سره منافي دی چې دهغې په وجه انسان دونيوي حالت ته را وګرځي.

**(۱۰) فانقيل: چې دمرګ څخه وروسته دونيوي ادراک پاتې کيږي او که ختميږي؟**

**قلنا:** د مرګ څخه وروسته لکه چې د دونيوي ادراک زوال يقيني دي،نو همدارنګه د برزخي ادراک اغاز هم يقيني دی، چې دهمدې برزخي اراک په وجه ورسره په قبر کې حساب کيږي نو په عالم الدنيا کې دحيات په وجه ورته دونيوي ادراک ثابت وو او س په عالم البرزخ کې د حيات په وجه ورته برزخي ادراک ثابت شو.

**(١١)فانقيل: چې دمماتيانو په بعضی کتابونو کې نوع من الحيوة ذکر شوی دی؟**

**قلنا:** چې دا سفسطه ده ځکه چې مماتيان اعاده د روح نه مني وګوره (مسلک الاکابر ص ١٢،بين القوسين وغيره)نو نوعٌ من الحيوة بغير د اعادې څخه څرنګه راغلو؟

**(١٢) فانقيل: چې دمماتيانو په بعضې کتابونو کې دهمدې دونيوي عنصري جسم سره د ثواب او دعذاب تعلق ذکر شوی دی؟**

**قلنا:** مماتيان بالذات معذّب او منعَم جسم مثالي ګڼي چې هيڅ عمل يې ندی کړی، او کوم مماتيان چې وايي چې ددې جسم سره د ثواب او عذاب تعلق شته نو دا سفسطه ده ځکه چې بغير د اعادې د روح او بغير د تعلق د روح څخه جسد عنصري ته ثواب يا عذاب بې فايدې دی.

علامه خيالي رحمه الله فرمايي چې وجوز بعضهم تعذيب غير الحی ولاشک أنه سفسطة (ص ١١٩)

علامه ابن القيم رحمه الله فرمايي چې: وقال الصالحی عذاب القبر يجري على المؤمن من غير رد الارواح الى الاجساد و هذا قول جماعة من الكرامية .(كتاب الروح ص ٧٨)

علامه ابن الهمام رحمه الله فرمايي چې : (وَالْخِلَافُ فِيهِ إِنْ كَانَ بِنَاءً عَلَى إِنْكَارِ عَذَابِ الْقَبْرِ أَمْكَنَ، وَإِلَّا فَلَا يُتَصَوَّرُ مِنْ عَاقِلٍ الْقَوْلُ بِالْعَذَابِ مَعَ عَدَمِ الْإِحْسَاسِ (فتح القدير ج ٤ص ٤٦٠) بيرت

**(١٣) فانقيل: چې دشرح عقائد د عبارت څخه خو معلوميږي چې د ميت د ثواب او دعذاب لپاره اعاده نه ده ضروري،** د شرح عقائد عبارت داسې دی چې: والجواب أنه يجوز أن يخلق الله تعالى فی جميع الأجزاء او فی بعضها نوعاً من الادراک والحيوة قدر مايدرک ألم العذاب او لذة التنعيم وبهذا لايستلزم اعادة الروح فی البدن (شرح العقائد مع النبراس ص ٢٠٨)

**قلنا:** په (هذا لايستلزم اعادة الروح فی البدن) کې د مطلق اعادې نفي نه ده، بلکې د اعادې کاملې نفي ده او مونږ هم د اعادې کاملې د نفي قائل يو، داسې اعاده نه کيږي چې ميت د دنيا والا مخکني حالت ته راشي، په همدې ځای باندې علامه عبدالعزيز پرهاري رحمه الله په هغه چا رد کوي چې د شرح العقائد د عبارت څخه نفی داعادې را فهموي، فرمايي چې: (وعندی فی هذا الجواب بحث وهو أن الاحاديث الصحيحة ناطقة بأن الروح يعاد فی الجسد عندالسؤال ،فالجواب بانكار الاعادة غير موجه (شرح العقائد مع النبراس ص ٢٠٩)

وروسته بيا د شرح العقائد د عبارت صحيح تشريح كوي چې د شرح العقائد د عبارت معنى نفي د اعادې كاملې ده چې دهغې په وجه حيات كامله حاصل شي او ميت د دونيا والا حالت ته را وګرځي ، هغه فرمايي چې:
وحاصل الجواب أن المستلزم لاعادة الروح (اى الكاملة) انما هو الحيوة الكاملة وأما ادراک الألم واللذة فيمكن أن يحصل بأدنى تعلق الروح بالبدن سواء كان الروح فوق السماء السابعة او محبوساً فى سجين (شرح العقائد مع النبراس صـ ۲۰۹)
د ( ان المستلزم لاعادة الروح) سره مونږ د (الكاملة) تقدير ځكه ولګولو، چې مخكې صاحب دنبراس نفس اعاده دصحيحو احاديثو څخه ثابته منلې ده،په همدې صفحه كې يې مخكې فرمايلي دي چې (ان الاحاديث الصحيحة ناطقة بأن الروح يعاد فى الجسد عند السؤال) همدارنګه وروسته يې فرمايلي دي چې: فيمكن أن يحصل بأدنى تعلق الروح بالبدن.

**(۱۴) فانقيل: چې په شرح العقائد كې خو يې دومره ادراک او حيات منلى دى چې دهغې په وجه درد دعذاب او لذة د تنعيم محسوسوي (قدر ما يدرک ألم ا لعذاب او لذة ا لتنعيم) (شرح العقائد مع ا لنبراس صـ ۲۰۹)**

او تاسو خو زيات حيات ثابتوئ چې مړى د خلكو دپښو كشارى اوري، دنږدې څخه دخلكو سلام او كلام اوري او جواب وركوي وغيره ؟

**قلنا:** شرح العقائد والا چې څومره حيات ليكلى ، نو په هغې يې دوه مدرکات مرتب كړل، قدر ما يدرک ألم العذاب او لذة التنعيم، لكن حصر يې ندى كړى او نفي دغير يې نده كړې دخفق النعال د اوريدلو څخه يې انكار ندى كړى، د سلام د اوريدلو څخه يې انكار نه دى كړى، فقهاء و چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم دقبر مبارک اداب ليكلي دي، هلته يې د سلام ، سماع النبي صلى الله عليه وسلم عند القبر او داستشفاع وغيره ذكر كړى دى.

**(۱۵) فانقيل: چې په المهند كې يې دنبي كريم صلى الله عليه وسلم دحيات فى القبر په باره كې ليكلي دي چې دونيوية لا برزخية؟**

**قلنا:** د المهند په عبارت كې مخكې توضيح شته چې (لا برزخية) دا معنى چې دنبي كريم صلى الله عليه وسلم برزخي حيات داسې نه دى لكه دعامو خلكو ، بلكې ډير اوچت دى.

**(۱٦)فانقيل: چې د اهل الدنيا او اهل البرزخ په مابين کې تعلق شته او که ختم دی؟**

**قلنا:** مماتيان وايي چې داهل القبور داهل الدنيا سره تعلق بالکل منقطع کيږي داهل الدنيا خبره اهل القبور ته نه رسيږي او داهل القبور خبره اهل الدنيا ته نه رسيږي ، حالانکې دا خبره غلطه ده ځکه چې بعضې أمور خو منقطع کيږي ، لکن ټول نه منقطع کيږي دحبيب النجار خبره اهل الدنيا ته راورسيدله (يٰلَيْتَ قَوْمِيْ يَعْلَمُوْنَ ۙ بِمَا غَفَرَ لِيْ رَبِّيْ وَ جَعَلَنِيْ مِنَ الْمُكْرَمِيْنَ ۝) د شهيدانو ارمان وو چې اهل الدنيا خبر شي چې مونږ ژوندي يو او په نعمتونو کې يو الله تعالى د دوي خبره اهل الدنيا ته را ورسوله چې: (وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ ۝) په اثارو کې راځي چې کوم صحابي به وفات کيدلو نو بل صحابي به ورته ويل چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم ته زمونږ سلام وايه ، همدرانګه د اهل الدنيا سلام اهل القبور ته رسيږي، د اهل الدنيا دعا اهل القبور ته فايده ورکوي، همدرانګه د ايصال الثواب عقيده هم صحيح ده، دخفق النعال اواز هم اوري، په حديث کې راځي چې ان كسر عظم المؤمن ميتا مثل كسره حيًا (مسند احمد ج ۷صـ ۸۷) همدارنګه د انسانانو اعمال هم خپلو خپلوانو ته پيش کولی شي ، ان اعمالكم تعرض على موتاكم ( كتاب الزهد لابن مبارک ص( ٤٢)

همدارنګه نکيرين دعالم الدنيا افراد دي، او سوالونه يې اهل البرزخ (متوفی ګان) اوري چې من ربک؟ مادينک؟ او من نبيک؟ دی او د أهل البرزخ جوابونه چې: ربی الله ، دينی الاسلام، نبی محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی نکيرين اوري.

**(۱۷) فانقيل: امواتو ته کله اعاده د روح کيږي؟ يوه دقيقه بعد که يو ساعت بعد او که يوه ورځ بعد؟**

**قلنا:** ۱- اعاده د روح جسد عنصري ته او تعلق د روح د جسد عنصري سره قطعي عقيده ده لکن تاريخ د اعادې الله تعالى ته معلوم دی، لکه قيامت يقيني دی، لکن تاريخ يې الله تعالى ته معلوم دی، ديوې عقيدې جزئيات او تفصيلات چې نه وي معلوم دهغې ځخه په اصل عقيده اثر نه غورزيږي.

۲- د پنجپيريانو کتاب ، نداء حق ص(۴۴۵) کې ليکي چې د وفات ځخه وروسته د نبي کريم صلى الله عليه وسلم روح په يو جسم مثالي کې واچولی شو چې دکافورو ځخه جوړ شوی وو ، نو پنچپيريان دې ووايي چې دا روح يې ځومره موده بعد پدې جسم مثالي کې واچولو .

## (۱۸) (دمحمد انورشاه الكشميري رحمه الله عبارت)

مماتيان وايي چې محمد انورشاه الكمشيري رحمه الله فرمايي چې: ثم لاهل السنة قولان، قيل ان العذاب للروح فقط، وقيل للروح والجسد (العرف الشذى بر هامش ترمذى)(۳۱۷)

ددې څخه معلوميږي چې څوک چې جزاء او سزاء صرف روح ته مني هغه اهل سنت والجماعت دى.

۱- شاه صاحب وسيع النظر عالم دى كيدلى شي چې داسې څوک به يې له نظره تير شوى وي چې فقط روح ته د جزاء او سزاء قايل وي او په ظاهر به يې ځان ته اهل سنت ويلو، كه نه حقيقت دادى چې دجمهورو اهل سنتو په نيز جزاء او سزاء مكمل انسان (روح مع الجسد) ته ميلاويږي.

۲-شاه صاحب خو وروسته متصل فرمايلي دي چې: والمشهور الثاني اختاره اكثر شار حى الهداية وهو المختار (العرف الشذي بر هامش ترمذي صـ ۱۳۷)

۳-شاه صاحب مخكې ليكي چې: وان صار البدن ذرة فى الدنيا فان الشعور لكل شيء عندجمهور الأمة وتفرد ابن حزم الأندلسي.

گوره شاه صاحب دې ته د ابن حزم تفرد وايي او تفرد د اهل سنت والجماعت مذهب نه شي كيدلى.

۴- شاه صاحب فرمايي چې: اول مذهب دادى چې عذاب فقط روح دى ، حالانكې دا خپله دمماتيانو مسلک هم نه دى، چې عذاب فقط روح ته دى ، بلكې مماتيان روح او جسد مثالي ته د عذاب قايل دي، نو كه بالفرض دا دواړه د اهل سنتو مسلكو نه شي بيا هم مماتيان اهل سنت ندي ، ځكه دوي ددې دواړو په خلاف وايي چې عذاب روح مع الجسد المثالي ته دى.

او كه وايي چې صوفيه هم جسد مثالي مني، نوبيا مونږ وايو چې دمماتيانو، مسلک د صوفيه څخه هم مخالف دى، ځكه چې صوفيه اعاده د روح جسد عنصري ته مني.

۵- په اشاعتيانو كې يومركزي مبلغ تير شوى دى په نوم داحمد سعيد ملتاني ، هغه عنايت الله شاه مماتي ، قاضي شمس الدين او مولانا غلام الله خان صاحب ته بربنډې كنځلې كولې ، وگوره دمماتيانو كتاب ، (خس كم جهان پاک صـ ۱۱۶، صـ ۱۱۷ په صـ ۷۵) ليكي چې احمد سعيد به د مماتيانو مؤسس عنايت الله شاه گجراتي ته مرتد ويلې، او جمهور اشاعتيان ، عنايت الله شاه ته خپل امام وايي او س نو ايا دا ويل صحيح دي چې: ( ثم لاهل الاشاعت فى عنايت الله شاه قولان الأول أنه مرتد والثاني أنه امام الموحدين؟)

مماتیان به پخپله وایي چې دا داحمد سعید تفرد دی دجمهورو اشاعتیانو په نیز مردود دی، نو همدارنګه محمد انور شاه رحمه الله چې اول قول ته تفرد ویلی دی نو دا دجمهورو په نیز مردود قول دی.

**(۱۹)فانقیل: د یوحدیث څخه معلومیږي چې اعادة الروح بـه دقیامت پـه ورځ کیـږي** کعب بن مالک رضي الله عنه فرمایي چې: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ الأَنْصَارِيِّ رضي الله عنه أَنَّهُ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَاهُ كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ رضي الله عنه كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ «إِنَّمَا نَسَمَةُ الْمُؤْمِنِ طَيْرٌ يَعْلُقُ فِي شَجَرِ الْجَنَّةِ حَتَّى يُرْجِعَهُ اللَّهُ إِلَى جَسَدِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ (موطاء امام مالک باب جامع الجنائز ص ۲۲۱)

**قلنا:** قال العلامة المحدث علی القاری رحمه الله: فِي شَجَرِ الْجَنَّةِ حَتَّى يُرْجِعَهُ اللَّهُ فِي جَسَدِهِ) أَيْ: يَرُدَّهُ إِلَيْهِ رَدًّا كَامِلًا فِي بَدَنِهِ. (يَوْمَ يَبْعَثُهُ (مرقات، باب ما یقال عند من حضرة الموت)

**(۲۰) فانقیل: چې صوفیه وو دجسم مثالي ذکر کړی دی،** نو اعاده د روح جسم مثالي ته کیږي؟

**قلنا:** ۱-دجسم مثالي ذکر په قران اوحدیث کې نه شته او د صوفیه وو اقوال د عقیدې دلیل نه شي کیدلی.

۲- صوفیه چې دجسم مثالي قایل دی،نو ورسره اعاده د روح جسم عنصري ته هم مني او مماتیان جسم عنصري ته مړ وایي.

۳- جسم مثالي مستقل جسم ندی، بلکې دا د روح دوهم نوم دی، یعنې بعضې صوفیه وایي چې د روح دوه نومونه دي یو روح او دوهم جسم مثالي.

**(۲۱) فانقیل: کوم انسان چې لېوه خوړلی وي او بیا دده جسم ته عذاب میلاو شي نو دا لیوه ورسره ولې نه تکلفیږي ؟**

**قلنا:** عذاب د مړي جسم ته ورکول کیږي لیوه ته نه ورکول کیږي ، لکه دیو انسان په ګیډه کې چې چنجي وي او ډاکټر دچنجیو دوا ورکړي نو په چنجیو قیامت تیریږي خو انسان خبر هم نه وي.

**(۲۲) فانقیل: چې د حیات فی القبر د عقیدې والا به د یو څو ورځو لپاره په قبر کې واچوو بیا به وګورو چې ژوندی پاتې کیږي او که نه ؟**

**قلنا:**۱- د عالم الدنیا او عالم القبر والبرزخ په ژوندونو کې فرق دی، په قبر کې دعالم القبر او عالم البرزخ ژوندوي، د عالم الدنیا ژوند نه وي.

۲- دمور په ګیډه کې خو مماتیان هم ژوند مني نو مونږ به د حیات فی القبر څخه منکرین دخپلو خپلو مورګانو په ګیډو کې د یو څو ورځو لپاره واپس داخل کړو بیا به وګورو چې ژوندي پاتې کیږي او که نه؟ دلته به

مماتيان هم وايي چې ددنيا ژوند کې دمور دګېډې د ژوندکي څخه جدا ده، نو همداسې دعالم الدنيا ژوندکي د عالم القبر والبرزخ د ژوندکي څخه جدا ده.

**(۲۳) فانقيل: چې جسم ته حيات فى القبر ثابت دى،نو بيا يې ښځه ولې کونډه ده؟**

**قلنا:۱-** چې حيات فى القبر په عالم البرزخ کې ژوند دى او ښځه يې په عالم الدنيا کې ژوندۍ ده ،نو عالمونه بدل دي، خکه يې ښځه کونډه ده.

۲- حيات برزخي خو مماتي هم مني ،لکن جسم مثالي ته ، نو دمماتيانو ښځې ولې کونډې کيږي د خاوندانو اجساد مثاليه خو يې ژوندي دي.

**لطيفه:** د مماتيانو دښځو دوه خاوندان وي، يو يې دخاوند جسد عنصري، دوهم يې دخاوند جسد مثالي.

## دحيات فى القبر څخه دمنکر ينو(اشاعتيانو)حکم

د جسم لپاره عذاب القبر او حيات فى القبر دقرآن ، سنت، او داجماع الأمت څخه ثابت دي ، لهذا دا عقيده ددين دضرورياتو څخه ده او ددې څخه منکر کافر دى ، علامه ابن تيميه رحمه الله فرمايي چې: دجسم لپاره دثواب او دعذاب څخه منکر کافر دى،(بل العذاب والنعيم على النفس والبـدن باجمـاع المسـلمين) مخکې ليکي چې: فلاسفه چې د دې عقيدې څخه انکار کوي هغه کـافر دى،(مجموع الفتـاوى لابـن التيميه، ج۴ص ۱۴۶، همدارنګه ابن قيم رحمه الله په کتاب الروح ص(ص۷۲، ص ۱۷۵) کې ليکي چې: بـل العذاب والنعيم على النفس والبدن جميعا باتفاق أهل السنة ) او مخکې کې ليکي چې فلاسفه چې ددې عقيدې څخه منکر دي هغه په اجماع د مسلمانانو کافر دى.

علامه طاهر بن أحمد الحنفي فرمايي چې: ولا يجـوز الصـلوة خلـف مـن ينكـر شـفاعة النـبى ﷺ وينكر كرام الكاتبين ، وعذاب القبر كذا من ينكر الرؤيـة لانـه كافـر (خلاصـة الفتاوى ج ١ص ١٤٩، فتح القدير ج ١ص ٢٤٧، تمهيد ص ١٢٥)

بحر العلوم مولانا عبد العلي رحمه الله فرمايي چې منکر الشفاعة لاهل الکبائر وعذاب القبر وکرام الکاتبين کافر ،(رسايل بحر العلوم ص۹۹،)او مخکې ذکر شو چې انکار په دوه قسمه دى، يو صراحةً دى ،لکه قديم معتزله يې چې کوي او بل په منافقانه انداز باندې دى ،لکه جديد معتزله مماتيان يې چې کوي.

علامه بدرالدين عيني الحنفي رَحِمَهُ اللَّهُ د صحيح البخاري په شرحه کې فرمايي چې: من انكر الحياة فى القبر وهم المعتزلة، (عمدة القاري، كتاب المناقب، باب مناقب أبى بكر، ج ۶ص ۶۰۱)مکتبه رشيديه کوئټه.
په قبر کې د ژوند څخه معتزله منکر دي، نو اشاعتيان مماتيان معتزله شو.

**د اشاعتي مماتيانو پسې لمونځ مکروه تحريمي دی:**

۱-محمد انورشاه الكشميري رَحِمَهُ اللَّهُ په اكفار الملحدين (ص۳۸) کې ليکي چې: من صلى خلف المعتزلى يعيد صلوته.
چا چې د معتزلي په اقتداء کې لمونځ وکړو ،لمونځ به راګرځوي، انتهى
او اشاعتيان معتزله دي، ځکه چې د حياة فى القبر څخه منکر دي او د حيات فى القبر څخه منکر معتزله دي، (عمدة القاري ج ۶ص ۶۰۱)

۲-حضرت مولانا ابو احمد نور محمد تونسوي رَحِمَهُ اللَّهُ د ديوبند د دوه ويشتو معتمدو مدارسو فتوې راجمع کړي دي چې د اشاعتيانو پسې لمونځ مکروه تحريمي دی، د کتاب نوم يې دی (عذاب قبر کی صحیح صورت کی منکر کا شرعی حکم)

۳- مولانا يوسف لدهيانوي شهيد رَحِمَهُ اللَّهُ د اشاعتيانو په باره کې څلور فتوې يو ځای ليکلې دي چې:(۱) وہ میری اکابر کے نزدیک گمراہ ہے(۲) اس کے اقتداء میں نماز پڑھنا جایز نہیں(۳) اس کے تقریر سننا جایز نہیں (۴) اس کے ساتھ کسی قسم کا تعلق جایز نہیں ہے (اپ کی مسائل اور انکا حل تخریج شدہ ج ا ص- ۲۹۹)
(۱)اشاعتيان ګمراهان دي (۲) لمونځ ورپسې نه دی جايز(۳) دتقريرونو اوريدل يې نه دي جايز(۴) هر قسم تعلق ساتل ورسره ناجايز دی.

۴- د رائونډ د تبليغي مرکز امام، مولنا محمد جميل د جامعه اشرفيه څخه فتوی اخستې چې د اشاعتيانو پسې لمونځ نه کيږي، که چا کړی وي واپس راګرزول وربانديې واجب دي، ځکه چې دا اهل بدعت دي، دا فتوی په(www.ahnaf media.com) څخه حاصله کړئ.

۵-د دارالعلوم ديوبند فتوی ده چې د حيات الانبياء څخه دمنکر په اقتداء کې لمونځ نه کيږي، (تسكين الصدور ص۲۹، ص۵۱)

۶- د جامعه خير المدارس ملتان فتوه ده چې دحيات الانبياء څخه دمنکر امام په اقتداء کې لمونځ نه کيږي (خير الفتاوی)

۷- په فتاوی مفتي محمود کې ليکي چې: دحيات الانبياء څخه دمنکر په اقتداء کې لمونځ نه کيږي (فتاوی مفتي محمود ج ۱ص ۳۵۳) که چا کړی وي واپس راګرځول يې واجب دي.

۸- دجامعه الرشيد مفتي ابو لبابه فتوی په څوارلسو صفحو کې چاپ شوې ده چې دحيات الانبياء څخه دمنکر په اقتداء کې لمونځ نه کيږي، دمحلې په خلکو لازمه ده چې داسې امام معزول کړي.

فانقيل: چې په فتاوی حقانيه (ج۱ص ۴۳۰) کې يې ليکلي دي چې مماتيان هم سنيان دي؟

قلنا: فتاوی حقانيه د ديوبند علماوو مرتبه کړې ده، لکن متاسفانه چې په فتاوی حقانيه کې دا فتوی دمفتي محمديوسف ده، چې مودو د مودودي نظرياتو د دفاع له وجې يې د دار العلوم حقانيې څخه خارج کړی وو، علاوه لا دا چې په فتاوی حقانيه، کتاب العقائد کې د حيات النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ او دسماع النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ عند القبر واضح الفاظ موجود دي.

❋ ❋ ❋

# حيات الأنبياء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ او سماع النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عند القبر


مؤلف: الشيخ ابو [illegible] رحمه الله [illegible]

كاتب: تلميذ الشيخ مولوی هدايت الله [illegible]

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبيّ بعده.

امابعد!

## داهل سنت والجماعة مسلک

داهل سنت والجماعت د مسلک خلاصه په لنډو ټکو کې داده:

۱-دقران کريم د قطعي نصوصو په رڼا کې نه نبي ﷺ او په ټولو انبياو عليهم السلام باندې يو ځلې دمرګ راتلل يقيني دي او د دې څخه منکر کافر دی، قال الله تعالى: (كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ) وقال الله تعالى: (اِنَّكَ مَيِّتٌ وَّاِنَّهُمْ مَّيِّتُوْنَ) په اول ايت کې د هر انسان سره د مرګ وعده شوې ده او په دوهم ايت کې دنبي ﷺ سره خصوصاً د مرګ وعده شوې ده، لکن دنبي ﷺ د مرګ د وقوع ذکر په قرآن کې نه دی راغلی.

۲-دصحيحو احاديثو او دامت د اجماع څخه دا خبره ثابته ده چې د رسول الله ﷺ سره دا قرآني وعده پوره شوې ده، لکه څرنګه چې ابو بکر صديق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د وفات په ورځ وفرمايل: چې (فانّ محمداً قد مات) دهمدې موت له وجې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قبر کې ښخ کړل شو او د خلافت راشده سلسله شروع شوه...

۳-دټولو پيغمبرانو او بالخصوص دنبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روح ژوندی دی او په روح باندې موت نه واقع شوی دی او نه واقع کيږي.

۴-دتمامو انبياو عليهم السلام خصوصا د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصلي عنصري جسد ونه په خپلو خپلو قبرونو کې محفوظ او تر او تازه موجود دي، نو دا خبرې اتفاقي دي، مماتيان اکثره داسې دلايل وايي چې دغه مذکورې اتفاقي خبرې ترينه ثابتيږي، يعنې اکثر د مرګ د وقوع، د روحونو دژوند او دجسم د محفوظوالي دلايل وايي حالانکې په دې خبرو کې اختلاف نشته، اختلاف په راروانه پنځمه خبره کې دی، دهغې په خلاف مماتيان يو دليل هم نلري.

۵-د وفات څخه وروسته د رسول الله ﷺ د دغې عنصري جسد سره د رسول الله ﷺ د مبارک روح دومره تعلق ضرور حاصل دی د کوم په وجه چې نبي عليه السلام ژوندی دی او د کوم په وجه چې د قبر مبارک سره صلوة او سلام بلا واسطه اوري او جواب يې وايي، او د لرې څخه چې څوک درود او سلام وايي هغه د نبي ﷺ په خدمت کې پيش کولی شي او همدارنګه د امت د اعمالو معاينه کوئ.

## الحاصل

داهل سنت والجماعت او د مماتيانو په مابين کې مشهور اختلافات درې دي، چې پدې کې دوه دروغژن او يو اصلي اختلاف دی.

اول دروغژن اختلاف: مماتيانو دعوامو په مابين کې داخبره مشهوره کړې ده چې مونږ دنبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات قايل يو، او زمونږ مخالفين د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات څخه منکرين دي دا اختلاف ځکه دروغژن دی چې دنبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات څخه هيڅوک هم منکر نه دی، په وفات کې اختلاف نشته ،بلکې اختلاف د وفات څخه وروسته د قبر په زندګی کې دی.

دوهم دروغژن اختلاف: مماتيان عوامو ته وايي چې مونږ نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د اعلی حيات قايل يو، ځکه چې مونږ نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په جنتونو کې ژوندی وايو او ديوبنديان نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د ادنی حيات قايل دي، ځکه چې ديوبنديان نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په ځمکه کې ژوندی وايي او دا اختلاف ځکه دروغژن دی چې اهل سنت والجماعت نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د اعلی حيات قايل دي ،الله تعالی فرمايي چې :وللاخرة خير لک من الاولی) او نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې مابين بيتی ومنبری روضة من رياض الجنة (صحيح البخاري ،کتاب التهجد ج۱ص۱۵۹)

نو الله تعالی جنت دنبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قدمونو ته راوړی دی او په جنت کې ژوندی دی ځکه چې روضه مبارکه جنت دی .

دريم اصلي اختلاف: داهل سنت والجماعت او دمماتي اهل بدعتو په مابين کې اصل اختلاف په دې کې دی چې اهل سنت والجماعت د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دنيوي جسم مبارک ژوندی ګڼي (فتح الملهم، کتاب الحج،باب فضل الصلوة بمسجدی المکة والمدينة رقم الحديث ص ۳۳۷۴)

او اهل بدعت مماتيان دنبي كريم ﷺ دغه دونيوي جسم ته مړ وايي دمماتيانو په نيز دنبي كريم ﷺ روح مبارک په بل جسد مثالي کې اچول شوی دی او نبي كريم ﷺ دهمدې جسد مثالي سره ژوندی دی.

## يو څو وضاحتونه

داهل سنت والجماعت په مسلک باندې دپوهېدلو لپاره دا لاندې يو څو خبرې يادې لرئ.

۱-په قبر کې د رسول الله ﷺ ددغې عنـ ـري او دونيوي جسـد سره د روح تعلق دی، د دونيا والا جسد ژوندی دی، نو له دې وجې ددې ژوند څخه په دونيوي ژوند باندې تعبير کيږي، او لـه همدې وجې څخه په دې دونيوي ژوند باندې بعضې دونيوي احکام هم مرتب دي، مثلا دنبي ﷺ د بيبيانو نکاح د بل چا سره نه کيږي، همدارنګه دنبي ﷺ ميراث نه تقسيمږي.

۲- کله ددې ژوند څخه په برزخي ژوند باندې تعبير کيږي، دا تعبير په اعتبار دظرفيت سره شوی دی، چونکه دا ژوند نبي ﷺ ته ددې دنيا څخه عالم برزخ تـه دانتقال څخه وروسته حاصل شوی دی لـه دې وجې څخه ورته برزخي ژوند وايي.

۳-اوددې ژوند څخه په روحاني ژوند باندې هم تعبير کيږي، پـه دې معنی چې پـه برزخ کې د دنيا بالعکس په تنعيم او په تعذيب کې روح اصل او بدن يې تابع دی.

۴-همدارنګه ددې ژوند څخه په جسماني ژوند باندې هم تعبير کيږي په دې معنی چې پـه عـالم برزخ کې همدې دونيوي اجسامو مطهره وو ته ژوند حاصل دی.

۵- او همدارنګه همدې ژوند ته حسي ژوند ويلي شي په دې معنی چې دا ژوند ددوي په حق کې حسي دی، يعنې انبياء عليهم السلام په خپلو ټولو اعضاء وو شريفه وو کې دژوند اثار محسوسوي لکه په عالم الدنيا کې چې يو صحتمند انسان پخپلو ټولو اعضاوو کې دژوند اثار محسوسوي.

۶-په قراني او په نبوي ﷺ نصوصو کې د رسول الله ﷺ سره ذمرګ وعده شوې ده، او دا مرګ په اجماع دامت واقع شوی هم دی، لکن ددې مرګ نوعيت څه دی؟ ايا دعامو انسانانو د مرګونو په شان دی؟ او که نه ددې مرګ څه خاص بل نوعيت دی؟ نو په دې باره کې په قران کريم او په سنت کې قطعي خبره نشته، ددې څخه وروسته بعضې علماء فرمايي: چې دا مرګ هم دعامو مرګونو په شان (خروج الروح عن

البدن) يعنې دبدن څخه د روح وتل دي او بعضې علماء دخپل وجدان او دقراينو او دشواهدو په بناء باندې فرمايي چې دنبي ﷺ دمرګ کيفيت دعامو انسانانو دمرګونو څخه بيل دی، په داسې طريقې چې دنبي ﷺ روح دټول بدن څخه زړه ته راټول شوی دی او په زړه کې مرکوز دی، دا رايه د مولنا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله هم ده. (لطائف قاسميه ص۵ سيرة المصطفى ج۳ ص ٢٦٣ .ص٢٧٦]. خلاصه: دا چې دنبي ﷺ په وفات باندې عقيده ضروري ده لکن په کوم خاص کيفيت باندې يې جزم نه دی ضروري.

الله تعالى فرمايي: (انک ميت وانهم ميتون) که د دواړو مرګ يو شان وي نو الله به داسې فرمايلي وو چې (انک وانهم ميتون) د ميت لفظ به يې مکرر نه ذکر کولو.

٧-داهل سنت والجماعة په دې خبره باندې اتفاق دی چې دوفات څخه وروسته دنبي ﷺ دجسد عنصري سره دنبي ﷺ دروح دومره تعلق ضرور شته دی دکوم په وجه چې دقبر په خواکې عرض کړی شوې درود اوسلام اوري او جواب يې هم ورکوي، لکن ددې تعلق کيفيت څه دی؟ ايا روح په مکمله طريقه اجسادو ته راغلی دی ؟ او که نه ارواح چېرته په کوم بل ځای کې دي او دهغه ځای څخه يې ددې اجسادو سره قوي تعلق دی ؟ نو په دې کې دعلماوو مختلف نظرونه دي چې: تفصيل يې په تسکين الصدور کې کتلی شئ، ددوي دنظرونو قدر مشترک هغه دی کوم چې اوس مونږ ذکر کړو چې د ارواحو د اجسادو سره تعلّق الحياة دی ، يا په داسې الفاظو ووايه چې د رسول الله ﷺ ددې دونيوي جسد عنصري سره دروح تعلق دی په مرتبه د لابشرط شئ کې، چې اتصال الروح مع الجسد اودخول الروح فی الجسد دواړو ته ورشامل دی، څوک چې روح په عليين کې ګڼي او دهغه ځای څخه يې دجسد عنصري سره اتصال مني نو داهم يو فرد دتعلق الروح دی او څوک چې وايي چې روح په جسد اطهر کې داخل دی نو داهم تعلق الروح دی او مدار دحياة په تعلق الروح دی، له دې وجې دا اختلاف قدر مشترک ته نقصان نه رسوي.

۴-مماتيان دنبي ﷺ په شمول ټولو پيغمبرانو ته حيات بسيطه ثابتوي، چې هغه تمامو کائناتو ته حاصل دی، الله تعالى فرمايي: (اِنْ مِّنْ شَيْءٍ اِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهٖ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُوْنَ تَسْبِيْحَهُمْ) ددې ايت څخه دکائناتو هر شي ته يو قسم حيات ثابتيږي، چې دهغې څخه په حيات بسيطه باندې تعبير کيږي نو دوي پيغمبرانو ته همدا قسم حيات مني ، لکن په دې خبره باندې ځان پوه کړئ چې صرف ددومره حيات منو نکی شخص دحيات الانبياء دعقيدې څخه منکر دی، او دهغو اياتونو او احاديثو څخه مخالف دی

کوم چې په حيات الانبياء باندې دلالت کوي اول دا دې وجې څخه چې حيات بسيطه خو په جماداتو کې هم شته او په عام عرف کې جماداتو ته څوک احياء نه وايي او په نصوصو کې انبياوو ته احياء ويلي شوي دي. دوهم له دې وجې څخه چې په نصوصو کې د نبي ﷺ دومره حيات ذکر شوی دی چې د هغې په وجه د قبر په خوا کې عرض کړی شوی درود او سلام اوري او جواب يې ورکوي او حيات بسيطه د اورېدلو او د جواب د ورکولو لپاره نه دی کافي، نو د اهل سنت والجماعة د عقيدې مطابق انبياوو ته هغه حيات حاصل دی کوم چې د روح او د جسد عنصري د تعلق په وجه دی.

۵-عقائد په دوه قسمه دي اول هغه عقائد دي چې د هغوي څخه منکر کافر دی، او دوهم هغه عائد دي چې د هغوي څخه منکر کافر نه دی البته گمراه، فاسق، ضال او مضل دی، د اول قسم عقائدو د اثبات لپاره د دليل قطعي ضرورت دی او د دوهم قسم عقائدو د اثبات لپاره د دليل قطعي ضرورت نشته بلکه د دوي د اثبات لپاره د ادلّه وو ظنيّه وو څخه هم کار اخستل کيږي، لکه څرنګه چې علامه عبد العزيز فرهاري رحمه الله په نبراس کې ليکلي دي چې: (ان المسائل الاعتقادية قسمان، احدهما ما يكون المطلوب فيه اليقين كوحدة الواجب وصدق النبي ﷺ، وثانيهما: مايكتفى فيه بالظن (كهذه المسئلة) والاكتفاء بالدليل الظني انما لايجوز في الاول بخلاف الثاني، (نبراس صـ ۵۹ مطبع خضر مجتبائي ملتان، او د حيات الانبياء عقيده د دو هم قسم عقائدو څخه ده چې منکر يې کافر نه دی، البته گمراه، فاسق او مبتدع فی العقيدة دی، مونځ وروسته يې مکروه تحريمي دی.

## د اهل بدعتو مسلک

د اهل بدعتو اشاعتيانو مماتيانو عقيده داده چې د نبي ﷺ په شمول ټول پيغمبران عليهم السلام د وفات څخه وروسته د اجسادو مثاليه وو سره ژوندي دي او اجساد عنصريه يې محفوظ دي لکن ژوندي نه دي، او د روضې مبارکې په خوا کې درود او سلام نه اوري او نه جواب ورکوي، په کومو احاديثو کې چې د صلوة او د سلام د اورېدلو ذکر راغلی دی هغه ټول موضوعي او من گهړت دي. ندای حق، مقالات نيلوي.

د مماتيانو مصنف اعظم خان بادشاه ابن شاند ي ګل ليکلي دي: وليس المراد من الحيوة حياتهم في هذه القبور المحفورة (المسامر الناريه صـ ۱۹۱) همدارنګه ليکلي دي چې: *آنحضرت کو روضہ مبارکہ مے بجسد عنصری کے ساتھ زندہ سمجھنا شیعہ مسلک ہے* (التنقيد الجوہری ص- ۱۳ البرہان الجلی ص- ۲۲)

محمد حسين نيلوى مماتى ليکلي دي چې: بد مذہب لوگوں کا عقیدہ ہی کہ انبیاء کرام پر موت طاری ہے نہیں ہوتی اور وہ زندہ جاو. ید ہوتے ہیں او بعض موت کا قایل تو ہیں لکن ساتہ ہے یہ کہتے ہیں کہ دفن ہونے کہ بعد وہ اپنی اپنی قبرون میں زندہ ہو جاتی ہیں جیساکہ یہود و نصارا وغیرہ کی عقاید باطلہ سے معلوم ہوتا ہے اس طرح ہندوں او سکھون کا عقیدہ بھے قریب قریب انہیں سے ملتا جلتا ہے (مقالات نیولی ج ۲ ص ۸۳۳' عطاء الله بنديالوى ليکي چې: امام الانبیاء بعد وفات اس دنیا والی قبر میں زندہ نہیں رسالہ حیات النبی ص-۸ مولوى جميل احمد مماتى ليکي چې حیات الانبیاء بالجسد العنصری لا البرزخی یہ عقیدہ فرقہ باطلہ کی ہے (سیف الارکزی ص-۷۹)

## تنقيحات بر دعوه وعقيده مماتيان د جسم مثالي تحقيق

۱- جسد مثالي څه ته وايي؟ جامع او مانع تعريف يې وکړئ.

۲- جسد مثالي د جسد عنصري عکس او ظل دی؟ او که نه جدا د څه قسمه خميرې او يا ميټريئيل څخه جوړ شوی دی؟

۳- که جسد مثالي د جسد عنصري عکس او ظل وي نو جسد عنصري ته به محتاج وي، نو ترڅو پورې چې د جسد عنصري او د روح تعلق نه وي منلی شوی تر هغه پورې د روح تعلق د جسد مثالي سره نه شي قائميدلی، ځکه چې د اصل څخه بغير د ظل تصور کول ناممکن دی.

۴- که جسد مثالي د جسد عنصري عکس او ظل نه وي، بلکه يو مستقل جسم وي نو بيا جسد مثالي د کومې خميرې او ميټريل څخه جوړ کړی شوی دی؟.

۵- په قرآن کريم کې د جسد عنصري تخليق او تخليقي مراحل يې په تفصيل سره بيان شوي دي، نو سوال دا دی چې ايا په قرآن کريم کې د جسد مثالي تخليق او تخليقي مراحل هم په تفصيل سره بيان شوي دي او که نه؟

۶- په قرآن کريم کې يا په احاديث متواتره وو کې د جسد مثالي نوم شته او که نه؟

۷- جسد مثالي په صورت د انسان کې وي او که د حيوان؟

۸- که په صورت د انسان کې وي نو د هغې شکل او صورت د جسد عنصري په شان دی او که د دې څخه مختلف دی؟ د قرآن او د حديث څخه د مسئلې وضاحت وکړئ.

۹- که جسد مثالي د انسان په شکل نه وي نو بيا ورته مثالي څنګه وايئ؟ ځکه چې د مثالي مطلب خو دا دی چې د جسد عنصري مثل به وي، پس کله چې دا د هغې په شکل نه وي نو مثال به څنګه وي؟

۱۰- که جسد مثالي په صورت دحیوان کې وي نو سوال دادی چې کوم ، کوم، کس ته کوم ، کوم، قسم جسد مثالي ورکولی شئ؟

۱۱- دنبي او دغير نبي ټولو دپاره جسد مثالي برابروي او که نه دانبياوو دپاره څه خاص قسم جسم ورکولی شئ ؟ دهریو تعین وکړئ، په دليل سره يې واضح کړئ.

۱۲- که جسم مثالي په صورت دحيوان کې وي، نو سوال دادی چې اوس دا دانسان تکريم او تعظيم شوا وکه توهين او تذليل يې شو؟

۱۲- داصل جسم په موجودګۍ کې جسد مثالي ته څه ضرورت دی؟

۱۴- دروح په جسد مثالي کې باقاعده دخول او حلول وي او که د جسم مثالي څخه بهر وي ، صرف تعلق يې ورسره وي، ديوې معنی تعين وکړئ؟

۱۵- که په دې کې دهریو شق قائل يئ نو دا خودريم حيات شو ، حالانکې تاسو چيغې وهئ چې ژوندونونه دوه دي .

۱۶- ايا تعلق دروح ددغه جسم مثالي سره اويا دخول دروح په دغه جسم مثالي کې د (فَيُمْسِكُ الَّتِىْ قَضٰي عَلَيْهَا الْمَوْتَ) څخه خلاف دی او که نه ؟

۱۷- که روح په جسم مثالي کې باقاعده دخول کړی وي، نو أيا دا تناسخ نه شو؟ حالانکه دتناسخ والا عقيده خود هندوانو ده .

۱۸- دنيکۍ او دبدۍ په کولو کې جسد عنصري د روح سره شريک وو، نو اوس جزاء او سزاء جسم مثالي ته ورکول ايا دا ظلم نه دی؟

۱۹- ددنيا په جزاء او په سزاء کې جسم عنصري د روح سره شامل دی او دقيامت په ورځ به هم په جزاء او په سزاء کې ددنيا والا جسم عنصري د روح سره شامل وي ، نو بيا څه وجه ده چې په عالم قبر او برزخ کې دجسد عنصري نفی کوئ او جسد مثالي په جزاء او سزاء کې شريکوئ، په دې څه دليل دی؟

۲۰-ستاسو په نيز انسان څه ته ويلی شي؟ دروح او دجسد عنصري مجموعې ته؟ او که دروح او دجسم مثالي مجموعې ته؟ او که صرف روح ته؟ په قرآن کريم کې چې راغلي دي چې ﴿قُتِلَ الْاِنْسَانُ مَآ اَكْفَرَهٗ ۝ مِنْ اَيِّ شَيْءٍ خَلَقَهٗ ۝ مِنْ نُّطْفَةٍ ؕ خَلَقَهٗ فَقَدَّرَهٗ ۝﴾ په بل ځای الله تعالی فرمايي چې: ﴿يٰٓاَيُّهَا الْاِنْسَانُ مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيْمِ ۝ الَّذِىْ

خَلَقَكَ فَسَوّٰكَ فَعَدَلَكَ ۝ فِيْٓ اَيِّ صُوْرَةٍ مَّا شَآءَ رَكَّبَكَ ۝ ﴾ په بل ځاى کې راځي چې: ﴿ لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ ۝﴾ همدارنګې ﴿ وَبَدَاَ خَلْقَ الْاِنْسَانِ مِنْ طِيْنٍ ۝ ﴾ په دې ټولو ايتونو کې دانسان څخه کوم جسم مراد دى؟

۲۱- ايا تاسو جسم عنصري ته انسان وايئ او که نه؟

۲۲- که جسم عنصري ته انسان نه وايي نو دقيامت په ورځ به ددې حشر کيږي او که نه؟ که حشر يې کيږي، نو سوال دادى چې حشر خو به دانسانانو کيږي نو دجسم عنصري حشر ولې وشو؟ او که انسان ورته وايئ نو په عالم القبر کې د روح سره په جزاء او په سزاء کې ولى شريک نه دى؟

او همدارنګه که دا انسان نه وي نو بيا دقيامت په جزاء او په سزاء کې ولې شريک کيږي؟

۲۳- که جسد عنصري انسان نه وي نو دمعاد جمساني څه فائده ده؟

۲۴- که جسد عنصري انسان نه وي نو بيا ورته الله تعالى ولې انسان ويلي دي؟

۲۵- که جسد عنصري انسان نه وي نو دجسد عنصرى دحشر څه اهميت پاتې شو؟

۲۶- ايا دقيامت په ورځ به روح دجسم مثالي څخه اوځي او دجسم عنصري طرفته به واپس کيږي او که نه؟

۲۷- ايا تاسو دانبياوو سره دومره ظلم کوئ چې دقيامت په ورځ مو دهغوي دپاره بل مرګ ثابت کړو (چې دجسم مثالي څخه د روح وتل او په جسد عنصري کې يې اچول دي) خالانکې صديق اکبر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دصحابوو په موجودګی کې قسم خوري او فرمايي چې لا يذيقک الله الموتتين ابدا الخ) ايا دا عقيده دصحابه وو کرامو رضى الله عنهم ددې اجماع څخه مخالفه نه ده؟

۲۸- دقيامت په ورځ چې دجسد مثالي څخه روح ووځي نو دې جسد مثالي ته ميت ويل جايز دي او که نه؟

۲۹- که ميت وي نو احکام دميت پرې جاري کيږي او که نه؟

۳۰- جنت يا جهنم ته به جسم عنصري ځي او که مثالي؟

۳۱- صوفيه کرام او همداسې بعضې علماء کرام هم دمرګ څخه وروسته دجسد مثالي قايل دي، لکن هغه حضرات خو ددې سره سره د روح دجسد عنصري سره تعلق هم مني، قبرته دا عادې د روح قائل هم دي او د روح او دجسم دواړو دجزاء او سزاء قائل هم دي، حتى چې ددغه تعلق دو جې څخه دميت دسماع هم قائل دي، نو که تاسو دصوفيه وو کرامو پشان ددې ټولو امورو قائل يئ نو بيا دهغوي په شان عقيده هم وليکئ؟.

**نوټ:** دمثال په طور حکیم الامت مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله، دصوفیه کرامو سرخیل دی، دی هم دجسد مثالي قائل دی، لکن ددې سره سره د جسد عنصري سره د روح تعلق بلکه دخول او تلبس یې دجسم عنصري سره مني، حکیم الأمت رَحِمَهُ اللَّهُ لیکي چې: حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کے قبر مبارک کے لیے بہت کچھ شرف حاصل ہی کیونکہ جسد اطہر اسکے اندر موجود ہے بلکہ حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خود یعنی جسد مع تلبس الروح اسکے اندر تشریف رکھتے ہے کیونکہ آپ قبر میں زندہ ہے قریب قریب تمام اہل حق اس پر متفق ہے صحابہ رضی اللہ عنہم کا بھی یہ اعتقاد ہے حدیث بھی نص ہے 'ان نبی اللہ حیٌّ فی قبرہ یرزق (اشرف الجواب ص- ۲۲۳' طبعہ ادارہ تالیفات اشرفیہ' عنوان دی 'حضرت ابراہیم علیہ السلام واولیاء کرم کا حیات برزخیہ کا اثبات)

۳۲-نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله دنیا ته تشریف راوړو او په حیثیت دنبی الله او د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ متعارف شو نو نبوت او رسالت یې دجسد عنصري صفت وو او که دجسم مثالي؟

۳۳-نبی علیه السلام دخپلو ازواجومطهراتو دپاره خاوند او دخپلو لورګانو دپاره پلار وو نو په هغه وخت کې نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دکوم جسم سره وو؟ نبی علیه السلام هجرت کړی وو معراج یې کړی وو نو په هغه وخت کې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کوم جسم سره وو؟

۳۴- دنبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات په کوم یو جسم سره شوی دی؟

۳۵- نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ټولو غزواتو کې شریک شوی دي، زخمي شوی دی، نو دا په کوم جسم سره وو؟ ۳۶- ددعوت او دتبلیغ په سلسله کې نبی کریم علیه السلام ته تکالیف رسیدلي دي، مشقتونه یې برداشت کړی وؤ نو دا ټول په کوم جسم سره وو؟

۳۷- دنبی علیه السلام جسم عنصري مبارک د روح سره په وصف دنبوت او په وصف د رسالت باندې موصوف دی او که نه؟

۳۸- که دنبي کریم علیه السلام جسم په وصف درسالت او دنبوت سره موصوف نه وي، لکه اشاعتیانو چې په نداء حق (ج ۱ ص ۵۰۸) کې لیکلي دي چې دنبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جسم نبي ندی (معاذ الله) نو صحابه وو دنبي علیه السلام د وفات څخه وروسته دا جملې ولې استعمالولې چې: (غُسِلَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و کُفِنَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و قُبِرَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دصدیق اکبر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خطبه کې راځي چې ابو بکر صدیق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ راغلو او دنبي علیه السلام دمخ مبارک څخه یې څادر

لرې کړو او ښکل يې کړو، نبی عليه السلام يې مخاطب کړو او دا لفظ يې وفرمايلو چې يا نبی الله!، نو په دغه وخت کې ابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جسم ته نبي ويلي وو او که نه؟

۳۹- دعامو مؤمنانو او مسلمانانو اجساد عنصريه په وصف دايمان او داسلام سره موصوف دي او که نه؟

۴۰- که موصوف نه وي نو جنت ته به څنګه ځي؟ ځکه چې جنت ته خو به مسلمانان ځي او که اجساد عنصريه د ارواحو سره مؤمنين او مسلمين وي نو په عالم قبر او برزخ کې دجزاء او دسزاء څخه ولې محرومه دي؟

۴۱- که دنبی عليه السلام جسم اطهر د روح اقدس سره په وصف دنبوت او د رسالت باندې موصوف وي نو بيا دقبر د حيات څخه ولې محرومه دي او دجنت دنعمتونو څخه ولې محرومه دي؟

۴۲- دنبی عليه السلام جسم اطهر نبي الله او رسول الله نه منل ايا دا داسلام عقيده ده او که دکفر؟.

۴۵- که دنبي عليه السلام جسم مبارک په وصف دنبوت او درسالت سره موصوف ونه ګڼلی شي نو ايا دتمامو صحابه وو رضی الله عنهم دصحابيت شرف به باطل نه شي؟ ځکه چې صحابي خو هغه مؤمن ته ويل کيږي چې هغه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيارت کړي وي او په خپل ايمان باندې ثابت قدمی پاتې شي، حالانکې صحابه وو رضی الله عنهم جسد اطهر ليدلی دی روح يې نه دی ليدلی.

۴۴- اهل سنت والجماعت دشيخينو رضی الله عنهما دپاره دا خصوصي امتيازي فضيلت بيانوي چې دا دواړه دنبی عليه السلام په حجره مبارکه کې مدفون دي نو هرکله چې په حجره مبارکه کې مدفون شخصيت (معاذ الله) نه نبی الله دی او نه رسول الله نو دشيخينو رضی الله عنهما به څه فضيلت پاتې شي؟.

۴۵- دزمکې په کومه حصه کې چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مدفون دی هغې ته قبرالنبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويل صحيح دي او که نه؟

۴۶- که تاسو جسم النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وصف درسالت او دنبوت سره موصوف ومنلو نو اوس دغه جسم د حيات څخه ولې محرومه ګڼئ؟.

۴۷- د روح په جسد مثالي کې دا خليدل او يا يې دهغې سره تعلق قائميدل په ادله يې اربعه وو کې دکوم يو څخه ثابت دي؟

۴۸- تاسو دخپلې عقيدې يعنې دجسد مثالي داثبات دپاره دشنو مارغانو والا حديث پيش کوئ ، نو سوال دادی چې ايا شين رنګه مارغان دانسان مثل جوړېدلی شي او که نه ؟ حقيقت دادی چې انسان انسان دی او مارغه مارغه دی، په دوي کې هيڅ مماثلت نشته، لهذا مارغه څنګه دانسان دپاره جسم شو ؟

۴۹- جنتيان به په جنت کې په انساني شکل سره وي او که په خيواني شکل سره ؟

۵۰- داحکام شر عيه وو مکلف او دقرآن او دحديث مخاطب صرف روح دی ؟او که دروح او دجسم مجموعه ده ؟

۵۱- که مجموعه مکلفه وي نو کوم يو جسم مراد دی، جسم مثالي او که عنصري ؟ کوم موقف چې لرئ هغه په دليل قطعي سره ثابت کړئ؟

۵۲- دقيامت په ورځ چې کله حشر کيږي نو دغه حشر به داجسادومثاليه وو سره وي او که دعنصريه وو سره به وي ؟

۵۳- ايا ستاسو دا عقيده دصحابه وو ذاجماع څخه خلاف نه ده؟ ځکه چې د صديق اکبر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خطبه کې راځي چې (لا يذيقک الله الموتتين ابدا) او حال دادی چې تاسو مرګ (انقطاع الروح عن الجسد) ته وايئ نو هرکله چې روح دقيامت په ورځ دجسد مثالي څخه راووځي او په جسد عنصري کې داخليږي نو دا دامام الانبياء عليهم السلام لپاره بل مرګ نه شو؟

۵۴- هرکله چې ددغه جسم مثالي څخه روح ووځي نو دغه جسم مثالي به چيرته ځي ؟

۵۵- ستاسو عقيده داده چې انبياء داجساد مثاليه وو سره په جنت کې دی او په حديث کې راځي چې جنت ته دقيامت څخه مخکې (داوسيدلو دپاره) داخله ممنوعه ده، نو ايا دا ددې حديث مخالفت نه شو؟

۵۶- په حديث کې راځي نبي عليه السلام فرمايي چې تر څو پورې چې زه جنت ته نه يم داخل شوي نو تر هغې پورې يو نبي هم نشي داخليدلی او دمماتيانو عقيده داده چې ټول انبياء په اجسادمثاليو سره په جنت کې دي ، نو سوال دادی چې دنبي عليه السلام وفات خو دعيسی عليه السلام څخه بغير نور دټولو انبياوو څخه روستو واقع شوی دی نو ايا دا ټول انبياء نبي عليه السلام ته منتظر وو جنت نه وو تللي ؟

۵۷-زمونږ دټولو مسلمانانو اجماعي عقيده ده چې نبی عليه السلام اخري نبي دی، دهغه څخه وروسته هيڅ قسمه نبي نشته ، نو سوال دادی چې دنبي عليه السلام روح چې په کوم جسم مثالي کې اچولی شی،

دغه جسم نبي دی او که نه ؟ که دا نبي وي نو د ختم نبوت څخه انکار لازميږي او که نبي نه وي نو سوال دا دی چې د نبي روح په غير نبي کې اچول چې معنی دارد؟.

لهذا د اشاعتي معتزله وو مثالي جسم نه دی ثابت ، بلکې بعضې اهل حق علماء يې چې ثابتوي، نو هغوي يې د روح دوهم نوم ګڼي ، وګوره تفسير عثماني ، تحت قوله تعالی ﴿وَيَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ﴾

## د ممماتيانو سره دبحث کولو لنډه طريقه

محترموا کله چې مؤله مماتيانو سره مناظره وي نو اول ورته ووايه چې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روح د نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جسد سره تعلق شته او که نه ؟ که تعلق نه وي نو صرف په همدې عقيده باندې دليل پيش کړه، داسې ايت يا حديث تلاوت کړه چې په هغې کې راغلي وي چې د روح او د جسد تعلق نشته ، مماتي به يې تر قيامته پورې پيش نکړی شي ، هغه چې دلايل وايي نو هغه به صرف په دې باندې وي چې روح په جنت کې دی ، مرګ به راځي ، روح په عليين کې دی .... حالانکې په دې خبرو کې اختلاف نشته.

## دلائل

**اول قراني دليل:** قال الله تعالی: (وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ يُّقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ اَمْوَاتٌ ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ) په دې ايت کې الله تعالی فرمايي: چې تاسو شهيدانو ته مړه مه وايي بلکه دوئ ژوندي دي لکن تاسو د دوي په ژوند نه پوهيږئ.

په بل ايت کريمه کې الله تعالی فرمايي: (وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ اَمْوَاتًا ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ) يعنې دا په تصور کې هم مه راولئ چې شهيدان مړه دي، بلکې دوي ژوندي دي او د الله تعالی په نيز دوي ته رزق ورکولی شي، نو نه به په خوله باندې ورته مړه وايي او نه به په تصور کې ورته مړه وايي، د دې ايت په تشريح کې درې خبرې وواړئ :

**اول:** د دې ايتونو سياق په دې خبره باندې دلالت کوي چې د شهيدانو ژوند جسماني دی .

**دوهم:** جمهور مفسرين هم فرمايي چې د شهيدانو ژوند جسماني دی .

**دريم :** چې شهيدان ژوندي دي نو انبياء په طريق اولی ژوندي دي، يعنې د دې اياتونو په عبارت النص کې د شهيدانو ژوند ذکر شوی دی او په دلالت النص کې يې د پيغمبرانو ژوند ذکر شوی دی، د دې درې واړو خبرو مختصره توضيح واورئ.

## دقرآن کريم سياق په حيات جسمانيه باندې دلالت کوي

ددې ايت کريمه په سياق کې ډېر داسې قرائن او شواهد دي د کومو څخه چې معلوميږي چې شهيدانو ته چې کوم ژوند حاصل دی هغه جسماني ژوند دی يو څو شواهد لاندې ولولئ :

(۱) "احياء" جمع د حَی ده او ددې حقيقي معنی جسماني ژوند دی، په عامو محاوراتو کې ترېنه خلک هغه ژوند مراد وي، کوم چې د روح او د جسد دتعلق په وجه دی (يعنې جسماني ژوند) لکه څرنګه چې علامه الوسي رحمه الله فرمايي: (فمذهب كثير من السلف أنها حقيقية بالروح والجسد) (روح المعاني صـ ۲۰ ج ۲)

(۲) مفسرين فرمايي چې (احياء) خبر دی لپاره دمبتداء محذوفې، تقدير دعبارت داسې دی چې (هم احياء) او ضمير د (هُم) راجع دی (من يقتل) ته يعنې (من يقتل احياءٌ) په چا باندې چې قتل وارد شوی دی همغه ژوندي دي او ظاهره دا ده چې قتل اصالةً په جسم باندې وارد شوی دی، د توري ګذار او د ټوپک مرمۍ په جسم باندې لګېدلې ده، نو ژوند به هم همدې جسم ته ثابت وي، محمد امين صفدر رحمه الله فرمايي چې "يقتل" د فعل مضارع صيغه ده او فعل په حدث باندې دلالت کوي، يعنې فعل په دې باندې دلالت کوي چې په شهيد باندې قتل واقع شو او بيا ختم شو، داسې نه وه چې شهيد تر اوسه پورې قتليږي او همېشه يې قتل روان دی او قتل شوی جسم عنصري دی، نو د همدې مقتول جسد په باره کې وروسته الله تعالی فرمايي چې : (بل أحياء) احياء خبر دی لپاره دمبتداء محذوفې يعنې (هم أحياءٌ) هم ضمير (من يقتل) ته راجع دی، او جمله اسميه په دوام دلالت کوي يعنې دقتل څخه وروسته زندګي دايمي ده.

(۳) الله تعالی خلک منع کړل چې شهيدانو ته مړه مه وايئ او روح ته خو هيڅوک مړ نه وايي، لهذا ددې نهی تعلق د روح سره نه دی، بلکې د جسم سره دی، ځکه چې خلکو جسم ته مړ ويلو.

(۴) په قران کريم کې ددې ژوند دبيانولو څخه وروسته الله فرمايي چې (وَّ لٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ) «شعور» ادراک بالحواس ته وايي او د «لکن» کلمه د استدراک لپاره راځي، يعنې د «لکن» څخه په مخکې کلام کې د توهم امکان وي، نو د «لکن» څخه په وروستنی جمله باندې هغه توهم دفع کولی شي، نو دمخکېنی جملې (بَلْ اَحْيَآءٌ) څخه دا توهم پيدا شو چې د احيات به مدرک بالحس وي بالفعل، نو الله تعالی دا توهم په (وَّ لٰكِنْ لَّاتَشْعُرُوْنَ) باندې دفع کړو، يعنې اګر چې دا حيات في نفسه قابل دی

لپاره د ادراک بالحواس، لکن د يو څه عوارضو او حکمتونو له وجې څخه يې تاسو بالفعل په حس باندې ادراک نه شئ کولی. او ظاهره دا ده چې دا دراک بالحس قابل دغه جسماني حيات دی روحاني حيات مدرک بالحس نه دی، بلکه مدرک بالعقل دی، نو که روحاني حيات مراد وی الله تعالی به د (ولکن لاتشعرون) په ځای باندې (ولکن لاتعلمون) فرمايلي وی، حاصل دا چې د ادراک الحواس توهم د جسم په باره کې کيدلی شي د روح په باره کې نه شي کيدلی، نو چې د جسم په باره کې د ادراک بالحواس توهم وشو، الله تعالی په ﴿ وَّ لٰكِنْ لَّاتَشْعُرُوْنَ ﴾ سره دفعه کړو.

دشهيدانو ژوند دادراک بالحس قابل دی لکن بيا يې هم بالفعل ادراک نه کيږي ددې لپاره ډېر وجوه دي مثلاً:

(۱) دا حيات ددنيا د انتقال څخه وروسته په بل عالم يعنې په عالم برزخ کې دی او د عالم الدنيا لپاره د عالم البرزخ د حالاتو مشاهده مستبعده ده.

(۲) دا وجه هم کېدای شي چې دشهيد د روح او د جسد په منځ کې تعلق شته دی لکن دا تعلق د اسې نه دی لکه ددونيوي زندګۍ په شان لدې وجې يې مونږ مشاهده نه شو کولی.

(۳) همدارنګه دا وجه هم کېدلی شي چې د الله تعالی په نيز ايمان بالغيب معتبر دی، نو که دشهيدانو ژوند مشاهد شي نو بيا به ايمان بالغيب پاتې نشي بلکه ايمان بالشهادة به ترېنه جوړ شي، نو دبندګانو دمصلحت له وجې د خلکو د حس څخه پناه دی او کله يې چې الله تعالی ته په ښکاره کولو کې مصلحت معلوم وي هلته يې د خرق العادة په طريقه بعضې بندګانو ته ښکاره کړې هم دی، محدثينو په دې باره کې ډېر واقعات ليکلي دي مثلا: (قد صح عن ثابت البناني التابعي انه قال اللّٰهُمَّ ان كنت اعطيت احداً ان يصلي في قبره فاعطني ذالک فرئی بعد ذالک يصلي في قبره) شفاء السقام صـ ۱۷۸) يو څو واقعات به وروسته ذکر کړو ان شاء الله تعالی.

## جمهور مفسرين هم فرمايي چې د شهيدانو ژوند جسماني دی

دمفسرينو تفصيلي حوالې خو د طوالت باعثې ګرزيږي، دلته به اجمالاً يو څو حوالې ذکر کړو، مشهور حنفي مفسر علامه سيد محمود الوسي رحمه الله ددې ايت په تفسير کې ليکي چې: واختلف في هذه الحالة فمذهب كثير من السلف انها حقيقية بالروح والجسد ولكنا لا ندركها في هذه النشأة. بيا د يو څو اقوالو د

رانقلولو څخه وروسته ليکي چې: والمشهور ترجيح القول الاول. (روح المعاني ج ۲ صــ ۲۰) همداسې تحقيق په تفسير کبير، تفسير مظهري، او په معارف القران، تفسير حقاني، وغيره تفاسيرو کې دی.

**فائده:** په مسلم شريف کې د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چې د دې ايت په باره کې يې وفرمايل چې: أَرْوَاحُهُمْ فِي جَوْفِ طَيْرٍ خُضْرٍ، لَهَا قَنَادِيلُ مُعَلَّقَةٌ بِالْعَرْشِ، تَسْرَحُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ شَاءَتْ، ثُمَّ تَأْوِي إِلَى تِلْكَ الْقَنَادِيلِ (مسلم ج ۲ ص ۱۳۵)

د دې حديث له وجې بعضې حضرات فرمايي: چې د قران کريم په دې اياتونو کې محض روحاني حيات ذکر شوی دی لکن دا سهوه ده:

(۱) ځکه چې زمونږ دعوه دا وه چې شهيدانو ته الله تعالى جسماني حيات ورکړی دی، په داسې طريقه چې د شهيد د روح او د جسد په مابين کې قوي تعلق دی، بيا چې روح په هر ځای کې وي د بدن سره يې تعلق نه کټ کيږي، نو د شهيدانو ارواح د مرغانو په شان په جهازونو کې چکرې وهي لکن د بدن سره يې تعلق شته او دا هم په ياد لرئ چې په دې حديث کې د شنو مرغانو ذکر په دې حيثيت سره نه دی چې دا به د شهيد لپاره بادې وي بلکه په دې حيثيت سره دی چې دا به د شهيد لپاره سورلۍ وي، لکه مونږ چې په جهاز يا په موټر کې کښنو نو جهاز او موټر زمونږ لپاره بادې نه وي بلکه سورلۍ وي.

(۲) په دې حديث کې چې د شهيدانو لپاره کومه خبره ذکر شوې ده نو همدې ته ورته خبره په يو حديث کې د عامو مؤمنانو لپاره هم ذکر شوی ده، لکه څرنګه چې په مؤطا امام مالک کې يو روايت دی چې: (انما نسمة المؤمن طير يعلق في شجرة الجنة حتى يرجعه الله الى جسده يوم يبعثه (موطأ امام مالک صـ۲۲۱ جامع الجنائز)

نو د دې څخه معلوميږي چې دا اعزاز خو د شهيدانو پورې خاص نه دی، بلکه عامو مؤمنانو ته هم دا اعزاز حاصل دی، نو داسې قسم حيات چې د شهيدانو پورې خاص نه دی په هغې کې د شهيدانو د تخصيص څه فائده ده؟

حافظ ابن کثير د مؤطا امام مالک د روايت په باره کې فرمايي چې: ففيه دلالة لعموم المؤمنين ايضا وان كان الشهداء قد خصوا بالذكر تشريفاً لهم وتكريماً وتعظيماً( تفسير ابن كثير ج ۱ صـ ۱۹۷)

نو د حديث مقصد د هغه حيات بيان نه دی کوم چې د ايت د سياق څخه را فهميږي، يعنې د جسماني حيات بيان نه دی، بلکه د هغه حيات بيان دی کوم چې د قران د ظاهر څخه نه را فهميږي، ګويا چې د شهيد لپاره دوه قسمه حيات دی، يو جسماني کوم چې د قران د سياق څخه را فهميږي، او بل روحاني: چې دا د شهيدانو پورې خاص نه دی يعنې شهيدانو ته د خپل اعزازي حيات څخه ماسوی هغه حيات هم مېلاويږي کوم چې الله تعالی عامو مؤمنانو ته ورکوي.

**اعتراض:۱-** په دې ايت کې د قبر لفظ نشته نو په قبرنو کې ژوند ترينه څرنګه ثابتوئ؟

**جواب:** پدې ايت کې ﴿لمن يقتل﴾ او ﴿بل احياء﴾ راغلی دی يعنې چې څوک شهيد شوی دی همغه ژوندی دی او قتل او شهادت په جسم وارد شوی دی او همدا جسم په قبر کې دی، نو جسم په قبر کې ژوندی شو.

**اعتراض ۲-** په اولنی ايت کې (ولكن لاتشعرون) راغلی دی ددې څخه معلوميږي چې روح ژوندی دی، جسم لره حيات نشته، کنه مونږ ته به يې احساس او شعور وي.

**جواب: (۱)** (تشعرون) د جمعې مذکرې حاضرې صيغه ده، يعنی ای مؤمنانو تاسو د هغوي په حيات باندې نه پوهيږئ (يشعرون) يعنی د جمعې مذکرې غائبې صيغه نه ده راغلې، کچيرته يشعرون راغلی وي، نو بيا به ستاسو اعتراض او استدلال صحيح وو، يعنی مطلب به داوو، چې شهيدان په خپل حيات نه پوهيږي او د انسانانو شعور ته نه راتلل دې خبرې لره مستلزم نه دی چې هغه به ژوندي هم نه وي، که نه د ملايکو او د جناتو د حيات څخه به هم انکار کول لازم شي، ځکه چې جنات او ملائکې ژوندي دي لکن د هغوي حيات هم په ولکن لاتشعرون کې داخل دی، يعنی انسانان پرې نه پوهيږي او د شهيدانو ژوند د انسانانو په پوهه کې ځکه نه راځي، چې د دنيا هر څه فاني دي، حتی چې انسان او د ده حواس هم فاني دي او د مرګ څخه وروسته حقيقي ژوند شروع کيږي نو په فاني حواسو سره د حقيقی ژوند ادراک او مشاهده نشی کيدلی.

(۲) چې په قرآن کريم کې نفې د شعور راغله نو د مماتيانو شعور څرنګه راغلو چې شهيدان مړه دي.

**اعتراض ۳-** په دويم ايت کې لفظ د عند راغلی دی، يعنی د الله تعالی سره په جنت کې ددوي روحونه ژوندي دي، جسم ته په قبر کې حيات نه دی حاصل؟

**اول جواب:** دا خو اتفاقي خبره ده چې په روح باندې مرګ نه راځي، نو بیا دیته احیاء وئیل تحصیل د حاصل شو.

**دوهم جواب:** په قران کریم راځي چې (ان الدین عند الله الاسلام) دلته هم لفظ د عند راغلی دی نو دلته هم بیا انکار وکړئ او وایئ چې اسلام خو د الله سره دی مونږ ته دنیا ته نه دی راغلی.

**دریم جواب:** ایا تاسو الله تعالی ته حاضر او ناظر نه وایئ چې د عند ربهم تخصیص صرف د جنت سره کوئ؟ د اهل سنت والجماعت عقیده خو داده چې رب په هر وخت کې په هر ځای کې بلا جسمٍ وبلا مکانٍ حاضر او ناظر دی لهذا دا اعتراض لغوه او باطل دی

**څلورم جواب:** د عند ربهم تعلق د (احیاءٌ) سره نه دی بلکه د (یرزقون) سره دی یعنې د الله د طرفه بغیر د محنت او مزدورۍ دوي ته رزق ملاویږي، لکه حضرت مریم رضی الله عنها چې وفرمایل چې هو من عند الله، حضرت مریم ته مفت رزق میلاویدلو.

**اعتراض ۴-** په احادیثو کې راځي چې د شهداوو ارواح د شنو مارغانو به ججورو کې کینبودل کیږي او په جنت کې سیر کوي، نو مماتیان وایي چې دا مارغان د دوي د پاره جسد مثالي ګرځي، د دې څخه معلومیږي چې دا حیات صرف ارواحو او اجساد مثالیو لره دی، په قبر کې اجسادو عنصریه وو لره نه دی حاصل.

**اول جواب:** که د حدیث هم دغه مطلب شي کوم چې مماتیان اخلي نو بیا دا حدیث د قرآن د دې ایت لپاره ناسخ ګرځي، ځکه چې د ایت څخه صراحةً معلومیږي چې د شهید جسم ته حیات حاصل دی، حالانکه دا حدیث خبر واحدی دی او خبر واحد د قرآن د ایت د پاره ناسخ نشي ګرځیدلی.

**دوهم جواب:** ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْإِنْسَانَ فِيْ أَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ﴾ څخه به هم مخالفت راشي ځکه چې الله تعالی فرمایي چې مونږ انسان په ښکلي شکل او صورت سره پیدا کړی دی اوس که ډیر بد صورته انسان هم وي د ځان لپاره د مارغه جسم نه خوښوي نو دا خو به د شهید توهین شي اعزاز او اکرام به نشي، چې د هغه څخه انساني جسم واخستلی شي او د مارغه جسم ورته ورکړی شي.

**دریم جواب:** د حدیث څخه د مماتیانو جسم مثالي هم نه ثابتیږي ځکه چې د مماتیانو جسم مثالي د جسم عنصري په مثل دی.

**څلورم جواب:** د قرآن د دې ايت څخه معلوميږي چې د شهيد جسم ته حيات حاصل دی او د حديث څخه معلوميږي چې د شهيد روح ته هم حيات حاصل دی، نو مونږ د واړه منو نكار ديو څخه هم نه كوو او مماتيان حديث په داسې طريقې سره مني چې په هغې سره د ايت څخه انكار لازميږي.

**پنځم جواب:** كه د مماتيانو والا مطلب ومنلی شي چې د شهيد روح د مارغه په شان په جسم مثالی كې أچولی شي نو د تناسخ والا عقيده به لازمه شي او دا د هندوانو عقيده ده.

**شپږم جواب:** دا حديث د دې ايت كريمه لپاره په دې طريقه تفسير دی چې د شهيد د روح دپاره دغه مارغه جسم مثالي نه دی، بلكه سورلی ده ورته، شهيد په دغه مارغه باندې سورلی كوي او د خپل جسم سره كوم چې په قبر كې دی تعلق لري، لكه په دنياء كې چې انسان په جهاز يا په موټر كې سورلی كوي نو څوک دا نه وايي چې دا موټر يا جهاز د فلانكي سړي دپاره جسم مثالي دی، شيخ التفسير مولانا محمد ادريس كاندهلوي رَحِمَهُ اللَّهُ ليكلي دي چې: ( يہ جسم طيوری اس روح كيلئے بمنزلہ ايک طيارہ كی ہے جس كہ زريعے سے روح جنت ميں اڑھ كر سير و تفريح كرسكے اور يہ روح اس نئے جسم ميں مدبر اور متصرف نہيں تا كہ تناسخ كاشبہ ہو اس لئے كہ تناسخ كے حقيقت يہ ہے كہ روح ايک جسم سے جدا ہونی كے بعد دوسری جسم سے اس طرح متعلق ہو كہ دوسری جسم ميں كوئی اور روح نہ ہو اور بھی روح اس جسم كی نشوونما كا سبب ہو اور بھی روح اس جسم ميں مدبر اور متصرف ہو اور ارواح شھدا ميں يہ بات نہيں اس ليے كہ جسم طيوری كيساتھ شہيد كی روح كا تعلق ہوا ہے اس جسم طيوری كے روح عليحدہ ہے اور شہيد كے روح علحدہ ہے اور جسم طيوری كے نشوونما اور تدبير و تصرف كا كوئی تعلق شہيد كی روح سے نہيں اس كا تعلق پرندہ كی اصل روح سے ہے پرندہ كا جسم اور روح علحدہ ہے اور شہيد كا روح علحدہ اور روح اسميں سوار ہے اور سبز پرندہ مع اپنے جسم اور اپنے روح كی شہيد كی روح كيلئے سوری ہے خوب سمجھ لو ( معارف القرآن ج ا ص- ۳۲۳ )

**اعتراض ۵-** همدغه دشنو مارغانو والا په روايت كې راځي چې روح به الله تعالی ته وايي چې مونږ خپلو اجسادو ته واپس كړه، نو د دې څخه خو معلوميږي چې د قيامت څخه مخكې د روح اعاده جسد ته نه كيږي.

اول جواب: د حديث الفاظ داسې دي: قالوا يارب نريد أن ترد ارواحنا فی أجسادنا حتی نقتل فی سبيلک مرة اخری،

۲- نو دلته څرنګه وايي چې (ارواحنا) ؟ يعنې روح څرنګه خپل ځان ته روح منسوبوي؟ معلوميږي دا چې دا سوال روح نه کوي که دا سوال روح کولی نو ويلي به يې وو چې (ان تردنا) مونږ واپس کړه خپلو جسدونو ته، نو دلته داعادې د روح څخه هغه اعاده مراد ده کومه چې دنيا کې وه يعنې زمونږ روح جسد ته په داسې طريقه باندې واپس کړه چې روح په جسم کې تدبير او تصرف وکړي او بيا دا روح او جسد دنيا ته واپس کړه په دې باندې قرينه (حتى نقتل فى سبيلک مرّة أخرى) ده

**اعتراض ۵-** امام بيضاوي رحمه الله ددې ايت لاندې ليکلي دي چې د شهداوو حيات روحاني دی جسماني نه دی.

**جواب:** امام بيضاوي رحمه الله د جسد د حيات نفی نه کوي، بلکه دا خبره ثابتوي چې د قبر زندګي د دنياء د زندګۍ پشان نه ده، چې جسم اصل او روح د هغې تابع وګرځي، بلکه په عالم البرزخ کې روح اصل دی او جسد د هغې تابع دی، او په دې باندې دوه قرينې دي اول: امام بيضاوي رحمه الله د: (يثبت الله الذين امنوا بالقول الثابت) په تفسير کې دا حديث رانقل کړی دی چې (تعاد روحه فى جسده) يعنې د جسد عنصري حيات يې تسليم کړی دی.

**دوهم جواب:** امام بيضاوي رحمه الله د (کيف تکفرون الخ) په تفسير کې فرمايي چې د (ثم يحييكم) څخه مراد د قبر حيات دی، عبارت داسې دی او (لسوال فى القبور) يعنی ژوندی کولی شي لپاره د سوال په قبرونو کې، امام بيضاوي رحمه الله د ﴿رَبَّنَآ أَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ﴾ په تفسير کې يو قول دا هم را نقل کړی دی چې د دويم حيات څخه مراد هغه حيات دی چې هغه ميت ته په قبر کې ورکولی شي.

**فايده:** امام بيضاوي رحمه الله ددې جملې په ذکر کولو سره د عالم برزخ د جزاء او د سزاء صحيح صورت بنايي، چې هلته جسد اصل نه وي، بلکه د روح تابع وي، په هغه ځای کې د راحت او د تکليف حالات اولا په جسم باندې نه واردېږي بلکه اولا په روح باندې واردېږي بيا د روح په واسطې سره جسد ته د هغې اثر رسيږي، ګورئ په دنيا کې جسم اصل وي او روح د هغې تابع وي، جسم ته راحت يا تکليف رسيږي او ددې په ذريعې سره روح د هغې احساس کوي اوس که څوک ووايي چې پوليسو زيد ته جسماني سزا ورکړه روحاني سزا يې نه ده ورکړې، ددې مطلب دادی چې چونکی جسم اصل دی او روح د هغې تابع دی جسم ته تکليف ورسيدلو بيا د جسم په زريعې سره روح ته تکليف ورسيدلو، نو څرنګه چې پدې سره د روحاني سزا نفی نه لازميږي، نو

همداسې که دقبر د ژوندکی په باره کې دچا قول راشي چې هغه روحاني ژوندکي ده جسماني نه ده نو په دې سره دجسماني حيات نفی نه لازميږي، ځکه چې دقائل مقصد دادی چې هلته روح اصل دی اولاً روح ته راحت اويا تکليف ملاويږي، بيا ددې په زريعې سره جسم ته دهغې اثرات رسيږي.

## دحيات الشهداء څخه په حيات الانبياء باندې استدلال

محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شهيد هم دی او نبي هم دی، نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په عبارت النص او په دلالت النص دواړو سره حيات حاصل دی، د شهادة له وجې ورته حيات په عبارت النص سره ثابت دی او د نبوت له وجې ورته دلالت النص سره ثابت دی او نورو انبياوو ته چې شهيدان شوي نه وي په دلالت النص سره ثابت دی.

يعنې کله چې دا جسماني حيات شهداوو ته حاصل شو نو انبياوو ته به په طريقه أولی باندې حاصل وي:

مولانا ظفر احمد العثماني رَحِمَهُ اللهُ ليکي چې: فليس الشهيد بأولى من النبي وان نبي الله حيّ يرزق فی قبره كما ورد فی الحديث (احكام القرآن، للتهانوي ج۱ صـ ۹۲).

(۱) دا اعزاز چې شهيد ته حاصل دی نو علت يې قرب الهي دی او دا علت په پيغمبرانو کې دشهيدانو څخه زيات دی، نو له دې وجې به دا حيات پيغمبرانو ته په طريقه اولی حاصل وي، د اقياس نه دی بلکه دلالت النص دی (شفاء السقام صـ ۱۸۸.۱۸۹.۱۹۰).

(۲) دشهيدانو ددې اعزاز سبب نبي ﷺ دی، نو د ( ألدال على الخير كفاعله ) دقانون مطابق به دشهيدانو دا اعزاز نبي ﷺ ته هم ورکول کيږي.

(۳) نبي ﷺ هم په عام مرګ باندې نه دی مړ شوی بلکې شهيد شوی دی، ځکه چې د خيبر دغزوې په کال باندې يوې يهودنې نبي ﷺ ته زهر ورکړل نو نبي ﷺ به په مرض الوفات کې فرمايل چې: يَا عَائِشَةُ! مَا أَزَالُ أَجِدُ أَلَمَ الطَّعَامِ الَّذِي أَكَلْتُ بِخَيْبَرَ، فَهَذَا أَوَانُ وَجَدْتُ انْقِطَاعَ أَبْهَرِي مِنْ ذَلِكَ السُّمِّ (بخاری، كتاب المغازی، باب مرض النبی ج ۲ صـ ۶۳۶). حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه به فرمايل چې: (لِأَنْ أَحْلِفَ تِسْعًا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُتِلَ قَتْلًا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَحْلِفَ وَاحِدَةً إِنَّهُ لَمْ يُقْتَلْ، وَذَلِكَ أَنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ اتَّخَذَهُ نَبِيًّا وَاتَّخَذَهُ شَهِيدًا) حاكم فی المستدرك ج۳ صـ ۵۸، كتاب المغازی رقم ۴۳۹۴/۹۸). لهذا محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دا حيات په عبارت النص هم ثابت دی.

لاندې د يو څو معتبرو کتابونو حوالې وګورئ:

(۱) قاضي ثناء الله پاني پتي المتوفي ۱۲۲۵ هق فرمايي چې: (فذهب جماعة من العلماء الى ان هذه الحيوة مختص بالشهداء والحق عندي عدم اختصاصها بهم بل حيوة الانبياء اقوى منهم واشد ظهورا اثارها فى الخارج حتى لا يجوز النكاح بازواج النبي ﷺ بعد وفاته بخلاف الشهيد. (مظهري ج ۱ صـ ۱۵۲) . يعنې حق خبره دا ده چې دا حيات د شهيدانو پورې خاص نه دی، بلکه د انبياوو حيات د شهيدانو څخه قوي دی حتی چې بعضې اثارې په دنيا کې هم ښکاره کيږي، تر دې چې د نبي ﷺ د بيبيانو سره نکاح هم نه کيږي.

(۲) مولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله المتوفی ۱۳۶۲ ه‍ ق فرمايي: چې دا حيات د شهيدانو په نسبت د انبياء کرامو عليهم السلام زيات دي، حتی چې د انبياوو د دې ظاهري مرګ څخه وروسته د بدن د حفاظت سره يو اثر دا هم پاتې دی، چې د ازواجو مطهراتو نکاح د بل چا سره نه ده جائزه، همدا رنګه د پيغمبرانو مال نه تقسيږي، نو په دې حيات کې د ټولو څخه قوي ترين خلک انبياء دي (بيان القران ج ۱ صـ۹)

(۳) مولنا عبد الحق رحمه الله فرمايي: چې په دې حيات کې انبياء او اولياء هم شريک دی او د دوی په درجاتو کې تفاوت دی. (تفسير حقاني ج ۱ صـ ۵۹۴)

(۴) مولنا مفتي محمد شفيع رحمه الله فرمايئ چې: دا هغه حيات دی چې په انبياوو عليهم السلام کې د شهيدانو څخه زيات دی. (معارف القران ج ۱ صـ ۳۹۷)

(۵) مولانا احمد سعيد دهلوي فرمايي چې: د انبياءوو درجه د شهيدانو څخه اوچته ده، لهذا انبياء هم ژوندي دي، د انبياءوو د ارواحو د اجسادو سره تعلق دی، لهذا د نبي کريم صلى الله عليه وعلى آله وسلم د بيبيانو سره د نبي کريم صلى الله عليه وعلى آله وسلم د وفات څخه وروسته نکاح نه کيږي، او ميراث يې هم نه تقسيمږي (تفسير کشف الرحمن، ج ۱ صـ ۵۹۲) په دې تفسير د حسين احمد مدني رحمه الله، مولانا زکريا رحمه الله، قاري طيب رحمه الله، مفتي کفايت الله رحمه الله او مولانا اعزاز علي رحمه الله د ستخطونه دي.

(۶) مشهور حنفي شارح حافظ بدر الدين عيني رحمه الله په عمدة القاري کې د موسی عليه السلام د صلوة فی القبر والا حديث په تشريح کې فرمايي چې: (قلت لا اشكال في هذا اصلاً وذالک ان

الانبياء عليهم الصلوة والسلام افضل من الشهداء والشهداء احياء عند ربهم فالانبياء بالطريق الأولى )عمدة القاري ج ١٦ صـ ٣٥)

(٧) حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله فرمايي چې: (قلت واذا ثبت انهم أحياء من حيث النقل فانه يقويه من حيث النظر كون الشهداء احياء بنص القران والانبياء افضل من الشهداء ) فتح الباري ج ٦ صـ ٤٨٨ ،كتاب احاديث الانبياء، باب، واذكر في الكتاب مريم ).

(٨) داهل ظواهرو مشهور محدث قاضي شوكاني ليكي چې : (وورد النص في كتاب الله في حق الشهداء انهم احياء يرزقون وان الحيوة فيهم متعلقة بالجسد فكيف بالانبياء والمرسلين ( نيل الاوطار ج ٣ صـ ٢٦٤ باب فضل يوم الجمعة)

(٩) امام بيهقي رحمه الله فرمايي چې: (وهذا انما يصح على ان الله تعالى رد الى الانبياء عليه السلام ارواحهم فهم احياء عند ربهم كالشهداء ) حياة الانبياء بعد وفاتهم صـ ١١١)

(١٠) امام ابو عبد الله محمد بن احمد القرطبي المتوفى (٦٧١ )هق فرمايي چې: (قال شيخنا احمد بن عمر والذي يزيح هذا الاشكال ان شاء الله تعالى ان الموت ليس بعدم محض وانما هو انتقال من حال الى حال ويدل على ذالک ان الشهداء بعد قتلهم وموتهم احياء عند ربهم يرزقون فرحين مستبشرين وهذه صفة الاحياء في الدنيا واذا كان هذا في الشهداء كان الانبياء بذلک احق واولى مع انه قد صح عن النبي ﷺ ان الارض لاتأكل أجساد الانبياء وان النبي ﷺ قد اجتمع بالانبياء ليلة الاسراء في بيت المقدس وفى السماء خصوصا بموسى عليه السلام وقد اخبرنا النبي ﷺ بما يقتضي ان الله تبارک وتعالى يرد عليه روحه حتى يرد السلام على من يسلم عليه الى غير ذالک مما يحصل من جملته القطع بان موت الانبياء انما هو راجع الى ان غيبوا عنا بحيث لاندركهم وان كانوا موجودين احياء (التذكرة في احوال الموتى وامور الاخرة صـ ٢١٢ ).

(١١) امام نووي رحمه الله المتوفى ٨٥٢ هق فرمايي چې : فَإِنْ قِيلَ كَيْفَ يَحُجُّونَ وَيُلَبُّونَ وَهُمْ أَمْوَاتٌ وَهُمْ فِي الدَّارِ الْآخِرَةِ وَلَيْسَتْ دَارَ عَمَلٍ فَاعْلَمْ أَنَّ لِلْمَشَايِخِ وَفِيمَا ظَهَرَ لَنَا عَنْ هَذَا أَجْوِبَةً أَحَدُهَا أَنَّهُمْ كَالشُّهَدَاءِ بَلْ هُمْ أَفْضَلُ مِنْهُمْ وَالشُّهَدَاءُ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ. (شرح مسلم ج١ صـ٩٤ باب الاسراء برسول الله ﷺ )

(۱۲) حافظ ابن حجر العسقلاني رحمه الله په بل ځای کې فرمايي چې: (لان الانبياء احياء عند الله وان كانوا في صورة الاموات بالنسبة الى اهل الدنيا وقد ثبت ذلک للشهداء ولاشک ان الانبياء ارفع رتبة من الشهداء (فتح البار ج ٦ صـ ٤٤٤ قوله وفات موسى)

(۱۳) امام تقى الدين السبكي رحمه الله فرمايي چې: (والكتاب العزيز يدل على ذلک ايضا قال الله تعالى ولاتحسبن الذين قتلوا في سبيل الله امواتا (ال عمران ١٦٩ ) واذا ثبت ذلک فى الشهيد ثبت في حق النبي ﷺ (شفاء السقام في زيارة خيرالانام صـ ١٠٣ ـ ٤٠٣ ) .

(١٤) الامام الحافظ محمد بن عبد الرحمن السخاوي رحمه الله المتوفي ٩٠٢ هق فرمايي چې: (و من ادلة ذلک ايضا قوله تعالى ولا تحسبن الذين قتلو الاية فان الشهادة حاصلة له صلى الله عليه وسلم على اتم الوجوه لانه شهيد الشهداء وقد صرح ابن عباس رضي الله عنه وابن مسعود رضي الله عنه وغيرهما بانه صلى الله عليه وسلم مات شهيداً (القول البديع فى الصلوة على الحبيب الشفيع صـ ١٧٣ )

(١٥) علامه سيوطي رحمه الله المتوفي ٩١١ هق فرمايي چې: (و قد قال الله تعالى ولاتحسبن الذين قتلو الاية والانبياء اولى بذلک فهم اجل واعظم وما من نبي الا وقد جمع مع النبوة وصف الشهادة فيدخلون في عموم لفظ الاية (الحاوي للفتاوى صـ ٥٥٦)

(١٦) علامه ظفر احمد العثماني رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې: فليس الشهيد بأولى من النبى و أن نبي الله حيٌّ يرزق ، كما ورد فى الحديث (احكام القرآن للتهانوي ج ١ صـ ٩٢) په دې باب کې دومره ډېرې حوالې دي چې د ټولو پېش کول متعذر دي، دحق د طالبانو لپاره همدومره کافي دی.

**دوهم قرآني دليل:** الله تعالى فرمايي چې: وَ مَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَّلَمُوْا أَنْفُسَهُمْ جَآءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا اللهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا (النسآء ايت ٦٤)

الله تعالى ګناهګارانو ته داسې طريقه وښودله چې رسول الله ﷺ ته راشئ او دالله تعالى څخه بښنه وغواړئ او د رسول الله ﷺ څخه هم سوال وکړئ چې دالله تعالى څخه درته بښنه وغواړي، کوم کس چې دا کار وکړي الله تعالى به يې توبه قبوله کړي او بښنه به ورته وکړي.

علماء فرمايي چې دوفات څخه وروسته دې دنبي ﷺ قبر ته ورشي او سوال دې تربښه وکړي چې دالله تعالى څخه ورته بښنه وغواړي.

علامه ظفر احمد العثماني رحمه الله فرمايي چې: (فثبت ان حكم الاية باق بعد وفاته فينبغي لمن ظلم نفسه ان يزور قبره ويستغفر الله عنده فيستغفر له الرسول) اعلاء السنن ج ۱ ص ۴۹۸ )

مولنا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله فرمايي چې دا حكم د رسول الله ﷺ د ژوند پورې خاص نه دې بلكه اوس هم دا حكم باقي دى ځكه چې نبي ﷺ په قبر كې ژوندى دى. (اب حيات ص ۵۲ )

مفتي محمد شفيع رحمه الله همدا خبره ليكي: (معارف القران ج ۲ ص ۴۵٦ ) نو دا ايت د حيات الانبياء لپاره دليل دى.

مولنا قاسم نانوتوي رحمه الله فرمايي چې دا آيت كريمه د حيات الانبياء لپاره دليل دى (اب حيات ص ۵۲ ) مولنا زكريا رحمه الله فرمايي چې دا ايت كريمه د حيات الانبياء لپاره دليل دى. (اوجز المسالک ج ۲ ص ۳۳۹. ص ۳۳۸ ).

(فتاوى عالمگيريه ج ۱ ص ۲٦۵ ص ۲٦٦ ) نور الايضاح مع مراقي الفلاح وطحاوي ص ۴۰۷ كتاب الاذكار للنوي ص ۱۷۵ ) زبدة المناسک از حضرت گنگوهي رحمه الله ص ٦۴۹ ) فتح القدير ج ۳ ص ۹۵ ).

بعضې مفسرينو دلته يوه واقعه هم ذكر كړې ده، چې يو اعرابي د رسول الله ﷺ روضې مباركې ته راغلو او داسې عرض يې وكړو چې: (السلام عليک يا رسول الله! سمعت الله يقول ولو انهم اذ ظلموا انفسهم الايه ، وقد جئتک مستغفراً لذنبي مستشفعا بک الى ربي) او ددې ځخه وروسته يې دا دوه شعرونه ولوستل چې:

| | |
|---|---|
| ياخير من دفنت بالقاع اعظمه | فطاب من طيبهن القاع والأكَمُ |
| نفسي الفداء لقبر انت ساكنه | فيه العفاف وفيه الجود والكرم |

ترجمه: اى هغه بهتر ذاته! چې ستا د خوشبويه جسم په راتللو سره ځمكه هم خوشبويه شوه، زما نفس دې د هغه قبر ځخه قربان شي په كوم كې چې ته اوسيږي: په هغې كې عفت، سخاوت او كرم دى.

ددې واقعې راوي عتبي رحمه الله فرمايي چې ماته خوب راغلو نبي ﷺ ماته په خوب كې وفرمايل چې: (ياعتبه ألحق الأعرابي فبشره أن الله تعالى قد غفر له)

د اعرابي پسې ورشه او زيرى ورته وركړه چې الله تعالى ورته مغفرت كړى دى ، دا واقعه په لاندې كتابونو كې راغلې ده: [تفسير ابن كثير ج ۲ ص ۳۸٤ ، تفسير الدر المنثور ج ۲ ص ٤٧٤ ، القول

البدیع صـ ١٦٧ ـ صـ١٦٧ ، تفسیر المدارک ج ١ صـ١٨٢ ، مغنی ابـن قدامـه ج ٣ صــ ٥٥٧ ، کتـا ب المناسک ملا علی القاري صـ ٥١٢ ، کتاب الایضاح في مناسـک الحـج والعمـرة للنـووي صــ ٤٥٥ ، حاشیه شرح الایضاح لابن حجر المکي صـ ٤٨٩]، معارف القرآن ج ٢صـ ٤٦٠)

دا شعر دمدینې منورې په دوو ستنو لیکلی شوی دی ، پدې اشعارو کې ساکن هم په حیات الانبیاء دلیل دی، دساکن لفظ د ژوندي لپاره استعمالیږي.

فقهاء دا واقعه رانقلوي او هیڅ اعتراض پرې نه کوي، چې دا ددوي تپولو په نیز دجواز دلیل دی.

امام نووي رحمه الله ددې واقعې تحسین کوي (کتاب الایضاح صـ ۴۵۴ )

امام تقي الدین السبکی رحمه الله ددې واقعې تحسین کوي.( شفاء السقام صـ ۲۳۵ )

امـام علـی ابـن احمـد الـسـمهودي رحمه الله ددې واقعـې تحسـین کـوي. (خلاصـة الوفـاء باخبـار دار المصطفی ج ١صـ٥٦ )

مماتیان تش په ژبه مولانا حسین علي الواني رَحِمَهُ اللَّهُ ته خپل امام وایي ، ځکه چې مولانا حسین علي الواني هم دا واقعه په خپل اخري کتاب کې لیکلې ده، بلکې په دې واقعه یې دصحابه وو اعتماد رانقل کړی دی، (تحریرات حدیث، باب قضاء الحاجة بالصلوة علی النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ صـ ٩٣٦)

مولنا اشرف علی تهانوي رحمه الله ددې واقعې تحسین کوي. (نشر الطیب صـ ۲۵۳ )

فانقیل: چې دا خو د اعرابي واقعه ده او د بانده چیانو عمل ته اعتبار نه وي؟

قلنا : زمونږ استدلال یوازې د اعرابي دعمل څخه ندی بلکې دحضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د تائید څخه دی.

فانقیل: چې ددې اعرابي صحابیت ندی معلوم؟

قلنا : زمونږ استدلال دحضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د تائید څخه دی،

فانقیـل: چـې بیـا خـو د (فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا۝) حکم هم باقي پاتې کیدل پکار دي، چې د اختلافي خبرو فیصله په نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ وکړو ؟

قلنا: د (وَلَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ جَآءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا اللهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا) په تفسير کې مفسرينو ليکلي دي چې دد حکم ترقيامته پورې باقي دی او د (فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُوْنَ) په تفسير کې يې ندی ليکلي.

۲- صحابه وو به خپلې فيصلې بعد الوفات د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ د قبر په خوا کې نه عرض کولې او استشفاع د حضرت علي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په مخکې شوې ده.

**دريم قرأني دليل:** وَمَا كَانَ اللهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَ اَنْتَ فِيْهِمْ وَمَا كَانَ اللهُ مُعَذِّبَهُمْ وَ هُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ۳۳۰۰]

مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې نبي ﷺ ترقيامته پورې په دنيا کې دی او ژوندی دی او رسالت يې ترقيامته پورې باقي دی، په قبر کې د رسول الله ﷺ ژوند او ترقيامته پورې د نبي ﷺ د رسالت بقاء دد خبرې لپاره دليل دی چې دا امت به ترقيامته پورې د عذاب څخه په امن وي. (معارف القران ج ۱ ص ۲۲۵).

**څلورم قرأني دليل:** يٰاَيُّهَا النَّبِيُّ اِنَّا اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّ نَذِيْرًا [۴۵۰۰الاحزاب اية ۴۵]

مفتي اعظم مولنا محمد شفيع رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې: پيغمبر ﷺ د ټولو پيغمبرانو په شمول په خپل قبر کې ژوندی دی. (معارف القرأن ج ۷ ص ۱۷۷).

**پنځم قرأني دليل:** وَمَا كَانَ لَكُمْ اَنْ تُؤْذُوْا رَسُوْلَ اللهِ وَلَا اَنْ تَنْكِحُوْا اَزْوَاجَه مِن بَعْدِه اَبَدًا۱۱. (احزاب۵۳).

قاضي ثناء الله پاني پتي رَحِمَهُ اللَّهُ دد ايت په تشريح کې فرمايي چې:(وجاز ان يكون ذلك لاجل ان النبي ﷺ حي في قبره ولذلك لَمْ يُوْرَثْ وَلَمَ يَتْئَمْ أَزْوَاجُه، عن ابي هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من صلى عليّ عند قبري سمعته ومن صلى عليّ نائيا ابلغته) تفسير مظهري ج ۷ ص ۳۷۳).

همدا سې مضمون په تفسير عثماني کې هم دی، علامه شبير احمد عثماني رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې د حيات النبي د عقيدې محققانه بحث مولنا قاسم نانوتوي په خپل کتاب (آب حيات) کی کړی دی، تفسير عثماني مفتي شفيع صاحب د دې ايت په تفسير کې ليکي چې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ د بيبيانو سره نکاح لدې وجې حرامه ده، چې هغوي امهات المؤمنين دي او له دې وجې هم چې انبياء په خپلو

قبرونو کې ژوندي دي، د نبي کريم ﷺ د وفات درجه داسې ده لکه کوم ژوندى خاوند چې د خپل کور څخه غايب شوى وي.

فانقيل: چې شهيد خو هم ژوندى دى د هغه د بي بي سره ولې نکاح جايزه ده؟

قلنا: د نبي کريم ﷺ ژوند ډير قوي او د اوچتې درجې والا دى.

**شپږم قرآني دليل:** وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَلَا تَكُنْ فِيْ مِرْيَةٍ مِّنْ لِّقَآئِهٖ (السجد ٢٣)

امام مسلم رحمه الله د دې ايت تفسير کوي او فرمايي چې: (فلاتكن في مرية من لقائه قال كان قتادة يفسرها ان النبي ﷺ قد لقى موسى عليه السلام) مسلم، باب الاسراء). امام رازي رحمه الله فرمايي چې: (فلاتكن في شک من لقاء موسى فانک تراه وتلقاه) تفسير كبير تحت هذه الاية).

رسول الله ﷺ د موسى عليه السلام شکل بيان کړو چې اوګد قد يې وو، ګرګوتې ويښتان يې وو، داسې ښکاريدلو لکه د شنُوءَ قبلې سړى. (روح المعاني) او دا د دنياوي جسم صفات دي، نو د موسى عليه السلام دغه دنياوي جسم ژوندى دى.

فانقيل: چې الله تعالى څرنګه نبي کريم ﷺ ته فرمايي چې د موسى عليه السلام په ملاقات کې شک مه کوه؟.

قلنا: د رسول الله ﷺ شک نه وو، بلکې الله تعالى پدې کې تر قيامته راتلونکي انسانان خبروي چې هغوي د انبياوو په ژوند او په ملاقات کې شک ونه کړي.

**اووم قرآني دليل:** (وَسْئَلْ مَنْ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُّسُلِنَا) (زخرف ٤٥)

امام قرطبي رحمه الله فرمايي چې: قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَابْنُ زَيْدٍ رضي الله عنهما: لَمَّا أُسْرِيَ بِرَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصٰى - وَهُوَ مَسْجِدُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ - بَعَثَ اللّٰهُ لَهُ آدَمَ وَمَنْ وُلِدَ مِنَ الْمُرْسَلِينَ، وَجِبْرِيلُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَأَذَّنَ جِبْرِيلُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ أَقَامَ الصَّلَاةَ، ثُمَّ قَالَ: يَا مُحَمَّدُ! تَقَدَّمْ فَصَلِّ بِهِمْ، فَلَمَّا فَرَغَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ جِبْرِيلُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [سَلْ يَا مُحَمَّدُ مَنْ أَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رُسُلِنَا أَجَعَلْنَا مِنْ دُونِ الرَّحْمٰنِ آلِهَةً يُعْبَدُونَ. فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [لَا أَسْأَلُ قَدِ اكْتَفَيْتُ]. قُلْتُ: هٰذَا هُوَ الصَّحِيحُ فِي تَفْسِيرِ هٰذِهِ الْآيَةِ. (قرطبى تحت هذ الاية)

د دې ايت لاندې خاتم المحدثين محمد انور شاه کشميري رحمه الله فرمايي چې (يستدل به على حيات الانبياء) (مشكلات القران صـ٢٣٤)

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله دې قول ته ترجيح ورکوي، چې دا ملاقات د روح مع الجسد سره وو لکه څرنګه چې فرمايي چې: وَقَدِ اسْتُشْكِلَ رُؤْيَةُ الْأَنْبِيَآءِ عليهم السلام فِي السَّمَاوَاتِ مَعَ أَنَّ أَجْسَادَهُمْ مُسْتَقِرَّةٌ فِي قُبُورِهِمْ بِالْأَرْضِ وَأُجِيبَ بِأَنَّ أَرْوَاحَهُمْ تَشَكَّلَتْ بِصُوَرِ أَجْسَادِهِمْ أَوْ أُحْضِرَتْ أَجْسَادُهُمْ لِمُلَاقَاةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ اللَّيْلَةَ تَشْرِيفًا لَهُ وَتَكْرِيمًا وَيُؤَيِّدُهُ حَدِيثُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ هَاشِمٍ عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه فَفِيهِ وَبُعِثَ لَهُ آدَمُ فَمَنْ دُونَهُ مِنَ الْأَنْبِيَاءِ عليهم السلام (فتح الباري ج٧ ص٢١٠).

## د احاديثو څخه دلائل

**فائده:** کوم احاديث چې مونږ پيش کوو ،نو تصحيح يې هم پيش کوو، که بالفرض کوم حديث ضعيف وي بيا هم ترينه استدلال صحيح دی، ځکه چې د محدثينو يو اصل دادی چې کوم حديث ته چې تلقي بالقبول حاصل وي او د اجماع تائيد ورته حاصل شي هغه په حکم د متواتر کې وي دا اصل په لاندې کتابونو کې وګوره:

١-فتح القدير لابن همام، كتاب الطلاق، فصل ويقع طلاق كل زوج اذا كان عاقلاً، بالغا.

٢-اعلام الموقعين لابن القيم الحنبلي ، كتاب عمر فى القضاء و شرحه، باب القول فى القياس ، فصل كان اصحاب النبى صلى الله عليه وعلى آله وسلم يجتهدون ويقيسون .

٣-تدريب الراوي للشيخ جلال الدين السيوطي ،انواع الحديث، النوع الاول حد الصحيح .

٤-الامصاح على نكت ابن الصلاح (ج ١ صـ ٧٨، لابن حجر ).

٥-فتح المغيث ج ١ صـ ٣٥٠)، لشمس الدين السخاوي رحمه الله

٦-عقد الجيد فصل فى العامي.

### اول دليل:د حضرت أنس رضى الله عنه حديث:

امام ابو يعلى فرمايي چې: حَدَّثَنَا أَبُو الْجَهْمِ الْأَزْرَقُ بْنُ عَلِيٍّ رحمه الله، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي بُكَيْرٍ رحمه الله، حَدَّثَنَا الْمُسْتَلِمُ بْنُ سَعِيدٍ رحمه الله، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ رحمه الله، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه، قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْأَنْبِيَاءُ أَحْيَاءٌ فِي قُبُورِهِمْ يُصَلُّونَ» .(مسند ابى يعلى ج٦ ص١٤٧ رقم ٣٤٢٥)

توثيق رواة السند .(١) الامام ابو يعلى الموصلى (المتوفى سن ٣٠٧ هجرى، حافظ محدث الجزيرة (٢) ابو الجهم الازرق ذكره ابن حبان فى الثقات وقال يغرب تهذيب التهذيب تحت ترجمته

حافظ ابن حجر فرمايي صدوق يغرب (تقريب ص۲۱ ج۳)

(۳) يحيى ابن ابى بكير، اسمه نسر، امام محمد، امام ابن معين، امام عجلى، امام ابو حاتم، ابن حبان، ابن المدينى وغيره ورته ثقة او صدوق وايى (تهذيب التهذيب تحت ترجمته)

(۴) مسلم بن سعيد، امام احمد ورته ثقه وايي

امام ابن معين ورته صويلح وايئ امام نسائى ورته لا بأس به ويلي دى او ابن حبان ورته ثقة ويلي دي، حافظ ابن حجر فرمايى چې صدوقٌ عابدٌ ربما وهم (تهذيب التهذيب ج۱۰ص۱۰٤ تقريب ص ۳۳۳

(٥) حجاج ابن الاسود امام احمد ورته ثقة او رجلٌ صالحٌ ويلي دي، امام ابن معين ورته ثقة ويلي دي ابن حبان ورته ثقة ويلي دي، امام ابو حاتم ورته صالح الحديث ويلي دي (لسان الميزان ج۲ ص ۱۵۷

(٦) ثابت البنانيي جليل القدر تابعي او دصحاح سته مركزي راوي دى، امام نسائي ورته ثقة ويلي دي، امام عجلي ورته ثقة ويلي دي ابن سعد او ابن حبان ورته ثقة ويلي دي امام احمد ورته متثبت فى الحديث ويلى دي (تهذيب التهذيب تحت ترجمته)

**دا حديث په لاندې كتابونو كې هم راغلى دى:**

تاريخ اصبهان ج ۲ صـ ٤٤، مجمع الزوائد ج ۸ صـ ۳۸٦، فيض القدير ج ۳ صـ ۲۳۹، حياة الانبياء بيهقي صـ ۷۰ ـ صـ ۷۲ ـ ۷٤، شفاء السقام صـ ۳۹۱). (تبليغي نصاب فضايل درود صـ ۲۳)

ترجمه: پېغمبران پخپلو قبرونو كې ژوندي دي لمونځونه كوي.

استدلال: انبياء جمع دنبي ده، او نبي روح مع الجسد ته وايي، نو مجموعه د روح او جسد ژوندى شو، همدارنگه د حيات حقيقي معنى جسماني حيات دى او ددې تاكيد يې وفرمايلو په (في قبورهم) باندې او په قبر كې جسم دى، نو دا جسماني حيات شو، همدارنگه يې وروسته داسې فعل ذكر كړو چې دهغې نسبت بدن ته كيږي چې (يصلون) دى

محمد انور شاه اكشميري رحمه الله فرمايي چې: ان كثيرا من الاعمال قد ثبت فى القبور كالاذان والاقامة عند الدارى وقراءة القران عند الترمذى والحج عند البخارى (فيض البارى صـ ۱۸۳) دا اعمال د جسم دي، نو صرف لمونځ نه كوي، بلكې ترحج پورې اعمال كوي.

**مصححين او مستدلين:**

لاندې محدثينو دې حديث ته صحيح ويلي دي او د حيات الانبياء لپاره يې ترېنه استدلال کړى دى:

(۱) امام بيهقي دا حديث په متعدد و طريقو نقل کړى دى او استدلال يې ترېنه کړى ده (حيات الانبياء صـ ۷۰ ).

(۲) امام تقي الدين السبكي شفاء السقام صـ ۳۹۱ .

(۳) حافظ ابن حجر: فتح الباري ج ٦ صـ ٥٩٤ .

(٤) امام هيثمى فرمايي چې: رجال حديث ابى يعلى ثقات (مجمع الزوائد ج ۸ صـ ۳۸٦، ۲۱۱.

(٥) ملاعلى القاري فرمايي چې: صح خبر الانبياء احياء فى قبورهم (مرقات ج ۳ صـ ٤١٥.

(٦) علامه مناوي فرمايي چې: هذا حديث صحيح (فيض القدير ج ۳ صـ ۲۳۹).

(۷) امام سمهودي فرمايي وقد قال صلى الله عليه وسلم عليه وسلم كما رواه الحافظ المنذرى : علىّ بعد وفاتى كعلىّ فى حياتى ،ولابن عدى فى كامله وابى يعلى رجال ثقات، عن أنس رضى الله عنه مرفوعا، الأنبياء احياء فى قبورهم يصلون وصححه البيهقى،( خلاصة الوفاء ج ۱ صـ ٤٣).

(۸) زرقاني، وجمع البيهقى كتابا لطيفا فى حياة الانبياء و روى فيه باسناد صحيح عن أنس مفروعا الانبياء أحياء فى قبورهم يصلون( شرح زرقاني ج ٤ صـ ۳٥۷.

(۹) علامه سيوطي ، ابناء الاذكياء.

(۱۰) علامه عزيزي هوحديث صحيح (السراج المنير ج ۲ صـ ۱۳٤.

(۱۱) شيخ محدث عبد الحق دهلوي ، (معارج النبوة ج ۲ صـ ٥۲۷).

(۱۲) علامه شبير احمد العثماني ، (فتح الملهم ج ۲ صـ ۳۸۸).

(۱۳) علامه انور شاه كشميري ، ووافقه الحافظ فى الجلد السادس( فيض الباري ج.۲ صـ ٦٤.

(١٤) علامه ظفراحمد العثماني، (اعلاء السنن ج ۱۰ صـ ٥٠٥).

(۱٥) فتاى حقانيه ج ۱ صـ ۱٥۸).

(١٦) خيرالفتاوى ج ۱ صـ ۹۸).

(۱۷) مولنا نصيرالدين الغورغوشتوي (حاشيه مشكوة صـ ۱۱۲).

(۱۸) مولنا سرفراز خان صفدر رحمه الله (تسكين الصدرو صـ ۲۱۲).

(۱۹) قاضي شوكاني ، لانه صلى الله عليه وسلم حيٌّ فى قبره ورحه لاتفارقه لما صح ان الانبياء احياء فى قبورهم(نيل الاوطار ج ۳ صـ ۲۶۳ وتحفة الذاكرين للشوكاني ج ۱ صـ ٤۲ وغيرهم .

## پدې حديث د اعتراضاتو ځخه جوابات:

**۱- اعتراض:** امام ذهبي رحمه الله په دې حديث باندې اعتراض كړى دى چې: حجاج بن الاسود عن ثابت البناني نكرة ماروى عنه فيما اعلم سوى مستلم بن سعيد فاتى بخبر منكر عنه عن انس فى ان الانبياء احياء فى قبورهم يصلون (رواه البيهقي) ميزان الاعتدال ج ۲صـ ۲۰۰) خلاصه دا چې ددې حديث راوي حجاج بن الاسود مجهول دى او دده د مجهول والي دليل دا دى چې دده ځخه روايت كونكى صرف مستلم بن سعيد دى .

**جواب:** نور محدثين دامام ذهبي رحمه الله سره په دې خبره كې متفق نه دي، حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله دهغو محدثينو نومونه ذكر كړي دي چې دحجاج بن الاسود ځخه يې روايتونه كړي دي، فرمايي چې: وعنه جرير بن حازم، وحماد بن سلمة، وروح بن عبادة واخرون (لسان الميزان ج ۲ ۱۵۷، ج ۲صـ ۱۵۷، وفى البعض صـ ۱۷۵).

دكوم راوي ځخه چې دوه راويان روايت وكړي هغه مجهول الذات نه وي او دلته د حجاج بن الاسود ځخه روايت كونكي كم ازكم شپږ شو ، درې حافظ ابن حجر رحمه الله په نومونو سره ذكر كړل او بيا يې په «اخرون» باندې تعبير وكړو او «اخرون» جمع ده، اقل افراد يې درې دي، لهذا په اعتبار د ذات سره دحجاج بن الاسود دمجهول والي اعتراض ختم شو .

حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله بيا دلويو لويو محدثينو ځخه دده توثيق رانقل كړى دى، لكه دامام احمد ، ابن معين ، ابن حبان، او دابو حاتم رحمهم الله ځخه، فرمايي چې: قال احمد ثقة ورجل صالح وقال ابن معين ثقة وقال ابو حاتم صالح الحديث وذكره ابن حبان فى الثقات فقال حجاج بن أبي زياد الاسود من أهل البصرة كان ينزل القسامل ، روى عن ابى نضرمة وجابر بن زيد روى عنه عيسى بن يونس وجرير بن حازم (لسان الميزان ج۲صـ ۱۵۷)، لهذا دده مجهولوالى په اعتبار د وصف سره هم ختم شو .

علامه ذهبي رحمه الله ، د(وفيما أعلم) لفظ ويلى دى، دې خبرې ته يې اشاره كړې ده چې زه حجاج ته دخپل علم مطابق مجهول وايم ، يعنې كه بل چاته دده ځخه نور روايت كونكي معلوم وي نو بيا دده دمجهولوالي

اعتراض نه پاتې کيږي، لهذا دا حديث منکر ندی، منکر هغه حديث ته وايي چې راوي يې ضعيف وي او د ثقه څخه مخالف وي او دلته اول خو راوي ضعيف نه دی او بل يې د هيڅ ثقه څخه مخالفت ندی کړی.

**۲- اعتراض:** الازرق بن علي الحنفي ابو الجهم صدوق يغرب. (تهذيب التهذيب رقم ۳۰۱)

**الجواب۱:** ان الغرابة لاتنافي الصحة ويجوز ان يكون الحديث صحيحاً غريباً (مقدمة المشكوة صـ٦)

**۲-** همدارنګه دابو الجهم متابع عبدالله بن يحی بن أبی بکير موجود دی، تاريخ اصبهان ج۲ صـ۴۴)

اعتراض: حافظ ابن حجر د مستلم بن سعيد په باره کې ليکلي دي چې: صدوق ربما وهم، ريښتنی وو کله د وهم ښکار وو؟

**الجواب ۱:** علامه سخاوي دا تضعيف رد وي او فرمايي چې وثقة احمد وابن حبان (القول البديع ص ۱۷۲).

**۲-** علامه ظفر احمد العثماني د تعديل درجات ليکلي دي د پنځمې درجې الفاظ يې داسې ليکلي دي چې: صدوق يهم، صدوق له او هام صدوق يخطئ (قواعد فی علوم الحيدث مع اعلاء السنن صـ۸۹۷۲)

## دحيات الانبياء په باره کې دامام ذهبي (رحمه الله) عقيده

امام ذهبي رحمه الله فرمايي: والنبي ﷺ مفارق لساير أمته في ذالک، فلايبلى، ولاتأكل الارض جسده ولايتغير ريحه، بل هو الأن ومازال أطيب ريحا من المسک، وهو حيٌّ في لحده حياة مثله فی البرزخ التي هی اكمل من حيات ساير الانبياء، وحياتهم بلاريب أتم وأشرف من حيات الشهداء الذين هم بنص الكتاب أحياء عند ربهم يرزقون (سير اعلام النبلاء، ترجمه وكيع بن الجراح)

**۳- فانقيل: چې دا حديث د قرآن څخه مخالف دی په قرآن کې راځي چې اِنَّكَ مَيِّتٌ ؟**

قلنا: په اِنَّكَ مَيِّتٌ کې د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ سره د مرګ وعده شوې ده او دا وعده پوره هم شوه، زمونږ خبره په حيات بعد الوفات کې ده.

فانقيل: چې الله تعالى فرمايي (وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ) تر هغې پورې دالله عبادت کوه تر څو چې وفات درته راشي نو عالم البرزخ خو دار العمل ندی نو څرنګه پکې انبياء عبادت کوي؟

قلنا: دانبياء وو عبادت تکليفي او وجوبي ندي بلکې تلذذي دی او به (وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ) کې دتکليفي او وجوبي عبادت ذکر شوی دی په عالم البرزخ کې او د عالم البرزخ څخه وروسته تلذذي عبادات ثابت دی، مثلا الله تعالى فرمايي چې (يَوْمَ يُدْعَوْنَ اِلَى السُّجُوْدِ فَلَا يَسْتَطِيْعُوْنَ) همدرانګه

الله تعالی فرمایي چې (دَعْوٰىهُمْ فِيْهَا سُبْحٰنَكَ اللّٰهُمَّ وَتَحِيَّتُهُمْ فِيْهَا سَلٰمٌ وَّاٰخِرُ دَعْوٰىهُمْ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ)

علامه انور شاه الکشمیری رحمه الله فرمایي چې: ان کثیرا من الاعمال قد ثبت فی القبور کالاذان والاقامة عندالدارمی وقراءة القرآن عند الترمذی (فیض الباری ج ۱ص ۱۸۳)

په قیامت کې به قاري د قرآن تلاوت کوي، یقال لصاحب القرآن اقرء وارتق ورتل کما کنت ترتل فی الدنیا (ترمذي، ابواب فضایل القرآن)

**دوهم د ابو الدرداء رضی الله عنه حدیث:** په مشکوة شریف باب الجمعة دریم فصل کې د ابو الدرداء رضی الله عنه حدیث دی چې: عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "أَكْثِرُوا الصَّلَاةَ عَلَيَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فَإِنَّهُ مَشْهُودٌ تَشْهَدُهُ الْمَلَائِكَةُ، وَإِنَّ أَحَدًا لَنْ يُصَلِّيَ عَلَيَّ إِلَّا عُرِضَتْ عَلَيَّ صَلَاتُهُ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهَا" قَالَ: قُلْتُ: وَبَعْدَ الْمَوْتِ؟ قَالَ: "وَبَعْدَ الْمَوْتِ، إِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَنْ تَأْكُلَ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ عليهم السلام"، فَنَبِيُّ اللّٰهِ حَيٌّ يُرْزَقُ (سنن ابن ماجه ص۱۱۸ باب ذکر وفاته ﷺ)

یعنې نبي ﷺ فرمایي چې د جمعې په ورځ په ما باندې ډېر درود وایي ځکه چې دا د حاضرۍ ورځ ده، پدې کې ملایکې حاضرېږي او څوک چې په ما باندې درود ووایي نو د درود څخه تر فارغېدلو پورې یې په ما باندې درود پېش کولی شي، حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه فرمایي چې ما عرض وکړو چې ایا ستاسو د وفات څخه وروسته هم په تاسو باندې درود پېش کولی شي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چې هو د وفات څخه وروسته هم پېش کولی شي، بېشکه چې الله تعالی په زمکه باندې حرامه کړې ده چې د پېغمبرانو بدن وخوري، فلهذا د الله تعالی پېغمبر ژوندی دی رزق ورکول کېږي، د دې حدیث څخه په درېو طریقو باندې د پېغبرانو ژوند ثابتېږي، (۱) په دې حدیث کې نبي ﷺ صحابه کرامو ته ترغیب ورکړو چې د جمعې په ورځ په ما باندې ډېر درود وایي ځکه چې ستاسو درود ونه ماته پېش کولی شي، یعنې زما روح مع الجسد ته پېش کولی شي، ځکه چې د (عليّ) کلمه د روح مع الجسد لپاره استعمالیږي ځکه چې د (عليّ) لفظ د نبی صلی الله علیه وسلم په ذات باندې دلالت کوي او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ذات د روح مع الجسد څخه عبارت دی، نو روح مع الجسد ژوندی شو د وفات څخه مخکې د درود ونو په پېش کولو کې صحابه کرامو ته هیڅ اشکال نه وو ځکه چې د صلوة او د سلام لپاره د روح او د جسد تعلق ضروري دي او دا تعلق د وفات څخه مخکې شته لکن د وفات څخه وروسته ورته

اشکال پیدا شو او دا اشکال لپاره منشأ دوه مقدمې وی او له دا چې: د درود پیش کول خو په روح او په جسد دواړو باندې کیږي، که یو ائې په روح عرض کیدلی نو بیا صحابه وو ته اشکال نه پیښدلو.

او دوهمه دا چې: د وفات څخه وروسته به د نبي ﷺ جسد هم د عامو جسدونو په شان میده میده کیږي، نو د صلوة او د سلام عرض کول به څرنګه ممکن شي؟ نبي ﷺ په اوله مقدمه باندې رد ونکړ، بلکه سکوت یې وکړ او په دوهمه مقدمه باندې یې رد وکړ، نو معلومیږي دا چې اوله مقدمه صحیح ده، نو د وفات څخه وروسته صلوة او سلام په روح او جسد دواړو باندې عرض کولی شي، نو د صحابه کرامو د دې سوال او د نبي ﷺ د جواب څخه معلومیږي چې د نبي ﷺ جسد محفوظ دی او د روح دومره تعلق ورسره شته دی چې د هغه په وجه د امت د صلوة او د سلام ادراک وکړي که جسد مبارک ژوندی نه وي نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم به په جواب کې فرمایلي چې زما روح ژوندی دی او ستاسو سلامونه زما روح ته پیش کولی شي، همدا رنګه دا هم معلومه شوه چې صلوة او سلام جسد عنصري ته پیش کولی جسد مثالي ته نشي پیش کولی (۲) د دې حدیث په اخري جمله کې تصریح شوې ده چې د وفات څخه وروسته پیغمبران ژوندي دي او رزق ورکول کیږي.

د دې حدیث اخري جمله په حرف فاء باندې مصدره ده، یعنې حیات یې په حفاظت الاجساد باندې مرتب کړی دی، نو دا ژوند به د دې جسد عنصري د حفاظت نتیجه وي، نو د جسد عنصري سره متعلق ژوند شو.

امام ابن ماجه دا حدیث د وفات النبي ﷺ په باب کې ذکر کړی دی، په دې کې د دې خبرې ته اشاره کوي چې د حیات الانبیاء والا احادیث د وفات الانبیاء سره معارض نه دي، بلکه د حیات الانبیاء والا احادیث د وفات الانبیآء لپاره تکمله ده، د وفات النبي ﷺ دا حوالو ذکر تر هغې پورې ناقص دی، تر څو پورې چې د حیات الانبیاء فی القبر ذکر ورسره نه وي شوی.

**مصححين او مستدلين:**

دا حدیث بالکل صحیح دی، لاندې محدثینو ورته صحیح ویلی دي او د حیات الانبیاء لپاره یې ترې څخه استدلال کړی دی.

(۱) علامه مناوي رحمه الله قال الدميرى رجاله ثقات، (فيض القدير ج ۲ صـ ۱۱۱).

(۲) حافظ منذري رحمه الله اسناده جيدٌ (ترجمان السنة ج ۳ صـ ۲۹۷).

(۳) ملا علي القاري رحمه الله، مرقات ج ۳ صـ ٤١٥ وفى البعض صـ۲٤۲).

(٤) حافظ ابن حجر رحمه الله رجاله ثقات (تهذيب التهذيب ج ٢ صـ ٥٣٧ تحت ترجمة زيد بن ايمن.

(٥) شوكاني وقد أخرج ابن ماجه باسناده جيد ، نيل الاوطار ج ٣ صـ ٢٦٣.

(٦) الامام السمهودي ولابن ماجه باسناده جيد عن ابى الدرداء مرفوعا اكثروا الصلوة على يوم الجمعة، (خلاصه الوفاء ج ١ صـ ٤٣)

(٧) عون المعبود وقد أخرج ابن ماجه باسناد جيد أنه صلى الله عليه وسلم قال لأبى الدرداء أن الله تعالى حرم على الارض أن تأكل اجساد الانبياء( ج ٣ صـ ٢٦١ .

## پدې حديث د اعتراضاتو ځخه جوابات:

**۱- اعتراض:** دا روايت مرسل او منقطع دى په دې حديث کې زيد بن ايمن دعبادة بن نسي ځخه نقل کوي او دزيد سماع دعبادة بن نسي ځخه نه ده ثابته .

**جواب۱-:** ددې حديث لپاره صرف دا يوه طريقه نه ده ، ملا علي القاري رحمه الله فرمايي چې: (باسناد جيد نقله ميرک عن المنذري وله طرق کثيرة بالفاظ مختلفة ) (مرقاة ج ٣ صـ ٢٤٢).

**۲جواب:** د مرسل او يا د منقطع روايت تائيد چې د نورو رواياتو ځخه وشي هغې ته مرسل معتضد وايي او دا بالاتفاق حجت وي، د زيات تفصيل لپاره تسکين الصدور ته رجوع وکړئ.

**۲- اعتراض:** دا حديث خو خبر واحد دى او دخبر واحد ځخه خو عقيده نه ثابتيږي .

**جواب:** دې حديث ته تلقى بالقبول حاصله ده او داجماع الأمة تائيد هم ورته هم حاصل دى او هرکله چې خبر واحد ته دتلقى بالقبول شرف حاصل شي، يا ورته داجماع دأمة تائيد حاصل شي نو دهغه ځخه بلاشک عقيده ثابتيږي.

**۳-اعتراض:** مماتيان وايي چې تاسو وايي چې نبى عليه السلام ژوندى دى، زمکه دهغوي جسم ته نقصان نشي رسولى او دانبياوو جسد ونه صحيح سالم او محفوظ دي، نو هر کله چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم ژوندى شو نو بيا خو ځه کمال او احترام نه پاتې کيږي ځکه چې عام انسانان هم چې کله ژوندي وي نو زمکه دهغوي جسم نشي خوړلى ، کمال خو دا دى چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم مړ وي او ځمکه ورته نقصان ونه رسوي.

**جواب:** بعد الوفات دانسان مکمل تعلق دزمکې سره راشي او قبل الوفات يې دزمکې سره دومره تعلق نه وي له دې وجې ځخه زمکه ژوندي ته نقصان نه رسوي، راځئ تجربه به وکړو، يو ژوندى مماتي به

ديو كال دپاره دفن كړو ، بيا به وګورو چې دده جسم زمكه خوري او كنه؟ دا خبره غلطه ده چې كله په بدن كې روح وي يا يې تعلق وي نو بيا هغه ته زمكه نقصان نشي رسولى بلكه دانسان تخليق دڅلورو عناصرو څخه شوى دى ، اور ، اوبه ، هوا ، خاوره ، نو اوس كه دا څلور واړه يا ددې څخه يو په انسان باندې زيات شي نو انسان ختموي ، كه اوبه زياتې شي نو انسان غرقوي ، كه اور زيات شي نو انسان سوزوي او كه هوا زياته شى انسان الوزه وي او كه خاوره زياته شي نو انسان ختموي، انبياء په دې څلورو واړو عناصرو باندې غالب وي، ابراهيم په اور غالب شو موسى عليه السلام په اوبو غالب وو او په قوم عاد باندې دهوا عذاب وو خو نبى عليه السلام يې ورباندې غالب شو ، نو همداسې ټول انبياء عليهم السلام په خاوره هم غالب دي.

**لطيفه:** حجة الله فى الارض محمد أمين صفدر اوكاړوي رحمه الله فرمايي چې په بهاولپور كې زما دتقرير پروګرام وو اشاعتي مماتيانو دمخكې څخه مشوره كړې وه چې شور به جوړوو ، كله چې ما خطبه شروع كړه نو مماتيانو شور شروع كړو ، زه چپ شوم او دوي ته مې وويل چې زه خپل تقرير ته پنځلس دقيقې توقف وركوم تاسو خپل شور وكړئ، مماتيان چپ شول، ما ورته وويل چې ولې چپ شوې؟ خپل شور كوئ كنه ، هغوي بيا هم غلي وو ، ما ورته وويل چې شور مكوئ، ځان په خبره پوه كړئ، زه يوه پوښتنه كوم چې زمونږ او ستاسو په مابين كې دا مسئله اتفاقي ده چې دانبياوو عليهم السلام اجساد په خپلو قبرونو كې محفوظ دي، هغوي راته وويل چې هو بالكل دانبياوو اجساد محفوظ دي، ما ورته وويل چې ددې محفوظوالي لپاره څه دليل دى؟ هغوي دغه مذكور حديث ذكر كړو ، ما ورته وويل چې ددې حديث څخه بغير بل كوم دليل لرئ؟ هغوي وويل چې نه ، ما ورته وويل چې كله ددې حديث څخه دانبياؤ داجسادو محفوظوالى ثابت دى نو په همدې حديث كې خو د(نبى الله حى يـرزق ) جمله هم شته نو څرنګه نيم حديث منئ و نيم نه منئ؟ او څرنګه حديث نيم صحيح دى او نيم غير صحيح دى؟ تسكين الأذكياء حضرت مولانا محمود عالم صفدر صـ ۳۹۶)

**دريم دحضرت أوس بن اوس رضي الله عنه حديث:**

قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِنْ أَفْضَلِ أَيَّامِكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ، فِيهِ خُلِقَ آدَمُ، وَفِيهِ قُبِضَ، وَفِيهِ النَّفْخَةُ، وَفِيهِ الصَّعْقَةُ، فَأَكْثِرُوا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِيهِ، فَإِنَّ صَلَاتَكُمْ مَعْرُوضَةٌ عَلَيَّ» قَالَ: قَالُوا: يَارَسُولَ اللّٰهِ! وَكَيْفَ تُعْرَضُ صَلَاتُنَا عَلَيْكَ وَقَدْ أَرِمْتَ - يَقُولُونَ: بَلِيتَ -؟ فَقَالَ: «إِنَّ اللّٰهَ عَزَّوَجَلَّ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ».

**(سنن ابى داود ج۱ صـ۱۵۷، باب تفريع ابواب الجنة دارمي ج ۱ صـ ۳۹۷، باب فى فضل الجمعة ابن ماجه صـ ۱۱۹، باب ذكر وفاته ودفنه)**

يعنې دجمعې ورځ بهترينه ورځ ده، په دې ورځ کې ادم عليه السلام پيدا شو او په همدې ورځ کې وفات شو او په همدې ورځ باندې به اوله شپيلۍ او دوهمه شپېلۍ وهلی شي، نو په دې ورځ کې په ما باندې ډېر درود وايئ بېشکه چې ستاسو درودونه ماته پيش کولی شي، صحابه وو عرض وکړو چې يارسول الله ﷺ زمونږ درودونه به تاته څرنګه پيش کولی شي؟ حال دا چې ته به ريزه ريزه شوی يې؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې الله تعالی په زمکه باندې حرامه کړې ده چې دپيغمبرانو اجساد وخوري، ددې حديث څخه داستدلال طريقه لږ مخکې ددوهم نمبر حديث په تشريح کې وليکل شوه.

**مصححين او مستدلين:**

لاندې محديثينو دې حديث ته صحيح ويلي دي او دحيات الانبياء لپاره يې ترېنه استدلال کړی دی.

(۱) امام نووي: كتاب الاذكار صـ ۱۵۰ رقم الحديث ۳۴۵. په رياض الصالحين صـ ۵۳۰، کې فرمايي چې (رواه ابوداود باسنادٍ صحيح)

(۲) حافظ حاكم: امام حاكم دوه ځايه ددې حديث تخريج کړی دی يو د كتاب الجمعه په شروع کې او بيا يې ورته صحيح على شرط البخاري ويلي دي او امام ذهبي يې موافقت کړی دی او بل په كتاب الابوال کې هلته يې ورت صحيح على شرط الشيخين ويلي دي او اما ذهبي يې موافقت کړی دی، المستدرك ج ۱ صـ ۵۶۹ رقم ۱۰۶۸.

(۳) امام ابن حجر: (فتح الباري ج ٦ صـ ٥٩٥).

(٤) امام ذهبي: ، (تلخيص المستدرك ج ۱ صـ ٥٦٨.)

(٥) حافظ عبدالغني: ، (القول البديع صـ ١٦٧).

(٦) امام منذري: ، (القول البديع صــ ١٦٣).

(٧) وقد صحح هذا الحديث ابن خزيمه ، وابن حبان ، والدارقطني ،والنووي فى الاذكار (تفسير ابن كثير تحت قوله تعالى: ان الله وملئكته يصلون على النبى الاية)

(٨) علامه عيني ، فرمايي چې : (الموت ليس بعدم انما هو انتقال من دار الى دار فاذا كان هذا للشهداء كان الانبياء بذالک احق وأولى مع انه صح عنه ان الارض لاتأكل اجساد الانبياء. (عمدة القاري، باب مايذكر فى الاشخاص والخصومة بين المسلم واليهودي) .

(٩) وفى جلاء الافهام ومن تأمل هذ الاسناد لم يشک فى صحته لثقة رواته وشهرتهم وقبول الائمة احاديثهم،( ج ١ صـ ٨٠ ).

(١٠) وقال ابن العربى حديث حسن، (التذكرة ج ١ صـ ٢٠٤ ).

**خلورم دحضرت أنس رضى الله عنه حديث:**

**(١١) حَدَّثَنَا هَدَّابُ بْنُ خَالِدٍ، وَشَيْبَانُ بْنُ فَرُّوخَ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ رحمهما الله تعالى، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، وَسُلَيْمَانَ التَّيْمِيِّ رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ﷺ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "أَتَيْتُ -وَفِي رِوَايَةِ هَدَّابٍ: مَرَرْتُ- عَلَى مُوسَى ﷺ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي عِنْدَ الْكَثِيبِ الْأَحْمَرِ، وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي فِي قَبْرِهِ. (صحيح مسلم ج٢ صــ ٢٦٨ باب من فضايل موسى)**

نبي ﷺ فرمايي: چې د معراج په شپه زه په موسى ﷺ باندې د سرې غونډۍ سره نږدې تير شوم حال دا چې موسى ﷺ په قبر کې په مونځ باندې ولاړ وو.

دلته د موسى ﷺ په ځمکنى قبر باندې تيرېدل شوي دي په عليين ندي شوي، او د موسى ﷺ د مونځ ذکر په همدې ځمکني قبر کې شوى دى، او په ځمکني قبر کې جسد عنصري دفن دى، نو جسد عنصري دنيوي د موسى عليه السلام يې په مونځ باندې ليدلى دى، نور د مانځه کيفيت الله تعالى ته معلوم دى ، په قبر کې دريدل او لمونځ کول د ژوندي جسم صفات دي، نو چې د موسى عليه السلام جسد عنصري ژوندى دى نو د رسول الله ﷺ به په طريقه اولى باندې ژوندى وي، د موسى ﷺ ژوند دلته په عبارت النص باندې ثابت دى او د نبي ﷺ ژوند په دلالت النص باندې ثابت دى.

توثيق الرواة: هَداب بن خالد : قال على بن الجنيد عن ابن معين ثقة وقال ابو حاتم صدوق، وقال ابن عدى سمعت ابا يعلى وسئل عن هداب وشيبان ايهما افضل فقال هداب افضلهما و واثقهما

حديثا وقال ابن عدى لم ارى له حديثا منكرا وهو كثير الحديث صدوق لا بأس به وقد وثقه الناس (تهذيب التهذيب تحت ترجمته)

(۱۲) حماد بن سلمة: قال حنبل عن احمد اسند حماد بن سلمه وقال ابن المدينى لم يكن فى اصحاب ثابت اثبت من حماد بن سلمة وقال ابن عمر الجرى ما رأيت فقيها افضل من عبدالوارث وكان حمادبن سلمه افصح منه وقال البيهقى هو احد أيمة المسلمين وقال الساجى كان حافظا ثقة ماموناً وقال العجلى ثقة رجل صالح حسن الحديث (تهذيب التهذيب تحت ترجمته)

(۱۳) ثابت بن اسلم البنانى: وقال ابو طالب عن احمد اثبت يثبت فى الحديث وقال العجلى ثقة رجل صالح وقال البنانى ثقة وقال بكر المدنى ما أدركنا اعبد منه وقال ابن حبان فى الثقات كان اعبد اهل البصرة (تهذيب التهذيب تحت ترجمته)

ډېرو محدثينو دې حديث څخه دحيات الانبياء لپاره استدلال کړی دی، دنمونې په طريقه به مونږ صرف ددوو محدثينو ذکر کوو.

(۱۴) علامه تقی الدين السبکي رحمه الله فرمايلي دي چې: (وشهد له صلوة موسى ﷺ في قبره فان الصلوة تستدعي جسدا حياً) (شفاء السقام صـ ۱۹۱)

(۱۵) علامه سندهي رحمه الله دنسائي په حاشيه کې دبدرالدين بن صاحب رحمه الله څخه نقل کوي فرمايي چې: (قال الشيخ بدرالدين الصاحب هذا صريح في اثبات الحيوة لموسى ﷺ في قبره فانه وصفه بالصلوة وانه قائم ومثل ذالک لايوصف به الروح وانما يوصف به الجسد وفى تخصيصه بالقبر دليل على هذا فانه لوكان من اوصاف الروح لم يحتج لتخصيصه. (حاشيه نسائي ج ۱ صـ ۲۴۲)

**په دې حديث د اعتراضاتو څخه جواب:**

**۱- اعتراض** - نبی کريم ﷺ اول موسى عليه السلام په قبر کې وليدلو، بيا يې ورسره په بيت المقدس کې ملاقات وشو، بيايي ورسره په اسمانونو کې ملاقات وشو، نو ددې څخه خو معلوميږي چې موسى عليه السلام په هر وخت کې په هر ځای کې حاضر او ناظر وو.

**۱- جواب:** يو ذات لره په مقاماتو مختلفه وو کې په اوقات مختلفه وو کې ليدل صحيح دي او ددې څخه په هر ځاې کې په هر وخت کې حاضر او ناظر کيدل نه لازميږي، مثلا مونږه نن سهار اته بجې زيد په

مدرسه کې ولیدلو بیا مو دولس بجې په مرکز کې ولیدلو، بیا مو دوه بجې په سنګر کې ولیدلو، نو ددې څخه دانه لازمیږي چې زید، په هر ځای کې په هر وخت کې حاضر او ناظر دی دحاضر او دناظر کیدلو مطلب دادی چې یو ذات په یو وخت کې دکائناتو په ټولو مقاماتو کې موجود وي.

حافظ ابن حجر فرمايي: وَصَلَاتُهُمْ فِي أَوْقَاتٍ مُخْتَلِفَةٍ وَفِي أَمَاكِنَ مُخْتَلِفَةٍ لَا يَرُدُّهُ الْعَقْلُ وَقَدْ ثَبَتَ بِهِ النَّقْلُ فَدَلَّ ذَٰلِكَ عَلَىٰ حَيَاتِهِمْ (فتح الباری)

**دوهم جواب:** نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ څرنګه په درې ځایونو کې وو؟

نو څرنګه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ په دریو ځایونو کې شو، همداسې موسی علیه السلام هم په درې ځایونو کې وو.

۲- فانقیل: چې موسی علیه السلام په اسمان کې دی نو په قبر کې څرنګه ژوندی شو؟

قلنا: موسی علیه السلام او همدارنګه نور انبیاء د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ د استقبال لپاره اسمان ته ختلي وو، کله چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ د معراج د سفر څخه را واپس شو نو انبیاء هم خپلو خپلو ځایونو ته راغلل.

۳- فانقیل: موسی علیه السلام د اسمان په قبر کې په لمونځ لیدل شوی وو؟

قلنا: په اسمان کې قبرونه نشته قبرونه په زمکه کې دي، په یو روایت کې عند الکثیب الاحمر ذکر شوی دی.

۴- فانقیل: دا خو د موسی علیه السلام معجزه وه؟

قلنا: د موسی علیه السلام لمونځ کول معجزه نده، بلکې د موسی علیه السلام عادت دی، البته د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ لیدل د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ معجزه ده.

۵- فانقیل: قبر خو ډیر وړوکی وي، په دې کې موسی علیه السلام څرنګه لمونځ کولو په لمونځ کې خو قیام، رکوع، قومه، قعده او سجده وي او دا امور خو په قبر کې نه کیږي؟

قلنا ۱-: په کوم دلیل قبر وړوکی دی؟ که ته وایئ چې ماته په نظر وړوکی راځي، نو دا په حقیقت کې ستا نظر وړوکی دی، مثلا اوګې تا ته په نظر خالي درځي، حالانکې خالي ندی، بلکې ملایکې پرې ناستې دي.

۲- نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې ما نبي ولیدلو چې قبر کې ولاړ وو لمونځ یې کولو، ایا نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ دروغ ویلي دي؟ (معاذ الله).

فانقيل: چې د وفات څخه وروسته خو عبادت نه کيږي، الله تعالى فرمايي چې (وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ﴿﴾)؟

قلنا: دا تکليفي عبادت ندی، بلکې تلذذي عبادت دی او تلذذي عبادت په عالم البرزخ کې هم شته او په عالم الاخرت کې هم شته، الله تعالى فرمايي چې: (واخر دعواهم أن الحمدلله رب العالمين).

۲- نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ ټولو انبياوو ته په بيت المقدس کې امامتي ورکړه، حالانکې پدغه وخت انبياء وفات شوي وو.

۳- الله تعالى به حافظ القران ته په قيامت کې وفرمايي: اِقْرَأْ وَارْتَقِ وَ رَتِّلِ الْقُرْآنَ كَمَا كُنْتُ تُرَتِّلُ فِي الدُّنْيَا (ترمذي، ابواب فضايل القرآن، باب نمبر ۱۳)

ددې بحث په اخر کې دمماتيانو د وسوسو لاندې دنهمې وسوسې په دوهم جواب کې يې نور تفصيل وګورئ.

۷- فانقيل: چې د معراج په شپه ټولو انبياوو بيت المقدس ته راتلل ددې ايت څخه مخالفت دی چې (واذ القبور بعثرت) ځکه چې پدې ايت کې د قبرونو د کلاويدلو وخت قيامت ښودلی شوی دی، نو د معراج په شپه څرنګه قبرونه کلاوو شو؟

قلنا: په (واذا القبور بعثرت) کې خاص کلاويدل مراد دي کوم چې د حساب کتاب او حشر لپاره وي او د معراج په شپه کلاويدل ددې غرض لپاره نه وو.

**پنځم د ابو هريرة رضى الله عنه حديث:** د حضرت ابو هريره ﵁ څخه روايت دی ۱-: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ يَزِيدَ رحمهما الله تعالى، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ ﵀، حَدَّثَنِي أَبُو صَخْرٍ ﵀، أَنَّ يَزِيدَ بْنَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قُسَيْطٍ رحمهم الله تعالى أَخْبَرَهُ ﵏، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﵁، عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَا مِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ، إِلَّا رَدَّ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ إِلَيَّ رُوحِي حَتّٰى أَرُدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ (ابوداود ج۱ صـ۲٦۸ مسند احمد رقم ۱۰۸۱۵ السنن الكبرى باب زيارة قبر النبى ﷺ).

۲- حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ رحمهما الله تعالى، حَدَّثَنَا الْمُقْرِئُ ﵀، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ ﵀، عَنْ أَبِي صَخْرٍ حُمَيْدِ بْنِ زِيَادٍ رحمهما الله تعالى، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ قُسَيْطٍ ﵏، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﵁، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَا مِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ إِلَّا رَدَّ اللّٰهُ عَلَيَّ رُوحِي حَتّٰى أَرُدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ.

په مسند احمد کې د (مامن احد يسلم عليّ عند قبری)، زيادة موجود دی، رسول الله ﷺ فرمايي چې کوم سړی چې په ما باندې زما د قبر په خوا کې سلام واچوي، نو ماته الله تعالی زما روح را واپس کوي تر دې چې زه د سلام جواب ورکړم.

## مصححين او مستدلين:

اکثرو محدثينو د دې حديث تصحيح او يا تحسين کړی دی، د نمونې په طريقه باندې لاندې يو څو حوالې وکورئ:

(١) امام نووي رحمه الله فرمايي: رواه ابو داود باسناد صحيح ،(رياض الصالحين صـ٥٣١)

(٢) حافظ ابن حجر فرمايي: چې (رواته ثقات فتح الباري ج ٦ صـ ٥٩٦ وفى البعض صـ٤٨٨ )

(٣) شفاء السقام (صـ ١٦١ )

(٤) امام سخاوي رحمه الله (القول البديع صـ (١٦١)

(٥) حافظ ابن تيمه ، فتاوی ابن تيميه (ج ١ صـ ١٩٥)

(٦) علامه عزيزي اسناده حسن، (السراج المنير شرح الجامع الصغير ج ٤ صـ ٢٠٩ )

(٧) ملا علي القاري ، (مرقات ج ٢ صـ ٣٤١ )

(٨) الباني: حسن، (سنن ابى داود باب زيارة القبور)

(٩) غير مقلد شمس الحق عظيم ابادي ، **مَامِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ إِلَّا أَرُدُّ عَلَيْهِ السَّلَامَ لِأَنِّي حَيٌّ أَقْدِرُ عَلَىٰ رَدِّ السَّلَامِ (عون المعبود ج٢ صـ١٩).**

(١٠) ابن كثير: وصحه النووي فى الاذكار، ابن كثير تحت قوله تعالى ان الله وملائكته يصلون على النبي.

(١١) علامه زرقاني: ما من احد يسلم عليّ الا رد الله على روحى الخ ، اخرجه ابوداود ورجاله ثقات (شرح زرقانى ج ٤صـ ٣٥٧)

(١٢)امام سهمودي: ولأبى داود سندٌ صحيح عن ابى هريرة مرفوعا ما من احدى يسلم على الا رد الله على روحى فارد عليه السلام، (خلاصة الوفاء ج ١صـ صـ ٤٢)،

(١٣) علامه مناوي: **مَامِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ إِلَّا رَدَّ اللهُ عَلَيَّ رُوحِي يعنى ردعلى نطقى لأنه حى على الدوام وروحه لاتفارقه أبدًا لما صح أن الأنبياء أحياء فى قبورهم (فيض القدير ج ٥ صـ ٥٩٦)**

## اعتراضات اوجوابات

**(۱) فانقیل:** ددې حدیث یو راوي یزید بن عبد الله بن قسیط ضعیف دی، امام ابو حاتم رحمه الله دده په باره کې فرمایي چې: (لیس بالقوی لان مالکا لم یرضه)

**قلنا:** جمهورو محدثینو دده توثیق کړی دی، لکه حافظ ابن حجر رحمه الله، ابن معین رحمه الله، نسائي رحمه الله، ابن حبان رحمه الله، ابن عدي رحمه الله وغیرهم، همدارنګه دا دصحاح سته وو درجالو څخه دی، ابو حاتم رحمه الله صرف دا جرحه پرې کړې وه چې امام مالک رحمه الله نه خوښولو، لکن حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې امام مالک رحمه الله په خپل موطأ کې په ډېرو ځایونو کې په دده باندې استدلال کړی دی، (تهذیب التهذیب ج ۱۱ صـ ۳۴۳)

**(۲) فانقیل:** چې دیزید سماع دابو هریره څخه نه ده ثابته.

**قلنا:** حافظ رحمه الله فرمایي: چې یزید بن عبد الله په ۱۲۲ هـ ق کې د(۹۰) کالو په عمر باندې وفات شوی دی. (تهذیب التهذیب ج ۱۱ صـ ۳۴۳) نو ولادت یې په ۳۲ هـ کې شو اودابو هریره ﷛ وفات دمشهور قول مطابق په ۵۹ هـ کې شوی دی، ددې حساب مطابق دابو هریره ﷛ دوفات په وخت کې دده عمر (۲۷) کاله شو، نو معاصرت او امکان د لقاء ثابت شو، نو په شرط دمسلم باندې دا روایت صحیح شو.

**(۳): فانقیل:** چې پدې حدیث کې راغلي دي چې کله چې څوک په نبي ﷺ باندې سلام ووایي نو الله تعالی په دغه وخت کې ورته روح را معاد کوي، نو ددې څخه خو معلومیږي چې دسلام څخه مخکې د روح او دجسد اطهر په مابین کې تعلق نه وي.

حالانکه دا اهل سنت والجماعت دعقیدې مطابق د روح او دجسد اطهر په مابین کې تعلق دائمي دی.

**قلنا:** چې حافظ جلال الدین السیوطي رحمه الله ددې اعتراض څخه پنځلس جوابونه کړي دي، یو څو جوابونه دا دي.

**اول:** د رسول الله ﷺ روح مبارک هر وخت دالله تعالی دتجلیاتو په مشاهده کې مستغرق وي، لکه د وحې دنزول په وخت کې به چې څرنګه وو دسلام په وخت کې یې افاقه کیږي او دسلام طرفته متوجه کیږي، په حدیث کې ددې افاقي څخه په رد الروح باندې تعبیر شوی دی. (مرقات ج ۲ صـ ۳۴۱، نسیم الریاض ج صـ ۴۹۹).

الْخَامِسُ أَنَّهُ يَسْتَغْرِقُ فِي أُمُورِ الْمَلَإِ الْأَعْلٰى فَإِذَا سَلَّمَ عَلَيْهِ رَجَعَ إِلَيْهِ فَهْمُهُ لِيُجِيبَ مَنْ سَلَّمَ عَلَيْهِ. (فتح الباری ج۲ص۴۸۸)

*اس حیات میں شبہ نہ کیا جاوے کیونکہ مراد یہ ہے کہ میری روح جو ملکوت و جبروت میں مستغرق تھی جس طرح کہ دنیا میں نزول وحی کے وقت کیفیت ہوتی تھی اس سے افاقہ ہو کر سلام کہ طرف متوجہ ہو جاتا ہوں اس کو رد روح سے تعبیر فرمادیا.*
نشرالطيب في ذكر النبي الحبيب صـ ۲۰۰ ) بذل المجهود ج ۳صـ ۳۰۷، اب حيات، صـ ۲٥٦، حجة الله البالغه ج ۲صـ ۲٤٤، احسن الفتاوى ج ٤صـ ۱۹۲، معارف الحديث ج ٥صـ ۲۸۰)

مولانا حسين احمد مدني رحمه الله فرمايي چې: د «الى» او «على» په مابين کې فرق دی (على) داستعلاء لپاره دی او (الى) د انتهاء لپاره دی، نو دحديث معنى داده چې د صلوة او سلام ځخه مخکې د روح لپاره استعلاء نه وي، نه دا چې روح د جسد اطهر ځخه خارج وي، رسول الله صلى الله عليه وسلم چونکې هر وخت په مَدَارِجُو دقرب او معرفت کې مترقي وي له دې وجې په توجه الى الله کې انهماک او استغراق، دتوجه الى العباد طرف کمزوري کوي، لکه ځرنګه چې د اهل الاستغراق د حالاتو ځخه هميشه زمونږ د نظر لاندې دی، د درود په وخت کې د استغراق د حالت ځخه منقطع شي او د اوريدونکي طرفته متوجه شي او دعا ورته وکړي، بالفرض که د(على) او د(الى) په ماين کې فرق ونه کړی شي بياهم داحديث په حيات دايمه دلالت کوي، ځکه چې په شپه او ورځ کې داسې دقيقه نشته چې په لمانځه او يا په خارج د لمانځه کې ځوک په نبي کريم صلى الله عليه وسلم باندې درود نه وايي او ددې ځخه حيات دايمه لازميږي (مکتوبات شيخ الاسلام حصه اول صـ۲۴، الى صـ ۲۵۲)

**دوهم:** حافظابن حجر فرمايي چې (الرابع : المراد بالروح النطق) د روح ځخه مراد نطق دی، يعنې دسلام په وخت کې الله تعالى ماته دخبرو طاقت راکړي نو زه د سلام جواب ورکړم. (فتح الباري ج٦ صـ ۴۸۸ مرقات ج ۲صـ ۳۴۱ )

**دريم:** امام بيهقي رحمه الله فرمايي چې (د الا رد الله على روحي) معنى داده چې الا وقد رد الله على روحي. (شفاء السقام صـ۵۱) دا لا ردالله تعالى على روحى ، جمله حال واقع شوى ده، او جمله ماضويه چې حال واقع شي نو قد پکې مقدروي او حتى دغايې لپاره نه دی، بلکې دمطلق عطف لپاره دی، نو تقدير دعبارت داسې شو چې : (ما من أحدٍ يسلم على الا وقد رد الله على روحى ، وأرد عليه السلام )

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې: أَنَّ رَدَّ رُوحِهِ كَانَتْ سَابِقَةً عَقِبَ دَفْنِهِ لَا أَنَّهَا تُعَادُ ثُمَّ تُنْزَعُ ثُمَّ تُعَادُ الثَّانِي) فتح الباری ج٦ص ٣٨٨)

**(٤) فانقیل:** وَقَدِ اسْتُشْكِلَ ذٰلِكَ مِنْ جِهَةٍ أُخْرٰى وَهُوَ أَنَّهُ يَسْتَلْزِمُ اسْتِغْرَاقَ الزَّمَانِ كُلِّهِ فِي ذٰلِكَ لِاتِّصَالِ الصَّلَاةِ وَالسَّلَامِ عَلَيْهِ فِي أَقْطَارِ الْأَرْضِ مِمَّنْ لَا يُحْصٰى كَثْرَةً.

وَأُجِيبَ بِأَنَّ أُمُورَ الْآخِرَةِ لَا تُدْرَكُ بِالْعَقْلِ وَأَحْوَالُ الْبَرْزَخِ أَشْبَهُ بِأَحْوَالِ الْآخِرَةِ. (فتح الباری ج٦ص ٣٨٨)

اور ان مشاغل کے ایک وقت میں اجتماع کا تزاحم کا وسوسہ نہ کیا جادی کیونکہ برزخ میں روح کو پھر خصوصا روح مبارک بہت وسعت ہوتی ہے (نشر الطیب ص- ٢٠٠)

ددې ټول تحقیق څخه معلومه شوه چې ددې ټولو حضراتو په نیز رسول الله ﷺ په قبر کې په حیات مستمره باندې ژوندی دی. (مکتوبات شیخ الاسلام حسین احمد مدني ج ١ص ٢٤٣)

**شپږم دحضرت عبدالله رضی الله عنه حدیث:** عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ لِلّٰهِ مَلَائِكَةً سَيَّاحِينَ فِي الْأَرْضِ يُبَلِّغُونِي عَنْ أُمَّتِي السَّلَامَ». (النسائی کتاب السهو باب التسلیم علی النبی ﷺ، (صحیح ابن حبان رقم ٩١٣ ذکر البیان بأن السلام المسلم علی المصطفی یبلغ ایاه ذلك فی قبره (مسند احمد رقم ١٠٥٢٩ مسند ابی یعلی رقم ٥٢١٣ دارمی باب فی فضل الصلوة علی النبی صلی الله علیه وسلم)

رسول الله ﷺ فرمایي چې د الله تعالی لپاره په زمکه کې ګرزیدونکی ملائکې دي چې زما د امت لخوا ما ته سلامونه را رسوي.

**مصححین او مستدلین:** لاندې علماوو دې حدیث ته صحیح ویلي دي.

امام سخاوي، (القول البدیع ص ١٥٩)

امام هیثمی، (مجمع الزوائد ج ٨ ص ٥٩٥)

امام حاکم، (المستدرک ج ٣ ص ١٩٧)

امام ذهبي، (تلخیص المستدرک ج ٣ ص ١٩٧٧)

ابن هادي، (الصارم المنکي ص ١٩٢)

قال الباني صحیح، (نسائي باب التسلیم علی النبي ﷺ)

قال شعیب الارنؤوط اسناده صحیح علی شرط مسلم، (صحیح ابن حبان رقم ٩١٤) ذکر البیان بان السلام المسلم علی المصطفی یبلغ.

قال حسين سليم اسد: اسناده صحيح(سنن دارمي رقم ۲۷۷٤ باب فضل الصلوة على النبى صلى الله عليه وسلم)

صحيح الاسناد ولم يخرجاه (المستدرک تفسيرسورة الاحزاب)

خلاصة الوفاء وللبزار برجال الصحيح عن ابن مسعود مرفوعا أن لله ملائكة سياحين يبلغونى عن أمتى(ج ۱ صـ ٤٣ )

علامه عزيزى ، (السراج المنير ج ۱صـ ۵۱۸)

علامه سمهودى (وفاء الوفاء ج ۲صـ ٤۰۲)

علامه شاه عبدالعزيز دهلوي (فتاوى عزيزى ج ۲صـ ٦۹)

علامه ابن القيم (مجمع الزوائد ج ۹صـ ۲٤)

علامه ابن القيم (جلاءالافهام صـ ٦۲)

غيرمقلد شمس الحق عظيم ابادى (عون المعبود ج ۳صـ ۲۱)

**اووم دحضرت ابوهريرة رضى الله عنه حديث:** قال ابو الشيخ فى كتاب الصلوة على النبى صلى الله عليه وسلم حدثنا عبدُ الرحمن بنُ أحمد الأعرجُ حدثنا الحسن بن الصباح حدثنا ابو معاوية حدثنا الاعمشُ عن أبى صالحٍ،عن ابي هريره ﷺ قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من صلى عليّ عند قبري سمعته ومن صلى عليّ من بعيد اعلمته (جلاء الافهام، فى فضل الصلوة والسلام على محمد خير الانام صـ ٥٤، مشكوة، باب الصلوة على النبي ﷺ) رسول الله ﷺ فرمايي: چاچې په ماباندې زما د قبر په خواکې درود وويلې زه يې (پخپله بلاواسطه) اورم او چاچې د لرې ځخه ووېلې نو هغه ماته رارسولى شي ،ددې حديث دبيهقي په سند کې يو راوي محمد بن مروان السدي الصغير ته محدثينو ضعيف ويلي دي ، لكن دابو الشيخ په سند کې دا راوي نشته، بلکې ټول راويان يې ثقه دي.

استدلال: پدې حديث کې د (سمعته) په جمله کې د (ت) ضمير او په (قبري) کې د (يا) ضمير د رسول الله په ذات باندې دلالت کوي ، همدارنګه لفظ د (على) هم په ذات باندې دلالت کوي او ذات روح مع الجسد ته وايي ، يوائې روح ته نه وايي.

**فانقيل: چې دلرې ځخه په ځومره موده کې نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ تـه درود ور رسولی شي؟**

قلنا: الله اعلم، په اوګو باندې چې کومې ملايکې ناستې دي او ليکل کوي، نو دا ليکل په ځومره موده کې اسمانونو ته وړي؟ فما هو جوابکم فهو جوابنا.

**فانقيل: چې دا حديث د قرآن د ايت ځخه مخالف دي چې انک لاتسمع الموتی ؟**

قلنا: دا ايت دعا مو مړو په باره کې دی د انبياوو په باره کې ندی ۲-اکثر مفسرين فرمايي چې په دې ايت کې نفی د اسماع ده نفې دسماع نده، مولانا عبدالحق الدهلوي فرمايي چې پدې ايت کې عدم سماع موتی ته اشاره هم نده راغلې.

**فانقيل: چې حضرت عايشه رضی الله عنها سماع الموتی نه مني؟**

قلنا: ۱- دحضرت عايشې رضی الله عنها خبره دکافرانو د مړو په باره کې ده.

۲- حضرت عايشې رضی الله عنها د خپل قول ځخه رجوع کړې ده، ځکه چې د خپل ورور قبر ته ورغله او داسې خطابي اشعار يې ولوستل چې:

کنـــــا کنــــــدمانی جذيمــــــة حقبــــــة
مـــــن الدهـــــر حـــــتی قيـــــل لـــــن يتصـــــدعا
فلمـــــا تفرقنـــــــا کانی ومــــــالکا
لطـــــول اجتمـــــاع لـــــم نبـــــت معـــــا

(مشکوة، کتاب الجنايز، باب دفن الميت ج ۱ صـ۱۴۹).

۳- حضرت عايشې رضی الله عنها حيات الانبياء منلو: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كُنْتُ أَدْخُلُ بَيْتِيَ الَّذِي فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِنِّي وَاضِعٌ ثَوْبِي وَأَقُولُ: إِنَّمَا هُوَ زَوْجِي وَأَبِي فَلَمَّا دُفِنَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مَعَهُمْ فَوَاللَّهِ مَا دَخَلْتُهُ إِلَّا وَأَنَا مَشْدُودَةٌ عَلَيَّ ثِيَابِي حَيَاءً مِنْ عُمَرَ (مشکوة ج ۱ صـ ۱۵۴)، مسند الصديقه عايشه رضی الله عنها رقم ۲۵٦٦۰)

## توثيق الرواة:

۱- ابو الشيخ الاصبهاني المتوفي (۳۹۶هـ): علامه ذهبي ورته مسند الزمان، الامـام، او صاحب الصفات السائر ويلي دي، محدث مردويه ليكي چې: ثقة او مـامون وو ، علامـه خطيب ليكي چې: حافظ ثبت او متقن وو ، حافظ ابو نعيم فرمايي چې: احـد الأعـلام او ثقه يې ورته ويلي دي. (تذكرة الحفاظ ج ۳ص ۱۴۷)

۲- عبد الرحمن بن احمد الاعرج: دده مكمل نوم داسې دی : عبد الرحمن بن احمد بن يزيد الزهرى، اسم كنيه يې ابو صالح او لقب يې اعرج دی، په (۳۰۰هـ) كې وفات شوی دی، دپلار نوم يې ابو يحی دی، ابو نعيم اصبهاني په تاريخ اصبهان ج ۲ص ۱۳۳) كې دده تذكره كړې ده، دده په شاگردانو كې ابو الشيخ او قاضي ابو احمد محمد بن احمد بن ابراهيم وغيره ثقات دي او په استاذانو كې يې سلمه بن شبيب او الامام الحافظ حسن بن الصباح دي، البته دده ورور محمد بن احمد ضعيف دی.

۳- الحسن بن الصباح: علامه ذهبي رحمه الله ورته الحافظ ، الامام، او اعلم بالسنة وايي (تذكرة الحفاظ ج ۲ص ۵۵) په صحيح بخاري كې ترينه ډير روايات دي، مثلاً وگوره (صحيح البخاری ج ۱ص ۴۷۶، ص ۵۰۳) وغيره

علامه ذهبي فرمايي ځوک چې حسن بن صباح ته د اسماعيلي فرقې باني وايي هغه دې د الله تعالى ځخه وويريږي.

۴- ابو معاويه: دده نوم محمد بن حازم دی: د صحاح سته وو مركزي راوي دی، علامه ذهبي ورته.. حافظ، ثقه، ثبت او محدث الكوفيه وايي (تذكرة الحفاظ ج ۱ص ۲۷۱)

اما ابن معين فرمايي چې: دامام اعمش ځخه په روايت كولو كې اثبت دی (تهذيب التهذيب تحت ترجمته)

حافظ ذهبي فرمايي چې: ويضطرب فی غير حديث الاعمش او دا روايت يې د اعمش له طريقه دی.

(۵) امام اعمش: دده نوم سليمان بن مهران الاعمش دی.

علامه ذهبي ورته الحافظ، الثقه او شيخ الاسلام وايي (تذكرة ج ۱ص ۱۴۵)

د صحاح سته وو مركزي راوي دی، پده باندې جرحه په صحيح بخاري او صحيح مسلم باندې جرحه ده، په هغو مدلسينو كې دی چې مطلق تدليس يې مضر ندی.

(۶) ابو صالح: دده نوم ذكوان دى او لقب يې السمان الزيات دى، د صحاح سته وو مركزي راوي دى، امام احمد بن حنبل فرمايي چې ثقة ثقة من اجل الناس و أفقهم، امام ابن معين ورته ثقه ويلي دي، ابو حاتم ورته ثقه او صالح الحديث ويلي دي، امام ابو زرعه رحمه الله ورته ثقه او مستقيم الحديث ويلي دي، ابن سعد ورته ثقه او كثير الحديث ويلي دي، امام ساجي رحمه الله ورته ثقه او صدوق ويلي دي، امام عجلي رحمه الله ورته ثقه ويلي دي، ابن حبان رحمه الله ورته ثقه ويلي دي (تهذيب التهذيب تحت ترجمته)

دا راوي ابو صالح التؤامه ندى او نه ابو صالح مولى أم هانئ چې نوم يې باذام يا باذان دى، بلكې ابو صالح ذكوان السمان دى، په بخاري كې د ابو معاويه عن الاعمش عن ابى صالح عن ابى هريرة سند دى (صحيح البخارى ج ۲ص ۷۳۵)

مماتي نيلوي په ابو معاويه محمد بن حازم باندې جرحې رانقل كړې دي چې امام عجلي رحمه الله فرمايي چې ثقه وو لكن د مرجئه وو عقيده يې لرله او امام حاكم فرمايي چې ابو معاويه يو غالي شيعه وو؟

قلنا: د مرجئې نسبت امام صاحب ته هم شوى دى، په مرجئه وو كې يو قسم مرجئه اهل سنت دي او پاتې شو د تشيع جرحه نو دا ځكه غلطه ده چې شيعه په معنى د رافضي خپل ځوى ته هيڅكله د معاويه نوم نږدي، ده ته شعيه په دې اعتبار ويلى شي چې په حضرت عثمان رضى الله عنه باندې يې حضرت علي رضى الله ته فضيلت وركولو او پدې نظريه كې يې غلو كوله.

علامه ظفر احمد العثماني فرمايي چې: فالغلو فى التشيع ليس بجرح اذا كان الراوى ثقة (قواعد فى علوم الحديث، بحث الغلو فى التشيع)

حافظ په خپله مشهوره «قصيده نونيه» كې فرمايي:

وهـذا وردٌ نبينا التسليم من
يأتى بتسليم مع الاحسان
ما ذاك مختصاً به ايضا كما
قد قاله المبعوث بالقرآن
من زار قبر أخ له فأتى
بتسليم عليه وهو ذو ايمان

ردّ الا له علیـــــــه حقّــــــاً روحــــــه
حـــــتی یـــــرد علیـــــه رد بیــــان
القصیده النونیه صـ(۱۴۵)

او دا امر چې زمونږ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د هر هغه سړي د سلام جواب ورکوي کوم چې په عمده طريقه سلام ووايي او دا د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تر ذات پورې خاص نه دی، لکه څرنگه چې خپله صاحب القران ارشاد فرمايلي دي چې چا چې د خپل مؤمن ورور زيارت وکړو او هغه ته يې سلام وکړو، نو الله تعالى په يقيني طريقه دغې متوفى ته د ده روح را واپس کوي، تر څو چې د دې سړي سلام ته په واضحه طريقه جواب ووايي.

## د دې حديث په باره کې د مماتيانو نظر:

۱-د مماتيانو شيخ القران طيب طاهري ليکي چې: دا روايت موضوع او منکرت دی (مسلک الاکابر صـ۴۳)

۲- مولوي خان بادشاه مماتي ليکي چې دا حديث موضوع او منکرت دی (البرهان الجلی صـ۱۸۸)

۳- نيلوي دې حديث ته ضعيف ويلي دي، (مقالات نيلوي ج ۳صـ ۳۵۰)

۴- مولوي عطاء الله بنديالوي ليکي چې: نبي کريم صلی الله عليه وسلم د قبر په خوا کې صلوة او سلام نه اوري (کیا مردی سنتے ہیں ص- ۳۹)

## مصححين او مستدلين:

لاندې علماوو دې حديث ته صحيح ويلي دي او د پيغمبرانو د ژوند لپاره يې تر ېنه استدلال کړی دی.

(۱) حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې: (واخرجه ابو الشيخ في كتاب الثواب بسند جيد بلفظ من صلى على عند قبري سمعته ومن صلى على نائبا ابلغته (فتح الباري ج٦ صـ ٤٨٨).

(۲) امام سخاوي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې: قال ابن القيم: انه غريب، قلت: وسنده جيد،القول البديع ص١٦٠)

(۳) ملا علي القاري فرمايي چې: ورواه ابو الشيخ وابن حبان في كتاب ثواب الاعمال بسند جيد، وقال وعن ابي هريره ﷺ من صلّى عليّ عند قبري سمعته اى سمعا حقيقيا بلا واسطة. (مرقات ج ٤ ص۲۱ وفى البعض ج ۲ صـ۳٤۷)

(۴) امام مناوي رحمه الله فرمايي چې: (من صلى عليّ عند قبري سمعته ومن صلى عليّ نائيا (بعيدا) ابلغته اى اخبرته به من احد من الملائكة وذالک لان روحه بمقر بدنه الشريف وحرام على الارض ان تأكل اجساد الانبياء. (فيض القدير ج ۱ صـ ۳۱۸، ج ٦ صـ۲۲۰)

(۵) ابو الحسن على بن محمد العراقى رحمه الله فرمايي چې: (قلت وسنده جيد كما نقله السخاوي عن شيخه الحافظ ابن حجر. (تنزيه الشريعة ج ۱ صـ۳۸۱)

(٦) قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايي چې: (قلت وجاز ان يكون ذلک لاجل ان النبي ﷺ حيٌّ في قبره ولذلک لم يورث ولم يتئم ازواجه عن ابي هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ من صلى عليّ عند قبري سمعته ومن صلى عليّ نائيا ابلغته، (تفسير مظهري ج ۷ صـ ۳۷۳)

(۷) علامه شبير احمد العثماني رحمه الله فرمايي چې: واخرجه ابو الشيخ في كتاب الثواب بسندٍ جيدٍ (فتح الملهم ج ۱صـ ۳۳۰)

ددې حديث او دهمدې په شان احاديثو مطابق د امت علماوو په دې تصريح کړې ده چې د رسول الله ﷺ د قبر په خواکې عرض کړی شوی صلوة او سلام نبي ﷺ پخپله بلا واسطه اوري، دنمونې لپاره لاندې يو څو حوالې وګورئ.

**(۱) امام شرنبلالي** رحمه الله فرمايي چې: (وينبغي لمن قصد زيارة سيدنا النبي ﷺ ان يكثر من الصلوة عليه فانه يسمعها وتبلغ اليه .(نورالايضاح صـ۱۵۳ فصل في زيارة سيدنا النبي ﷺ)

**(۲) حافظ ابن تيميه** رحمه الله فرمايي چې: (وهو صلى الله عليه وسلم يسمع السلام من القريب وتبلغه الملايكة الصلوة والسلام من البعيد( مجموع الفتاوى ج ۲۷ صـ ۳۸٤ )صـ ۲۰٤، دارالوفاء)

**(۳) ملا علي القاري** رحمه الله **فرمايي چې**: (الانبياء احياء فى قبورهم فيمكن لهم سماع صلوة من صلى عليهم (مرقات شرح مشكوة ج ۵ صـ ۳۲) وفى البعض ج ۲صـ ۲۰۹)

(٤) **امام احمد بن محمد بن اسماعيل** رحمه الله فرمايي چې: (فانـه يسـمعها ) اى اذا كانـت بالقرب منه صلى الله عليه وسلم قوله (وتبلغ اليـه) اى يبلغهـا الملـک اليـه اذا كان المصلي بعيـدا. (حاشية الطحطاوي على مراقي الفلاح ج ١ صـ ٤٨٧ )

(٥) **علامه ابن الهادي** رحمه الله فرمايي چې: (وهو صلى الله عليـه وسـلم يسـمع السـلام مـن القرب (الصارم المنكي ج ١ صـ ٣٢٧ )

(٦) **رشيد احمـد گنگـوهي** رحمه الله فرمايي چې: دانبياؤ په سماع کې دهيچا اختلاف نشته (فتاوی رشیدیہ ص-١٥٢، کتاب العلم اہل قبور سے استعانت)

(٧) **مولنا اشرف علي تهانوي** رحمه الله فرمايي چې: خپله دنبي ﷺ حديث دى چې کوم سړى چې زما دقبر په خواکې صلوة او سلام ووايي نو زه يې پخپله اورم (نشر الطيب صـ١٩٩)

(٨) **حسين احمد مدني** رحمه الله فرمايي چې: خلاصه دخبرې دا ده چې ځوک دنبي ﷺ دقبر په خـواکې صـلوة او سـلام ووايـي نـو نبـي ﷺ يـې پـه روحـاني طريقـه بانـدې اوري او جـواب ورکـوي (مكتوبات شيخ الاسلام ج ١ صـ١٥٤)

(٩) **قاري محمد طيب** رحمه الله فرمايي چې: رسول الله صلى الله عليه وسلم د قبر په خواکې عـرض کړى شوى صلوة او سلام اوري (خطبات حكيم الاسلام ج ٧ صـ١٨١)

(١٠) **شيخ زکريا** رحمه الله فرمايي چې: ددې حديث دوهم جزء چې نبي ﷺ دقبـر پـه خـواکې عـرض کړى شوى صلوة او سلام پخپله اوري ډېره دفخر دعزت او دخوند شى دى، په دې روايت کې چې پخپله د رسول الله ﷺ اورېدل دي هيڅ د اشكال خبره نه ده، ځکه چې پيغمبران عليهم السـلام پخپلو قبرونو کې ژوندي دي. (فضايل درود صـ٣٢.٣٤ )

(١١) **خليل احمد سهارنپوري** رحمه الله فرمايي چې: د قبر په خواکې په اوچت اواز باندې دصلوة او دسلام عرض کول نبي ﷺ ته تکليف رسوي او بې أدبي ده، ځکه چې نبي ﷺ په قبر کې ژوندى دى، لهذا هلته به په رو اواز باندې صلوة او سلام وايي، او په مسجد نبوي ﷺ کې چې په ځومره په ورو اواز باندې صلوة او سلام ووايي نبي ﷺ يې اوري. (تذكرة الخليل صـ٣٧٠ )

**(۱۲) مفتي محمود حسن گنگوهي** رحمه الله فرمايي چې: د قبر په خوا کې عرض کړی شوی درود او سلام نبي ﷺ پخپله اوري او د لرې ځخه عرض کړی شوی درود او سلام ورته ملائکې رسوي. (فتاوی محموديه ج ۱ ص ۵۳۱)

**(۱۳) مولنا محمد شريف کشميري** رحمه الله فرمايي چې: د روضې مبارکې په خوا کې عرض کړی شوی صلوة او سلام نبي ﷺ په خپله اوري په دې خبره باندې د ټولو اهل سنت والجماعة اتفاق او همدا د ديوبند د اکابرو عقيده ده (خير الفتاوی ج ۱ ص ۱۲۸)

**(۱٤) مولنا منظور نعماني** رحمه الله فرمايي چې: د رواياتو او د دې امت د خواصو د تجربو ځخه دا ثابته ده چې کوم اِمتي چې د نبي ﷺ د قبر په خوا کې صلوة او سلام عرض کړي نو نبي ﷺ يې پخپله اوري او جواب ورکوي. (معارف الحديث ج ۱ ص ۲۱۳ و ج ۲ ص ۲۸۱)

**(۱۵) مولنا نصير الدين الغورغوشتوي** رحمه الله فرمايي چې: من صلى عليّ عند قبري سمعته سمعا حقيقيًا بلا واسطة (مشکوة بين السطور ج ۱ ص ۹۳)

**(۱٦) مفتي محمود** رحمه الله فرمايي چې: د ډېرو احاديثو ځخه دا خبره ثابته ده چې د قبر په خوا کې عرض کړی شوی صلوة او سلام نبي ﷺ پخپله اوري، اخرج البيهقي في شعب الايمان، من صلى عليّ عند قبري سمعته ومن صلى عليّ نائيا ابلغته. (فتاوی مفتي محمود ج ۱ ص ۳۵۳)

**(۱۷) مفتي عبدالرحيم لاجپوري** رحمه الله فرمايي چې: ځوک چې د نبي ﷺ د قبر په خوا کې صلوة او سلام ووايي نو نبي ﷺ يې پخپله اوري. (فتاوی رحيميه ج ۲ ص ۱۰۸)

**(۱۸) مولنا محمد ادريس کاندهلوي** رحمه الله فرمايي چې: د قبر په خوا کې چې ځوک صلوة او سلام ووايي نو نبي ﷺ ئې پخپله اوري (سيرة المصطفى ج ۳ ص ۱٦۸)

**(۱۹) مولنا محمد يوسف لدهيانوي شهيد** رحمه الله فرمايي ما د خپلو اکابرو ځخه اورېدلي دي چې د مسجد نبوي ﷺ په احاطه کې چې ځوک په هر ځای کې صلوة او سلام ووايي نبي ﷺ يې پخپله اوري (آپ کې مسائل اور انکا حل، ج ۱ ص ۳۰۹)

**(۲۰) مولنا عبدالحق حقاني** رحمه الله فرمايي چې: دټولو اهل سنت والجماعة محدثينو ،متكلمينو دا اتفاقي عقيده ده چې د روضې مبارکې په خواکې عرض کړی شوی صلوة او سلام نبي ﷺ پخپله ا[illegible] ی حقانيه ج ۱ ص ۱۵۸)

[illegible] **ي عبد الشكور ترمذي** رحمه الله فرمايي چې: څوک چې د نبي ﷺ د قبر په خواکې صلوة [illegible] سلام ووايي نو نبي ﷺ يې پخپله اوري (عقايد علماء ديوبند ص ۳ عقيده نمبر ۶)

**(۲۲) امام تقى الدين السبكي** رحمه الله فرمايي چې: (وسنذكر من الاحاديث والاثار والادلة مايدل [illegible] ان النبي ﷺ يسمع من يسلم عليه عند قبره (شفاء السقام ص ۱۸۱)

**(۲۳) علامه ظفر احمد العثماني** رحمه الله فرمايي چې: وقد ورد التصريح بسماعه ﷺ سلام الزائر في اثر (اعلاء السنن ج ۱۰ ص ۵۰۵) ددې څخه ما سوا دومره حوالى دي چې يوائې ددې حوالو څخه څو جلده كتاب جوړيدلى شي، لهذا دې حديث ته تلقي بالقبول هم حاصله ده او كوم حديث ته چې تلقى بالقبول حاصله وي هغه حديث د متواتر په حكم کې وي، **قَالَ بَعْضُهُمْ: يُحْكَمُ لِلْحَدِيثِ بِالصِّحَّةِ إِذَا تَلَقَّاهُ النَّاسُ بِالْقَبُولِ وقال في قول النبى صلى الله عليه وسلم هو الطهور ماءه والحل ميتته، واهل الحديث لايصحون مثل اسناده لكن الحديث عندى صحيح لان العلماء تلقوه بالقبول (تدريب الراوى ص ۲۹ حديث «لَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ»: إِنَّهُ لَا يُثْبِتُهُ أَهْلُ الْحَدِيثِ، وَلَكِنَّ الْعَامَّةَ تَلَقَّتْهُ بِالْقَبُولِ، وَعَمِلُوا بِهِ حَتّٰى جَعَلُوهُ نَاسِخًا لِآيَةِ الْوَصِيَّةِ لَهُ (فتح المغيث ج ۱ ص ۲۸۹) وَخَبَرُ الْوَاحِدِ إِذَا تَلَقَّتْهُ الْأُمَّةُ بِالْقَبُولِ عَمَلًا بِهِ وَتَصْدِيقًا لَهُ - يُفِيدُ الْعِلْمَ الْيَقِينِيَّ عِنْدَ جَمَاهِيرِ الْأُمَّةِ، وَهُوَ أَحَدُ قِسْمَيِ الْمُتَوَاتِرِ. وَلَمْ يَكُنْ بَيْنَ سَلَفِ الْأُمَّةِ فِي ذَلِكَ نِزَاعٌ وهو احد قسمى المتواتر (شرح العقيدة الطحاويه ج ۱ ص ۲۴۳)**

**(۲۴) دمماتيانو په مشهور كتاب ، نداء حق ج ۲ ص ۸۴)** کې ليكي چې: ابن تيميه، ابن القيم، ابن عبد الهادي، ابن حجر، سيوطي، امام نووي، قاضي عياض، الشيخ المحدث، عبد الحق الدهلوي، ملا علي قاري رحمهم الله، وغيره دسماع النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهِ وَسَلَّمَ عند القبر قايل دي.

**اتم دابو هريرة رضى الله عنه حديث:**

دابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې: **سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "وَالَّذِي نَفْسُ أَبِي الْقَاسِمِ بِيَدِهِ لَيَنْزِلَنَّ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ إِمَامًا مُقْسِطًا وَحَكَمًا عَدْلًا، فَلَيَكْسِرَنَّ الصَّلِيبَ، وَلَيَقْتُلَنَّ الْخِنْزِيرَ، وَلَيُصْلِحَنَّ**

ذَاتَ الْبَيْنِ، وَلَيُذْهِبَنَّ الشَّحْنَاءَ، وَلَيُعْرَضَنَّ عَلَيْهِ الْمَالُ فَلَا يَقْبَلُهُ، ثُمَّ لَئِنْ قَامَ عَلَى قَبْرِي فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ لَأُجِيبَنَّهُ.
(مسند ابی يعلى ص۱۱۳۹ رقم ۶۵۷۷)

رسول الله ﷺ فرمايي چې: زما دې په الله تعالى باندې قسم وي چې عيسى ﷺ به راكوز شي عادل امام به وي او عادل حاكم به وي، صليب به مات كړي، خنزير به ووژني، د خلكو په منځ كې به صلحه وكړي د خلكو په مابين كې به عداوت ختم كړي، مال به ور باندې پيش كړى شي لكن عيسى ﷺ به يې نه قبلوي، بيا كه زما قبر ته راغلو او ما ته يې اواز وكړو چې يا محمده! نو زه به خامخا جواب وركړم، او په مستدرک كې داسې الفاظ دي چې: اوليأتين قبري حتى يسلم علي ولأردنّ عليه (المستدرک ج ۳ ص ۴۰۰ رقم ۴۲۱۸). خامخا به زما قبر ته راځي خامخا تر دې چې په ما باندې به سلام واچوي او خامخا به زه جواب وركړم خامخا هغه ته، او جواب تر حيات او تر سماع پورې موقوف دى او دا سماع بلا واسطه ده د ملايكو په ذريعه نه ده، ځكه چې د ملايكو په ذريعه د هر ځاى څخه نبى كريم ﷺ ته سلامونه رسيږي، نو (بيا ليأتين قبرى) ته څه ضرورت دى؟

### مصححين او مستدلين:

امام هيثمي فرمايي چې رواه ابو يعلى ورجاله رجال الصحيح (مجمع الزوائد ج ۸ ص ۳۸۷ رقم ۱۳۸۱۳) امام حاكم رحمه الله فرمايي چې: هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه (المستدرک رقم ۴۴۲۱۸) حسين سليم اسد رحمه الله فرمايي چې: اسناده صحيح (مسند ابى يعلى ص ۱۱۴۹ رقم ۶۵۷۷)

فائده: په دې حديث كې راغله چې عيسى ﷺ بالخصوص د دې دريو فتنو مقابله كوي، د يهودو د فتنې مقابله به كوي (ليقتلن الخنزير) د عيسويانو د فتنې مقابله به كوي (وليكسرن الصليب) د دې دواړو فتنو مقابله به يو ځاى كوي، لكن د مماتيت فتنه دومره خطرناكه ده چې د دې فتنې مقابله به دواړه پيغمبران عليهم السلام په شريكه كوي، عيسى ﷺ به په نبي ﷺ باندې سلام اچوي او نبي ﷺ به جواب وركوي.

## نهم حديث

صحيح بخارى، كتاب التهجد، باب فضل مابين القبر والمنبر ج ۱ ص ۳۴۳، رحمانيه ص ۱۵۹، قديمه كى حديث دى چې: عن ابى هريرة رضي الله عنه عن النبى ﷺ قال ما بين بيتى ومنبرى روضة من

رياض الجنة (الحديث) علامه عثماني رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې په قيامت كې همدا ځمكه جنت ته منقولولی شي (فتح الملهم، كتاب الحج، باب فضل مابين قبره ، رقم ۳۳۶۸)

**فائده:** ددې حديث څخه دوه ډلو انكار كړی دی:

اوله ډله: دشيعه ګانو ده ، دوي ځكه انكار كړی دی چې كه چيرته دزمكې دغه حصه دجنت شي نو بيا به ابوبكر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په جنت كې شي او دوهمه ډله دمماتيانو ده، دوي ځكه ددې حديث څخه انكار كړی دی چې كه چيرې دغه زمكه دجنت شي نو بيا دنبی كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژوندی منل لازميږي ، ځكه چې روضه مباركه دجنت دباغونو څخه يو باغ دی او داخو ښكاره خبره ده چې جنت د ژونديو مقام دی د مړو مرده خانه نده.

**اعتراض:** كه روضه مباركه جنت شي نو بيا څه وجه ده چې هلته كله كله كافران هم ځي حال دا دی چې جنت ته كافران نشي تللی ؟

**جواب:** په مدينه منوره كې چې په كومه زمكې كې دنبی عليه السلام روضه مباركه ده دهغې دوه حيثتونه دی. (۱) ظاهر (۲) باطن ، يعني دزمكې دننه طرف ، ظاهريې ددنيا حكم لري او باطن يې جنت دی، يعنې په دغه ځای كې بعد الوفات جهنميان نشي دفن كيدلی، يعنې په حديث كې داخله جنت ته بعد الوفات مراد ده او تاسو اعتراض كوئ دقبل الوفات په صورت كې، كه بعد الوفات كافر دغلته داخل شوی وی نو بيا به ستاسو اعتراض صحيح وو خو داسې نه دي شوي.

**دوهم جواب:** دعالم البرزخ حالات په عالم الدنيا باندې نشي قياس كيدلی او دلته تاسو عالم برزخ قياس كړو په عالم الدنيا باندې.

## لسم حديث

په بخاری ج ۲ص ۵۰۴، رحمانيه ج ۲ص ۹۷۵ ، قديميه ) كې حديث دی: عن ابی هريرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أن رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال مابين بيتی ومنبری روضة من رياض الجنة (الحديث)

## يوولسم حديث

مسلم ص ۴۴۶) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ زَيْدٍ الْمَازِنِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَا بَيْنَ بَيْتِي وَمِنْبَرِي رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ. (مصنف عبدالرزاق ج ۳ص ۱۸۳)

## دولسم حديث

مسلم ج ا صـ ۴۶) عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ رضي الله عنه، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَا بَيْنَ مِنْبَرِي وَبَيْتِي رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ».

## ديارلسم حديث

صحيح المسلم ج ا صـ ۴۴۶) عن ابى هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أن رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال ما بين بيتى ومنبرى روضة من رياض الجنة (الحديث)

نوټ: ددې پنځو احاديثو سند و نه جدا جدا دي، ځکه مونږ ورته جدا جدا دلايل وويلې

فانقيل: د ددې حديث څخه معلوميږي چې په مابين د ممبر او د حجرې کې رياض الجنت دى ، حجره د رياض الجنت څخه خارجه ده؟

قلنا: کله چې يوه زمکه د يو چا وي او دوه طرفه دېوالونه هم دده وي او بيا ووايي چې ددې دېوال څخه تر دې ديوالې پورې زمکه زما ده، نو دلته دېوالونه هم مراد دي او چې کله دېوالونه د بل چا وي او بيا د زمکې مالک ووايي چې ددې دېوال څخه تر دې بل دېوال پورې زما زمکه ده ، نو دلته دېوالونه مراد نه وي او په ما بين بيتى ومنبرى کې بيت او ممبر د متکلم ملکيت دى ، لهذا دا هم په رياض الجنت کې داخل دي

## څوارلسم حديث

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ د معراج په شپه انبياوو ته امامتي ورکړه او لمونځ ژوند غواړي ، لهذا انبياء پخپلو قبرونو کې ژوندي شول.

فانقيل: چې دا امامتي دانبياوو ارواحو ته ورکړل شوى وه اجسام پکې نه وو شريک؟

قلنا: که امامتي صرف ارواحو ته ورکړل شوى وي ، نو بيا خو محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ امام الانبياء نه شو ، بلکې امام ارواح الانبياء شو ، حالانکې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ امام الانبياء دى او نبي روح مع الجسد ته وايي ، ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې: فَإِنَّ حَقِيقَةَ الصَّلَاةِ وَهِيَ الْإِتْيَانُ بِالْأَفْعَالِ الْمُخْتَلِفَةِ إِنَّمَا تَكُونُ لِلْأَشْبَاحِ لَا لِلْأَرْوَاحِ ،(مرقات،كتاب الفضايل، باب فى المعراج، رقم الحديث ۵۸۶۶)

## ديا رسول الله او د يا محمد اواز

۱- که څوک دا لفظ دقبر په خواکې ووايي نو نبي ﷺ يې بالذات اوري او څوک يې چې دلرې څخه دمحبت او دعقيدت په نيت باندې وايي او يا يې په دې نيت باندې وايي چې ملائکې زما دا الفاظ نبي ﷺ ته ور رسوي نو دا بالکل صحيح دی، حضرت مولنا شاه محمد اسحاق رحمه الله فرمايي چې:

سوال بيست وچهارم، اگر اهل مشرق بگويند يا رسول الله يا اولياء الله واگر اهل مغرب بگويند يا رسول الله، برينها شرع چه حکم فرمائد مشرک يا کافر يا گناه صغيره يا کبيره يا مکروه يا حرام؟ جواب در نداغائب ميان نبي ﷺ وغيرنبي ﷺ فرق است اگر نبي راندا خواهد نمود براى ايصال صلوة وسلام ظاهراً جواز است بدو جهت، يکې: انکه درحديث شريف وارد است که ملائکه از طرف حق تعالى مقرر اند هر که بر نبي ﷺ صلوة يا سلام مې فرستد ملائکه نزد پيغمبر ﷺ مې رسانند، دوم: انکه در التحيات خطاب براى رسانيدن سلام وارد شده، پس بنا برين اگر کسې يا رسول الله بگويد براى رسانيدن درود يا سلام جائز است، ودر حق ديگر اشخاص ...اين قسم وارد نه شده پس ندا درحق غير نبي ﷺ ممنوع است ومحظور خواهد بود، بدليل عموم ايات نصوص قرآني که تلاوت نموده خواهد شد واگر غير خدا را باين اعتقاد ميگويد که هر وقت که من ندا مې کنم او ميشنود، ويا قدرت درانجام حاجات مې دارد يا درعالم متصرف است يا شرکت تدبير درکاخانجات الهى ميدارد پس درين صورت شريک گردانيدن است بخدا براى دفع اين امر پيغمبر خدا ﷺ مبعوث شده هيچکس را درعلم غيب وقدرت مطلقه وتصرف در امور عالم شريک باخداى تعالى نبايد ساخت پس اين قسم ندا کردن غير خدا را موجب شرک وکفراست چنانچه ايات قرآني واحاديث رسول الله ﷺ وروايات فقهيه براينها دأل اند.(مأة مسائل ص ۳۸-۳۹، سماع الموتى سرفراز خان صفدر رحمه الله ص ۱۰۹).

ترجمه: څلورويشتم سوال: که دمشرق خلک ووايي چې يا رسول الله! يا اولياء الله! همدارنګه اهل مغرب يا رسول الله ووايي، نو په شريعت کې دده څه حکم دی؟ جواب په غائبانه اواز کې د نبي ﷺ او دغير نبي فرق دی، که يو سړی نبي ﷺ ته ندا وکړي په دې نيت باندې چې صلوة او سلام ورسولی شي نو ظاهراً جايزه ده او ددوو وجو څخه جائزه ده اول: دا چې دالله تعالى دطرفه فرشتې مقررې دي چې دامتيانو صلوة اوسلام وررسوي او دوهمه: له دې وجې څخه چې په التحيات کې خطاب (السلام عليک ايهاالنبي) دسلام درسولو لپاره راغلې دی، نو که څوک يې په دې نيت باندې ووايي چې نبي ﷺ ته ور رسولی شي نو جائز دی او دغير نبي په باره کې داسې نه دي راغلي، له دې وجې دنبي څخه غير بل چاته ندا جائزه نه ده، دقرآن عمومي اياتونه او نصوص کوم چې تلاوت کولی شي ددې لپاره دليل

دی، او که یو سړی دالله تعالی څخه ماسوا بل چاته په دې نیت باندې ندا وکړي چې هغه یې هر وخت اوري او یا زما حاجتونه پوره کولی شي او یا په دنیا کې متصرف دی او دالله تعالی د تدبیر په کارخانه کې شریک دی، نو دا سړی دالله تعالی سره شریک جوړه وي او ددې کار دختمولو لپاره پیغمبر ﷺ رالېږل شوی وو چې دالله تعالی سره په علم غیب په قدرت مطلقه او ددنیا په کارونو کې بل څوک شریک مه جوړ وئ لهذا غیر الله ته داسې ندا کول کفر او شرک دی.

۲-مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله فرمايي چې: دصحیح عقیدې مطابق دتبلیغ الملایکه په نیت باندې ندا ظاهره ده، (نشر الطیب ص(۲۴۱)

۳-مولانا حسین علی رحمه الله فرمايي چې: ای وروره ځان پوه کړه چې دمحبت او دتوسل به طریقه باندې دیارسول الله ویل د اختلافي بحث څخه خارج دی (بلغة الحیران ص ۳۵۴)

۴-دمفتي کفایت الله رحمه الله څخه سوال شوی دی چې دمیلاد په محفل کې په دې نیت باندې چې د نبی کریم ﷺ روح راغلی دی یارسول الله ﷺ او الصلوة والسلام علیک یا رسول الله ﷺ ویل جایز دي او که نه؟ هغه جواب ورکوي چې یارسول الله او یا حبیب الله اوازونه پدې نیت باندې چې دا اوازونه نبی کریم ﷺ ته دفرشتو په ذریعه وررسیږي جایز او صحیح دی او پدې نیت باندې چې دنبی کریم ﷺ روح محفل میلاد ته راغلی دی باطل دی .(کفایة المفتی ج۱ص۱۶۹)

۵-مفتي محمد تقي عثماني فرمايي چې: زه خو تردې وایمه چې یو سړي ته په یو مجلس کې دحضور ﷺ نوم مبارک مخې ته راغی او ده ته بې اختیاره دا تصور راغی چې حضور ﷺ مخامخ موجود دی او ده په دې تصور وویل (**الصلوة والسلام علیك یارسول الله**) او حاضر ناظر عقیده دده په زړه کې نشته، بلکه څنګه چې یو سړی دغیب څیز تصور وکړي چې دا څیز زما مخې ته دی نو په دې تصور کې هغه دا الفاظ ووایي نو په دې کې څه حرج نشته، لکن که چیرې داسړی دا الفاظ په دې عقیدې سره ووایي چې حضور ﷺ دلته داسې حاضر او ناظر دی، څنګه چې الله تعالی حاضر او ناظر دی، نو دا به شرک شي، (معاذ الله) او که په دې عقیده یې نه وي ویلي، لیکن دا سوچ یې وي چې (**الصلوة والسلام علیك یارسول الله**) ویل سنت دي او داسې درود ویل ضروري دي او کوم سړی چې داسې الفاظ نه وایي نو دده په زړه کې دنبي کریم ﷺ سره محبت نشته، نو بیا هم دغه عمل بدعت ضلالت او ګمراهي ده.(بدعت یو عظیمه ګناه ده، پښتو ص ۵۰، ۵۱)

فائده: غير الله ته دندا يعني اواز او دغير الله د بللو، په منيځ کې فرق دی، مماتيان دندا دعدم جواز لپاره هغه ايتونه پيش کوي چې په هغې کې دغير الله د رابللو مذمت راغلی دی، لکه: (وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّنْ يَدْعُوا مِنْ دُوْنِ اللهِ) (لَهُ دَعْوَةُ الْحَقِّ وَالَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِه مَا يَمْلِكُوْنَ مِنْ قِطْمِيْرٍ) وغيره حالانکې دندا او درابللو په منځ کې فرق دی، ۱- رابلل عبادت دی او ندا في نفسه عبادت نه دی الا في ذکر الله، ۲- رابلل دالله حق دی، بخلاف النداء فانه اعم. ۳- دغير الله رابلل شرک دی، ځکه چې د رابلونکي په عقيده کې رابلل شوی شخص متصرف في الأمور او دنفع او د نقصان مالک وي، بخلاف النداء، ۴- په رابللو کې ديو څه غوښتنه کيږي، بخلاف النداء، لهذا يارسول الله مدد، رابلل دي بخلاف يارسول الله.

## دحياة الانبياء احاديث متواتر دي

(۱) امام سيوطي رحمه الله فرمايي چې: فَأَقُولُ: حَيَاةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قَبْرِهِ هُوَ وَسَائِرِ الْأَنْبِيَاءِ مَعْلُوْمَةٌ عِنْدَنَا عِلْمًا قَطْعِيًّا لِمَا قَامَ عِنْدَنَا مِنَ الْأَدِلَّةِ فِي ذٰلِكَ وَتَوَاتَرَتْ [بِهِ] الْأَخْبَارُ (الحاوي للفتاوي ص۵۵۵)

(۲) (وَسُئِلَ) - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - عَنْ حَدِيثِ أَحْمَدَ وَأَبِي دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيِّ «مَا مِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ إِلَّا رَدَّ اللهُ إِلَيَّ» وَفِي رِوَايَةٍ «عَلَيَّ رُوحِي حَتَّى أَرُدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ» مَا الْجَوَابُ عَنْهُ مَعَ الْإِجْمَاعِ عَلَى حَيَاةِ الْأَنْبِيَاءِ كَمَا تَوَاتَرَتْ بِهِ الْأَخْبَارُ (الفتاوى الكبرى الفقهية ج۲ ص۱۳۵).

## دصحابه ؤ آثار

(۱) أَنَّ أَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَقْبَلَ عَلَى فَرَسٍ مِنْ مَسْكَنِهِ بِالسُّنْحِ، حَتَّى نَزَلَ فَدَخَلَ المَسْجِدَ، فَلَمْ يُكَلِّمُ النَّاسَ حَتَّى دَخَلَ عَلَى عَائِشَةَ رضي الله عنها، فَتَيَمَّمَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُغَشًّى بِثَوْبِ حِبَرَةٍ، فَكَشَفَ عَنْ وَجْهِهِ ثُمَّ أَكَبَّ عَلَيْهِ فَقَبَّلَهُ وَبَكَى، ثُمَّ قَالَ: «بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي، وَاللهِ لَا يَجْمَعُ اللهُ عَلَيْكَ مَوْتَتَيْنِ ابداً (بخاری ج۲ ص۶۰۷)

دمماتيانو په نيز محمد صلى الله عليه وسلم يو ځل په دنيا کې مړ شو، بيا يې روح په بل جسد مثالي کې واچول شو، دقيامت په ورځ به دنبي کريم صلى الله عليه وسلم روح بيرته ددې جسد مثالي څخه وځي او په جسد عنصری کې به اچول کيږي چې دا دوهم وفات شو، او داهل سنت والجماعت په نيز نبي کريم صلى الله عليه وسلم يو ځلې وفات شو بيا په قبر کې حيات ورکړل شو د روح او دجسد تعلق راغلو چې دقيامت په ورځ ب دا تعلق قوي کړی شي.

علامه بدرالدين عيني رحمه الله فرمايي چې: وهما الموتتان المعروفتان المشهورتان، فلذٰلك ذكرهما بالتعريف، وهما الموتتان الواقعتان لكل أحد غير الأنبياء، عليهم الصلاة والسلام، فإنهم لا يموتون في قبورهم، بل هم أحياء، وأما سائر الخلق فإنهم يموتون في القبور ثم يحيون يوم القيامة. ومذهب أهل السنة والجماعة: أن في القبر حياة وموتاً فلابد من ذوق الموتتين لكل أحد غير الأنبياء (عمدة القاري ج۱۱ ص۲۰۲ كتاب فضايل الصحابة)

دعلامه عيني رحمه الله دموت في القبر ځخه هغه نوم مراد دی چې ملائکې انسان ته دسوال او دجواب ځخه وروسته فرمايي چې (نم کنومة العروس) نو پېغمبران دعامو انسانانو په شان نه اوده کيږي بلکه دوي عليهم السلام به ويښ وي او په نوم باندې دموت اطلاق شوی دی، لکه څرنګه چې مونږ دخوب ځخه د راپاڅېدلو په وخت کې په مشهوره دعاکې وايو چې (الحمد لله الذي احيانا بعد ما اماتنا) او يا عدم دحيوة قويه مراد دی، لکه څرنګه چې دعلامه عيني رحمه الله دکلام ځخه معلوميږي (عمدة القاري ج۳ صـ ۱۱۸ )باب من الکبائر ان لايستتر من بوله) ددې اثر په تشريح کې په فتح الباري په ج ۷ صـ۲۹ ) کې همدا تحقيق کوي، او دبخاري په حاشيه کې يې هم همدا تحقيق ليکلی دی.

**خلاصه:** دا چې پېغمبر چې په قبر کې ژوندی شي نو بيا همداسې ژوندی او ويښ وي، او نور انسانان اوده کيږي، لکن دأودو په مابين کې هم فرق وي، لکه په دې دنيا کې چې د اودو انسانانو دخوبونو په مابين کې فرق وي.

(۲)دوه مسافرو سړيو په مسجد نبوي کې په اوچت اواز باندې خبرې کولې، حضرت عمر رضي الله عنه ورته وفرمايل چې: **لَوْكُنْتُمَا مِنْ أَهْلِ الْبَلَدِ لَأَوْجَعْتُكُمَا، تَرْفَعَانِ أَصْوَاتَكُمَا فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ،بخاري ج۱ص۶۷، باب رفع الصوت في المساجد]**

که تاسو مسافر نه وی نو دردولې به مې وئ، تاسو د رسول الله صلی الله عليه وسلم په مسجد کې اواز اوچتوې، او بعد الوفات په مسجد نبوي کې په اوچت اواز باندې خبرې ځکه ناروا دي، چې نبي صلى الله عليه وسلم ژوندی دی، ملاعلي القاري رحمه الله فرمايي چې: **أَنَّهُ-عَلَيْهِ السَّلَامُ- فِي قَبْرِهِ حَيٌّ، وَقَالَ تَعَالَى: {لَا تَرْفَعُوا أَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ} ،(مرقات باب المساجد ومواضع الصلوة)**

(۳) **عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ كُنْتُ أَدْخُلُ بَيْتِي الَّذِي دُفِنَ فِيهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَأَبِي فَأَضَعُ ثَوْبِي، وَأَقُولُ إِنَّمَا هُوَ زَوْجِي وَأَبِي، فَلَمَّا دُفِنَ عُمَرُ رضي الله عنه مَعَهُمْ فَوَاللَّهِ مَا دَخَلْتُهُ إِلَّا وَأَنَا مَشْدُودَةٌ عَلَيَّ ثِيَابِي، حَيَاءً مِنْ عُمَرَ رضي الله عنه. (مسند احمد، رقم۲۵۶۲۰، مشکوة ص(۱۵۴)**

حضرت عائشة رضي الله عنها فرمايي چې زه به خپلې هغې کوټې ته چې نبي صلى الله عليه وسلم او زما پلار په کې دفن دی ورتلم او د پوره پردې خيال به مې نه ساتلو، ما به ويلې چې دا خو يو زما خاوند او بل زما پلار دی لکن چې کله حضرت عمر رضي الله عنه هلته دفن شو نو قسم دی چې زه بيا هر وخت د پوره پردې سره ورتلم.

مولانا محمد أمين صفدر اوکاړوي رحمه الله فرمايي چې په جهلم کې جلسه وه هلته ما تقرير وکړو، بيا ګجرات ته راغلم، دګجرات ملګرو راته وويل چې مونږ ته دسهار دلمانځه ځخه وروسته درس راکړه، دلته خلک کم وؤ، بل طرفته عنايت الله شاه ګجراتي يو ولس کسان تيار کړي وو چې ما قتل کړي، ددرس په دوران کې ماته دوي چېټ راکړو په هغې کې يې ليکلي وو چې دحضرت عايشې رضی الله عنها دا حديث عقلا دروغ دی ،ځکه چې دا څرنګه ممکنه ده چې دحضرت عمر رضي الله عنه نظر دشپږو ته خاورو ځخه تيريږي او د يو ځادر ځخه

نه تيريږي ؟ ما ورته جواب ورکړو چې ګورئ ورونو! وسپنه چې هر څومره غټه او پلنه وي بيا هم بجلي ترينه تيريږي ، لکن دلرګي ديوې ورې تختې څخه نشي تيريدلی ، نو لکه څرنګه چې په وچ لرګي کې الله تعالی دبجلۍ دبندولو صلاحيت ايښی دی ، نو همدارنګه يې په لباس کې هم دنظر دبندولو صلاحيت ايښی دی ، پدې مماتيانو کې يو پرفيسر وو هغه په خبر پوه شو پاڅيدلو او وې ويل چې مولانا مونږ ستا د وژلو پسې راغلي وو ،لکن زه اوس بالکل په خبر پوه شوم ، لکن زه په اشاعتيانو کې غټ سړی يم ،لهذا داشاعت دپرېښودلو لپاره ديوې بهانې ضرورت دی ، نو ته مهرباني وکړه دعنايت الله شاه سره مخامخ خبرې وکړه چې زمونږ نور شکوک هم ختم شي، ما ورته وويل چې زه دلته پنځه ساعته انتظار کوم که پدې کې مخامخ خبروته تيار شو نو ديره ښه ده او که نه زه بيا ځم، هغوي دير په تيزۍ سره ورغلل تقريباً يو نيم ساعت وروسته راغلل او وې ويل چې محترمه! شاه صاحب مخامخ خبرو ته نه دی تيار او وايي چې مولوي امين جاهل سړی دی، زه دده سره خبره نه کوم ، که دمناظرې کول وي نو عبد الله درخواستي اويا قاضي مظهر حسين دچکوال را اولئ مونږ ورته وويل چې مولوي امين که جاهل وي نو خو زر به ملامته شي ، لکن شاه صاحب مرګ ته تيار وو او مناظرې ته نه وو تيار (تسکين الأذکياء ص ۴۶۲)

(٤) عَنْ أَبِي صَالِحٍ رحمه الله عليه، عَنْ مَالِكِ الدَّارِ رحمه الله عليه، قَالَ: وَكَانَ خَازِنَ عُمَرَ رضي الله عنه عَلَى الطَّعَامِ، قَالَ: أَصَابَ النَّاسَ قَحْطٌ فِي زَمَنِ عُمَرَ رضي الله عنه، فَجَاءَ رَجُلٌ إِلَى قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! اسْتَسْقِ لِأُمَّتِكَ فَإِنَّهُمْ قَدْ هَلَكُوا، فَأُتِيَ الرَّجُلُ فِي الْمَنَامِ فَقِيلَ لَهُ: "ائْتِ عُمَرَ رضي الله عنه فَأَقْرِئْهُ السَّلَامَ، وَأَخْبِرْهُ أَنَّكُمْ مُسْتَقِيمُونَ وَقُلْ لَهُ: عَلَيْكَ الْكَيْسُ، عَلَيْكَ الْكَيْسُ"، فَأَتَى عُمَرَ رضي الله عنه فَأَخْبَرَهُ فَبَكَى عُمَرُ رضي الله عنه ثُمَّ قَالَ: يَا رَبِّ لَا آلُو إِلَّا مَا عَجَزْتُ عَنْهُ (مصنف ابن ابی شیبه باب ما ذکر فی فضل عمر)

دقحطۍ زمانه وه، يو سړی د رسول الله ﷺ قبر ته راغلو او وې فرمايل چې يا رسول الله خپل امت ته باران وغواړه بېشکه چې دوي هلاک شول، نو رسول الله ﷺ ورته په خوب کې وفرمايل چې حضرت عمر ته ورشه دسلام څخه وروسته ورته ووايه چې په تاسو به باران را ووريږي او دا هم ورته ووايه چې هوښيار اوسه، هوښيار اوسه، هغه سړی حضرت عمر رضي الله عنه ته راغلو او قصه يې ورته وکړه حضرت عمر رضي الله عنه په ژړا شو او وې فرمايل چې يا الله تعالی زه به دخپل وس مطابق سستي نه کوم .

(٥) وقد كانت عائشة رضي الله عنها تسمع الوتد او المسمار يضرب في بعض الدور المطيفة بالمسجد فترسل اليهم لا تؤذوا رسول الله ﷺ (خلاصة الوفاء ج ۱ ص ۲۲۲)

دمسجد نبوي په خوا و شا کورونو کې به چې چا ميخ ټکوهلو نو حضرت عائشې رضي الله عنها به ورپسې څوک ورليږلو او ورته ويل به يې چې نبي ﷺ ته تکليف مه رسوئ .

(٦) عَنْ نَافِعٍ رحمه الله عليه قَالَ: كَانَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنهما إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ أَتَى قَبْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: «السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللهِ، السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا أَبَا بَكْرٍ، السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا أَبَتَاهُ». (مصنف عبد الرزاق ج ۳ ص ۵۷۶ رقم ۶۷۲۴)

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما به چې د سفر څخه راغلو نو د نبي ﷺ قبر ته به راغلو او وبه يې فرمايل چې يا رسول الله ﷺ په تا باندې دې سلام وي يا ابوبکر په تا باندې دې سلام وي يا پلاره په تا باندې دې سلام وي.

(۷)وقد صح عن أبي ايوب الانصاري رضي الله عنه أنه قال: لمن أنكر عليه وضع وجهه على القبر انما جئت رسول الله صلى الله عليه وسلم ولم آت اللبن اوالحجر ،(احسن الفتاوى ج ٤ صـ ٥٥١، مسند احمد ج ٦ صـ ٥٨٧، مرويات مالک بن حويرث)

د حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه څخه په صحيح سند باندې روايت شوى دى چې يو ځلې (د فرط محبت) له وجې ابو ايوب انصاري رضي الله عنه د محمد صلى الله عليه وسلم په قبر مبارک باندې مخ کيښودلو ، نو يو سړي پرې اعتراض وکړو ، ابو ايوب انصاري رضي الله عنه ورته په جواب کې وفرمايل چې: زه خښتې او تيګې ته نه يم راغلى، بلکې زه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلى يم ، يعنې رسول الله صلى الله عليه وسلم د خښتو او د تيګو په شان بې روحه نه دى.

(۶)عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «النَّاسُ يَصْعَقُونَ يَوْمَ القِيَامَةِ، فَأَكُونُ أَوَّلَ مَنْ يُفِيقُ (صحيح البخاري، كتاب الانبياء ج ۱ صـ ۴۸۱)

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دى چې د قيامت په ورځ به خلک بې هوشه شي نو اول به زه په هوش شم. او بې هوشي هميشه په ژوندي انسان باندې راځي.

## اجماع الأمة

(۱)امام تقى الدين السبكي رحمه الله فرمايي چې: (وقد اجمع اهل السنة على اثباة الحياة فى القبر قال امام الحرمين فى الشامل اتفق سلف الامة على اثباة عذاب القبر، واحياء الموتى في قبورهم وردالارواح في اجسادهم . (شفاء السقام صـ ٤٢٥ ) يعنې په عذاب القبر او حياة د قبر باندې د اهل سنت والجماعة اجماع ده.

(۲) علامه عيني رحمه الله فرمايي چې: ومذهب اهل السنة والجماعة ان فى القبر حياتاً وموتاً فلا بد من ذوق الموتتين لكل احد غير الانبياء. (عمدة القاري ج ۱۱ صـ ٤٠٣ كتاب فضايل الصحابة )

(۳)امام سخاوي رحمه الله فرمايي چې: ونحن نؤمن ونصدق بانه عليه السلام حيٌّ في قبره يرزق والاجماع على هذا (القول البديع، فى الصلوة على الحبيب الشفيع ،عنوان، سبع فوايد فى خاتمة الباب الرابع، صـ ۱۷۲ وفى البعض صـ۱۲۵ )

(۴) علامه ابن حجر الهيثمي رَحِمَهُ ٱللَّهُ هم همدا الفاظ ليكلي دي: الدر المنضود فى الصلوة على صاحب المقام المحمود (صـ ۹۰، دار العلميه، بيروت)

(۵) (وَسُئِلَ) - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنْ حَدِيثِ أَحْمَدَ وَأَبِي دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيِّ رحمهم الله تعالى «مَا مِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ إِلَّا رَدَّ اللّٰهُ إِلَيَّ» وَفِي رِوَايَةٍ «عَلَيَّ رُوحِي حَتّٰى أَرُدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ» مَا الْجَوَابُ عَنْهُ مَعَ الْإِجْمَاعِ عَلٰى حَيَاةِ الْأَنْبِيَاءِ كَمَا تَوَاتَرَتْ بِهِ الْأَخْبَارُ (الفتاوى الكبرى الفقهيه ج۲ صـ۱۳۵)

(۶) محمد بن علان الصديق الشافعي المتوفي ۱۰۵۷ هـ فرمايي چې: (والاجماع على انه ﷺ حيّ في قبره على الدوام ( دليل الفالحين لطرق رياض الصالحين ج ۷ صـ ۱۹۵ )

(۷) شيخ داود سليمان البغدادي المتوفي ۱۲۹۹ هـ فرمايي چې: وروى البيهقي وغيره باسانيد صحيحه عنه ﷺ انه قال الانبياء احياء في قبورهم يصلون وورد ان الله حرم على الارض ان تأكل اجساد الانبياء وقد اطبق العلماء على ذلک (المنحة الوهبية في رد الوهابية صـ٦ )

(۸) الشيخ المحدث عبد الحق الدهلوي رحمه الله فرمايي چې: بيائد حياة الانبياء متفق عليه است هيچ كس را دروى خلاف نيست حياة جسماني حقيقي، نه حيات معنوي روحاني. (اشعة اللمعات ج ۱ صـ ۵۹۴)

(۹) مولنا گنگوهي رحمه الله فرمايي چې: انبياء يې له دوي ځخه مستثنى كړي دي ځكه چې د دوي په سماع كې دهېڅا اختلاف نشته. (فتاوى رشيديه صـ ۱۷۳) وفى البعض صـ ۶۹، كتاب الايمان والكفر، باب، زندوں کا مردوں سے مدد مانگنا۔

(۱۰) مولنا اشرف على تهانوي رحمه الله فرمايي چې: دا خبره په اتفاق د امت باندې ثابته ده چې پيغمبران پخپلو قبرونو كې ژوندي دي (اشرف الجواب عنوان نمبر ۷۵، حضرت ابراہیم واولیاء کرام کے حیات برزخیہ کا اثبات حصہ دویم روافض کے اعتراضات کے جوابات ص- ۲۱۰، انبیاء کرام کے حیات ص- ۲۱۱)

(۱۱) مولنا ادريس كاندهلوي رحمه الله فرمايي چې: دا دټولو اهل سنتو اجماعي عقيده ده چې پيغمبران د وفات ځخه وروسته په خپلو قبرونو كې ژوندى دي (سيرة المصطفى ج ۳ صـ۲۴۹ )

(۱۲) مولنا خير محمد جالندهري رحمه الله فرمايي چې: په عالم البرزخ كې ټول پيغمبران په حقيقي دونيوي ژوند باندې دجسد عنصري سره ژوندي دي او دا مسئله د اهل سنت والجماعة په مابين كې اجماعي ده. (القول النقي في حياة النبي ﷺ صـ ۳۰ )

(۱۳) مفكر اسلام مفتي محمود رحمه الله فرمايي چې: په عالم البرزخ كې په جسماني حيات باندې اجماع ده. (القول النقي صـ ۳۲ )

(۱۴) مولنا قطب الدين رحمه الله د حضرت اوس ﷺ بن اوس د حديث د تشريح په اخر کې ليکلي دي چې د پېغمبرانو په حقيقي جسماني ژوند باندې اجماع ده. (مظاهر حق ج ۱ ص ۴۵۶)

(۱۵) شاه ولي الله ثاني مولانا غورغوشتوي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې: اهل سنت والجماعت په دې متفق دي چې انبياء په خپلو قبرونو کې ژوندي دي او د دوي ژوند د شهيدانو څخه هم اوچت دی، (مجالس غورغوشتوي ص ۱۵۶)

(۱۶) د اهل سنت والجماعت د عقيدې مطابق انبياء په خپلو قبرونو کې ژوندي دي (کفايت المفتي، کتاب العقائد، فصل چهارم مسئله علم الغيب)

(۱۶) مولنا خليل احمد سهارنپوري رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې د ټولو دا عقيده ده چې انبياء پخپلو قبرونو کې ژوندي دي (البراهين القاطعه على ظلام الانوار الساطعه، بحث طعام محفل مولد، ص ۱۹۹) دا کتاب د حضرت ګنګوهي په حکم ليکل شوی دی.

## مذاهب اربعه

**احناف:** د احنافو په نيز باندې ټول پېغمبران په قبرونو کې په حياة حقيقي جسماني باندې ژوندي دي

(۱) ابن الهمام رحمه الله فرمايي چې: (وتستقبل القبر بوجهك ثم تقول السلام عليك ايها النبي ورحمة الله وبركاته ثم يسأل النبي ﷺ الشفاعة فيقول يارسول الله اسألك الشفاعة يارسول الله أسألك الشفاعة وأتوسل بك الى الله في ان اموتُ مسلما (شرح فتح القدير ج ۳ ص ۱۸۰، كتاب الحج، مسايل منثوره المقصد الثالث فى زيارة النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عمدة القاري ج ۱۱ ص ۴۰۳، مرقات ج ۵ ص ۳۲ مراقي الفلاح ص ۴۳۰ فصل في زيارت النبي ﷺ حاشية الطحطاوي ج ۱ ص ۲۴۱

په حاشيه ابن عابدين ج ۱ ص ۱۵۱ کې د حيات الانبياء د عقيدې ذکر دي چې د دوي عبارتونه مخکې رانقل کړل شو.

**مالکيه:** امام سمهودي رحمه الله فرمايي چې: ولاشك في حياته ﷺ بعد الموت وكذا سائر الانبياء حياة اكمل من حياة الشهداء وهوصلى الله عليه وسلم سيد الشهداء واعمال الشهداء في ميزانه (خلاصة الوفاء ج ۱ ص ۴۳)

(۲) وفى الشفاء بسند جيد عن ابى حميد رحمه الله قال ناظر ابو جعفر امير المؤمنين مالكا فى مسجد رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال: مالك يا امير المؤمنين! لاترفع صوتك فى هذا المسجد، فان الله ادب قومًا فقال: (لَاتَرْفَعُوْا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ... الأية) ومدح قومًا فقال: (إِنَّ الَّذِيْنَ يَغُضُّوْنَ اَصْوَاتَهُمْ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ) وذم قومًا فقال: (إِنَّ الَّذِيْنَ يُنَادُوْنَكَ مِنْ وَّرَاءِ الْحُجُرَاتِ...) وان حرمته ميتًا كحرمته حيًا فاستكان لها ابو جعفر وقال

يا ابا عبد الله! أستقبل القبلة ادعوا ام استقبل رسول الله صلى الله عليه وسلم؟ فقال ولم تصرف وجهك عنه وهو وسيلتك ووسيلة أبيك آدم عليه السلام الى الله يوم القيامة؟ بل استقبله واستشفع به فيشفعك الله (وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ (خلاصة الوفاء ج۱ ص۵۱)

**شوافع:** (۱) امام تاج الدين السبكي رحمه الله فرمايي چې: ومن عقائدنا ان الانبياء احياء في قبورهم فاين الموت واشتد نكير الاشاعرة على من نسب هذ القول الى الشيخ (طبقات الشافعية الكبرى ص ۳۸۵)

(۲) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: واذا ثبت انهم احياء من حيث النقل فانه يقويه من حيث النظر كون الشهداء احياء بنص القرآن والانبياء افضل من الشهداء. (فتح الباري ج ۷ ص ۲۹)

(۳) امام نووي رحمه الله فرمايي چې: فَإِنْ قِيلَ كَيْفَ يَحُجُّونَ وَيُلَبُّونَ وَهُمْ أَمْوَاتٌ وَهُمْ فِي الدَّارِ الْآخِرَةِ وَلَيْسَتْ دَارَ عَمَلٍ فَاعْلَمْ أَنَّ لِلْمَشَايِخِ وَفِيمَا ظَهَرَ لَنَا عَنْ هَذَا أَجْوِبَةً أَحَدُهَا أَنَّهُمْ كَالشُّهَدَاءِ بَلْ هُمْ أَفْضَلُ مِنْهُمْ وَالشُّهَدَاءُ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ. (شرح مسلم ج۱ ص۹۳ باب الاسراء برسول الله ﷺ) په شوافعو کې امام بيهقي او علامه سيوطي رحمه الله په دې موضوع باندې کتابونه ليکلي دي.

(۴) علامه سيوطي رحمه الله فرمايي چې: حياة النبي صلى الله عليه وعلى آله وسلم في قبره وسائر الانبياء معلومة، عندنا علماً قطعياً لما قام عندنا من الادلة في ذلك وتواترت له الاخبار الدالة على ذلك (الحاوي للفتاوى ،انباء الاذكياء في حيات الانبياء عليهم السلام ج ۲ص( ۱۳۹)

**حنابله:** ويستحب زيارة قبر النبي ﷺ لما روى الدار قطني باسناده عن ابن عمر رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من حج فزار قبري فكانما زارني في حياتي ثم تأتي القبر فتولى ظهرک القبلة وتستقبل وتقول: السلام عليک ايها النبي ﷺ (المغنى لابن قدامه ج ۳ ص۶۰۰)

علامه ابن القيم رحمه الله فرمايي چې: بعد وفاته استقرت في الرفيق الاعلى مع ارواح الانبياء مع هذا فلها اشراق على البدن واشراق وتعلق به بحيث يرد السلام على من سلم عليه، اذا سلم عليه المسلم، رد الله عليه روحه حتى يرد عليه السلام(زاد المعاد، فصل، الفرق بين من قال كان الاسراء بالروح وبين أن يقال كان الاسراء مناماً( ج ۱ص۵۰۶)

# دحیات النبی صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ عقیده دواقعاتو په رڼا کې

## دسلطان نورالدین زنګي رحمه الله خوب:

دمدینې منورې مستند مؤرخ علامه نورالدین سمهودي رحمه الله په خپل کتاب وفاء الوفاء (ج ۱) کې یوه واقعه لیکلې ده چې: سلطان نورالدین زنګي رحمه الله دخپل سلطنت په زمانه کې درې شپې مسلسل خوب ولیدلو چې رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ ددوو بدبختو انسانانو طرفته اشاره کوي او حکم کوي چې ما دددې دواړو بدبختو بچ کړه، سلطان په دریمه ورځ خپل نیک بخته وزیر جمال الدین الموصلي رحمه الله ته دا خوب تیر کړو، وزیر ورته مشوره ورکړه چې دلته حصاریدل مناسب نه دي، بلکې په پټه باندې ځان مدینې منورې ته ورسوه او دصورت حال ځخه ځان خبر کړه، سلطان نورالدین د ځان سره شل خادمان او ډیر مال واخستلو، شپاړس ورځې سفرېې وکړو او مدینې منورې ته ورسیدلو او حکم یې وکړو چې دمدینې منورې ټول خلک راشئ چې زه هریو ته انعام ورکړم، دمدینې منورې هر سړی به راتلو انعام به یې اخستلو او بیرته به تللو، لکن هغه دوه کسان چې نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ یې شکلونه ورته په خوب کې ښودلي وو رانغلل، سلطان ډیر خفه شو، نو خلکو ته یې وویل چې ایا تاسو ټول راغلي یئ؟ هیڅوک هم پاتې نه دي؟ خلکو ورته وویل چې مونږ خو ټول راغلي یو هیڅوک هم نه دي پاتې، لکن دمسجد نبوي صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ په خوا کې دوه مسافر دي، چې شپه او ورځ په عبادت باندې مصروف وي هغوي نه چاته ورځي او نه څوک ځاته پریږدي، سلطان وویل چې هغوي ضرور راولئ، کله یې چې راوستل، نو همغه بدبختان وو چې نبي کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ ورته په خوب کې ښودلي وو، سلطان دوي د .. خپلې کوټې ته بوتلل دتحقیق څخه وروسته معلومه شوه چې دیو پوزي لاندې سورنګ دی چې روضې مبارکې ته نږدې شوی دی، بادشاه پوښتنه وکړه چې بدبختو دا شرارت ولې کوئ؟ دوي ورته جواب ورکړو چې مونږ د أندلس عیسایان یو، زمونږ حکومت مونږ ددې لپاره رالیږلي یو چې دنبی کریم صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ جـ . اطهر مبارک وباسو أندلس ته یې ویسو، دهغې څخه وروسته به دا خبره مشهوره کړو چې مسلمانان دروغ وایي چې دمحمد صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ جسد مبارک په مدینه منوره کې دی، کنه مونږ ته دې یې وښایي کله یې چې تحقیقات مکمل کړل، نو ددواړو څخه یې سرونه غوڅ کړل او بیا یې وسوزول، بیا یې د روضې مبارکې

ګير چاپيره زمكه تر أوبو پورې را وسپړله او د قلعې څخه يې پخه د كه كړه چې د روضې مباركې د جاليو څخه ښكاري (تاريخ مدينه، اور رحمت كاينات) د دې څخه معلومه شوه چې نبی كريم ﷺ ژوندي دی او ريدل كوي، د بې أدبۍ او د شور څخه په تكليفيږي.

**دابو بكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات:** كله چې ابو بكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات شو نو صحابو كرامو رضی الله عنهم د تكفين او د جنازې څخه وروسته دابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نعش د روضې مباركې د دروازې سره كيښودلو، او عرض يې وكړو چې: السلام عليک يارسول الله ! هذا ابو بكر، د روضې مباركې څخه اواز راغلو چې: أدخلو الحبيب الى الحبيب، او د روضې مباركې دروازه پخپله خلاصه شوه (يعنې ملايكو خلاصه كړه) هلته موجودو ټولو خلكو دا اواز واوريدلو (تفسير كبير ج ۵ص ۴۷۸،سورة الكهف، ايت نمبر ۱۱)

فانقيل: چې په نورو وختونو كې ولې دنبي كريم ﷺ د قبر څخه اواز نه اوريدل كيږي؟

قلنا: دا د ابو بكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كرامت وو او په كراماتو كې دوام نوي.

**دحرې واقعه :** حضرت سعيد بن المسيب رحمه الله فرمايي چې په (۶۳)هـ كال كې د حرې په واقعه كې په مدينه منوره كې لس زره كسان شهيدان شول، خلک مسجد ته نه راتلل، زه يو اځې په مسجد كې ووم، كله به چې د لمانځه وخت شو، نو د روسول الله ﷺ د روضې مباركې څخه به د أذان او د اقامت اواز راتللو، (وفاء الوفاء ج ۱ص ۱۳۴).

**حاجي امداد الله مهاجر مكي رحمه الله:** مولانا اشرف على تهانوي رحمه الله فرمايي چې: حاجي امداد الله مهاجر مكي رحمه الله به فرمايل چې زه چې هر كله د روضې مباركې په خواكې په نبي كريم ﷺ باندې سلام واچوم، د نبي كريم ﷺ د جواب څخه مستفيض كيږم (امداد المشتاق)

## د روضې مباركې څخه دلاس مبارک ظاهريدل:

حضرت سيد احمد رفاعي رحمه الله ډير لوی ولي الله وو، حضرت تهانوي رحمه الله فرمايي چې يوه ورځ حضرت سيد احمد رفاعي رحمه الله روضې مباركې ته ورغلو، په ډير شوق او محبت سره يې يو څو اشعار ولوستل، د اشعارو د ترجمې خلاصه يې داده چې: يا رسول الله ! كله چې زه لرې يم نو خپل روح

درته درلیږم، زما روح راځي او ستا پاکیزه حرم ښکلوي، اوس زه د خپل بدن سره حاضر یم، زما سره د شفقت معامله وکړه، خپل لاس مبارک راښکاره کړه چې زه یې ښکل کړم، د دې اشعارو سره د روضې مبارکې څخه لاس مبارک راښکاره شو، سید احمد رفاعي رحمه الله ښکل کړو او بیا بې هوشه شو، په دغه وخت کې د لاس مبارک د نور څخه لمر هم بې نوره شو، په دغه وخت کې په مسجد نبوي کې تقریباً نوي زره کسان وو چې غټ غټ اولیاء پکې وو (فضایل درود شریف از مولانا زکریا رحمه الله)

**حسین احمد مدني ته د روضې مبارکې څخه د سلام جواب:** حسین احمد مدني رَحِمَهُ ٱللَّهُ د روضې مبارکې په خوا کې سلام وکړو، د روضې مبارکې څخه جواب راغلو چې: وعلیک السلام یا ولدي، (*حضرت مدنی کی ایمان افروز واقعات ص۔ ۳۷، ص۔ ۳۸*)

## ددیوبند اکابر

**(۱) حضرت مولنا محمد قاسم نانوتوي** رحمه الله: رسول الله ﷺ او ټول پیغمبران په یقیني طور په خپلو قبرونو کې ژوندي دي، چې شیعه ګان ورباندې نه پوهیږي نو مونږ څه وکړو؟ (هداية الشيعة صـ ۳۵۹) رسول الله صلی الله علیه وسلم په قبر کې ژوندی دی. (اب حیات صـ ۷)

دانبیاوو د بدنونو سره ددوی د روحونو تعلق دی او ددوي سماع باقي ده (جمال قاسمي صـ ۱۲) پیغمبران د روحونو او د اجسادو د ونیویه و په مابین کې د تعلق په وجه ژوندي دي (لطائف قاسمیه صـ ۳ صـ ۴).

**(۲) حضرت مولانا رشید احمد ګنګوهي** رحمه الله: رسول الله ﷺ په خپل قبر کې ژوندی دی (ونبی الله حيٌّ يرزق) دا مضمون مولوي محمد قاسم صاحب سلمه الله تعالی په خپله رساله آب حیات کې ثابت کړې دی (بمالا مزید علیه) هداية الشيعة صـ ٤٩) دانبیاوو په سماع کې د هیڅا اختلاف نشته، (فتاوی رشیدیه، کتاب الایمان والکفر، *زندوں کا مردوں سے مانگنا*) او سماع فرع د حیات ده.

**(۳) حضرت مولنا احمد علي السهارنپوري** رحمه الله: والاحسن ان يقال ان حياته لا يتعقبها موت بل يستمر حيًّا والانبياء احياء في قبورهم. (حاشية بخاري شريف ج ۱ صـ ۵۱۷)

**(٤) شيخ الهند مولنا محمود الحسن رحمه الله**: وهو معتقدنا ومعتقد مشائخنا جميعا لا ريب فيه (المهند صـ ٧٤ ) تقدير الكلام ما من احد يسلم عليّ الّا ردّ عليه السلام لاني حيٌّ اقدر على رد السلام (حاشية سنن ابي دواد ج ١ صـ ١٥٧ الانبياء احياء في قبورهم، حاشيه سنن ابي دواد ج ١ صـ ١٥٧)

**(٥) فخرالمحدثين مولنا خليل احمد السهارنپوري رحمه الله**: ان النبي ﷺ حيٌّ في قبره كما ان الانبياء احياء في قبورهم . (تذكرة الخليل صـ ٣٧٠ ، بذ المجهود ج ٢ صـ ١١٧ باب ما يقول في التشهد (بذل المجهود ج ٢ صـ ١٦٠ باب تفريح ابواب الجمعة )

**(٦) رئيس المفسرين مولنا حسين علي رحمه الله** : عن ابي الدرداء قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اكثروا الصلوة عليّ يوم الجمعة فانه مشهود تشهده الملائكة وان احدا لن يصلى عليّ الا عرضت على صلوته حين يفرغ منها قال قلت وبعد الموت؟ قال وبعد الموت، ان الله حرم على الارض ان تأكل اجساد الانبياء فنبيُّ الله حيٌّ يرزق ، وقد صنف السيوطي رسالة انباء الاذكياء في حياة الانبياء . (تحريرات حديث على اصول التحقيق صـ٣٣١ رسالة درود شريف حديث نمبر ٨ )

**(٧) حكيم الامت مولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله** : الله تعالى په زمكه باندې د پيغمبر د بدن مبارك خوړل حرام كړي دي نو دالله تعالى پيغمبر ژوندى دى او رزق وركول كيږي (نشر الطيب صـ ١٩٩ ، اشرف الجواب صـ ٣٢٣١ ، صـ التكشف صـ ٦٧٥ )

**(٨) خاتم المحدثين حضرت مولنا سيد انورشاه الكشميري رحمه الله** .

١-وفي البيهقي عن انس رضي الله عنه وصححه ووافقه الحافظ فى المجلد السادس ان الانبياء احياء فى قبورهم يصلون . (فيض الباري ج ٢ كتاب الصلوة، باب رفع الصوت صـ٦٤ ومن ههنا انحل حديث اخر رواه ابوداود في رد روحه ﷺ حين يسلم عليه ﷺ ليس معناه ان يرد روحه اى انه يحيي في قبره بل توجهه من ذلک الجانب الى هذا الجانب فهوصلى الله عليه وسلم حيٌّ فى كلتا الحالتين بمعنى انه لم يطرأ عليه التعطيل قط . (فيض الباري ج ٢ صـ ٦٥ باب رفع الصوت )

٢-دنبى كريم يوائې روح نه دى ژندى ،بلكې دروح مع الجسد سره ژوندى دى (تحية السلام صـ ٣٦)

**(٩) شيخ العرب والعجم حضرت مولنا حسين احمد المدني رحمه الله**: ١-د ديوبند اكابر نه يوائې دا چې دانبياوو لپاره حيات جسماني مني بلكه ثابتوي يې او په ډېر زور سره په دې باندې دلائل

قائموي، په دې باره کې يې ډېرې رسالې ليکلي دي، لکه اب حيآت ، هداية الشيعة ، اجوبه اربعين حصه دويم ، وغيره ، الشهاب الثاقب صـ ۳۲۰ نقش حيات صـ ۱٦۰)

۲ـ دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ژوند يوائې روحاني ندی بلکې جسماني دی (مکتوبات نمبر ۱۳۰، ج ۱)

**(۱۰) حضرت مولنا احمد** رحمه الله **:دقاري محمدطيب** رحمه الله **: والد:** په مهند باندې تصديق کړی دی او ليکي چې: ماکتبه العلامه وحيد العصر هو الحق والصواب ، (المهند صـ ۸۰)

**(۱۱) شيخ الاتقيآء حضرت مولنا الشاه عبد الرحيم راى پوري** رحمه الله : په مهند باندې تصديق کړی دی او ليکلي يې دي چې: الذي كتب في هذه الرسالة حق صحيح وثابت في الكتب بنص صريح وهو معتقدي ومعتقد مشايخي رضوان الله عليهم اجمعين واحيانا الله بها واما تنا عليهم (المهند صـ ۷۸)

**(۱۲) حضرت مولنا مفتي محمد کفايت الله دهلوي** رحمه الله: رسول الله صلى الله عليه وسلم ته په دې خيال باندې اواز کول چې دنبي ﷺ روح مبارک دميلاد مجلس ته راځي نو ددې لپاره په شريعت مقدسه کې هيڅ ثبوت نشته او دڅو وجو څخه باطل دی، اول: له دې وجې څخه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپل قبر مبارک کې ژوندی دی لکه څرنګه چې د اهل سنت والجماعة عقيده ده ، نو چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم روح دميلاد مجلس ته راغلو نو دبدن سره يې مفارقت راغلو او که نه؟ که مفارقت راغلی وي نو بيا د رسول الله ﷺ حيات ونه منل شو او يا کم ازکم په ژوند کې فرق راغلو، نو دا صورت د تعظيم په ځای باندې د توهين باعث دی . (کفاية المفتي ج ۱ صـ ۱٦۹)

مفتي صاحب په المهند باندې تصديق کړی دی او ليکلي يې دي چې: (رأيت الاجوبة كلها فوجدتها حقة صريحة لا يحوم حول سرادقاتها شک ولا ريب، وهو معتقدي ومعتقد مشايخي (المهند صـ ۸٤)

**(۱۳) شيخ الاسلام علامه شبير احمد العثماني** رحمه الله: الله تعالى فرمايي چې: **وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ وَلَا أَنْ تَنْكِحُوا أَزْوَاجَهُ مِنْ بَعْدِهِ** (الايه)

ددې ايت په تشريح کې ليکي چې: ددې مسئلې انتهائي تحقيقي بحث مولنا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله په اب حيات رساله کې کړی دی . (تفسير کابلی تحت هذه الاية)

همدارنګه الله تعالى فرمايي چې: (ويوم نبعث من كل امة بشهيد)

ددې ايت په تشريح کې ليکي چې: په حديث کې راځي چې د امت اعمال هره ورځ نبي ﷺ ته مخامخ پيش کولی شي، د خير اعمال چې ورباندې پېش کړی شي نو د الله تعالی شکر ادا کوي او بد اعمال چې ورباندې پيش کړی شي، نو دناپوهو لپاره د الله تعالی څخه ښښنه غواړي (تفسير عثماني مشهور په تفسير کابلي، تحت هذه الاية ) ودلت النصوص الصحية على حياة الانبياء عليهم السلام (فتح الملهم باب الاسراء، ج ۱ صـ۳۲۵).

قال علمائنا: والدليل على عدم شرعية الصلوة على القبر ترک الناس عن اخرهم الصلوة على قبر النبي ﷺ وهو حيٌّ في قبره الشريف ولحوم الانبياء حرام على الارض (فتح الملهم ج ۲ صـ ٤۹۸ )

**(١٤) حضرت مولنا منظور احمد نعماني** رحمه الله: دا خبره د ټولو په نيز منلې شوی او په دلائلو باندې ثابته ده چې ټول پيغمبران عليهم السلام خصوصاً نبی ﷺ په خپلو قبرونو کې ژوندي دي (معارف الحديث ج ۵ صـ ۲۸۰).

**(١٥) مولنا زکريا** رحمه الله: پيغمبران پخپلو قبرونو کې ژوندي دي. (خصائص نبوي شرح شمايل ترمذي صـ ۲۵۲ باب ما جاء في ميراث رسول الله ﷺ ) فضايل صدقات، فضائل حج صـ ۹۰۴)

پيغمبران پخپلو قبرونو کې ژوندي دي مونږ په دې باندې ايمان لرو او ددې تصديق کوو چې نبي ﷺ ژوندی دی او دنبي ﷺ بدن مبارک نه خاورې کيږي، په دې باندې اجماع ده (فضايل درود شريف صـ ۲۵ )

قال المحققون المتكلمون ان نبينا حيٌّ بعد وفاته واذا ثبت انه حيٌّ بعد وفاته فالمجيئ اليه بعد وفاته كالمجيئ اليه قبله . (اوجز المسالک، باب ماجاء في الساعة التي في يوم الجمعة ج ۲ ص۳۳۸/۳۳۹) قلت او لانهم احياء في قبورهم . (اوجز المسالک، باب ماجاء في تركة النبي ﷺ ج ۱۵ ص۳۶۹ )

**(١٦) مفتي اعظم د دارالعلوم ديوبند مفتي عزيز الرحمن** رحمه الله.

دپيغمبرانو ژوند ډېر قوي دی او دپيغمبرانو او دشهيدانو د ژوند په باره کې ډېر نصوص راغلي دي په حديث شريف کې راځي چې ان الله حرم على الارض ان تأكل اجساد الانبياء (فتاوی دارالعلوم ديوبند مکمل ومدلل ج ۵ صـ۳۱۹ )

**(١٧) فخر الاسلام مولنا فخر احمد** رحمه الله : په صحيح بخاري کې حديث دی په نوم دباب رفع الصوت باندې، ددې باب لاندې يو روايت دی چې دوه مسافرينو په مسجد نبوي کې په اوچت اواز

باندې خبرې کولې حضرت عمر رضي الله عنه را وغوښتل او ورته وې فرمايل چې که تاسو مسافر نه وی نو دردولي به مې وی، تاسو د رسول الله ﷺ په مسجد کې اواز او چتوئ.

لوكنتما من اهل البلد لأوجعتكما ترفعان اصواتكما في مسجد رسول الله ﷺ ،نو ددې حديث په تشريح کې فرمايي چې د حضرت عمر دا قول د مسجد دا حترام سره سره د الله تعالى ددې قول څخه مأخوذ دی چې (لا ترفعوا اصواتكم فوق صوة النبي)

د قرآن دا حکم د نبي ﷺ په ژوند کې هم وو او د وفات څخه وروسته هم دی، ځکه چې نبي ﷺ په قبر کې ژوندی دی د حضرت عمر رضي الله عنه رايه خو ددې باب د روایاتو څخه معلومه شوه چې د وفات څخه وروسته يې هم خلک د اوچت اواز څخه منع کول، د حضرت ابو بکر رضي الله عنه په باره کې هم راغلي دي چې ده به په مسجد کې د اوچت اواز څخه خلک منع کول او فرمايل به يې چې په دې باندې نبي ﷺ تكليف رسيږي، حضرت علي رضي الله عنه يو ځلې د دروازې د جوړولو لپاره يو نجار راوستلو او ورته وېفرمايل چې د مسجد څخه لرې کښه او دروازه جوړه کړه هسې نه چې نبي ﷺ په تکليف شي، کله به چې د مسجد په خوا او شا کورنو کې چاميخ ټکوهلو نو حضرت عائشې رضي الله عنها به ورپسې څوک ورلېږل چې نبي ﷺ ته تکليف مه رسوئ د صحابه کرامو دا ټول اقوال او افعال تقي الدين السبكي رحمه الله په شفاء السقام کې راجمع کړي دي، په حياة الانبياء باندې به تفصيلي بحث په بل ځای کې وکړو ان شاء الله .(ايضاح البخاري ج ۳ ص ۲٦۹)

**(۱۸) مولنا عاشق الهي ميرتهي رحمه الله:** په مهند باندې تصديق کړی دی او ليکلي يې دي چې: (وهو الصدق والصواب والحق عندي بلا ارتياب) المهند ص ۸٦)

**(۱۹) د دارالعلوم ديوبند ځلوېښت کلن مهتمم قاري محمد طيب رحمه الله .**

په برزخ کې د پيغمبرانو د ژوند مسئله مشهوره ده او د جمهورو علماوو اجماعي عقيده ده، د اهل سنت والجماعة د عقيدې مطابق د ديوبند اکابرين د پیغمبرانو د ژوند په داسې طريقه باندې قائل دي چې: ټول پیغمبران د خپل وفات څخه وروسته پخپلو قبرونو کې ژوندي دي او ددوی د روحونو او د جسدونو په مابين کې داسې تعلق دی لکه څرنګه چې په دنيا کې وو دوی عليهم السلام په قبرونو کې په عبادت باندې مشغول دي مونځونه کوي او سلام اوري په قبرونو کې ورته رزق ورکول کيږي او د

زائرينو صلوة او سلام اوري (خطبات حكيم الاسلام ج ٧ صـ١٨١ و ج ٧ صـ ١٨٧، ج ٨ صـ ٢١٩، ماهنامه تعليم القرآن اګست ١٩٦٢ صـ ٢٧.صـ٢٨ رحمت كائنات صـ ٣٢ )

**(٢٠) فخر المحدثين حضرت مولنا ظفراحمد العثماني** رحمه الله : لاشک في حياته بعد وفاته وكذا ساير الانبياء احياء في قبورهم، حياتهم اكمل من حيات الشهداء (اعلاء السنن ج ١٠ صـ ٥٠٥ )

همدارنګه فرمايي چې ټول پيغمبران په قبرونو کې ژوندي دي او بدنو نه يې محفوظ دي، صرف په احكامو شرعيه وو باندې مكلف نه دي، لكن مونځونه كوي او د زائرينو درود او سلام بلا واسطه اوري او همدا د جمهورو محدثينو او متكلمينو مسلک دی، څوک چې دد ې مسلک څخه مخالف وي د هغه د ديوبند د مسلک سره هيڅ تعلق نشته (تسكين الصدور صـ٣٧ *قبر کے زندگی* صـ ٤٩٥ مقام حيات صـ ٢٧٢ )

**(٢١) رئيس المفسرين مولنا ادريس كاندهلوي** رحمه الله: دا د ټولو اهل سنت والجماعة اجماعي عقيده ده چې د وفات څخه وروسته پيغمبران پخپلو قبرونو کې ژوندي دي . (سيرة المصطفى ج ٣ صـ١٦٢) نبي ﷺ او تمام پيغمبران پخپلو قبرونو کې ژندي دي . (سيرة المطفى ج ٣ صـ١٦٩ )

**(٢٢) دديوبند مفتي اعظم مولنا مفتي مهدي حسن** رحمه الله : رسول الله ﷺ په خپل قبر کې جسما ژوندی دی ، د زائرينو درود او سلام بلا واسطه اوري، څوک چې دد ې څخه مخالف وي هغه بدعتي دی ،مونځ وروسته مكروه تحريمي دی، په دې کې ډېر احاديث راغلي دي، څوک چې ور څخه منكر وي هغه د اهل سنت والجماعة څخه خارج دې .(خيرالفتاوی ج ١ صـ ١٢٤ تسكين الصدور صـ٥٠ )

**(٢٣) فقيه الامة مولنا مفتي محمود حسن گنگوهي** رحمه الله : د رسول الله ﷺ د ژوند مستقل بحث دی د علماو و تحقيق دا دی چې نبي ﷺ په خپل قبر کې ژوندی دی .(فتاوی محموديه مايتعلق بحيات الانبياء ج ١ صـ٥٣٢.٥٣٣ )

**(٢٤) امام الاولياء حضرت مولنا احمدعلي لاهوري** رحمه الله:

مولوي غلام الله خان د پنډی څو ځو ځلې مولنا احمد لاهوري ته د تقرير لپاره دعوت ورکړو، مولنا احمدعلي لاهوري به ورته فرمايل چې تا په حياة الانبياء کې د ديوبند د اکابرو مسلک پر بنی دی، لهذا که زه

درشمنو دحياة الانبياء مسئله به بيانوم او په دې مسئله باندې هغه څوک پوهيږي چې عقيدت او بصيرت ولري او ته عقيدت نه لري او بصيرت درته حاصل نه دى (حياة الانبياء از مولنا عبد الشكور ترمذي ص ۲۰)

**(۲۵) مفتي اعظم مولنا محمد شفيع** رحمه الله: په ډېرو ځايونو کې يې دحياة الانبياء اثباة ذکر کړی دی مثلاً د لاندې اياتونو په تشريح کې معارف القران وګورئ (۱) **وَمَا كَانَ لَكُمْ أَنْ تُؤْذُوا رَسُولَ اللَّهِ**... (۲) **يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا**... (۳) **وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ**...).

**(۲۶) مولنا عبد الله بهلوي** رحمه الله: ددیوبند د اکابرو او زمونږ د نقشبندي، قادري، چشتي، او سهروردي، دمشائخو دا عقيده ده چې رسول الله ﷺ ددنيوي وفات څخه وروسته په قبر کې په جسماني ژوند باندې ژوندی دی (القول النقي ص ۲۹)

**(۲۷) مفكر اسلام مولنا مفتي محمود** رحمه الله: ټول پيغمبران عليهم السلام په خپلو قبرونو کې ژوندي دي (فتاوی مفتي محمود ج ۱ ص ۳۵۰ تسکين الصدور ص ۳۶)

**(۲۸) حضرت مولنا غلام غوث هزاروي** رحمه الله: پيغمبران پخپلو قبرونو کې ژوندي دي او لمونځونه کوي، د زائرينو درود او سلام اوري او جواب يې ورکوي. (تسکين الصدور ص ۲۰۷)

**(۲۹) حضرت مولنا شمس الحق الافغاني** رحمه الله: ستاسو کتاب تسکين الصدور مې مطالعه کړو دعذاب قبر، دحياة الانبياء، سماع الانبياء، او توسل بالمقبولين ابحاث مې د نظر څخه تيرشول احقر ددې سره متفق دی (تسکين الصدور ص ۲۲)

**(۳۰)حضرت مولنا محمد يوسف بنوري** رحمه الله: د انبياوو د ژوند مسئله صفا او اتفاقي ده، دشهيدانو ژوند د قران په عبارة النص باندې ثابت دی او دانبياوو ژوند دقران په دلالة النص او په احاديثو کې په عبارة النص باندې ثابت دی. (تسکين الصدور ص ۲۲)

**(۳۱) مولنا مفتي جميل احمد تهانوي** رحمه الله.

نهه يا لس کاله کيږي چې بعضې هغه علماء چې مونږ ته ځان منسوبوي دحياة الانبياء څخه منکر دي. زړه مې غوښتل چې څوک ددې مسئلې پوره تحقيق کړی وی، الله تعالی زما دا تمنا پوره کړه، مولنا سرفراز خان صفدر رحمه الله په پوره کوشش سره دا مسئله وليکله (تسکين الصدور ص ۲۷)

**(۳۲) مولنا عبد الحق** رحمه الله **: او د دارالعلوم حقانيه فتوی** : د رسول الله ﷺ او د نورو ټولو انبياوو په باره کې د ټولو اهل سنتو او ددیوبند د اکابرو دا مسلک دی چې د وفات موعود څخه وروسته ټول پيغمبران په خپلو قبرونو کې ژوندي دي ، او نبي ﷺ د زائرينو درود او سلام اوري او جواب يې ورکوي . (فتاوی حقانيه ج ۱ ص ۱۵۸)

**(۳۳) مولنا عبد الله درخواستي** رحمه الله: په تسکين الصدور باندې تقريظ کړی دی او ليکلي يې دي چې دا کتاب په خپله موضوع کې د اهل سنت والجماعة دعقيدې په بيان کې کافي او شافي دی (حافظ الحديث ص ۱۲۲ ، تسکين الصدور ص ۲۷ )

**(۳٤) خواجه خان محمد** رحمه الله : د رسول الله ﷺ څخه تر ننه پورې دا اجماعي عقيده ده چې پيغمبران په خپلو قبرونو کې په داسې ژوند باندې ژوندي دي چې ددنيا د ژوند سره مماثل دی د زائرينو صلوة او سلام اوري او جواب ورکوي . (مجله (صفدر) گجرات شيخ المشائخ ص ٦٨٦ )

**(۳۵) مولنا نصيرالدين غورغشتوي** رحمه الله . من صلى عليّ عند قبري سمعته سمعا حقيقيا بلا واسطة. (حاشيه مشكوة، بين السطور، ج۱ ص ۹۳ )

**(۳٦) فقيه العصر مفتي رشيد احمد اللدهيانوي** رحمه الله: احتج القائلون بانها مندوبة بقوله تعالى (ولو انهم اذ ظلموا انفسهم ) وجه الاستدلال بها انه حيٌّ في قبره بعد موته كما في حديث «الانبياء احياء في قبروهم» (احسن الفتاوى ج ٤ ص ٥٦١ )

**(۳۷) شهيد اسلام حضرت مولنا محمد يوسف لدهيانوي** رحمه الله: زما او زما د اکابرو دا عقيده ده چې نبي ﷺ په روضه مبارکه کې په جسماني حيات باندې ژوندی دی او د ابرزخي ژوند دی نبي ﷺ د زائرينو دورد او سلام اوري (اپ کی مسائل اور ان کا حل ج ۱ ص ۲۹۹ )

**(۳۸) وکيل اهل سنت قاضي مظهر حسين** رحمه الله: دا د اهل سنت والجماعة اجماعي عقيده ده چې د وفات څخه وروسته هغه جسم ته الله تعالى حياة ورکړی دی کوم جسم چې په دې دنيا کې وؤ (يا دگار خطبات ص ۱۰۱).

**(۳۹) پاسبان مسلک دیوبند حضرت مولنا محمد علي جالندهري رحمه الله**: رسول الله ﷺ ته چې کوم حیاة حاصل دی هغه د روح او د دنیوي جسد په مابین کې د تعلق په وجه دی له دې وجې د زائرینو درود او سلام بلا واسطه اوري. (سوانح وافکار مولانا محمد علي جالندهري ص۳۲۴)

**(٤٠) استاذ العلماء مولنا خیرمحمد جالندهري رحمه الله**: په عالم البرزخ کې ټولو پیغمبرانو علیهم السلام ته الله تعالی حیاة حقیقیه دنیویه بجسدهم العنصریه ورکوي دا د ټولو اهل سنتو اجماعي عقیده ده (القول النقي فی حیاة النبي ﷺ ص۳۰)

**(٤١) حضرت مولنا مفتي احمد سعید رحمه الله: مفتی جامعه عربیه سراج العلوم سرگودها.**

د حیاة الانبیاء په مسئله باندې د ټولو اهل سنتو، ټولو محدثینو، د څلورو وارو امامانو بلکه د اهل ظواهرو هم اتفاق دی. (حیاة النبی اور مذاهب اربعه ص۔ ۴)

**(٤٢) سید العلماء حضرت مولنا عبد الخالق رحمه الله**: د پیغمبرانو ژوند د متواترو احادیثو څخه ثابت دی او دا هم اجماعي مسئله ده. (تسکین الصدور ص۲۹)

**(٤٣) استاذ الحدیث حضرت مولنا سید بدر عالم مهاجر مدني رحمه الله**: مونږ ته د رسول الله ﷺ د ژوند قطعي علم حاصل دی او په دې مسئله کې احادیث د تواتر مرتبې ته رسیدلي دي. (ترجمان السنة ج ۳ ص۳۰۲ رقم ۱۰۷۳)

**(٤٤) حضرت مولنا سید نور الحسن شاه بخاري رحمه الله**: الحمد لله چې په قبر کې د پیغمبرانو د ژوند مسئله د امت په اجماع باندې ثابته ده او په دې مسئله کې د هیڅ قابل اعتبار عالم مخالفت نشته (حیاة الاموات ص۱۲٦)

**(٤٥) حضرت مولنا مفتي عبد الرحیم لاچپوري رحمه الله**: پیغمبران پخپلو قبرونو کې ژوندي دي او مونځونه کوي. (فتاوی رحیمیه کتاب العقائد ج۸ ص۳۲)

**(٤٦) مولنا محمد شریف کشمیري رحمه الله**: څوک چې د نبي ﷺ د روضې په خوا کې صلوة او سلام ووایي نبي ﷺ یې پخپله اوري ټول اهل سنت دې قائل دي او دا د ټولو دیو بندیانو عقیده ده څوک چې دې عقیدې ته شرک او بدعت وایي هغه اول نمبر جاهل او اول نمبر احمق او ملحد دی (خیر الفتاوی ج ۱ باب مایتعلق بالایمان والعقائد ص۱۲۸)

**(۴۷) مفتي عبد الشكور ترمذي** رحمه الله : په قبرونو کې د پيغمبرانو د ژوند عقيده اتفاقي دا
د اهل سنت والجماعة په اکابرو کې هيڅوک ددې څخه منکر نه دی. (حياة انبياء کرام ص ۱۱۱۳)

**(۴۸) حضرت مولنا صوفي عبدالحميد سواتي** رحمه الله : ان النبي ﷺ حي في قبره. دالله
پيغمبر په قبر کې ژوندی دی او دا صرف روحاني زندګي نه ده ځکه چې روح خو دابو جهل هم ژوندی دی
، بلکه د پيغمبر ژوند کامل ژوند دی (معارف القران فی دروس القرآن ج ۱۵ ص ۴۳۱)

**(۴۹) حضرت مولنا سليم الله خان دامت بركاتهم العاليه**: پيغمبران عليهم السلام په خپلو
قبرونو کې په اجسادو عنصريه وو سره ژوندي دي دا عقيده يوازې دديوبند د اکابرو نه ده بلکه د ټولې
امت ده (کشف الباري کتاب المغازي ص ۱۲۵)

**(۵۰) شيخ الاسلام مفتي محمد تقي عثماني دامت بركاتهم العاليه**: ان الاصل في هذه
المسئلة قول الله تعالى (ولاتقولولمن يقتل) الايه ولما ثبت الحياة للشهداء ثبت للانبياء بدلالة النص
لان مرتبة الانبياء اعلى من مرتبة الشهداء بلاريب ...... وهو من عقائد جمهور اهل السنة ر..
المقصود حياتهم بمعنى ان لارواحهم تعلقاً باجسادهم الشريفة المدفونة في قبورهم ولهذا التعلق
القوي حدثت لاجسادهم خصايص كثيرة من خصايص الاجساد مثل سماع السلام ورده (تكملة
فتح الملهم ج ٥ صـ ٣٠ ، فتاواى عثماني ج ١ صـ ٧٠).

**(۵۱) نجديان**: د محمد بن عبد الوهاب ځوی عبد الرحمن ليکي چې: ونعتقد أن النبي
صلى الله عليه وسلم يسمع سلام من يسلم عند قبره، وزيارة قبره الشريف مسنون وانه يسمع سلام المسلم
وتسن زيارته (الهدية السنية والتحفة النجديه، صـ ٤٤ صـ ٤٦)

## دمماتيانو يو څو وسوسې

**اوله وسوسه: مړي ته د روح د اعادې عقيده ددې ايت خـه مخالفه ده چې:** اللَّهُ يَتَوَفَّى الْأَنفُسَ حِينَ مَوْتِهَا وَالَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا ۖ فَيُمْسِكُ الَّتِي قَضَىٰ عَلَيْهَا الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الْأُخْرَىٰ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى ۚ
نو کله اعاده د روح جسد ته وشي نو دا به اعاده د روح شي دنيا ته او ددې نص څخه به مخالفت راشي

**اول جواب:** لکه د قبض او دامساک د روح ذکر چې په دې ايت کې راغلو نو داعادې د روح ذکر
په بل ايت کې راغلی دی الله فرمايي: (يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَ

الْآخِرَةِ) نو په يمسک کې د امساک څخه مراد، (امساک الميت عن العود الى عالم الدنيا) مراد دی د نفس اعادې د روح نفې نده.

ددې ايت په تشريح کې علامه سيوطي رحمه الله دا حديث رانقلوي چې: (عن عائشة رضي الله عنها قلت يارسول الله ﷺ تبتلى هذه الامة في قبورها فكيف بي وانا امرأة ضعيفة قال يثبت الله الذين امنو الايه (الدرالمنثور ج ۸ صـ ۵۲۵)

عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ قَبْضَ رُوحِ الْمُؤْمِنِ وَقَالَ: "فَتُعَادُ رُوحُهُ فِي جَسَدِهِ وَيَأْتِيهِ مَلَكَانِ (قرطبی ج۸ صـ۲۵۳ بغوی ج۳ صـ۳۵ بیضاوی ج۱ صـ۵۱۸) درمنثور ج۴ صـ۱۳۸ وغیرہ).

همدارنګه الله تعالى فرمايي چې: كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا.

ددې په تفسير کې مفسرين فرمايي چې: (ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ) اى فى القبر ثم يميتكم (درمنثور ج ۱ صـ ۲۲۹) تفسير ابن کثير ج ۱ صـ ۲۱۲ فتح القدير للشوکاني ج ۱ صـ ۹۴)

امام اعظم رحمه الله فرمايي چې: (اعادة الروح الى جسد العبد في قبره حق. (القول الفصل شرح الفقه الاکبر صـ ۳۷۹) همدارنګه په متواترو احاديثو کې د اعادې د روح ذکر راغلی دی.

**دوهم جواب:** د دې ايت دوه معنى ګاڼې دي: يوه د انکار د احاديثو لپاره اشاعت په جامه کې د منکرينو د احاديثو اختراعي معنى ده او بله داحاديثو او د اهل سنت والجماعت دعقيدې مطابق صحيح معنى ده، د اشاعت په جامه کې منکرين داحاديثو د (يمسک) څخه امساک الروح عن الجسد الى يوم القيمة مراد وي، يعنې د مرګ څخه وروسته تر قيامته پورې الله تعالى روح جسد ته نه راليږي او امساک الروح عن الجسد د اعادې د روح الى الجسد او د تعلق الروح بالجسد سره منافي دی، لهذا دوي وايي چې داعادې د روح احاديث منکرت دي (معاذ الله) او اهل السنت والجماعت فرمايي چې د اعادې د روح الى الجسد احاديث صحيح دي او د ايت سره يې هيڅ تعارض نشته، ځکه چې د ايت معنى امساک الروح عن الجسد ندی، بلکې د ايت معنى ده (امساک الانسان عن العود الى الدنيا) يعنې مکمل انسان (روح مع الجسد) په عالم البرزخ کې حصارول او بيا عالم الدنيا ته نه راليږل، د ټول ايت معنى داسې ده چې: الله تعالى د مرګ په وخت کې نفسونه قبضوي او د خوب په وخت کې هغه نفسونه هم قبضوي د کومو چې مرګ نه دی راغلی، بيا هغه نفسونه حصاروي په کومو چې د مرګ حکم شوی دی، او پاتې نفسونه تريو معين وخت پورې خوشې کوي، پدې کې هغو خلکو ته دلايل دي چې دفکر کولو عادت يې وي، خلاصه دا چې الله تعالى مکمل انسان (روح مع الجسد)

پخپله قبضه کې اخلي، بيا چې د چا د مرګ فيصله شوې وي هغه عالم الدنيا ته نه راليږي د عالم الدنيا څخه يې بندوي او په عالم البرزخ کې يې حصاروي، نو د يمسک څخه امساک الروح نه دی مراد ،بلکې امساک الانسان مراد دی. او يا امساک الروح عن تعلق التصرف ، مراد دی.

## د يمسک لپاره د مماتيانو په معنی اعتراضات

(۱) اول اعتراض: دا دی چې داشاعت په جامه کې منکرين داحاديثو چې وايي چې دا ايت دهغو احاديثو سره معارض دی په کومو کې چې اعاده د روح الی الجسد ذکر شوی ده ، نو بيا مونږ وايو چې بيا ولې دا ايت د اعادې د روح الی الجسم المثالي سره معارض نه دی ؟مماتيان خو ارسال حلولي د روح الی الجسم المثالي مني، تعجب دی چې د احاديثو د شمنۍ دومره رانده کړي دي چې ايت دهغې اعادې سره معارض ګڼۍ کومه چې په صحيحو متواترو احاديثو کې ذکر شوې ده، چې جسم عنصري ته اعاده ده او دهغې اختراعي ارسال حلولي سره يې معارض نه ګڼئ چې تاسو فرض کړې ده چې جسم مثالي ته ارسال حولي دی.

ستاسو دمفروض ارسال او په صحيحو احاديثو کې د يقيني اعادې څخه فرق دی چې امساک ديوې سره معارض او دبلې سره ندی معارض؟

(۲) دوهم اعتراض: که د (يمسک) څخه امساک الروح عن الجسد العنصري مراد شي، نو خپله د اشاعتي منکرينو د حديثو دعقيدې عمارت به راونړيږي، ځکه چې په (فَيُمْسِكُ الَّتِیْ قَضٰی عَلَيْهَا الْمَوْتَ) کې د «يمسک» او د «قضی» مفعول يو دی، په چا چې امساک واقع شوی دی په همغه فيصله د مرګ شوې ده، نو چې امساک د روح شوی دی، نو فيصله دمرګ به هم په روح شوې وي،يعنې روح به مړ شوی وي او چې روح مړ شو نو ستاسو روحاني زندګي ختمه شوه او چې روح مړ شو، نو ستاسو جسدمثالي هم مړ شو ، ځکه چې د مړو روح په وجه خو مړ جسد مثالي نه ژوندی کيږي او چې روح او جسد مثالي مو دواړه مړه شو نو برزخي زندګي مو هم ختمه شوه، داشاعتيانو معتزله وو د مذهب عمارت په روح چليږي او چې روح مړشو نو دمماتيانو د مذهب عمارت راونړيدلو.

(۳) دريم اعتراض: اشاعتي معتزله وايي چې دامساک الروح عن الجسد له وجې جسد ميت (مړ) دی، نو ددوي په نيز دميت مصداق يوائې جسد شو ، حالانکې يوائې جسد ميت ندی ،بلکې ميت مکمل انسان (روح مع الجسد) دی په (انک ميت) کې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د ذات يعنې روح مع الجسد مجموعې سره د مرګ وعده شوې ده ، د ابو بکر صديق رضی الله عنه په خطبه کې راځي چې (فان محمد قد مات) محمد د مکمل انسان يعنې روح مع الجسد نوم دی.

(۴) څلورم اعتراض: اشاعتي معتزله جسد ته مړ وايي او روح ته ژوندی وايي، نو نيم انسان مړ ګڼي او نيم ژوندی ګڼي.

(۵) اعتراض: اشاعتي معتزله جسد په دنيا کې ګڼي او روح په برزخ کې ګڼي او بيا وايي چې اعاده د روح جسد ته اعاده الی الدنيا ده، حالانکې مکمل انسان يعنې جسد مع الروح دواړه عالم البرزخ ته تللي دي او د همدې مکمل انسان (روح مع الجسد) امساک د عالم الدنيا څخه په عالم البرزخ کې شوی دی.

فائده: که د يمسک څخه امساک الروح عن الجسد مراد شي، نو بيا مونږ وايو چې امساک الروح عن الجسد بالکليه ندی مراد، بلکې خاص امساک مراد دی چې هغه امساک عن تعلق التصرف والتدبير الدونيوي دی ،علامه الوسي فرمايي چې: يقبضها عن الأبدان، بأن يقطع تعلقها، تعلق التصرف (روح المعانى تحت هذه الآية) يعنې داسې اعاده او ارسالېږي نه کيږي چې دهغې په وجه د دونيا والا مخکني حالت ته راشي.

داسې تعبير هم کولی شي چې د امساک الروح څخه مراد د اعادې کاملې نفې ده چې دهغې په وجه حيات کامله حاصليږي او انسان دونيوي حالت ته راګرځي.

**فانقيل: چې جسد خو همدلته په دنيا کې دی، څرنګه عالم البرزخ ته لاړو؟.**

قلنا: مخکې ذکر شو چې برزخ ظرف زمان دی او د زمان تبديل د مکان تر تبديل پورې نه دی موقوف، مثلاً، زيد مازديګر په مسجد کې ناست دی تر ماښام پورې، نو د زيد مکان نه دی بدل شوی خو بيا هم مونږ وايو چې زيد په ماښام کې داخل شو، همدارنګه جسد چې په هر ځای کې وي په عالم البرزخ کې داخل شو.

**دوهمه وسوسه: په ايت کريمه کې دمړي لپاره ددوو ژوندونونو ذکر راغلی دی، يو په دنيا کې او دوهم په اخرت کې، که په قبر کې هم ژوند راشي نو بيا خو ژوندونونه دوه نه شول بلکه درې شول حالانکه الله تعالی فرمايي چې** (قَالُوا رَبَّنَا أَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَأَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ) (ثُمَّ إِنَّكُمْ بَعْدَ ذَٰلِكَ لَمَيِّتُونَ ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تُبْعَثُونَ)

**جواب:** د قبر ژوند د اخرت د ژوند لپاره مقدمه ده مستقل ژوند نه دی، لکه د مور د ګېډې ژوند چې د دنيا د ژوند لپاره مقدمه ده مستقل ژوند نه دی. همدارنګه په دې ايت کې د هغو حياتينو بيان دی چې مطلق او کامل وي او د قبر ژوند (نوعٌ من الحيات) دی په حيات کامله او مطلقه کې د روح تعلق د بدن

سره تعلق التدبير و التصرف وي، چې په دې کې محسوس خوراک، لباس وغيره ته ضرورت راځي او داسې حيات يو په دنيا کې دی او بل په اخرت کې او په قبر کې چې کوم نوع من الحيات دی نو هلته د روح تعلق د بدن سره تعلق التدبير و التصرف نه وي.

**الزامي جواب:** که د جسم عنصري سره د روح د تعلق په وجه د دې مذکور ايت سره مخالفت راغلی وي نو بيا په جسم مثالي کې د روح د حلول او د دخول په وجه څرنګه مخالفت نه راځي؟

همدارنګه تاسو يو دريم حيات منئ چې حيات روحاني ورته وايي نو د دې سره څرنګه مخالفت نه راځي؟

**دريمه وسوسه: د يو حديث څخه معلوميږي چې اعادة الروح به دقيامت په ورځ کيږي**

**کعب بن مالک ﵁ فرمايي چې:** أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «إِنَّمَا نَسَمَةُ الْمُؤْمِنِ طَيْرٌ يَعْلَقُ فِي شَجَرِ الْجَنَّةِ، حَتَّى يَرْجِعَهُ اللَّهُ إِلَى جَسَدِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». (موطاء امام مالك باب جامع الجنائز ص۲۲۱)

**الجواب:** قال العلامه المحدث علي القاري حتى يرجعه الله في جسده اى يرد اليه رداً كاملا في بدنه يوم يبعثه (مرقات، باب ما يقال عند من حضرة الموت)

**څلورمه وسوسه: په قبر کې دنبي ﷺ او دشهيد او دعام مؤمن د ژوند څه فرق دی؟**

**جواب:** د ژوند دوه علامې دي اول نقل او حرکت، او دوهم خوراک، په قبر کې د پيغمبر نقل او حرکت عبادتي دی، نبي ﷺ فرمايي چې: الانبياء احياء في قبورهم يصلون

او خوراک ورته په قبر کې ميلاويږي نبي ﷺ فرمايي چې (نبي الله حيٌّ يرزق) او دشهيد نقل او حرکت مادي دی، جنت ته د مرغۍ په شان په جهاز کې ځي او هملته په جنت کې خوراک کوي او دعام مؤمن نقل او حرکت خيالي دی او خوراک يې هم خيالي دی دجنت طرفته به يوه کړکۍ ورته خلاصه شي په جنت کې به خپل داوسېدو ځای ګوري او په خيال کې به يې راځي چې هغه زما د ورتلو ځای دی او هغه زما خوراک ونه دي.

**جواب۲:** دنبي ﷺ بدن په قبر کې محفوظ دی او بيبيانې يې کونډې نه دي، دشهيد بدن هم محفوظ وي لکن بيبيانې يې په دنيا کې کونډې کيږي او دعامو مؤمنانو بدنونه غالبا محفوظ نه وي بلکه د بدن دخاورو د ذرو سره يې د روح تعلق وي.

**۳جواب:** عام مؤمن په کمزوري ژوند باندې ژوندی دی، دده په نسبت د شهيد ژوند قوي دی او د شهيد په نسبت د انبياوو ژوند قوي دی، لکه په دنيا کې چې د مخ د ژوند، د سر د پوستکي د ژوند او د پوندو د ژوند په مينځ کې فرق دی.

**٤جواب:** عام انسان په قبر کې ژوندی دی خو داسې ژوندی دی لکه او ده چې څرنګه ژوندی وي، ملائکه به ورته ووايي چې (نم کنومة العروس) او نبي ﷺ داسې ژوندی دی لکه ويښ چې څرنګه ژوندی وي.

**۵- جواب:** ابو جهل او ابو لهب هم ژوندي دي خو د جهنم په کنده کې.

**پنځمه وسوسه: چې په قبر کې ژوند حاصل شو نو دا څرنګه ژوند دی چې تنفس پکې نشته؟**

**جواب:** هر انسان د مور په ګېډه کې ژوندی دی نو دا څرنګه ژوند دی چې تنفس په کې نشته.

**شپږمه وسوسه: چې پېغمبر په قبر کې ژوندی دی او مونځ کوي نو اودس چېرته کوي؟**

**جواب:** کله چې نبي ﷺ وفات شو نو د ښځو لو ځخه مخکې ورته غسل ورکړل شو د همغه وخت ځخه يې اودس شته تاسو وايې چې اودس يې کله مات شو؟

**اومه وسوسه: چې نبي ﷺ او شهيد ته په قبر کې رزق ورکول کيږي نو قضائې حاجت چېرته کوي؟**

**جواب:** هلته څوک قضائي حاجت ته ضرورت نه لري، زه الزاماً مماتيانو ته وايم چې بالفرض والتقدير که تاسو جنت ته لاړشئ نو قضائي حاجت به چېرته کوئ؟ ايا د قضائي حاجت لپاره به جهنم ته ځئ؟

**اتمه وسوسه: چې پېغمبر ﷺ په قبر کې ژوندی دی نو بيا صحابه کرام داختلاف په وخت کې ولې دنبي ﷺ قبر ته نه ورتلل او ولې يې دنبي ﷺ څخه پوښتنې نه کولې؟**

**جواب:** د وفات څخه وروسته چې صحابه د نبي ﷺ قبر ته د پوښتنې لپاره نه ورتلل نو دا د دې وجې څخه نه وو چې نبي ﷺ (معاذ الله) په قبر کې مړ دی، بلکه د صحابه وو په دې ايت باندې ايمان وو چې (ولکن لاتشعرون) نو صحابه په دې باندې پوهيدل چې که د نبي ﷺ قبر ته ورشو او پوښتنه ترېنه وکړو او نبي ﷺ جواب راکړي نو بيا هم مونږ په دې فاني شعور باندې پرې نه پوهيږو.

الزاماً مونږ مماتيانو ته وايو چې ستاسو څخه چې کوم شی ورک شي نو تاسې ولې په لوډسپيکرو کې اعلانونه ورپسې کوئ؟ د کرام الکاتبين څخه ولې پوښتنه نه کوئ؟

فانقيل: چې تاسو خو وايئ چې کله چې ابوبکر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفات شو او د روضې مبارکې په خواکې کيښودل شو، او صحابه وو اجازت وغوښتلو، نو دنبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې څخه اواز راغلو چې: ادخلوا الحبيب الى الحبيب(تفسير کبير، سورة کهف، ايت نمبر ١١) نو دلته خو تاسو د جواب د اوريدلو قايل شوئ؟

قلنا: دا سماع کرامهٔ وه، لکه حضرت ساريه چې د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خبره د ډير لرې څخه کرامهٔ واوريدله.

### نهمه وسوسه: بعضې صوفيا کرام خو جسم مثالي مني ؟

**جواب۱-:** په دې باره کې علامه شبير احمد عثماني رَحِمَهُ اللَّهُ په تفسير عثماني کې چې په تفسير کابلي باندې مشهور دی د (يسئلونک عن الروح) لاندې ډېر بحث کړی دی.

خلاصه يې داده چې په قرآن او په حديث کې نه د جسم مثالي اثبات شته او نه نفي، البته صوفياء کرامو دا په کشف کې ليدلی دی، دا جسم مثالي د روح لپاره يوه لفافه ده او د دې شکل او صورت بالکل د اصلي جسم په شان دی، روح په دې لفافه کې سير او حرکت کوي، همدا جسم مثالي دی او دا لفافه يوائې د روح لپاره د وفات څخه وروسته نه وي بلکه په دنيا کې هم د خوب په حالت کې وي، کله چې سړی اوده شي نو روح يې په دې لفافه کې سير کوي، لکن لکه څرنګه يې چې د خوب په حالت کې د دې جسد عنصري سره تعلق نه کټ کيږي نو همدارنګه يې د وفات څخه وروسته هم د دې جسد عنصري سره تعلق نه کټ کيږي، همدارنګه صوفياء کرامو چې په خپلو کشفونو کې د جسم مثالي لپاره ثواب او عذاب ليدلی دی نو هلته يې هم معنی دا نه ده چې صرف په همدې لفافه کې روح ته ثواب او عذاب وي او د جسد عنصري سره يې هيڅ تعلق نشته، بلکه معنی يې دا ده چې په ثواب او په عذاب کې روح اصل او جسد عنصري يې تابع دی، نو د دوي اوليت مراد دی. خلاصه دا چې: جسم مثالي د روح دوهم نوم دی.

**۲-جواب:** علماء فرمايي چې جسد مثالي د نوې مادې څخه بل کوم نوې جوړ شوی مخلوق نه دی بلکې جسد مثالي همدا جسد عنصري دی کوم چې په قبر کې پروت دی، لکن کله چې د روح سره په عمل

کې مصروف دی، نو په دې اعتبار ورته جسم مثالي وايي، علماء فرمايي چې جسد مثالي عين جسد عنصري دونيوي دی صرف اعتباري فرق پکې دی او هغه دا چې همدغه دونيوي جسد دقبر په اعتبار سره عنصري دی او د جنت په اعتبار سره مثالي دی، لکه په عالم النوم کې جسد په کټ کې پروت وي او بل طرف ته د روح سره په سير او په حرکت مصروف وي، نو بعضې علماء د کټ په اعتبار ورته عنصري وايي او د روح سره د سير او د حرکت په اعتبار ورته مثالي او خيالي وايي او پدې کې شک نشته چې د روح سره همدا عنصري جسد په سير او په حرکت کې مصروف دی، او همدا عنصري جسد متأثره کيږی، نو نومونه يې بدل دي يو عنصري او بل مثالي او ذات يو دی، همدارنګه د معراج په شپه ټولو پيغمبرانو د رسول الله ﷺ په اقتداء کې لمونځ وکړو، نو هغه مونځ دهمدې اجسادو عنصريه وو سره وو، نو يو طرفته اجساد عنصريه په قبرونو کې پراته وو او بل طرفته د ارواحو سره يو ځای بيت المقدس ته راغلي وو او دنبي کريم ﷺ پسې يې مونځ کولو، نو بعضي علماوو دنبي کريم ﷺ پسې دمونځ کونکو اجسادو عنصريه وو ځخه په اجسادو مثاليه وو باندې تعبير کړی دی، حالانکې دا بعينه همغه دقبر والا اجساد عنصريه وو صرف نوم يې ورته بدل کړو، خلاصه دا چې جسد مثالي بعينه همدا جسد عنصري دی، لکن کله چې د روح سره په عمل کې مصروف دی، نو پدې اعتبار ورته مثالي وويلی شو.

**لسمه وسوسه: الله تعالی فرمايي چې: (اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى) نو نبي کريم ﷺ يې څرنګه اوري؟**

قلنا: دا ايت دعامو مړو په باره کې دی، دانبياوو او دخصوصا د نبي کريم ﷺ په باره کې نه دی او دعامو مړو په باره کې هم پکې نفې د اسماع راغلې ده نفې د سماع نه ده، نور تحقيق به يې دسماع الموتی لاندې راشي.

**يوولسمه وسوسه: نبي ﷺ تقريبا دري شپېته کاله ژوندی وو، نو که په قبر کې هم ژوندی ومنلی شي نو بيا خو دنبي ﷺ عمر دري شپېته کاله نه شو بلکه په سلګونو شو.**

**جواب:** لکه څرنګه چې د مور د ګېډې د ژوند ځخه څوک د عالم الدنيا په عمر کې نه حسابوي بلکه ولادت د ورځې ځخه د خپل عمر تاريخ ليکي، نو همدارنګه دقبر ژوند هم په عرف کې څوک په عمر کې نه حسابوي.

**دولسمه وسوسه: کله چې د روح دجسم سره تعلق دی ، نو بیا ورته میت او مړی څرنګه وایي؟ ولې یې ښخوئ؟ ایا په قبر کې مو ژوندې ښخ کړی دی ؟**

**جواب:** یو عالم الدنیا دی ، بل عالم البرزخ دی ، او بل عالم الأخرة دی، په دنیا کې د روح او دجسم تعلق التدبیر والتصرف وو او په عالم البرزخ کې د روح او دجسم نوع من التعلق دی ، نو مونږ ورته دعالم الدنیا په اعتبار میت وایو او دعالم البرزخ په اعتبار ورته حيٌّ وایو ، او یا میت ورته پدې اعتبار سره ویل کیږي چې د روح دجسم سره تعلق دتدبیر او دتصرف ختم شو او حيٌّ ورته په دې اعتبار سره ویل کیږي چې د روح دجسم سره نوعٌ من التعلق دی.

**دریارلسمه وسوسه: الله تعالی فرمایي چې: (اموات غیر احیاء وما یشعرون أیان یبعثون) اموات جمع دمیت ده او میت دیته وایي چې روح پکې نه وي او د روح تعلق هم پکې نه وي، (عقیدة الأمت صـ ۱۴۳)**

**اول جواب:** دا ایت دبتانو په باره کې نازل شوی دی او بتان غیر ذی الروح دي.

**دوهم جواب:** که مطلق معبود مراد شي نو بیا ورته اموات دعالم الدنیا په اعتبار سره ویل شوي دي، دعالم البرزخ او دعالم القبر په اعتبار ورته نه دی ویل شوي.

**دریم جواب:** که دا ایت ټولو معبودانو ته عام شي ،نو بیا ایا مماتیان عیسی علیه السلام ته هم میت وایي او که نه؟ همدارنګه هغه معبودانو باطله وو ته چې لا تراوسه پورې مړه شوي نه دي هم میت وایي او که نه؟ که دوی دا مادې مستثنی کوي، نو مونږ هم دعالم القبر او دعالم البرزخ ژوند ترینه مستثنی کوو، که نه دهغو ټولو ایتونو او احادیثو تکذیب به راشي په کومو کې چې دعذاب القبر او دثواب القبر ذکر دی.

**څوارلسمه وسوسه: مماتیان خلکوته وایي چې زمونږ او أهل حیات والاوو ، اختلاف دنبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په حیات دونیوي کې دی، مونږ وایو چې دنبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حیاة برزخي دی او أهل حیاة وایي چې دنبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حیاة دونیوي دی .**

**جواب:** دوفات څخه وروسته یقینا چې دنبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حیاة برزخي دی ،ځکه چې دوفات څخه وروسته عالم البرزخ شروع کیږي،زمونږ او دمماتیانو اختلاف په دې کې دی چې په عالم البرزخ کې ژوند چاته حاصل دی ؟ یوازې روح ته ؟او که روح او جسد دواړو ته ؟ اهل سنت والجماعت وایي چې روح او جسد عنصري دونیوي دواړو ته حیات حاصل دی او چونکې جسد دونیوي ته حیات حاصل دی نو په دې اعتبار

ورته حيات دونيوي هم وايي او مماتيان وايي چې په برزخ کې يوازې روح ته حيات حاصل دی او يا روح او جسد مثالي ته حاصل دی او جسد عنصري دونيوي د حيات، فهم، شعور هر څه څخه محروم دی.

**پنځلسمه وسوسه: سليمان عليه السلام وفات شو او ترډيره وخته پورې چاته معلومات نه وو (إِلَّا دَابَّةُ الْأَرْضِ تَأْكُلُ مِنسَأَتَهُ) وروسته خلکو ته معلومه شوه چې دا مړ دی.**

**جواب:** مماتيان وايي چې په سليمان عليه السلام باندې اثار د حيات نه وو، لهذا حيات نه وو، مونږ وايو چې اثار د حيات چاته نه ښکاريدل او د عدم مشاهدة اثار الحيات څخه عدم حيات نه لازميږي، ځکه چې د عالم البرزخ حيات د غيبو څخه دی چې ايمان راوړل ورباندې ضروري دي.

**شپاړسمه وسوسه : مماتيان دعزير عليه السلام د واقعې څخه هم استدلال کوي چې که هغه ژوندی وای نو دسلو کالو په بارانونو بادونو وغير باندې ولې پوه نه شو؟**

قلنا:(۱) پدې واقعه کې دعزير عليه السلام نوم نشته، بلکې صرف داسې ذکر شوي دي چې: (أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ).

۲- بعضې مفسرين فرمايي چې: دا کافر وو او مماتي وو (دحيات بعد الممات څخه منکر وو) او بعضې فرمايي چې عام مسلمان وو لکن نبي نه وو او بعضې فرمايي چې د بني اسرائيلو عالم وو.

۳-که د دې واقعې والا عزير شي نو بيا دا ثابته نده چې عزير نبي وو، رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې لا أدري ، اعزير نبي هو أم لا، (سنن ابی داود ، کتاب السنة ، باب التخير بين الانبياء)

(۴) په دې واقعه کې په عالم البرزخ کې د عنصرې دونيوي جسد څخه د حيات نفې نه ده راغلې، د عدم تذکرة الحياة څخه عدم د حيات نه راځي، بلکې پدې واقعه کې د علم الغيب نفې ده، اصحاب کهف درې سوه او نهه کاله ژوندي وو، لکن بيا هم په هيڅ پوه نه شول، ځکه ټول حالات ترېنه هير وو، نو د عزير څخه دې هم هير شوي وي.

**اوولسمه وسوسه: مماتيان د دې ايت څخه استدلال کوي چې: (وَإِذَا النُّفُوسُ زُوِّجَتْ) ؟**

جواب: د دې ايت دوه معنی ګانې دي. اول: کله چې د عقيدې او د عمل مطابق خلک سره يو ځای شي، يعنې کافر د کافر سره يو ځای شي مسلمان د مسلمان سره يو ځای شي، دوهم: چې اعاده کامله وشي، يعنې روح په کامله طريقه باندې اجسادو ته رامعاد شي، چې هر سړي ته د بل سړي ژوند محسوس ښکاري او داسې اعاده په قيامت کې کيږي په عالم البرزخ کې نوعٌ من الحيات وي.

**أتلسمه وسوسه: مماتيان دا لاندې ايتونه تلاوت کوي او په قبر کې دنبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دموت لپاره ترينه استدلال کوي.** (كُلُّ نَفْسٍ ذَائِقَةُ الْمَوْتِ). (كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ). (أَيْنَ مَا

تَكُونُوا يُدْرِكْكُمُ الْمَوْتُ)، (إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُونَ)، (وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۚ أَفَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ ۚ) وغيره.

**جـواب:** ددې ايتونو معنى داده چې په هر انسان باندې مرګ راځي او پدې کې هيڅ اختلاف نشته اختلاف خو په حيات بعد الممات کې دی، هيڅ صحابي، تابعي، تبع تابعي او هيڅ مفسر د دې ايتونو څخه د حيات بعد الممات نفي نه ده کړې.

**دوهم جواب:** که پدې ايتونو کې د حيات بعد الممات نفي راشي نو بيا خو به د هر قسم حيات نفي وي برابره خبره ده چې روحاني وي او که جسماني بيا د جسم عنصري وي او که د جسم مثالي، حالانکې مماتيان حيات روحاني، مثالي طيوري مني (فما هوجوابکم فهو جوابنا)

**نولسمه وسوسه: د حيات الانبياء عقيده، د اسلام د بنيادي عقائدو څخه نده؟**

**جواب:۱-** حيات الانبياء د اسلام بنيادي عقيده ده په لا اله الا الله محمد رسول الله باندې عقيده د اسلام د بنيادي عقائدو څخه ده، او د محمد رسول الله معنى داده چې محمد صلى الله عليه وسلم د الله رسول دی او که حيات الانبياء ثابت نه شي، نو بيا به معنى داوي چې محمد د الله رسول وو، يعنې اوس ندي، ځکه چې محمد روح مع الجسد ته وايي او چې ژوندی نه وي نو رسول به هم نه وي، ځکه چې په رسول کې حس ادراک او شعور وي، بې حسه بې ادراکه بې شعوره رسول نه وي او حس، ادراک او شعور د ژوند د لوازمو څخه دی.

۲- حيات الانبياء هم حيات فى القبر دی او حيات فى القبر د ضرورياتو د دين څخه دی، ځکه چې د قران د لسو ايتونو څخه اشارةً او د نبي کريم ﷺ د اويا وو متواتر احاديثو څخه صراحةً ثابت دی (معارف القرآن، سورة ابراهيم ايت نمبر ۲۷)

**شلمه وسوسه: نبي کريم ﷺ خو په عالم الدنيا کې يوه ورځ د سلام جواب وانه اوريدلو، نو د قبر په خوا کې څرنګه سلام اوري؟**

مماتيان اعتراض کوي چې د يو صحابي کور ته نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورغلو او سلام يې واچولو هغه صحابي وا اوريدلو، ليکن جواب يې ورو ورکړو، نبي کريم صلى الله عليه وسلم وانه وريدلو، نبي کريم صلى الله عليه وسلم بيا سلام پرې واچولو، هغه صحابي بيا په قراره جواب ورکړ، نبي کريم صلى الله عليه وسلم وانه وريدو، نبي کريم صلى الله عليه وسلم دريم ځل بيا پرې سلام واچولو، هغه صحابي بيا په قراره جواب ورکړو او نبي کريم صلى الله عليه وسلم وانه وريدو، نبي کريم صلى الله عليه وسلم واپس شو هغه صحابي ورپسې شاته منډې کړې، رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې وفرمايل چې ما ستا

سلامونه اوريدل او تاته مې جواب هم درکولو ،ليکن په قراره او تا ته مې نه دراورولو ، لپاره د دې چې ستا د خولې مبارکې څخه زمونږ کورته بيا بيا سلام او دعا راشي، نو دلته د نبي کريم صلى الله عليه وسلم او دهغه صحابي په مابين کې يو حائل دی چې دېوال دی ، ليکن بيا هم نبي کريم صلى الله عليه وسلم د سلام جواب نه اوري ، اوس خو نبي کريم صلى الله عليه وسلم په قبر کې دی زمونږ او دنبي کريم صلى الله عليه وسلم تر منځ څلور پردې دي ، يوه معنوي پرده ده چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په عالم البرزخ کې دی او مونږ په عالم الدنيا کې يوو او درې ظاهري پردې دي، يوه حجره مبارکه، دوهم قبر، دريم لحد ، نو اوس څرنګه نبي کريم صلى الله عليه وسلم زمونږ سلام اوري ؟

قلنا : اول تمهيد واوره! چې يو عالم الدنيا دی او بل عالم البرزخ ده په عالم الدنيا کې د روح او د جسد تعلق وي او په عالم البرزخ کې هم د روح او جسد تعلق وي، په دنيا کې جسم اصل او روح يې تابع دی احوال اولاً په جسم واردېږي او ثانياً وبالتبع په روح واردېږي، لکه روح افزا شربت چې اولاً جسم ته لذت ورکوي او ثانياً روح ته لذت ورکوي، ځکه ورته روح افزا شربت وايي او په عالم البرزخ کې روح اصل او جسم يې تابع دی ، احوال اولاً په روح واردېږي او ثانياً وبالتبع په جسم واردېږي، لکه په احتلام کې ټول حالات اولاً په روح باندې تيرېږي ، خو ثانياً وبالتبع جسم ته هم خوند حاصلېږي، دوهمه تمهيدي خبره دا واوره چې د روح تعلق د جسد سره په درې قسمه دی اول: تعلق التصرف ، دوهم: تعلق التدبير ، دريم: تعلق الحيات.

تعلق التصرف الدُنيوي: يعنې داسې تعلق چې د دې په وجه جسم خوراک او څښاک کوي او ګرځي.

تعلق التدبير: يعنې داسې تعلق چې د دې په وجه په خپله په جسم کې وينه ګرځي او د دې په وجه د هضم نظام چلېږي او په خپله زړه حرکت کوي او ساه چلېږي.

تعلق الحيات: چې د دې په وجه جسم ژوندی وي، نو په عالم الدنيا کې په حالت د يقظت کې د روح او د جسم درې واړه تعلقه وي او په حالت د نوم کې دوه تعلقه وي تعلق التدبير او تعلق الحيات او په عالم البرزخ او قبر کې صرف يو تعلق وي چې تعلق الحيات دی.

د تمهيد څخه وروسته جواب:

کله چې د روح او د جسم تر منځ درې واړه تعلقات وي، نو په روح باندې وزن ډير وي ، نو د روح پرواز کم وي او څومره چې تعلق کمېږي همدومره د روح پرواز قوي کېږي ، په حالت النوم کې يو تعلق کم شي ، نو روح په ثانيه وو کې مکې مکرمې او مدينې منورې ته رسېږي او په عالم البرزخ کې تعلق ډير کم

شي صرف يو تعلق الحيات پاتې وي نو د روح پرواز ډير قوي شي روح په عليين كې وي او د هغه ځاى ځخه يې د جسم سره تعلق وي او په همغه عليين كې خبره بالذات اوري او د روح په تبع يې جسم هم اوري، اوس جواب دادى چې په عالم الدنيا كې بالذات د جسم غوږ اوريدل كوي او بالتبع يې روح اوري د جسم او د روح درې واړه تعلقات دي، د روح پرواز او طاقت كم دى، لهذا نبي كريم صلى الله عليه وسلم د نزدې ځخه هم د صحابي جواب وانه وريدو او بعد الوفات په عالم البرزخ كې د روح او د جسم تعلق ډير كم دى يوازې تعلق الحيات دى، لهذا د روح پرواز او طاقت دومره زيات دى چې د روضې مباركې په خوا كې ډير په قلاره صلاة او سلام اوري.

**يو ويشتمه وسوسه: اشاعتيان وايي چې زمونږ دجماعت نوم په قرآن كې شته** چې: (إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) او دحيات لفظ په قران كې نشته.

قلنا: ۱- پدې ايت كې (مماتي) په معنى دمرګ سره دى، په معنى د كومې ډلګۍ سره ندى، دمماتيانو ډلګۍ خو ددې ايت ځخه (۱۴۰۰) كاله وروسته په سنه (۱۹۵۷ع) كې جوړه شوه، دا خو داسې شو لكه چې كوم مروتى (يعنې لكي مروت والا) چې ووايي چې زمونږ دقوم نوم په قران كې راغلى دى چې (إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ)

۲- په ديرشمه پاره كې دحياتي لفظ هم موجود دى، (قدمت لحياتى)

۳- په قرآن كې خو د فرعون او د قارون او دهامان نوم هم شته حتى چې د شيطان نوم هم شته.

**دوه ويشتمه وسوسه: مماتيان وايي چې مونږ نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ ته په جنت كې ژوندى وايو او تاسو ورته په ځمكه كې ژوندى وايئ ، لهذا زمونږ عقيده ستاسو ځخه بهتره ده .**

قلنا: مونږ نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ په روضه كې ژوندى ګڼو او روضه د جنت ځخه هم بهتره ده، مماتيان وايي چې د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ جسد په دنيا كې دى او روح يې په جسد مثالي كې حلول كړى دى، هغه په جنت كې دى او مونږ روح بالجسد الحقيقي په جنت كې ژوندى ګڼو چې روضه مباركه ده.

**در ويشتمه وسوسه: په حديث كې راځي چې: لو كان موسى حيا ما وسعه الا اتباعى ، د دې حديث ځخه معلوميږي چې موسى عليه السلام ژوندى نه دى؟**

قلنا: ۱- دا روايت ضعيف دی، د دې حديث په سند کې جابر بن يزيد جعفي رافضي دی، يحيى بن معين ورته کذاب وايي، امام حميدی ورته شيعه وايي، امام مسلم ورته وضّاع وايي (مقدمه مسلم صـ ۱۵).

۲- دلته مراد په عالم لدنيا کې حيات دی ای لوکان موسى حياً فی عالم الدنيا قرينه ورته ابتاعي ده د اتباع حکم په عالم الدنيا کې دی.

**خلیرشتمه وسوسه: مولانا رشيد احمد گنگوهي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې څوک چې وايي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ پخپله سلام اوري هغه کافر دی.**

قلنا: دا د گنگوهي رَحِمَهُ اللَّهُ نيمه خبره ده، پوره خبره يې بيان کړه! حضرت گنگوهي رحمه الله فرمايي چې څوک چې وايي چې د تشهد (التحيات) والا سلام چې په لمانځه کې لوستلی شي، نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ يې پخپله اوري هغه کافر دی، ځکه چې التحيات د الله تعالى او دبنده په مابين کې راز او مکالمه ده، يعنې د حضرت گنگوهي رَحِمَهُ اللَّهُ خبره د تشهد والا په سلام کې ده، دقبر والا په سلام کې نه ده، دلته عنوان داسې دی، (تشہد میں صیغہ سلام کے تبدیلی) حضرت گنگوهي رَحِمَهُ اللَّهُ د قبر د سلام په باره کې فرمايي چې په سماع النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ عند القبر کې دهيڅا اختلاف نشته (فتاوی رشیدیہ، کتاب الایمان والکفر، زندں کا مردوں سے مدد مانگنا)

فانقيل: په امداد المفتيين کې مفتي محمد شفيع رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې دا د حضرت گنگوهي فتوى نه ده؟

قلنا: د سماع النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ عند القبر فتوى په فتاوی رشيديه کې دوه ځايه ذکر شوی ده، يو په کتاب العلم کې ده، هلته د حضرت گنگوهي رَحِمَهُ اللَّهُ دستخط نشته، او بله په (ایمان اور کفر کے مسایل) کې ده، هلته د حضرت گنگوهي رَحِمَهُ اللَّهُ خپل دستخط دی او فرمايلي يې دي چې الجواب بهذا التفصيل صحيح، د مفتي شفيع صاحب خبره دا ولې فتوې په باره کې ده.

۲- خپله مفتي شفيع صاحب سماع النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ عند القبر مني په جواهر الفقه صـ(۵۱۷) کې يې همدا حديث ليکلی دی چې: (من صلى علي عند قبري سمعته) نو د مفتي شفيع صاحب عقيده ولې نه مني؟

**پنځه ويشتمه وسوسه: ايا صحابه وو ژوندي پيغمبر ښخ کړی وو؟**

قلنا: د ښخولو لفظ مناسب ندی، داسې ووايه چې صحابه وو رضی الله عنهم ژوندی نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ جنت ته حواله کړی وو، ځکه چې د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ قبر د جنت د باغونو څخه يو باغ دی (صحيح البخاري، کتاب التهجد، باب فضل مابين القبر والمنبر ج ا ص ۱۵۹)

**شپږ ويشتمه وسوسه: په فتاوی البلد الحرام کې يې ليکلي دي چې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ پخپله سلام نه اوري ؟**

قلنا: ۱- دا فتاوی په سعودي کې د غير مقلدينو ده، پدې فتاوی کې يې امام ابو الحسن اشعري ته بدعتي او خطا کار ويلي دي، وګوره: (فتاوی بلد الحرام، فتاوی شريعة فی مسائل عصريه، کتاب فتاوی العقيده ص ۱۹۶) امام ابو حنيفه ته يې مرجئه، ګمراه، شرير، فسادي او د اهلسنت والجماعت څخه خارج ويلي دي، (فتاوی علماء بلد الحرام، فتاوی العقيده ص ۱۱۴)

۲- د حرمينو علماء نن سبا اکثر حنبليان دي او د حنبليانو عقيده د حيات النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ ده، نن سبا د مديني منورې د روضې مبارکې په دوه ستنو د حيات النبي متعلق اشعار ليکل شوي دي چې:

يا خير من دفنت بالقاع اعظمه
فطاب من طيبهن القاع والاکم
نفسي الفداء لقبر انت ساکنه
فيه العفاف وفيه الجود والکرم

د ساکن لفظ (او سيدونکی) غالبا ژوندي ته مستعمليږي.

**اوه ويشتمه وسوسه: ايا په قبر کې د حيات الانبياء د عقيدې پوښتنه کيږي؟**

قلنا: ايا په قبر کې د نکاح، مهر، اولاد، د والدينو د خدمت، د قرباني، زکات، د حج وغيره پوښتنه کيږي؟

۲- که قادياني کافر وو ايي چې ايا په قبر کې د ختم نبوت پوښتنه کيږي، نو څه جواب به ورکوې؟

۳- راوفض وايي چې ايا په قبر کې د ابو بکر صديق پوښتنه کيږي؟

**اته ويشتمه وسوسه: د حضرت عثمان په درود ولې نبي صلی الله عليه وسلم نه خبريدلو؟** د صلح حديبې په وخت نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ حضرت عثمان رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مکې ته

وليږلو، خلکو افواه خپره کړه چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شهید شوی دی، حالانکې حضرت عثمان به ضرور درود ویلو، نو ولې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ ته نه پیش کیدلو؟

قلنا: ۱- دا د الله تعالی له طرفه امتحان وو چې صحابه رضی الله عنهم د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د شهادة د خبر په اوریدلو سره څه کوي؟

۲- زمونږ خبره په بعد الوفات او عالم البرزخ کې ده او دا واقعه د عالم الدنیا ده.

۳- دا افواه دسهر د لمانځه وروسته خپره شوه او د ماسپښین لمونځ لا قضاء شوی نه وو چې حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ واپس راغلو، نو چې پدې دوران کې یې لمونځ ندې کړی نو کیدلی شي چې درود یې هم نه وي ویلی.

**نهه ویشتمه وسوسه: مولنا زکریا رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې مړي یې نه اوري.**

قلنا: مولنا زکریا رَحِمَهُ اللهُ دعامو مړو خبره کړې ده، مولنا ذکریا رَحِمَهُ اللهُ د سماع النبي عند القبر هم قایل دی او د حیات النبي هم قایل دی، مولنا زکریا رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې: څوک چې د روضې مبارکې په خوا کې صلوة او سلام وایي نو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ یې بالذات اوري من صلی علیّ عند قبري پدې کې صریح دی (مکاتب شیخ الحدیث صـ ۵۰۵) همدارنګه یې په فضائل درود کې هم لیکلي دي (فضائل درود صـ ۳۸، فصل ۲، حدیث نمبر ۳)

**دیرشمه وسوسه: یو کتاب دی په نوم د (فاتحہ کا صحیح طریقہ) په هغې کې یې لیکلي دي چې سماع النبي عندالقبر نشته، او په هغې دمولنا حسین احمد مدني رَحِمَهُ اللهُ دستخط هم دی.**

قلنا: ۱- دسماع النبي عند القبر څخه انکار په تقریظ شده کتاب باندې نه دی، بلکې د حسین احمد مدني رَحِمَهُ اللهُ د وفات څخه دولس کاله وروسته په یوه لیکلې شوې ضمیمه کې دسماع النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ عند القبر څخه انکار دی او د هغې ضمیمې سره د اکابرینو د دستخط هیڅ تعلق نشته.

**د حیاة الانبیاء څخه دمنکرینو مماتیانو حکم:** دانبیاوو د جسماني حیات څخه منکرین ګمراهان، ضال او مضل دي، مبتدع فی العقیده دي، مونځ ورپسې مکروه تحریمي دی، داهل سنت والجماعة څخه خارج دي.

(۱) من انكر الحياة في القبر وهم المعتزلة ومن نحا نحوهم (عمدة القاري كتاب المناقب، باب مناقب ابى بكر ج ۶ ص ۶۰۱، وفي البعض ج ۱۱ ص ۴۰۳).

(۲) وَقَدْ تَمَسَّكَ بِهِ مَنْ أَنْكَرَ الْحَيَاةَ فِي الْقَبْرِ وَأُجِيبَ عَنْ أَهْلِ السُّنَّةِ الْمُثْبِتِينَ لِذٰلِكَ بِأَنَّ الْمُرَادَ نَفْيُ الْمَوْتِ اللَّازِمِ مِنَ الَّذِي أَثْبَتَهُ عُمَرُ ﷺ بِقَوْلِهِ وَلَيَبْعَثَنَّهُ اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا لِيَقْطَعَ أَيْدِي الْقَائِلِينَ بِمَوْتِهِ وَلَيْسَ فِيهِ تَعَرُّضٌ لِمَا يَقَعُ فِي الْبَرْزَخِ. (فتح البارى ج۷ ص۲۹)

(۳) خلاصه دا چې زما او زما د اکابرو د اعقیده ده چې رسول الله ﷺ په خپله روضه کې په جسماني ژوند باندې ژوندی دی، دا برزخي ژوند دی لکن د... نیوي ژوند څخه ډېر قوي دی، څوک چې ددې مسئلې څخه انکار کوي (۱) هغه ددیوبند د اکابرو د تصریحاتو مطابق د دیوبند سره هیڅ تعلق نه لري (۲) هغه داهل حقو څخه نه دی بلکه ګمراه دی، (۳) مونځ کول وروسته نه دي جائز (۴) او دهغه سره هیڅ قسم تعلق ساتل هم نه دي جائز (اپ کے مسائل او انکا حل تخریج شده ج۱ ص-۵۹۵)

(۴) زمونږ په نیز د حیاة الانبیآء څخه منکر کافر نه دی، البته ګمراه دی (سوانح و افکار حضرت جالندهري ص۳۲۶)

(۵) دصحابه وو څخه شروع تر ننه پورې دعلماوو مسلک دا دی چې پیغمبران ژوندي دي او ددیوبند علماء هم ددې قائل دي څوک چې دحیاة په ځای دممات عقیده لري دهغه د دیوبند د اکابرو سره هیڅ قسم تعلق نشته.

(۶) یو سړي دمفتي محمود رحمه الله څخه سوال وکړو چې کوم سړی چې په قبر کې د نبي ﷺ د ژوند څخه منکروي، او د رسول الله ﷺ د روضې په خواکې الصلوة والسلام علیک یارسول الله ته ناجائز وايي، او یا درسول الله ﷺ ذاة ته نور وايي دده په باره کې څه حکم دی؟ حضرت مفتي صاحب ورته ددې واړو مسائلو جواب داسې ورکوي چې دداسې عقیدو دلرونکو پسې مونځ کول مکروه تحریمي دي (فتاوی مفتي محمود ج ۱ ص ۳۴۵،۳۵۳)

(۷) مولنا نصیرالدین الغورغشتوي رحمه الله د یو سوال په جواب کې فرمایي چې: پنج پیریان (مماتیان) په قران کریم کې تحریف کوي دکفارو په باره کې راغلی ایاتونه په مسلمانانو باندې تطبیقوي ددوئ سره دقران کریم ترجمه مه کوئ او د داسې فاسدو عقائدو والا پسې مونځ مه کوئ بلکه چیرته دکوم دیندار او دمتقي پسې لمونځ وکړئ (سوانح مولنا غورغشتوي ص ۱۷۰).

(۸) دار الافتاء جامعه اشرفيه لاهور: رقم الافتاء (۳۳/۹/۲۴) تاريخ ۱۴۳۳/۵/۲۹) دحيات النبى ﷺ او دسماع النبى ﷺ عند القبر څخه منکر فاسق او عقيدوي بدعتي دى مونځ وروسته مکروه تحريمي دى.

(۹) دالارفتاء والارشاد کراچي: (فتوى ۴۶۲۷۴،ج ۴۸) رسول الله ﷺ په قبر کې په جسماني ژوند سره ژوندى دى او درود او سلام أوري ددې څخه منکر د اهل سنت والجماعت څخه خارج دى، مونځ وروسته مکروه دى.

(۱۰) دحيات النبى ﷺ او دسماع النبى عليه السلام عند القبر څخه منکرين د اهل سنت و الجماعت څخه خارج دي، لمونځ کول وروسته مکروه دى. (فتاوى دار العلوم ديوبند، ۳۵۵،/تب: ۲۰۷۲:ب)

لهذا د اشاعت التوحيد والسنة په نوم باندې مماتيان مبتدع فى العقيده دي، ضال او مضل دي، لمونځ وروسته مکروه تحريمي دى.

## دحيات الانبياء دمسئلې مرتبه

۱- دحيات الانبياء دمسئلې هغه مرتبه ده کومه چې دعيسى عليه السلام دحيات ده، ځکه چې د قرآن سنت او داجماع الأمت دکومو دلايلو څخه چې دعيسى عليه السلام ژوند او د روح مع الجسد العنصري اسمان ته پورته کيدل ثابت دي بعينه دهغو دلايلو څخه دانبياء کرامو حيات بعد الوفات بتعلق الروح مع الجسد العنصري ثابت دي او دعيسى عليه السلام دحيات څخه منکرين چې کوم دلايل پيش کوي بعينه همغه دلايل دحيات الانبياء څخه منکرين هم پيش کوي، د نولسمې وسوسې په جواب کې ذکر شو چې د حياة الانبياء عقيده د اسلام د بنيادي عقائدو څخه ده.

۲- منکرين دحيات النبى ﷺ يا دنبوت څخه منکر دي او يا دنبوت توهين کوي، ځکه چې دنبي کريم ﷺ جسد عنصري به يا په قبر کې رسول او نبي وي او يا به نه وي، که نوي (معاذ الله) نو دنبوت څخه انکار راغلو او که وي نو دنبوت توهين راغلو، ځکه چې نبي شو او حيات چې پکې رانغلو نو دحيات لوازم به هم پکې نه وي چې حس، شعور، فهم او ادراک دى، نو بې حسه، بې فهمه، بې ادراکه نبي شو او دا دنبوت توهين دى.

**فانقيل: چې امام اشعري رحمه الله ته دا عقيده منسوبه ده چې محمد ﷺ په قبرکې نبي او رسول نه دی.**

قلنا: دا نسبت غلط دی، علامه قشيري رحمه الله فرمايي چې: فأما ماحکی عنه (الاشعري) وعن أصحابه أنهم يقولون أن محمدا ليس نبی فی قبره ولا رسول بعد موته فبهتان عظيم،وکذب محض ،(شکايت اهل السنت، رسايل قشيريه صـ ۱۰، طبقات جلد ۲صـ ۲۷۹، )

همدارنګه ابن عابدين شامی رحمه الله فرمايي چې: واما مانسب الی الامام الاشعری امام أهل السنة والجماعة من انکار ثبوتها بعد الموت فهو افتراء وبهتان (شامي، باب ا لمغنم ج ۳صـ ۳٦٦).

وصلی الله تعالی علی خير خلقه محمد وآله وصحبه اجمعين

آمين

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لانبي بعده

اما بعد!

## داهل سنت والجماعت عقيده

۱- رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أخري نبي اورسول دی، درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه وروسته دنيا ته هيڅ نوی رسول نه راځي، دا مسئله دضروورياتو ددين څخه ده او پدې کې شک او شبه کونکی زنديق او کافر دی.

۲- ټول پيغمبران خصوصاً محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لکه څرنګه چې په عالم الدنيا کې حقيقةً په وصف درسالت او دنبوت باندې موصوف وو، نو همدارنګه په عالم البرزخ او عالم القبر کې هم حقيقةً په وصف دنبوت اود رسالت باندې موصوف دی.

۳-محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دټولو انبياو په شمول د روح او دجسد عنصري څخه عبارت دی، نو په عالم الدنيا او په عالم البرزخ دواړو کې نبوت او رسالت د روح مع الجسد العنصري صفت دی.

۴- کله چې دعالم الدنيا په شان په عالم البرزخ کې دټولو انبياوو عليهم السلام خصوصاً دمحمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روح مع الجسد العنصري الدونيوي ته وصف درسالت او دنبوت ثابت وو، همدې روح مع الجسد العنصري ته به درسالت اودنبوت لوازم هم ثابت وي چې علم، فهم، شعور، ادراک، حيات، احساس، سماع، وغيره دي، دا داهل سنت والجماعت اجماعي عقيده ده او پدې باندې ايمان لرل فرض دي.

## داهل بدعتو مماتي اشاعتيانو عقيده

۱-دوفات څخه وروسته روح عليين اويا سجين ته ځي او دجسد عنصري دونيوي سره يې هيڅ قسم تعلق نه پاتې کيږي.

۲- کله چې په عالم البرزخ کې د روح او دجسد عنصري په مابين کې تعلق ختم شو نو جسد عنصري بې حياته، بې علمه، بې شعوره، بې احساسه او بې سماعه شو اودا أمور لوازم دنبوت اود رسالت دي او په انتفاء دلازم سره انتفاء دملزوم راځي، نو دجسد عنصري دونيوي څخه وصف د رسالت

او دنبوت منتفي شو (معاذ الله) مماتي اشاعتيان صراحةً ليکي چې نبوت او رسالت په اصل کې د روح صفت دی، د روح مع الجسد العنصري صفت نه دی، (نداء حق ج ا صـ۵۰۸)

**فایده:** بدعتي مماتي اشاعتيان دنبوت څخه منکر دي، همدارنګه دنبوت اود رسالت توهين کوي، همدارنګه دختم نبوت څخه منکر دي، دنبوت او درسالت څخه ځکه منکر دي چې نبي عبارت دي د روح مع الجسد العنصري څخه او دوي په عالم البرزخ کې جسد عنصري نبي نه ګڼي، دمدينې منورې په روضه مبارکه کې چې کوم جسد عنصري موجود دی هغه ته نبي او رسول نه وايي (نداء الحق ج ا صـ۵۸۰)

او دنبوت او رسالت توهين ځکه کوي چې که ددوي په نيز باندې بالفرض جسد عنصري نبي او رسول شي نو بيا ورته حيات، فهم، علم، شعور، سماع، او ادراک نه ثابتوي، نومعاذالله بې حياته بې فهمه، بې علمه، او بې شعوره نبي اورسول شو او دا دنبي او درسول توهين دی او دختم نبوت څخه ځکه منکر دي چې ددوي په نيز دنبي کريم ﷺ روح مبارک په بل جسد مثالي کې اچول شوی دی، نو همغه اوس رسول او نبي شو.

## داهل سنت والجماعت دلايل

۱-﴿ مَا كَانَ مُحَمَّدٌ اَبَآ اَحَدٍ مِّنْ رِّجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَّسُوْلَ اللّٰهِ وَخَاتَمَ النَّبِيّٖنَ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا ﴾

۲-﴿ وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ۭ اَفَا۟ىِٕنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ ۭ ﴾

۳-﴿ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ اَشِدَّاۗءُ عَلَي الْكُفَّارِ رُحَمَاۗءُ بَيْنَهُمْ ﴾

پدې ايتونو کې محمد ﷺ ته رسول ويلی شوي دي او محمد درسول الله ﷺ دذات څخه عبارت دی او ذات عبارت دی د روح مع الجسد العنصري څخه، هم په دنيا کې او هم په عالم البرزخ کې الی ابدالابد.

۴-قال رسول الله ﷺ لانبی بعدی ولا أمت بعد أمتی (رواه البيهقی)

۵- وعن أنس رفعه أن الرسالة والنبوة قد انقطعت ولانبی بعدی ولا رسول (اخرجه ابويعلی) په «بعدي» کې «يا» ضمير دمتکلم په روح مع الجسد باندې دلالت کوي.

۶- وعن ابن عباس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: أنا احمد، وانا محمد، والحاشر، والمقفی والخاتم. (رواه الخطيب)

په عالم الدنیا کې دا نوموند د روح مع الجسد العنصري وو ،نو په عالم البرزخ کې به هم وي.

۷-قدصح عن ابی ایوب الانصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أنه قال لمن أنكر عليه وضع وجهه على القبر انما جئت رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولم آت اللبن اوالحجر (احسن الفتاوی ج ٤صـ ٥٥١، مسند احمد ج ٦صـ ٥٨٧، مرویاتِ مالک بن حویرث)

حضرت ابوایوب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوه ورځ (دزیات محبت له وجې) خپل مخ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قبر باندې کیښودلو ،یو چا پرې اعتراض وکړو ،نو حضرت ابو ایوب انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمایل چې زه تیګې او خښتې ته نه یم راغلی بلکې زه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلی یم.

**فایده:** په کومو ایتونو او حدیثونو کې چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دنبي او درسول لفظ استعمال شوی دی ، هغه ټول ددې دلایل دي چې په عالم الدنیا او په عالم البرزخ او په عالم الحشر درې واړو کې روح مع الجسد العنصري رسول اونبي دی ،ځکه چې محمد عبارت دی د روح مع الجسد العنصري ځخه.

۸- که په عالم البرزخ کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روح مع الجسد العنصري الدونیوي ، رسول او نبي نه شي نو بیا به لااله الاالله محمد رسول الله یوه حکایتي کلمه شي، یعنې معنی به یې داسې شي چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مخکې نبي او رسول وو او اوس نه دی (معاذ الله ) ځکه چې محمد د روح مع الجسد العنصري ځخه عبارت دی.

۹- مفسر القرآن علامه عبدالرحیم حنفي رحمه الله فرمایي چې: انبیاء لکه څرنګه چې په عالم الدنیا کې انبیاء او رسل وو،نو همدارنګه عالم البرزخ ته دا نتقال ځخه وروسته هم انبیاء او رسل دي ددې په خلاف عقیده دکفر ده (نظم الفراید ،فریده نمبر ۳۳، صـ ۶۶، رحمت کاینات صـ ۳۵۹)

دا کفري عقیده مخکې(دمتقشفه) وواو دابو نصر وایلي المتوفی صـ ۴۴۴) هـ وه، چې اوس ددوي جانشیانو اشاعتي مماتیانو خپله کړې ده.

## دمماتیانو دلیل

مماتیان وایي چې الله تعالی په قرآن کریم کې صرف روح ته نبي ویلي دي ، الله تعالی فرمایي چې: ﴿وَاِذْ اَخَذَ اللهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ﴾

همدارنګه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چې:(کنت نبیاً وادم بین الماء والطین)

زه نبی وم او ادم علیه السلام داوبو اودختې په منځ کې وو ،همدارنګه په عالم الذر کې ادم علیه السلام انبياء وليدل په حديث کې راځي چې رأى الانبياء فيهم مثل السرج عليهم النور ، په دې ټولو کې يو ائې روح ته نبي او رسول ويلی شوي دي نو معلومېږي چې نبوت اورسالت په اصل کې يو ائې د روح صفت دی د جسم صفت نه دی .

**جواب:** دجسد او دروح په مابين کې ډير قوي تعلق دی، روح جسد ته محتاج دی او جسد روح ته محتاج دی، لکه څرنګه چې جسد بغير دروح څخه نشي چليدلی، نو همدارنګه روح بغير دجسد څخه نه شي چليدلی په عالم الارواح کې هم الله تعالى ارواحو ته اجساد ورکړي وو.

۱-دقرآن الفاظ صراحةً پدې خبره دلالت کوي چې په عالم الارواح کې د ارواحو سره اجساد شريک وو ،بني ادم ، ظهور، ذريت، د اټول دا جسادو صفات دي ، همدارنګه په عالم الارواح کې د وړو ميږيو په مقدار باندې جسم ښکاريدلو .

۲-مولانا مفتي محمد شفيع رحمه الله د(أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ)په تفسير کې ليکي چې: دادم علیه السلام دملا څخه يو ائې ارواح نه وو راوتلي، بلکې روح او جسم دواړه وو، ځکه چې د روح مع الجسد تربيت ته ضرورت ډير دی ، همدارنګه په حديث کې چې ددوي د رنګونو بيان شوی دی چې بعضې تور وو، او بعضې سپين وو ، دبعضو په تندي کې پرقاوه دا ټول په دې دلالت کوي چې هلته دروح سره جسم وو ، ځکه چې يو ائې روح هيڅ رنګ نه لري او داد تعجب خبره نه ده چې دا ټول اجسام څرنګه په يوځای کې راجمع شول؟ نن سبا دفلم په ذريعه باندې غټ غټ شيان په يو وړوکي سکرين باندې ښکاره کولی شي. (معارف القرآن ملخصاً، ج ۴ص۱۱۳)

## د روح او دجسد قوي تعلق

الله تعالى په هر شي باندې قادر دی،که وغواړي روح بغير دجسد څخه چلولی شي او جسد بغير د روح څخه چلولی شي ، لکن دالله تعالى عادت دادی چې روح بغير دجسد څخه نه چلوي، په دنيا کې روح دجسد په سترګو ليدل کوي، دجسد په ژبه غږيږي، دجسد په غوږونو اوريدل کوي، که دجسد سترګې ، غوږونه، او ژبه نه وي نو روح ړوند ، کوڼ او ګونګی دی ، همدارنګه په أخرت کې هم د ارواحو سره داجسادو حشر کيږي، (وَالبعث بعد الموت) داجسادو حشر مرکزي عقيده ده الله تعالى فرمايي چې: ﴿ بَلَىٰ قَٰدِرِينَ عَلَىٰٓ أَن نُّسَوِّيَ بَنَانَهُۥ ﴾همدارنګه په عالم الارواح کې هم روح بغير دجسد څخه نه چليدلو ، نو الله تعالى ورته واړه واړه اجسام پيدا کړل ، له څرنګه چې مفسرينو

د(ألست بربكم) په تفسير کې ليکلي دي ، په دې درې واړو عالمونو (عالم الدنيا، عالم الأخرت، عالم الارواح) کښې روح او دجسد په مابين کې تعلق ثابت دی اګر چې په تعلقاتو کې به يې فرق وي خو نفس تعلق يې يقيني دی، دمخکينو ، قرآني، نبوي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، او اجماعي دلايلو سره په تيرو دريو عالمونو باندې قياس هم ددې تقاضی کوي چې په عالم البرزخ او عالم القبر کې هم د روح او دجسد په مابين کې تعلق شته.

## عالم القبر او عالم النوم

عالم القبر فی الجمله داسې دی لکه عالم النوم، له دې وجې علماء فرمايي چې: النوم أخ الموت انسان چې اوده شي نو دده روح قبض کړی شي، الله تعالی فرمايي چې: ﴿وَالَّتِي لَمْ تَمُتْ فِي مَنَامِهَا﴾ دده دجسم ماشين بالکل معطل ښکاري، ددنيا دخلکو په نظر کې دده سترګې بندې وي، ژبه يې خاموشه وي، لاسونه او پينبې يې بې حرکته وي او په حقيقت کې روح دجسد عنصري سره يو ځای په سير او سياحت باندې مصروف وي ، دجسد عنصري په سترګو ليدل کوي، دجسد عنصري په غوږونو او ريدل کوي ، دجسد عنصري په ژبه غږيدل کوي، دجسد عنصري په پښو باندې مزل کوي، په روح باندې چې کوم حالات تيريږي په هغو ټولو کې ورسره جسد شريک وي ، له دې وجې کله ادوه سړی وژاړي، کله وخاندي، نو لکه په عالم النوم کې چې جسد په کټ کې پروت وي، لکن بيا هم د روح سره سير او حرکت، غم او خوشحالي کوي، نو همدارنګه په عالم القبر کې هم جسد په قبر کې پروت وي ، لکن بيا هم د روح سره په غم او په خوشحالی ،تنعيم او تعذيب کې شريک وي او لکه څرنګه چې دعالم النوم معاملات دعالم الدنيا دخلکو دنظر څخه پناه وي، حتی چې د أوده سړي په خوا کې ناست سړی هم پدې نه پوهيږي چې په دې أوده سړي باندې څه تيريږي ، نو همدارنګه دعالم القبر معامله هم د عالم الدنيا دخلکو دنظر څخه پناه وي.

بسم الله الرحمن الرحيم

## داهل سنت والجماعت مسلک

۱-د رسول الله ﷺ د روضې مبارکې زيارت دفرايضو او دواجباتو پسې بهترين عبادت دی.

۲-اصل مقصود درسول الله ﷺ د روضې مبارکې زيارت دی او ددې څخه علاوه دمسجد نبوي او دنورو مبارکو مقاماتو زيارت پخپله حاصليږي.

**فايده:** که الله تعالى کوم خوش قسمته کس ته مدينې منورې ته دتللو توفيق ورکړو نو صرف د رسول الله ﷺ د روضې مبارکې په نيت باندې دې سفر وکړي او رسول الله ﷺ ته دصلوة او دسلام دپيش کولو په نيت باندې دی سفر وکړي، ۱- ځکه چې دمسجدنبوي ﷺ عظمت د رسول الله ﷺ له وجې دی ۲-که يوکس صرف دمسجد نبوي ﷺ په نيت باندې سفر کوي نو دا دتاوان سفر دی ، ځکه چې په مکې حرم کې يو مونځ په يو لک دی او په مسجد نبوي ﷺ کې ديو روايت مطابق يو مونځ په زر او دبل روايت مطابق په پنځوس زره دی ،نو ولې يولک چنده ثواب پرېږدي او دزر چنده يا دپنځوس زره چنده لپاره سفر کوي؟. ۳-الله تعالى په هرځای کې حاضر اوناظر دی ، مسجد نبوي او بيت الله شريف الله تعالى ته يو برابر دي ، لکن محمد ﷺ صرف په مدينه منوره کې دی په هرځای کې حاضر اوناظر نه دی ، له دې وجې دمدينې منورې په سفر کې به د رسول الله ﷺ د روضې نيت کولې شي.

## داهل بدعتو مسلک

اهل بدعت وايي چې دنبي کريم ﷺ د روضې مبارکې په نيت باندې سفر کول بدعت دی ، اصل مقصود دمسجد نبوي ﷺ زيارت دی او ددې څخه علاوه د رسول الله ﷺ د روضې مبارکې زيارت پخپله حاصليږي(تحقيق الحق ص ۳۵، کتاب التوحيد فی عبادات الألوهية ازمولوي عبد الغنی جاجروي)

## دأهل سنت والجماعت دلايل

۱- وَ إِذَا جَاءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِآيَاتِنَا فَقُلْ سَلَامٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ أَنَّهُ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوءًا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ)

مفتي محمد شفيع رحمه الله فرمايي چې ددې ايت شان نزول خاص دی ، لکن حکم يې عام دی تر قيامته پورې جاري دی ، هرڅوک چې درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روضې مبارکې ته ورشي نو صلوة او سلام دې پيش کړي ، درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د طرف څخه به ورته جواب ورکول کيږي.

۲- قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ زَارَنِي فِي مَمَاتِي كَانَ كَمَنْ زَارَنِي فِي حَيَاتِي، وَمَنْ زَارَنِي حَتَّى يَنْتَهِيَ إِلَى قَبْرِي كُنْتُ لَهُ شَهِيدًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ (كتاب الضعفاء از علامه عقيلي، تاريخ ابن عساكر، كتاب الشفاء از علامه سبكی)

چاچې زما د وفات څخه وروسته زما زيارت وکړو نو داسې ده لکه زما په ژوند کې يې چې زما زيارت کړی وي، او چا چې زما زيارت وکړو تر دې چې زما قبر ته راغلو نو زه به دقيامت په ورځ ددې شاهدي ورکووم.

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دهغه زاير دايمان او دحاضرۍ شاهدي ذکر کړه چې در سول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې په نيت يې سفر کړی وي.

**فانقيل:** چې ددې حديث په سند کې يو راوي محمد بن يحيى دی، ابن عدی ليکلي دي چې دده احاديث منکر او دظلمت څخه ډک دي ، لهذا داحديث دقبلولو قابل نه دی.

**جواب:** دجرح او دتعديل علماوو ابن عدي ته متشدد او متعصب ويلي دي لهذا دده داجرحه په تشدد باندې بناء ده .

**دوهم جواب:** علامه عبد الحی رحمه الله فرمايي چې دمنکر اطلاق کله په تفرد باندې کيږي (الرفع والتکميل صـ ۲۰۰)

**دريم جواب:** دنورو رواياتو څخه هم ددې روايت تاييد کيږي ، لهذا دا روايت دحسن په مرتبه کې دی.

۳- قال النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من حج ولم يزرنی فقد جفانی (شفاء السقام صـ ۲۷)

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې چاچې حج وکړو او زما زيارت يې ونکړو ،نو بيشکه چې زما سره يې جفا وکړه.

۴- عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ جَاءَنِي زَائِرًا لَا يَعْلَمُهُ حَاجَةً إِلَّا زِيَارَتِي كَانَ حَقًّا عَلَيَّ أَنْ أَكُونَ لَهُ شَفِيعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ» (معجم کبیر للطبرانی ج ۶ صـ ۱۷۴)

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې څوک زما زيارت ته راغلو او زما دزيارت څخه ماسوى يې بل هيڅ حاجت نه وو ،نو په ما باندې لازمه ده چې زه به دده لپاره دقيامت په ورځ شفاعت کونکی يم.

۵- رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: من زارنی محتسبا الی المدينة کان فی جواری يوم القيمة (شفاء السقام)

چا چې دثواب په نيت باندې زما زيارت وکړو نو هغه به دقيامت په ورځ زما ګاونډی وي.

۶- عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ زَارَ قَبْرِي وَجَبَتْ لَهُ شَفَاعَتِي (شعب الايمان، شفاء السقام، دارقطني، وفاء الوفاء ج ۴ صـ ۱۶۷)

چاچې زما دقبر زيارت وکړو دهغه لپاره زما شفاعت لازم شو.

۷- قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من جائني زائرا لاينزعه الا زيارتي کان حقا علیّ أن أکون له شفيعا يوم القيامة (شفاء السقام صـ ۲۷)

څوک چې صرف زما دزيارت په اراده باندې راغلو نو په ماباندې لازمه ده چې زه به دده لپاره دقيامت په ورځ شفيع يم.

ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: دا احاديث عام دي عالم الدنيا او عالم البرزخ دواړو ته شامل دي. (حاشيه على الايضاح صـ ۴۸۱)

## درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيارت دعلماوو له نظره

۱- امام نووي رحمه الله فرمايي چې: حاجيان دې دحج څخه وروسته مدينې منورې ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيارت ته ورشي ځکه چې دا أهم عبادت دی، (الايضاح فی مناسک الحج والعمرة صـ ۴۴۷)

۲- ابن حجر الهيثمی رحمه الله فرمايي چې: دزيارت احاديث عام دي دحيات او دوفات دواړو حالتونو ته شامل دي ، همدارنګه دا احاديث د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دزيارت په استحباب باندې دلالت کوي (حاشيه على شرح الايضاح صـ ۴۸۱)

۳- علامه سمهودي رحمه الله فرمايي چې: دوهم فصل د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې دزيارت په دلايلو کې دی ، اوددې دمشروعيت په تاکيد کی دی او ددې خبرې په بيان کې دی

چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيارت ته تلل قريب الى الواجب دي حتى چې بعضې علماوو ورته واجب ويلي دي. (وفاء الوفاء ج ۴ صـ ۱۷۷)

مخکې ليکي چې علامه سبکي رحمه الله د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زيارت باندې قولي او فعلي اجماع رانقل کړې ده، او د کتاب، سنت، اجماع او قياس څخه يې دا ثابته کړې ده چې دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زيارت ته تلل ثواب دی (ايضاج ۴ صـ ۱۵۸)

۴- شيخ الاسلام علامه ابن الهمام رحمه الله فرمايي چې: زما په نيز بهتره داده چې مدينې منورې ته په ورتللو کې صرف د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د قبر نيت وکړی شي (فتح القدير ج ۴ صـ ۷۴)

۵- دحنفي فقهې بې مثاله کتاب در مختار او ددې شرحه رد المحتار ليکي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې زيارت اجماعاً مستحب دی. (ج ۴ صـ ۶۳)

۶- مولانا عبدالحی لکهنوي رحمه الله فرمايي چې: دڅلورو واړو مذهبونو محقيقين علماء د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې دزيارت د وجوب قايل دي. (الکلام المبرم صـ ۹)

۷- مولانا خليل احمد سهارنپوري رحمه الله فرمايي چې: زمونږ او زمونږ د مشايخو په نيز د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې زيارت کول اعلى درجه قربت دی، بلکې واجبوته نږدې دی (المهند على المفند صـ ۳۴)

۸- مولانا حسين احمد مدني رحمه الله فرمايي چې: زمونږ د اکابرو په نيز د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې زيارت ته تلل بهترين مستحب بلکې واجبوته نږدې دی (نقش حيات صـ ۱۲۲)

۹- مولانا محمديوسف لدهيانوي رحمه الله فرمايي چې: دجمهورو علماوو په نيز به ضرور د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې نيت هم کوي (آپ کے مسایل اور آن کا حل ج ۴ ص ۱۶۷).

## د روضې مبارکې زيارت دواقعاتو په رڼا کې

۱- حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې کله چې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دنيا څخه رحلت کړو، نو حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فراق برداشت نه کړی شو، مدينه منوره يې پرېښودله او د شام په ملک کې د جابيې مقام ته لاړو، د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خلافت په زمانه کې يې په شام کې په خوب کې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدلو، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته په خوب کې فرمايل چې: بلاله! دومره سخت زړی يې چې زما زيارت ته هم نه راځې، کله چې بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د خوب

څخه راپاڅيدلو نو سمدستي يې مدينې منورې ته دسفر تيارۍ شروع کړو، کله چې مدينې منورې ته ورسيدلو او نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې صلوة او سلام پيش کړل ،نو خلک خبر شول چې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مؤذن حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ډيره موده وروسته مدينې منورې ته تشريف راوړی دی، صحابه او تابعين ورته ډلې ډلې ملاقات ته راتلل، دملاقاتونو څخه وروسته دمانځه وخت شو، خلکو خصوصا حسنينو رضی الله عنهما د حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه تقاضی وکړه چې آذان وکړي، حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مجبور شو او په همغه ځای باندې يې آذان شروع کړو په کوم ځای باندې به يې چې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وخت کې کولو، کله يې چې د الله اکبر، الله اکبر جملې ولوستلې نو صحابه کرامو رضی الله عنهم ته هغه ټوله نقشه مخې ته ودريدله په کومه کې به چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دصحابه وو سره يو ځای دحضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ آذان اوريدلو، صحابه وو رضی الله عنهم بې اختياره ژړاګانې شروع کړې، کله چې آذان شهادتينو ته ورسيدلو نو خلکو داسې محسوسوله لکه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې دروضې اطهرې مبارکې څخه بهر تشريف راوړی وي او ددوي مخې ته حاضر وي، حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ چې دا حالت وليدلو نو پخپله هم په ژړا شو او آذان يې هم ختم نه شو کړلی، (وفاء الوفاء ج ۳ صـ ۳۵۶، واثار السنن)

پدې روايت کې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ منامي ارشاد او د حضرت بلال رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فعل ددې لپاره واضح دليل دی چې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې زيارت دأعلی مستحباتو څخه دی.

۲- عبدالرحمن جامي رحمه الله يو کامل عارف او رشتينی عاشق وو، د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مدحه کې يې يوه د درد څخه ډکه قصيده وليکله، بيا يې دحج اراده وکړه، دځان سره يې دا قصيده هم واخستله چې دروضې مبارکې په خواکې يې ولولي، کله چې دحج څخه فارغ شو او د مدينې منورې په سفر روان شو، نو رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دمکې مکرمې امير ته په خوب کې وفرمايل چې عبدالرحمن جامي رحمه الله مدينې منورې ته مه راپريږده، که پاتې کيږي نو همدلته په مکه مکرمه کې دې پاتې شي او که نه پاتې کيږي نو بيرته دې خپل وطن (جام) ته لاړشي، عبدالرحمن جامي رحمه الله يو څو ورځې په مکه مکرمه کې پاتې شو، لکن د فرط محبت له وجې په پټه دمدينې منورې په سفر روان شو، رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بيا دمکې مکرمې امير ته په خوب کې ورغلو او ورته يې وويل چې: عبدالرحمن جامي رحمه الله بيا په فلانکۍ لاره باندې پټ مدينې منورې ته را روان دی، هغه مه راپريږده، دمکې مکرمې امير چې کله د خوب څخه راپيدار شو نو خپل کسان يې

وربيسې وليږل، عبدالرحمن جامي رحمه الله يې ونيولو او بندي يې كړو، رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دريم ځل دمكې مكرمې امير ته په خوب كې ورغلو او ورته وې فرمايل چې عبدالرحمن جامي رحمه الله مجرم نه دى چې سزاء ورته وركوې، بلكې ده يوه قصيده ليكلې ده او دا اراده يې د، چې زما د روضې سره يې ولولي، كه چيرته دلته راشي نو زه به د روضې مباركې څخه دمصافحې لپاره ورته لاس راوباسم او كيدى شي چې دا دخلكو لپاره دفتنې سبب شي، له دې وجې يې صرف حصار كړه ، دسختۍ كولو ضرورت نشته ، بيا امير دبنديخانې څخه راوويستلو او ډير عزت يې وكړو (فضايل درودشريف از مولانا ذكريا ص۱۲۵)

۳- يحيى بن معين رحمه الله په سنـه(۲۳۳هق) كې مدينې منورې ته لاړو بيا مكې مكرمې ته روان شو، رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې په خوب كې وليدلو چې ورته فرمايي چې زما نزديكت پريږدې او بل طرفته روان يې ؟ يحيى بن معين رحمه الله بيرته راستون شو او درې ورځې وروسته وفات شو. (رحمت كاينات ص۳۳۴)

**اعتراض:** رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: لاتشدو الرحال الا الى ثلاثة مساجد، مسجد الحرام، ومسجد الاقصى، ومسجدي هذا (متفق عليه مشكوة ص۶۷، ج۱ص)

تاسو صرف دغې دريو مساجدو ته سفر كوئ چې مسجد الحرام، مسجد الاقصى او مسجد نبوي دى ،نو زيارت ته سفر ناجايز شو؟

**جواب:** پدې حديث كې مستثنى مساجد دي، نو مستثنى منه به هم مساجد وي، يعنېددې ذريو مساجدو څخه بغير بل هيڅ مسجد ته سفر مه كوئ،ځكه چې ټول مساجد په فضيلت كې يو برابر دي نو يو مسجد پريښودل او بل ته سفر كول عبث دي، مگر دغه درې مساجد دنورو څخه بهتر دي لهذا دوي ته سفر كولى شئ ، په يو روايت كې صراحةً مستثنى منه مساجد راغلي دي : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لا ينبغي للمصلى أن يشد رحاله إِلَى مَسْجِدٍ تُبْتَغَى فِيهِ الصَّلَاةُ غَيْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَالْمَسْجِدِ الْأَقْصَى وَمَسْجِدِي)

دوهم جواب: كه په دې حديث كې مستثنى منه اعم شي چې ددې دريو مساجدو څخه بغير بل هيڅ ځاى ته سفر مه كوئ، نو بيا خو دتعليم، تبليغ، جهاد، تجارت، وغيره ټول سفرونه ناجايز شو، (ولايقول به أحدٌ)

بسم الله الرحمن الرحيم

## دأهل سنت والجماعت مسلک

لکه څرنګه چې دالله تعالی دذات څخه وروسته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مبارک ذات دتمامو کایناتو څخه بهتر دی ،نو همدارنګه دځمکې هغه حصه چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دبدن مبارک سره لږېدلې ده دتمامو کایناتو څخه بهتره ده، تردې چې دکعبې شریفې ، عرش او کرسی څخه هم بهتره ده ، دا اجماعي عقیده ده (فضایل حج ازمولانا زکریا ص ۱۷۷)

## دأهل بدعتو مسلک

مماتي بدعتي اشاعتیان وایي چې دځمکې هغه حصه چې درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دبدن مبارک سره لږېدلې ده دعامو ځمکو په شان ده ، دکعبې شریفې او دعرش څخه نه ده بهتره، په ځمکنیو قبرونو کې هیڅ قبر دجنت دباغونو څخه نه دی. (عقاید علماء اسلام ص ۶۸۴، ندای حق ص ۴۷۶)

**دلایل:**

۱-رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایي چې: ان كل نفس تدفن فى التربة التى خلقت منها، (رواه الحاكم فى المستدرک ، معارف السنن، ج۳ص ۳۲٤)

هرانسان په هغه خاوره کې خښولی شي دکومې څخه چې پیداشوی دی.

بل طرف ته دا خبره یقیني ده چې دانبیاوو جسدونه دجنت دخاورې څخه پیدا شوي دي ، نودنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دقبر خاورې دجنت خاورې شوې او په دنیا کې هیڅ شی هم دجنت دخاورو سره نه دی برابر. (معارف السنن ج ۳ص ۳۳۵) دلته حیات النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم ثابت شو ، ځکه چې دنبي قبر چې دجنت ټوټه شوه او په جنت کې ژوندي انسانان وي مړه نه وي ، لهذا انبیاء علیهم السلام په خپلو قبرونو کې ژوندي شو.

۲-قاضي عیاض رحمه الله او علامه ابو الولید رحمه الله پدې خبره باندې اجماع رانقل کړې ده چې دځمکې هغه حصه چې دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دبدن سره لګیدلې ده هغه دتمامو کایناتو څخه

بهتره ده حتی چې دکعبې شريفې او د عرش څخه هم بهتره ده (خلاصه الوفاء صـ ۱۰۱، والعقود الدريه ج ۴صـ ۳۰۱)

۳ـ امام مالک رحمه الله فرمايي : **ان البقعة التی فيها جسد النبی** ﷺ **أفضل من كل شیء حتی الكرسی والعرش (معارف السنن ج ۳ صـ ۳۲۳)**

هغه ځمکه چې دنبي کريم ﷺ جسد اطهر مبارک پکې دی دعرش او دکرسۍ په شمول دهرشي څخه بهتره ده.

۴- ملا علی القاري رحمه الله فرمايي چې: د رسول الله ﷺ دبدن مبارک سره لږېدلې ځمکه دکعبې مبارکې ، دعرش او کرسۍ څخه بهتره ده (شرح الشفاء ج ۳صـ ۱۶۲)

۵- علامه شامي رحمه الله فرمايي چې: د رسول الله ﷺ دبدن سره لږېدلې ځمکه اجماعاً دکعبې شريفې دعرش او دکرسۍ څخه بهتره ده (فتاوی شاميه ج ۲صـ ۲۲۶)

۶- علامه سمهودي رحمه الله فرمايي چې: د رسول الله ﷺ دبدن مبارک سره لږېدلې ځمکه اجماعاً دکعبې شريفې دعرش او دکرسۍ څخه بهتره ده (وفاء الوفاء صـ ۲۲، ج ۱)

۷- رسول الله ﷺ فرمايي چې: (مابين حجرتی ومصلائی روضة من رياض الجنة)

زما دحجرې او دمصلی په مابين کې دجنت دباغونو څخه يو باغ دی، په بل حديث کې راځي چې: (مابين قبری ومنبری روضة من رياض الجنة )زما دقبر او دمنبر په مابين کې يو باغ دی دباغونو دجنت څخه،

مولانا عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله فرمايي چې: دا په حقيقت باندې ورحمل دی ، لکه څرنګه چې حجراسود اومقام ابراهيم دجنت څخه راوړل شوی دي، همدارنګه دا ځمکه هم دجنت ځمکه ده او دقيامت په ورځ به دا ځمکه په فردوس کې داخليږي(جذب القلوب الی ديار المحبوب اردو ترجمه بنام تاريخ مدينه صـ ۱۷۴)

امام طحاوي رحمه الله فرمايي چې دا ځمکه ځکه دجنت دباغونو څخه يو باغ دی چې په دې ځمکه باندې نبي کريم ﷺ دير ګرزيدلی دی، نو په کوم ځای چې دنبی کريم ﷺ تلې ...رک لګيدلې دي چې دهغې په برکت هغه دجنت دباغونو څخه يو باغ شو نو په قبر مبارک کې چې نبي

کریم ﷺ خپله موجود دی هغه أعلی جنت د ی(منقول ازتسکین الأذکیاء صـ ۴۸۶، بحواله مشکل الاثار از امام طحاوي )

۸- کله چې د رسول الله ﷺ وفات نزدې شو نو داسې کلمات یې په ژبه راغلل چې: اللّٰهُمَّ الرفیق الأعلی ) ،مشکوة باب وفات النبی ﷺ ، صحیح البخاری، باب مرض النبی ﷺ)

رفیق اعلی کوم ځای دی؟ نو دحضرت أنس رضي الله عنه دحدیث مطابق رفیق اعلی درسول الله ﷺ د اوسیدلو ځای دی او د رسول الله ﷺ د اوسیدلو ځای جنت دی ، حضرت أنس رضي الله عنه فرمایي چې حضرت فاطمې رضی الله عنها وفرمایل چې: (یا ابتاه اجاب ربّاً دعاه ، یا ابتاه من جنة الفردوس مأواه) صحیح البخاری، باب مرض النبی ﷺ.

مأوی د اوسیدلو ځای ته وایي او د رسول الله ﷺ د اوسیدلو ځای روضه مبارکه ده ، لهذا رفیق اعلی روضه مبارکه شوه ، اودأعلی معنی ده دزیات شان والا،نو په کایناتو کې دروضې مبارکې په نسبت بل دزیات شان والا نشته ، رسول الله ﷺ د رفیق اعلی سوال د روح مع الجسد دواړو لپاره کړی وو ،نو دواړه رفیق اعلی ته ورسیدل، داسې نه ده چې د روح په باره کې قبوله شي هغه رفیق اعلی ته ورسیږي او جسد همدلته په عام ځای کې پاتې شي.

## دمماتیانو دانکار وجه

مماتیان دغې ځمکې ته دجنت باغ نه وایي کومې ته چې په حدیث کې دجنت باغ ویلی شوی دی او ددې وجه داده چې که دا ځمکه دجنت شي نو په جنت کې خو مړ انسان نه وي ، لهذا حیات الانبیاء ثابتیږي.

## دمماتیان وسوسې

۱-په مسجد نبوي ﷺ کې یو لمونځ په پنځوس زره چنده دی او په مسجد حرام کې په یو لک چنده دی ؟

**جواب:** مونږ دټول مسجد نبوي خبره نه کوو، ټول مسجدنبوي روضه نه ده ، زمونږ خبره په هغه ځمکه کې ده د کومې سره چې دنبي کریم ﷺ جسد اطهر مبارک لږیدلی دی.

۲–دکعبې شريفې او دعرش او دکرسۍ نسبت الله تعالی ته کېږي او د روضې مبارکې نسبت نبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته کېږي.

**جواب:** د روضې مبارکې خاورې دنبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دبدن مبارک سره لږېدلې دي ، نو دلته نسبت دتماس دی او په کعبه او په عرش او په کرسۍ کې داسې نسبت نشته، ځوک چې دالله تعالی په باره کې عقيده دتماس وساتي هغه کافر دی .

۳–دنبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بدن مبارک خو دکفن سره لږېدلی دی، دخاورو سره خو نه دی لږېدلی؟

**جواب:** دنبي کريم صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بدن اطهر مبارک دکفن سره لږېدلی دی، نو کفن مبارک دتمامو کايناتو څخه اعلی شو ،نو دکفن ځمکه ضرور دتمامو کايناتو څخه اعلی شوه ، همدارنګه چې کوم سړی په ځمکه باندې ناست وي ،نو هلته ځوک دانه شي ويلی چې دا سړی خوپه جامو باندې ناست دی په ځمکه باندې نه دی ناست ، ځکه چې جامې صرف واسطه ده اصل مقصود ځمکه ده .

وصلی الله تعالی علی خير خلقه محمد وآله وصحبه اجمعين

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوٰة والسلام على من لا نبی بعده

امابعد !

## داهل سنت والجماعت مسلک

۱-دشهید جسد ژوندی دی، دشهید روح په جنت کې وي او که دعرش لاندې وي او که په بل هر ځای کې وي ددې جسد عنصري دونیوي سره یې تعلق وي، لهذا دشهید جسد عنصري دونیوي ته مړ ویل او یا پرې دمړ ګمان کول ګناه کبیره ده .

۲-دشهید سره چې درزق کومه وعده شوې ده هغه رزق دده جسد عنصري ته ورکول کیږي ځکه چې روح مادي غذا ته ضرورت نه لري .

۳- دشهیدانو جسماني ژوند دانبیاوو په نسبت کمزوری دی .

## داهل بدعتو مماتیانو مسلک

دشهادت څخه وروسته دشهید د روح او دجسد په مابین کې هیڅ قسم تعلق نه پاتې کیږي، دشهید جسد عنصري بالکل مړ وي ، البته دشهید روح په بل جسد مثالي نوراني کې اچولی شي ، بیا ټول معاملات ، خوراک، څنباک، راحت او لذت همغه جسم مثالي ته حاصلیږي. (عقیدة الأمت صـ ۲۶۲، تحقیق حق صـ ۶، ندای حق صـ ۲۲۲)

**اول قراني دلیل:** قال الله تعالى: (وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ يُّقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌ ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ وَّ لٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ) په دې ایت کې الله تعالی فرمایي: چې تاسو شهیدانو ته مړه مه وایې بلکه دوئ ژوندي دي لکن تاسو ددوي په ژوند نه پوهیږي .

په بل ايت کريمه کې الله تعالى فرمايي: (وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللهِ اَمْوَاتًا ۚ بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ) يعنې دا په تصور کې هم مه راولئ چې شهيدان مړه دي، بلکې دوي ژوندي دي او د الله تعالى په نيز دوي ته رزق ورکولی شي نو نه به په خوله باندې ورته مړه وايې او نه به په تصور کې ورته مړه وايې.

دلته ددوو خبرو بيانول ضروري دي ۱-ددې ايتونو سياق په دې خبره باندې دلالت کوي چې دشهيدانو ژوند جسماني دی.

۲-جمهور مفسرين هم فرمايي چې دشهيدانو ژوند جسماني دی.

## دقرآن کريم سياق په حيات جسمانيه باندې دلالت کوي

ددې ايت کريمه په سياق کې ډېر داسې قرائن او شواهد دي دکوم څخه چې معلوميږي چې شهيدانو ته چې کوم ژوند حاصل دی هغه جسماني ژوند دی يو څو شواهد لاندې ولولئ:

۱-احياء جمع دحی ده او ددې حقيقي معنی جسماني ژوند دی، په عامو محاوراتو کې تر ټپنه خلک هغه ژوند مراد وي، کوم چې د روح او دجسد دتعلق په وجه دی (يعنې جسماني ژوند) لکه څرنګه چې علامه الوسي رحمه الله فرمايي: (فمذهب كثير من السلف انها حقيقية بالروح والجسد) (روح المعاني صـ۲۰ ج ۲)

۲-مفسرين فرمايي چې (احياء) خبر دی لپاره دمبتداء محذوفې تقدير دعبارت داسې دی چې (هم احياء) او ضمير د (هُم) راجع دی (من يقتل) ته يعنې (من يقتل احياءٌ) په چا باندې چې قتل وارد شوی دی همغه ژوندي دي او ظاهره دا ده چې قتل اصالةً په جسم باندې وارد شوی دی، د توري ګذار او دټوپک مرمۍ په جسم باندې لګېدلی ده ، نو ژوند به هم همدې جسم ته ثابت وي ، محمد امين صفدر رحمه الله فرمايي چې يُقتل دفعل مضارع صيغه ده او فعل په حدث باندې دلالت کوي، يعنې فعل په دې باندې دلالت کوي چې په شهيد باندې قتل واقع شو او بيا ختم شو ، داسې نه وه چې شهيد تر اوسه پور قتليږي او هميشه يې قتل روان دی او قتل شوی جسم عنصري دی ، نو دهمدې مقتول جسد په باره کې وروسته الله تعالى فرمايي چې : (بل أحياء) احياء خبر دی لپاره دمبتداء محذوفې يعنې (هم أحياءٌ) د هم ضمير (من يقتل) ته راجع دی او جمله اسميه په دوام دلالت کوي يعنې دقتل څخه وروسته زندګي دايمي ده.

۳-الله تعالی خلک منع کړل (چې شهيدانو ته مړه مه وايئ) او روح ته خو هيڅوک مړ نه وايي لهذا ددې نهی تعلق د روح سره نه دی ، بلکې د جسم سره دی، ځکه چې خلکو جسم ته مړ ويلو .

۴-په قران کريم کې ددې ژوند دبيانولو څخه وروسته الله فرمايي چې (وَّ لٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ) شعور ادراک بالحواس ته وايي او د لکن کلمه د استدراک لپاره راځي، يعنې د لکن څخه په مخکې کلام کې د توهم امکان وي ، نو د لکن څخه په وروستنۍ جمله باندې هغه توهم دفع کولی شی. نو د مخکېنۍ جملې (بَلْ اَحْيَآءٌ) څخه دا توهم پيدا شو چې د احيات به مدرک بالحس وي بالفعل، نو الله تعالی دا توهم په (وَّ لٰكِنْ لَّاتَشْعُرُوْنَ) باندې دفع کړو ، يعنې اګر چې دا حيات في نفسه قابل دی لپاره د ادراک بالحواس لکن د يو څه عوارضو او حکمتونو له وجې څخه يې تاسو بالفعل په حس باندې ادراک نهٔ شئ کولی . او ظاهره دا ده چې دا دراک بالحس قابل دغه جسماني حيات دی، روحاني حيات مدرک بالحس نه دی، بلکه مدرک بالعقل دی ، نو که روحاني حيات مراد وی الله تعالی به د (ولکن لاتشعرون) په ځای باندې (ولکن لاتعلمون) فرمايلی وی.

دشهيدانو ژوند دادراک بالحس قابل دی لکن بيا يې هم بالفعل ادراک نه کيږي ددې لپاره ډېر وجوه دي مثلا :

۱-دا حيات ددنيا د انتقال څخه وروسته په بل عالم يعنې په عالم برزخ کې دی او د يو عالم لپاره د بل عالم د حالاتو مشاهده مستبعده ده .

۲-دا وجه هم کېدای شي چې دشهيد د روح او دجسد په منځ کې تعلق شته دی لکن دا تعلق د اسې نه دی لکه ددونيوي زندګۍ په شان له دې وجې يې مونږ مشاهده نه شو کولی .

۳-همدارنګه دا وجه هم کېدلی شي چې د الله تعالی په نيز ايمان بالغيب معتبر دی ، نو که دشهيدانو ژوند مشاهد شي نو بيا به ايمان بالغيب پاتې نشي بلکه ايمان بالشهادة به تربنه جوړ شي، نو دبندګانو دمصلحت له وجې د خلکو دحس څخه پناه دی او کله يې چې الله تعالی ته په ښکاره کولو کې مصلحت معلوم وي هلته يې د خارق العادة په طريقه بعضې بندګانو ته ښکاره کړې هم دی ، محدثينو په دې باره کې ډېر واقعات ليکلي دي مثلا : (قد صح عن ثابت البناني التابعي انه قال اللّٰهُمَّ ان کنت اعطيت

احدا ان يصلي في قبره فاعطني ذالک فرئى بعد ذالک يصلي في قبره )شفاء السقام صـ ١٧٨) يو څو واقعات به وروسته ذکر کړو ان شاء الله تعالى .

## جمهور مفسرين هم فرمايي چې د شهيدانو ژوند جسماني دی

د مفسرينو تفصيلي حوالې خو د طوالت باعث ګرزيږي دلته به اجمالاً يو څو حوالې ذکر کړو، مشهور حنفي مفسر علامه سيد محمود الوسي رحمه الله د دې ايت په تفسير کې ليکي چې : واختلف في هذه الحالة فمذهب كثير من السلف انها حقيقية بالروح والجسد ولكنا لا ندركها في هذه النشأة. بيا د يو څو اقوالو د رانقلولو څخه وروسته ليکي چې : والمشهور ترجيح القول الاول. (روح المعاني ج ٢ صـ ٢٠) همداسې تحقيق په تفسير کبير ، تفسير مظهري ، او په معارف القران ،تفسير حقاني، وغيره تفاسيرو کې دی.

**فائده:** په مسلم شريف کې د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې د دې ايت په باره کې يې وفرمايل چې : (ارواحهم في جوف طير خضر لها قناديل معلقة بالعرش تسرح من الجنة حيث شائت ثم تأوى الى تلک القناديل ) مسلم ج ٢ صـ ١٣٥)

د دې حديث له وجې بعضې حضرات فرمايي: چې د قران کريم په دې اياتونو کې محض روحاني حيات ذکر شوی دی لکن دا سهو ده :

١-ځکه چې زمونږ دعوه دا وه چې شيهدانو ته الله تعالى جسماني حيات ورکړی دی، په داسې طريقه چې د شهيد د روح او د جسد په مابين کې قوي تعلق دی، بيا چې روح په هرځای کې وي د بدن سره يې تعلق نه کټ کيږي، نو د شهيدانو ارواح د مرغانو په شان په جهازونو کې چکرې وهي لکن د بدن سره يې تعلق شته او دا هم په ياد لرئ چې په دې حديث کې د شنو مرغانو ذکر په دې حيثيت سره نه دی چې دا به د شهيد لپاره باډی وي بلکه په دې حيثيت سره دی چې دا به د شهيد لپاره سورلی وي، لکه مونږ چې په جهاز يا په موټر کې کېنو نو جهاز او موټر زمونږ لپاره باډی نه وي بلکه سورلی وي .

٢-په دې حديث کې چې د شهيدانو لپاره کومه خبره ذکر شوې ده نو همدې ته ورته خبره په يو حديث کې د عامو مؤمنانو لپاره هم ذکر شوی ده ، لکه څرنګه چې په موطا امام مالک کې يو روايت دی

چې: (انما نسمة المؤمن طير يعلق في شجرة الجنة حتى يرجعه الله الى جسده يـوم يبعثـه (موطأ امام مالک صـ۲۲۱ جامع الجنائز)

نو ددې څخه معلومیږي چې دا اعزاز دشهیدانو پورې خاص نه دی، بلکه عـامو مؤمنانو تـه هم دا اعـزاز حاصـل دی، نـو داسې قسم حیات چې دشـهیدانو پـورې خـاص نـه دی نـو هلتـه بیـا دشـهیدانو د تخصیص څه فائده ده ؟

حافظ ابن کثیر دمؤطا امام مالک د روایت په باره کې فرمایي چې: (ففيه دلالة لعموم المـؤمنين ايضاً وان كان الشهداء قد خصوا بالذكر تشريفا لهم وتكريما وتعظيما ) تفسير ابن كثير ج ۱ صـ ۱۹۷)

نو دحدیث مقصد دهغه حیات بیان نه دی کوم چې د ایت دسیاق څخه رافهمیږي، یعنې د جسـماني حیات بیان نه دی، بلکه دهغه حیات بیان دی کوم چې دقران دظاهر څخه نه رافهمیږي، ګویا چې دشهید لپاره دوه قسمه حیات دی ، یو جسماني کوم چې دقران دسیاق څخـه رافهمیږي ، اوبـل روحاني : چې دا دشـهیدانو پـورې خـاص نـه دی ، یعنې شـهیدانو تـه دخپـل اعـزازي حیـات څخـه ماسـوی هغـه حیات هم مېلاویږي کوم چې الله تعالی عامو مؤمنانو ته ورکوي .

**اعتراض ۱-** په اولنی ایت کې (**ولکن لاتشعرون**) راغلی دی ددې څخه معلومیږي چې روح ژوندی دی جسم لره حیات نشته .

**جواب:** (تشعرون) دجمعې مذکرې حاضرې صیغه ده، یعنی ای مؤمنانو تاسو دهغوي په حیات باندې نه پوهیږئ (یشعرون) یعنی دجمعې مذکرې غائبې صیغه نه ده راغلې، کچیرته یشعرون راغلی وی نو بیا به ستاسو اعتراض او استدلال صحیح وو یعنی مطلب به داوو چې شهیدان په خپل حیات نه پوهیږي اودانسانانو شعور ته نه راتلل دې خبرې لره مستلزم نه دي چې هغه به ژوندي هم نه وي که نه دملایکو او دجناتو دحیات څخه به هم انکار کول لازم شي ، ځکه چې جنات او ملائک ژوندي دي لکن دهغوي حیات هم په ولکن لاتشعرون کې داخل دی، یعنی انسانان پرې نه پوهیږي او دشهیدانو ژوند دانسانانو په پوهه کې ځکه نه راځي، چې ددنیا هر څه فاني دي، حتی چې انسان او دده حواس هم فاني دي او دمرګ څخه وروسته حقیقي ژوند شروع کیږي نو په فاني حواسو سره دحقیقي ژوند ادراک او مشاهده نشي کیدلی.

**اعتراض ٢-** په دويم ايت کې لفظ دعند راغلی دی يعنی دالله تعالی سره په جنت کې ددوي روحونه ژوندي دي، جسم ته په قبر کې حيات نه دی حاصل؟

**اول جواب:** دا خو اتفاقي خبره ده چې په روح باندې مرګ نه راځي نو بيا ديته احياء ويل تحصيل دحاصل شو.

**دوهم جواب:**په قران کريم راځي چې ﴿اِنَّ الدِّيْنَ عِنْدَاللّٰهِ الْاِسْلَامُ﴾ دلته هم لفظ دعند راغلی دی نو دلته هم بيا انکار وکړئ او وايئ چې اسلام خو دالله سره دی مونږ ته دنيا ته نه دی راغلی.

**دريم جواب:**ايا تاسو الله تعالی ته حاضر او ناظر نه وايئ چې دعند ربهم تخصيص صرف دجنت سره کوئ؟ داهل سنت والجماعت عقيده خو داده چې رب په هر وخت کې په هر ځای کې حاضر او ناظر دی لهذا دا اعتراض لغوه او باطل دی

**څلورم جواب:** دعند ربهم تعلق د﴿احياءٌ﴾سره نه دی، بلکه د﴿يرزقون﴾سره دی، يعنې دالله له طرفه دوي ته رزق ملا ويږي.

**اعتراض ٣-** په احاديثو کې راځي چې دشهداوو ارواح دشنو مارغانو به ججورو کې کيښودل کيږي او په جنت کې سير کوي، نو مماتيان وايي چې دا مارغان ددوي دپاره جسد مثالي ګرځي، ددې څخه معلوميږي چې دا حيات صرف ارواحو او اجساد مثاليو لره دی، په قبر کې اجسادو عنصريه وو لره نه دی حاصل.

**اول جواب:** که دحديث هم دغه مطلب شي کوم چې مماتيان اخلي نو بيا دا حديث دقرآن ددې ايت لپاره ناسخ ګرځي، ځکه چې دا يت څخه صراحةً معلوميږي چې دشهيد جسم ته حيات حاصل دی، حالانکه دا حديث خبر واحدی دی او خبر واحد دقرآن د ايت دپاره ناسخ نشی ګرځيدلی.

**دوهم جواب:** ﴿لَقَدْ خَلَقْنَا الْاِنْسَانَ فِيْٓ اَحْسَنِ تَقْوِيْمٍ﴾څخه به هم مخالفت راشي، ځکه چې الله تعالی فرمايي چې مونږ انسان په ښکلي شکل او صورت سره پيدا کړی دی، اوس که ډير بد صورته انسان هم وي دځان لپاره دمارغه جسم نه خوښوي ، نو دا خوبه دشهيد توهين شي اعزاز او اکرام به نشی، چې دهغه څخه انساني جسم واخستلی شي او دمارغه جسم ورته ورکړی شي.

**دريم جواب:**دحديث څخه دمماتيانو جسم مثالي هم نه ثابتيږي ځکه چې دمماتيانو جسم مثالي دجسم عنصري په مثل دی.

**څلورم جواب:** دقرآن ددې ايت څخه معلوميږي چې دشهيد جسم ته حيات حاصل دی او دحديث څخه معلوميږي چې دشهيد روح ته هم حيات حاصل دی، نو مونږ دواړه منو، ديو څخه هم انکار نه کوو او مماتيان حديث په داسې طريقې سره مني چې په هغې سره دايت څخه انکار لازميږي.

**پنځم جواب:** که دمماتيانو والا مطلب ومنلی شي چې دشهيد روح دمارغه په شان په جسم مثالي کې أچولی شی نو دتناسخ والا عقيده به لازمه شي او دا دهندوانو عقيده ده.

**شپږم جواب:** دا حديث ددې ايت کريمه لپاره په دې طريقه تفسير دی چې دشهيد د روح دپاره دغه مارغه جسم مثالي نه دی، بلکه سورلی ده ورته شهيد په دغه مارغه باندې سورلی کوي او دخپل جسم سره کوم چې په قبر کې دی تعلق لري، لکه په دنياء کې چې انسان په جهاز يا په موټر کې سورلی کوي نو څوک دا نه وايي چې دا موټر يا جهاز دفلانکي سړی دپاره جسم مثالي دی، شيخ التفسير مولانا محمد ادريس کاندهلوي رَحِمَهُ اَللَّهُ ليکلي دي چې: (يه جسم طيوری اس روح کيلے بمنزله ايک طياره کی ہے جس کہ زريعے سے روح جنت ميں اڑھ کر سير وتفريح کرسکے اور يه روح اس نئے جسم ميں مدبر اور متصرف نہيں تا کہ تناسخ کاشبہ ہو اس لئے کہ تناسخ کے حقيقت يہ ہے کہ روح ايک جسم سے جدا ہونی کے بعد دوسری جسم سے اس طرح متعلق ہو کہ دوسری جسم ميں کوئی اور روح نہ ہو اور بھی روح اس جسم کی نشوونما کا سبب ہو اور بھی روح اس جسم ميں مدبر اور متصرف ہو اور ارواح شہدا ميں يہ بات نہيں اس ليے کہ جسم طيوری کيساتھ شہيد کی روح کا تعلق ہوا ہے اس جسم طيوری کے روح عليحدہ ہے اور شہيد کے روح علحدہ ہے اور جسم طيوری کے نشوونما اور تدبير وتصرف کا کوئی تعلق شہيد کی روح سے نہيں اس کا تعلق پرندہ کی اصل روح سے ہے پرندہ کا جسم اور روح علحدہ ہے اور شہيد کا روح علحدہ اور روح اسميں سوار ہے اور سبز پرندہ مع اپنے جسم اور اپنے روح کی شہيد کی روح کيلے سوری ہے خوب سمجھ لو (معارف القرآن ج اص- ۳۲۳)

**اعتراض ۴-** همدغه دشنو مارغانو والا په روايت کې راځي چې روح به الله تعالى ته وايي چې مونږ خپلو اجسادو ته واپس کړه نو ددې څخه خو معلوميږي چې دقيامت څخه مخکې د روح اعاده جسد ته نه کيږي.

اول جواب: دحديث الفاظ داسې دی: (قالوا يارب نريد أن ترد ارواحنا فى أجسادنا حتى نقتل فى سبيلک مرة اخرى)، نو دلته څرنګه وايي چې (ارواحنا)؟ يعنې روح څرنګه خپل ځان ته روح منسوبوي؟ معلوميږي دا چې دا سوال روح نه کوي، که دا سوال روح کولی نو ويلي به يې وو چې (ان تردنا) مونږ واپس

کړه خپلو جسدونو ته، نو دلته داعادې د روح څخه هغه اعاده مراد ده کومه چې په دنيا کې وه يعنې زمونږ روح جسد ته په داسې طريقه باندې واپس کړه چې روح په جسم کې تدبير او تصرف وکړي او بيا دا روح او جسد دنيا ته واپس کړه په دې باندې قرينه (حتى نقتل فى سبيلك مرّة أخرى) ده.

**اعتراض ۵-** امام بيضاوي رحمه الله ددې ايت لاندې ليکلي دي چې دشهداوو حيات روحاني دی جسماني نه دی.

**جواب:** امام بيضاوي رحمه الله دجسد دحيات نفی نه کوي، بلکه دا خبره ثابتوي چې دقبر زندګي ددنياء دزندګۍ پشان نه ده، چې جسم اصل او روح دهغې تابع وګرځي بلکه په عالم البرزخ کې روح اصل دی او جسد دهغې تابع دی: او په دې باندې دوه قرينې دي اول: امام بيضاوي رحمه الله د: ﴿يُثَبِّتُ اللَّهُ الَّذِينَ اٰمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ﴾ په تفسير کې دا حديث رانقل کړی دی چې (تعاد روحه فى جسده) يعنې دجسد عنصری حيات يې تسليم کړی دی.

**دوهم:** امام بيضاوي رحمه الله د (**كيف تكفرون الخ**) په تفسير کې فرمايي چې د (**ثم يحييكم**) څخه مراد دقبر حيات دی، عبارت داسې دی او (لسوالٍ فى القبور) يعنی ژوندی کولی شي لپاره دسوال په قبرونو کې امام بيضاوي رحمه الله د (رَبَّنَآ اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَ اَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ) په تفسير کې يو قول دا هم را نقل کړی دی چې ددويم حيات څخه مراد هغه حيات دی چې هغه ميت ته په قبر کې ورکولی شي.

**فايده:** امام بيضاوي رحمه الله ددې جملې په ذکر کولو سره دعالم برزخ دجزاء او دسزاء صحيح صورت ښايي، چې هلته جسد اصل نه وي، بلکه د روح تابع وي، په هغه ځای کې د راحت او دتکليف حالات اولا په جسم باندې نه وارديږي بلکه اولا په روح وارديږي بيا د روح په واسطې سره جسد ته دهغې اثر رسيږي، ګورئ په دنيا کې جسم اصل وي او روح دهغې تابع وي جسم ته راحت يا تکليف رسيږي او ددې په ذريعې سره روح دهغې احساس کوي اوس که څوک ووايي چې پوليسو زيد ته جسماني سزا ورکړه روحاني سزا يې نه ده ورکړې، ددې مطلب دادی چې چونکی جسم اصل دی او روح دهغې تابع دی جسم ته تکليف ورسيدلو بيا دجسم په زريعې سره روح ته ورسيدلو، نو لکه څرنګه چې پدې سره د روحاني سزا نفی نه لازميږي، نو همداسې که دقبر دزندګۍ په باره کې دچا قول راشي چې هغه روحاني زندګي

ده جسماني نه ده نو په دې سره د جسماني نفی نه لازمیږي، ځکه چې د قائل مقصد دادی چې هلته روح اصل دی او لا روح ته راحت او یا تکلیف ملاویږي بیا د دې په زریعې سره جسم ته د هغې اثرات رسیږي.

## دشهیدانو دجسماني ژوند ځخه دانکار نقصانونه

۱-دحیات جسماني ځخه منکرین د الله تعالی حکم نه مني، الله تعالی فرمایي چې مړه ورته مه وایئ او دوي ورته مړه وایي، او د الله تعالی په حکم باندې عمل نه کول ګناه کبیره ده.

۲-په خپل انکار باندې اصرار او ضد چې دا هم ګناه کبیره ده.

۳- الله تعالی فرمایي چې په خیال او په تصور کې هم مه راوله چې شهیدان مړه دي (ولاتحسبن الذین قتلوا) اومماتیان دا ګمان کوي، بلکې دګمان ځخه وړپورته کیږي او دمرګ عقیده یې ساتي، نوګمان ځانته ګناه شوه او عقیده یې ځان ته ګناه شوه.

۴-مماتیان دغې دګناه عقیدې ته ثواب وایي او ګناه ته ثواب ویل مستقله ګناه ده.

۵-ددې ګناه تبلیغ او اشاعت مستقله ګناه ده.

۶- ځوک چې ددوي په شان عقیده نه لري هغوي ته مشرک ویل مستقله ګناه ده.

۷- بیا دا ټول ګناهونه علی الاعلان کول دا هم ګناه ده.

۸- بیا په دې باندې فخر کول مستقله ګناه ده.

۹- بیا دا ټول ګناهونه ګناه نه ګڼل دا مستقله ګناه ده.

۱۰- بیا دې ګناهونو ته دتوحید او دسنت نوم ورکول هم ګناه ده (تلک عشرة کاملة) داشاعتي مماتیانو دژوندسره ځلیریشت ساعته دا ګناهونه په یوځای روان دي.

**دوهم دلیل:** حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځخه روایت کوي چې: کله چې خلک د حساب او دکتاب لپاره راجمع شي، نو بعضې خلک به په داسې حال کې راشي چې پخپلو غاړو کې به یې توري اچولې وي او وینې به ترینه روانې وي، دوي به دجنت ددروازې سره راټول شي پوښتنه به وشي چې دا ځوک دي (چې بې حسابه جنت ته لاړل) خلک به ووایي چې دا شهیدان دي کوم چې (کانوا احیاءً مرزوقین) ژوندي وو او رزق ورته ورکول کیدلو.(رواه الطبرانی) منقول از آپ کی مسایل اور ان کا حل ج ۸ ص- ۲۵۳)

دکوم جسم څخه چې وينې روانې وي دهغه په باره کې رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا ژوندي دي او رزق ورته ورکول کيږي.

**دريم دليل:** کله چې رسول الله ﷺ دأحد څخه را واپس شو نو دحضرت مصعب بن عمير رضي الله عنه او دده دملګرو قبرونو ته ودريدلو او بيا يې ورته وفرمايل چې زه دا شاهدي ورکوم چې تاسو دالله تعالى په نيز ژوندي يئ، (بيا يې صحابه وو ته وفرمايل) چې تاسو دشهيدانو زيارت کوئ او شهيدانو ته سلام کوئ زما دې په هغه ذات باندې قسم وي چې زما روح دهغه په قبضه کې دی چې ترقيامته پورې چې هرڅوک دوئ ته سلام کوي نو دوي ضرور جواب ورکوي (حاکم، بيهقي، طبراني، شرح الصدور صـ۲۰۳).

رسول الله ﷺ په قبرونو باندې تير شوی دی او په قبرونو کې اجسام وي، نو د رسول الله ﷺ دا ارشاد داجسادو په باره کې شو.

**څلورم دليل:** حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه فرمايي چې: **لَمَّا أَرَادَ مُعَاوِيَةُ ﷺ أَنْ يُجْرِيَ الْكِظَامَةَ قَالَ: مَنْ كَانَ لَهُ قَتِيلٌ فَلْيَأْتِ قَتِيلَهُ - يَعْنِي قَتْلَى أُحُدٍ - قَالَ: فَأَخْرَجَهُمْ رِطَابًا يَتَثَنَّوْنَ قَالَ: «فَأَصَابَتِ الْمِسْحَاةُ رِجْلَ رَجُلٍ مِنْهُمْ فَانْفَطَرَتْ دَمًا» فَقَالَ أَبُوسَعِيدٍ ﷺ: «لَا يُنْكِرُ بَعْدَ هٰذَا مُنْكِرٌ أَبَدًا» (مصنف عبدالرزاق ج۳۳ صـ۵۴۸، تفسير مظهري ج۲ صـ۱۷۰، حيات الصحابه ج۳ صـ۸۵۲)**

کله چې حضرت امير معاويه رضي الله عنه اراده وکړه چې دأحد دغر په غاړه نهر تير کړي، نو اعلان يې وکړو چې په دغه ځای کې چې دچا شهيدان ښخ وي هغه دې وباسي، نو خلکو شهيدان را وويستل، دهغوي بدنونه نرم او تر او تازه وو، دشهيدانو د راويستلو په وخت کې ګينتۍ (کولنګ) ديو شهيد (حمزه رضي الله عنه) په پښه باندې ولګيدلو، نو وينې ترينه روانې شوې، ابو سعيد فرمايي چې ددې څخه وروسته هيڅوک ددې (حيات القبر) څخه انکار نه کوي.

ددې روايت څخه حيات جسماني دشهيدانو ثابت شو، ځکه چې اثار دژوند په همدې اجسادو عنصريه وو کې وو.

**پنځم دليل:** حضرت عمرو بن الجموح رضي الله عنه او حضرت عُبدالله بن عمرو الانصاري السلمي رضي الله عنه دأحد په جنګ کې شيهدان شوي وو، دواړه په يو قبر کې دخوړ په غاړه ښخ کړی شوي وو، نو داوبو

له ويرې خلكو اراده وكړه چې را وېباسي او په بل ځاى كې يې ښخ كړي ، وروسته د روايت الفاظ داسې دي چې: فَوُجِدَا لَمْ يَتَغَيَّرَا، كَأَنَّمَا مَاتَا بِالْأَمْسِ. وَكَانَ أَحَدُهُمَا قَدْ جُرِحَ، فَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى جُرْحِهِ، فَدُفِنَ وَهُوَ كَذَلِكَ، فَأُمِيطَتْ يَدُهُ عَنْ جُرْحِهِ، ثُمَّ أُرْسِلَتْ، فَرَجَعَتْ كَمَا كَانَتْ. وَكَانَ بَيْنَ أُحُدٍ، وَبَيْنَ يَوْمَ حُفِرَ عَنْهُمَا، سِتٌّ وَأَرْبَعُونَ سَنَةً

(موطأ امام مالك صـ ۴۸۲، حيات الصحابه ج ۳ صـ ۸۵۰، قبركى زندكى صـ ۲۷۸)

كله يې چې دا دواړه را وويستل، نو بالكل تغير پكې نه وو راغلى، داسې ښكاريدل لكه پرون چې شهيدان شوي وي ، په دې دواړو شهيدانو كې يو پخپل زخم باندې لاس ايښى وو ، خلكو دده لاس د زخم څخه لرې كړو ، لكن شهيد بيرته لاس پخپل زخم كيښودلو ، ددوي دشهادت او د راسپړلو په مابين كې څلويښت كاله تير شوي وو ، پدې روايت كې هم په جسد عنصري كې دژوند اثار و ذكر شوي دي .

**شپږم دليل:** دامام بخاري رحمه الله استاد ابن ابى شيبه رحمه الله دحضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه يو واقعه رانقل كړى ده چې: عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ رضي الله عنه، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ كَانَ يَرْجِعُ مِنْ ضَيْعَتِهِ فَيَمُرُّ بِقُبُورِ الشُّهَدَاءِ فَيَقُولُ: «السَّلَامُ عَلَيْكُمْ، وَإِنَّا بِكُمْ لَلَاحِقُونَ» ثُمَّ يَقُولُ لِأَصْحَابِهِ: «أَلَا تُسَلِّمُونَ عَلَى الشُّهَدَاءِ فَيَرُدُّونَ عَلَيْكُمْ

(مصنف ابن ابى شيبه، كتاب الجنائز، باب ماذكر على التسليم على القبور)

كله به چې حضرت سعد رضي الله عنه دخپلې زمكې څخه را واپس شوا ودشهيدانو په قبرونو باندې به تيريدلو ، نو السلام عليكم به يې ورته ويل او بيا به يې خپلو ملگروته ويل چې تاسو ولې په شهيدانو باندې سلام نه اچوئ چې هغوئ درته جواب دركړي ، ددې څخه معلومه شوه چې دحضرت سعد رضي الله عنه نظريه دا وه چې شهيدان د ژوند يو سلام اوري او جواب هم وركوي، حضرت سعد رضي الله عنه جليل القدر صحابي دى او دعشره مبشره وو څخه دى .

## حيات الشهداء دواقعاتو په رڼا كې

۱-ابن منذر رحمه الله دحضرت طلحه بن عبيد الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه روايت كړى دى چې حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې زه دخپلو مالونو دكتلو لپاره د (غابه) مقام ته لاړم، دشپې زه دحضرت عبد الله بن عمرو بن حرام رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ دقبر په خوا كې څملاستم ، دقبر څخه مې په داسې خوږ اواز باندې تلاوت واوريدلو چې ددې څخه مخكې مې په داسې خوږ اواز باندې نه وو اوريدلى ، بيا مې دا واقعه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ذكر كړه، رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې: ايا تاته معلومه نده چې دا قاري

عبدالله شهيد دی؟ الله تعالی ددوي روحونه قبض کړل او دعرش لاندې يې په قنديلونو کې کېښودل دشپې دا ارواح داجسادو طرفته راواپس کيږي او د ورځې بيرته هغو قنديلونو ته ځي (مظهري ج ۲ص ۱۷۰)

پدې حديث کې راغله چې دشپې ورته روحونه رامعاد کيږي نو دشپې خو ژوندي شول او د ورځې چې دقنديلونو طرفته ځي نو بيا يې هم تعلق باقي وي، دلته تلاوت دجسد عنصري څخه اوريدل شوی دی، لهذا دشهيد جسد عنصري ژوندی شو.

۲- دحافظ ضامن شهيد رحمه الله مزار ته يو صاحب الكشف ورغلو او فاتحه يې ورته ولوستله کله چې دفاتحې دلوستلو څخه فارغ شو، نو وې فرمايل چې دا څوک دی؟ کله چې ما فاتحه لوستله نو ماته يې (په خوش طبعی) کې وفرمايل چې لاړ شه په مړو باندې فاتحه ولوله، ته خو په ژونديو باندې فاتحه لولې، بيا خلکو ورته وويل چې دا حافظ ضامن شهيد دی (ارواح ثلاثه ص ۱۷۰)

۴- په څلورم کال دهجرت باندې دبير معونه په واقعه کې اويا صحابه کرام شهيدان شو، پدې صحابه وو کې عامربن فهيره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هم وو، عامر بن فهيره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مخکې دابو بکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ غلام وو، دهجرت په ورځو کې به يې نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته غار ثور ته شودې ور رسولې، کله چې دا شهيد شو نو الله تعالی دده جسد اسمان ته پورته کړو، دده قاتل جبار بن سلمی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دهمدې حالت دليدلو څخه وروسته مسلمان شو. (صحيح بخاري ج ۲ص ۵۸۷، حيات الصحابه ج ۳ص ۸۵۳)

که جسد عنصري ژوندی نه وی او نعمتونه ورته نه ورکول کيدلی نو بيا يې دڅه لپاره اسمان ته پورته کولو؟

۵-مداين چې نن سبا په قصبه سلمان باندې شهرت لري، دبغداد څخه څلويښت ميله لرې ده، دلته يوه لويه مقبره ده، چې په هغه کې دسلمان فارسي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او دحضرت حذيفة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او دحضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قبرونه هم دي، مخکې دحضرت حذيفه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ او دحضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قبرونه د دجلې په غاړه باندې وو په سنـ (۱۹۳۲ع) کې حضرت حذيفة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دوه شپې شاه فيصل ته په خوب کې وفرمايل چې زما قبر ته اوبه راغلې دي او دحضرت جابر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په قبر کې نم شروع شوی دی، لهذا زمونږ جسدونه ددې ځای څخه وباسه! بادشاه غفلت کولو، په دريمه شپه مفتي اعظم نور السعيد

ته په خوب کې ورغلو اودبادشاه دغفلت ذکر یې هم ورته وکړو، مفتي اعظم دځان سره وزیر اعظم ملکري کړو، او شاه فیصل ته ورغله، شاه فیصل وویل چې رشیتا هم ماته په خوب کې راغلی وو، لکن ته ماته فتوی راکړه چې زه یې راوباسم، مفتی اعظم فتوی ورکړه، دا خبره په اخبارو نو کې راغله، دحجاز ،مصر، لبنان، فلسطین، ترکیه، افریقا، روس، هند، افغانستان وغیره خلک خبر شول، بل طرفته دحج ورځې وې، حاجیانو اودبهر ملکونو خلکو تقاضی وکړه چې دا ختر څخه وروسته یې را ووباسئ او د اوبولپاره عارضي یو څخه انتظام وکړي، همداسې وشول، مقرر تاریخ ته دټولې دنیا خلک راغلل، په لکونو انسانان راجمع شول، دشیشو دوه تابوتونه راوړل شول، ددې دواړو صحابه وو رضی الله عنهما قبرونه راوسپړل شول، یقیناً دحضرت حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قبر ته اوبه ورغلې وې او دحضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په قبر کې نم وو، بیا دومره انسانانو ته لیدل مشکل وو نو دجرمن یوې کمپنۍ د یو غټ ټیلی ویژن انتظام وکړو چې سل فټه جیګ وو، څلورو طرفونو ته یې سکرین ولګولو، بیا یې په نورو ځایونو کې هم سکرینونه ولګول چې هرسړی یې په خپل خپل ځای کې وګوري، ټولو خلکو هرڅه پخپلو سترګو ولیدل، دصحابوو کفن بالکل روغ وو او بدنونه یې داسې ښکاریدل لکه همدا اوس چې وفات شوي وي، سترګې یې خلاصې وې او چمک یې وهلو، کله یې چې ددوي تابتونه دسلمان فارسي دقبر په خواکې کیښودل نو حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دسورة انبیاء ددې ایتونو تلاوت شروع کړو چې: ﴿إِنَّ الَّذِينَ سَبَقَتْ لَهُمْ مِنَّا الْحُسْنَى﴾ډیرښکلی او چت اواز یې وو، دخلکو دصبر کاسې هم ډکې شوې او ژړاګانې شروع شوې، یوه رکوع تلاوت یې وکړو او بیا چپ شو، بیا دحضرت سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دقبر په خواکې ښخ کړل شوه.(منقول ازماهنامه تعلیم القران راولپنډی اګست (۱۹۶۴ع)، رحمت کاینات ص ۷۳)

**لطیفه:** حجة الله فی الارض محمد أمین صفدر او کاړوي رحمه الله فرمایي چې زما د یونس نعماني مماتي سره مناظره وه.

**محمد أمین صفدر رحمه الله:** مهرباني وکړه دموت معنی بیان کړه.

**یونس نعماني:** موت ذیته وایي چې دجسم عنصري څخه روح ووزي او ددې جسم سره یې تعلق ختم شي.

**محمد امین صفدر:** اوس چې تاسو انبیاوو او شهیدانو ته کوم حیات ثابتوئ دهغې معنی هم بیان کړه.

**یونس نعماني:** دانبیاوو او دشهیدانو دحیات معنی داده چې ددوي ارواح په اجسام مثالیه وو او په شنو مرغانو کې اچولی شي او ددې جسم عنصري سره یې هیڅ تعلق نه پاتې کیږي.

**محمد امین صفدر:** دا خو دموت معنی شوه، موت هم همدیته وویل شو چې دجسد عنصري سره د روح تعلق ختم شي او ستا په نیز چې کوم حیات شو په هغې کې هم دروح او دجسد عنصري تعلق ختم شو.

**یونس نعماني:** دحیات یوه معنی دموت دمعنی په شان ده.

**محمد امین صفدر:** ددې خو صفا دا مطلب راووتلو چې مماتیان انبیاوو او شهیدانو ته په لفظ کې مړه نه وایي، لکن دموت په معنی باندې یې متصف بولي چې دروح او دجسد عنصري عدم تعلق دی.

کله چې مماتیانو خپل شکست ولیدلو نو شور یې شروع کړو چې نا وخته دی، تیاره شوه، مناظره ختمه کړئ (تسکین الأذکیاء ص ۷۴)

## دمماتیانو دلیل

۱-مماتیان هغه اقوال رانقلوي چې په هغې کې دحیات روحاني ذکر دی اویا د روح دتنعیم او دتعذیب ذکر دی.

جواب: دحیات روحاني په ذکر کولو سره دحیات جسماني نفې نه راځي، لکه دحیات جسماني په ذکر کولو سره چې دحیات روحاني نفې نه راځي، په عالم الدنیا کې اصل جسد عنصري دی او روح تابع دی، نو خلک جسد ذکر کوي، لکن د روح نفې نه کوي، مثلا خلک وایي چې بدن مې خوږیږي، سر مې درد کوي، ددې معنی دا نده چې روح ته هیڅ تکلیف نشته، نو همدارنګه په عالم البرزخ کې روح اصل دی او جسد عنصري یې تابع دی، نو دعالم البرزخ په اعتبار سره چې کله روح ذکر شي، نو دجسد نفې ورسره نه راځي.

۲-مماتیان هغه احادیث رانقلوي چې په هغوي کې دا ذکر شوي دي چې دشهیدانو روحونه په شنو مرغانو کې وي او په جنتونو کې ګرځي، (مسلم ج ۲ص ۱۳۵، ترمذي، ج ۲ص ۱۲۶، ابوداؤد ج ۱ص ۳۴۸، موطأ امام مالک ص ۲۲۱، نسائي ج ۱ص ۲۲۵)

**جواب:** مخکې ذکر شو چې د روح په ذکر کولو سره دجسد نفې نه راځي، په دې حدیثونو کې د روح سره جسد ضمناً ذکر شوی دی، ځکه چې په دې حدیثونو کې خوراک او څښاک هم ذکر شوی دی او خوراک او څښاک دجسم صفت دی، یوازې روح خوراک او څښاک ته ضرورت نه لري، لکه په عالم

النوم کې چې د روح سره په هرڅه کې جسم شريک وي اګر چې جسم په کټ کې پروت وي ، نو همدا رنګه په دې احاديثو کې چې د مرغانو ذکر شوی دی نو دا مرغان د روح لپاره سورلۍ ده لکه د جهاز په شان او د روح سره جسم په هرڅه کې شريک دی او په روح باندې چې کوم حالات راځي جسم ورځخه متأثره کيږي.

۳-: بعضې صوفيا کرام خو جسم مثالي مني ؟

**جواب۱-:** په دې باره کې علامه شبير احمد عثماني رحمه الله په تفسير عثماني کې چې په تفسير کابلي باندې مشهور دی د ﴿ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الرُّوْحِ ﴾لاندې ډېر بحث کړی دی .

خلاصه يې داده چې په قرآن او په حديث کې نه د جسم مثالي اثبات شته او نه نفي، البته صوفياء کرامو دا په کشف کې ليدلی دی ، دا جسم مثالي د روح لپاره يوه لفافه ده او د دې شکل او صورت بالکل د اصلي جسم په شان دی، روح په دې لفافه کې سير او حرکت کوي، همدا جسم مثالي دی او دا لفافه يوائې د روح لپاره د وفات ځخه وروسته نه وي بلکه په دنيا کې هم د خوب په حالت کې وي، کله چې سړی اوده شي نو روح يې په دې لفافه کې سير کوي ، لکن لکه څرنګه يې چې د خوب په حالت کې د دې جسد عنصري سره تعلق نه کټ کيږي نو همدا رنګه يې د وفات ځخه وروسته هم د دې جسد عنصري سره تعلق نه کټ کيږي، همدا رنګه صوفياء کرامو چې په خپلو کشفونو کې د جسم مثالي لپاره ثواب او عذاب ليدلی دی نو هلته يې هم معنی دا نه ده چې صرف په همدې لفافه کې روح ته ثواب او عذاب وي او د جسد عنصري سره يې هيڅ تعلق نشته، بلکه معنی يې دا ده چې په ثواب او په عذاب کې روح اصل او جسد عنصري يې تابع دی، نو د دوي اوليت مراد دی .

**۲-جواب:** علماء فرمايي چې جسد مثالي د نوي مادې ځخه بل کوم نوې جوړ شوی مخلوق نه دی بلکې جسد مثالي همدا جسد عنصري دی کوم چې په قبر کې پروت دی ، لکن کله چې د روح سره په عمل کې مصروف وي ،نو په دې اعتبار ورته جسم مثالي وايي، علماء فرمايي چې جسد مثالي عين جسد عنصري دونيوي دی صرف اعتباري فرق پکې دی او هغه دا چې همدغه دونيوي جسد د قبر په اعتبار سره عنصري دی او د جنت په اعتبار سره مثالي دی ، لکه په عالم النوم کې جسد په کټ کې پروت وي او بل طرف ته د روح سره په سير او په حرکت مصروف وي ، نو بغضې علماء د کټ په اعتبار ورته عنصري وايي او د روح سره د سير او د حرکت په اعتبار ورته مثالي او خيالي وايي او په دې کې شک نشته چې د روح سره همدا عنصري جسد په

سير او په حرکت کې مصروف دی، او همدا عنصري جسد متأثره کيږي، نو نومونه يې بدل دي يو عنصري او بل مثالي او ذات يو دی، همدا رنګه د معراج په شپه ټولو پيغمبرانو د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اقتداء کې لمونځ وکړو، نو هغه مونځ د همدې اجسادو عنصريه وو سره وو، نو يو طرفته اجساد عنصريه په قبرونو کې پراته وو او بل طرفته د ارواحو سره يو ځای بيت المقدس ته راغلي وو او د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې يې مونځ کولو، نو بعضي علماوو د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې د مونځ کونکو اجسادو عنصريه وو ځخه په اجسادو مثاليه وو تعبير کړی دی، حالانکې دا بعينه همغه د قبر والا اجساد عنصريه وو، صرف نوم يې ورته بدل کړو، خلاصه دا چې جسد مثالي بعينه همدا جسد عنصري دی، لکن کله چې د روح سره په عمل کې مصروف دی، نو پدې اعتبار ورته مثالي وويلی شو.

فانقيل: چې شهيد جنت ته داخلولی شي الله تعالی د يو شهيد په باره کې فرمايي چې قيل ادخل الجنة؟

قلنا: (۱) علامه قرطبي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې: وقال جماعة: معنى (قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ) وجبت لک الجنة فهو خبر بأنه قد استحق دخول الجنة: لان دخولها يستحق بعدالبعث، الجامع لاحكام القران، تفسير القرطبي، سورة يس تحت هذه الاية)

(۲) الله تعالی شهيد ته په قبر کې جنت پيش کوي، (صحيح البخاري، كتاب الجنائز، باب الميت يعرف عليه مقعده بالغداة والعشى ج ١ص ــ ١٨٤) (۳-) د شهيد روح جنت ته ځي او د جسد سره يې تعلق وی (۴) دلته ماضی په معنی د مضارع ده لکه: (وَنُفِخَ فِي الصُّورِ)

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

الحمد لله وحده، والصلوة والسلام على من لانبى بعده

امابعد!

## داهل سنت والجماعت مسلک

داولیاوو کوم کرامتونه چې یقیني ثابت دي دهغوي څخه منکر کافر دی، لکه داصحابِ کهفو کرامت، دبي بي مريمې کرامت، دسليمان ديو أمتي (عفريت) كرامت وغيره او كوم كرامتونه چې په ادله وو ظنيه وو ثابت دي، دهغوي څخه منكر ضال او مضل ، مبتدع دی او لمونځ كول وريسې مكروه تحريمي دی.

## داهل بدعتو مسلک

کرامت بعد الوفات نه دی ثابت (تحقيق حق ص ۷)

## د أهل سنت والجماعت دلايل

دوفات څخه مخکې کرامتونه ، خو په قرآن او په حدیث کې ډیر زیات راغلي دي.

۱- دحضرت مريم رضى الله عنها كرامت چې بې موسمه ميوې به ورته راتلې.

۲- داصحاب الكهفو كرامت.

۳- دعفريت كرامت.

۴- حضرت خبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته بې موسمه ميوې راتلل (صحيح البخارى ، باب غزوة سيف البحر ص ۶۲۵)

۵- دابو بكر صديق رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په خوراک کې برکت.

۶- دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رود نيل ته خط ليږل.

۷- دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دحضرت ساريه رضی الله عنه کرامت چې ډير لرې يې اواز واوريدلو چې يا سارية الجبل.

مونږ به دلته دکرامت بعد الوفات يو څو دلايل بيان کړو.

۱- عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ: «لَمَّا مَاتَ النَّجَاشِيُّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كُنَّا نَتَحَدَّثُ أَنَّهُ لَا يَزَالُ يُرٰى عَلٰى قَبْرِهٖ نُوْرٌ (ابوداؤد ج ۱ صـ ۳۴۹)

کله چې دحبشو بادشاه نجاشي وفات شو نو مونږ به دا خبرې کولې چې دنجاشي په قبر انوار ليدل کيږي، امام ابو داود رحمه الله دلته باب لګولی دی په نوم د (باب في النور يرى عند قبر الشهيد)

۲- دحضرت حنظله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دشهادت څخه وروسته ورته ملايکو غسل ورکړو، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: (ان صاحبكم يعنی حنظله لتغسله الملائكة) حياة الصحابه ج ۳ صـ ۸۷٤، الاصابه ج ۱ صـ ۳٦۱)

۳- دحضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پلار دأحد په جنګ کې شهيد شوی وو، مشرکينو دشهيد مثله کړې وه، صحابه کرامو رضی الله عنهم دده جسد پټ کړی وو، حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به بيا بيا دده دمخ څخه څادر لرې کولو، بل طرفته دحضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ترور ژړل، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دژړا څخه منع کړه او ورته يې فرمايل چې: (فما زالت الملائكة تظله باجنحتها) ملايکو هميشه پخپلو وزرو باندې په ده سورې جوړ کړی دی (صحيح بخاری ج ۱ صـ ۱٦٦، صـ ۱۷۲)

۴- حضرت عاصم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رجيع په غزوه کې شهيد شو ده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دبدر په جنګ کې دکافرانو يو سردار وژلی وو دهغه سردار دمور نوم سلافه وو، سلافه نذر منلی وو چې زه به دعاصم په کوپړۍ کې شراب څښم، او دحضرت عاصم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سر باندې يې انعام ترلی وو، حضرت عاصم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددې نذر څخه خبر وو، نو دشهادت په وخت کې يې دعا وکړه چې يا الله تعالی زما دسر حفاظت وکړه، نو دشهادت څخه وروسته بعضي لالچيان راغلل چې دحضرت عاصم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سر غوڅ کړي، لکن الله تعالی دده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دسر دحفاظت لپاره دشهدو مچۍ مقررې کړې، خلکو اراده وکړه چې دشپې راشي او سر ترينه کټ کړي، لکن دشپې شديد باران راغلو او دحضرت عاصم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جسد مبارک يې ويوړو، (حيات الصحابه ج ۳ صـ ۸۵۷)

دلته دوه کرامتونه راغلل، اول : د ورځې دشهدو دموچیو پیره، دوهم: دشپې دسیلاب راتلل او دحضرت عاصم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دجسد مبارک پناه کول.

**لطیفه:** دافغانستان داشاعتي مماتیانو مشر یوه ورځ دتفسیر په درس کې داسې گستاخي کوله چې: که دموچیو راتلل دحضرت عاصم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کرامت وي نو بیا ولې سیلاب دده بدن لوغړولو؟.

۵- دحضرت عامربن فهیره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دشهادت څخه وروسته دده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جسد اسمان طرفته او چت کړلی شو (صحیح البخاری ج ۲صـ ۵۸۷)

۶-دشهادت څخه وروسته دحضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دقبر دخاورو څخه خوشبویې تلله د روایت الفاظ داسې دي چې: **قبض انسان من تراب قبر سعد** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **ففتحها فاذا هی مسك، وقال رسول الله** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **سبحان الله، سبحان الله، حتی عرف، ذلك فی وجهه (حیاة الصحابة ج ۳صـ ۸۵۲)**

۷-ابن منذر رحمه الله دحضرت طلحه بن عبیدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت کړی دی چې حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې زه دخپلو مالونو دکتلو لپاره د (غابه) مقام ته لاړم، دشپې زه دحضرت عبدالله بن عمرو بن حرام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دقبر په خواکې څملاستم، دقبر څخه مې په داسې خوږ اواز باندې تلاوت واوریدلو چې ددې څخه مخکې مې په داسې خوږ اواز باندې نه وو اوریدلی ، بیا مې دا واقعه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ذکر کړه، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې: ایا تاته معلومه نده چې دا قاري عبدالله شهید دی؟ الله تعالی ددوي روحونه قبض کړل او دعرش لاندې په قندیلونو کې یې کیښودل، دشپې دا ارواح داجسادو طرفته راواپس کیږي او د ورځې بیرته هغو قندیلونو ته ځي (مظهری ج ۲صـ ۱۷۰)

۸-حضرت ربیع بن حراشي رحمه الله چې کله وفات شو ،نو دده ورور ربعي رحمه الله فرمایي چې دوفات څخه وروسته یې دخپل مخ څخه څادر لرې کړو او وې فرمایل چې : السلام علیکم ، ربعي رحمه الله ورته وفرمایل چې وعلیک السلام ، سبحان الله ، دوفات څخه وروسته خبرې ؟ ربیع رحمه الله ورته فرمایي چې زه دخپل رب سره ملاقي شوم، زما رب زما سره په خوشحالی باندې ملاقات وکړو، (طبقات ابن سعد ج ۶صـ ۱۵۰)

۹-حضرت ابو سعید خزار رحمه الله فرمایي چې زه په مکه مکرمه کې ووم یوه ورځ دباب بنی شیبه څخه تیریدم نو دیو ډیر ښکلي نوجوان جسد مې ولیدلو ، کله چې زه ورته ځیر شوم،نو راته یې وخندل او وې وفرمایل چې ابوسعید ه ! ته نه یې خبر چې عاشقان نه مره کیږي (فضایل حج از مولانا زکریا صـ ۲۵۶)

۱۰-عن جبير قال أما والله الذى لا اله الاالله لقد ادخلت ثابتا البنانى فى لحده ومعى حميد الطويل فلما سوينا عليه اللبن ،سقطت لبنة فاذا هو فى قبره يصلى وكان يقول فى دعائه اللّٰهُمَّ ان كنت اعطيت احدا من خلقک الصلوة فى قبره فاعطنيها فما كان الله ليرد دعائه (اخرجه ابو نعيم فى الحلية ، شوق وطن از مولانا اشرف على تهانوي رحمه الله صـ ۲۳) شفاء السقام صـ ۱۷۸)

دحضرت جبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی هغه په الله وحده لاشريک له قسم خوري چې ما ثابت بناني په لحد کې کيښودلو او زما سره حميد طويل هم وو، کله چې مونږ په هغه باندې خامې خښتې کيښودلې نو يوه خښته وغورځيدله ، ما وکتل چې هغوي په خپل قبر کې لمونځ کوي، او په خپله دعا کې يې ويل چې ای الله تعالی که په قبر کې تا چاته دلمونځ کول ورپه نصيب کړی وي ، نو ما ته يې هم په نصيب کړه ، نو الله تعالی دهغه دعا رد نه کړه ، (بلکې لکه څرنګه چې يې موسی عليه السلام ته دا دولت ورکړی وو) همدا شان يې هغوي ته هم په نصيب کړو.

۱۱-عن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال ان بعض أصحاب النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جلس على قبر وهو لا يحسب أنه قبر فاذا فيه انسان يقرأ سورة الملک حتى ختمها فاتى النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فاخبره فقال له رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هى المانعة وهى المنجية تنجيه من عذاب القبر (شوق وطن صـ ۲۳)

دحضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څو صحابه کرام په قبر ناست وو او هغوي ته دا معلومه نه وه چې دا قبر دی ، ګوري چې په هغې کې دننه يو کس دی چې سورة ملک وايي تر دې چې هغه يې پوره ختم کړو ، هغوي راغلل او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې خبر ورکړو نو هغوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دا سورت دعذاب څخه ژغورونکی او بچ کونکی دی چې مړی دقبر له عذاب څخه ساتي.

## دقبر له دننه څخه دسبحان الله اواز

۱۲- علامه سيوطي رَحِمَهُ اللهُ درساله قشيريه په حواله باندې يوه واقعه رانقلوي فرمايي چې: يو کفن کش ديوې ښځې جنازه وکړه بيا دشپې ورغلو چې دښځې څخه کفن وباسي، د قبر څخه ورته ښځې وويل چې سبحان الله يو بښل شوی د بل بښل شوي څخه کفن وباسي؟ کفن کش ورته وويل چې صحيح ده ته خو به الله تعالی بښلې يې لکن زه يې څرنګه بښلی يم؟ هغه ښځې ورته وويل چې الله تعالی چې زه وبښلم نو زما په جنازه کې چې چا شرکت کړی وو هغه ټول يې هم وبښل، له دې وجې يې ته هم وبښلې،

دي ځخه وروسته هغه سړي کفن کشي پرېښودله (شرح الصدور ص۲۰۸) باب زیارة القبور وعلم الموتی بزوارهم)

## دحضرت زید بن خارجه رضی الله عنه کرامت، له مرګ څخه وروسته خبرې

۱۳-حضرت زید بن خارجه یو جلیل القدر صحابي وو او دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دخلافت په وخت کې وفات شو ، حضرت نعمان بن بشیر رحمه الله فرمايي چې کله چې دهغوي رضی الله عنه جنازه تیاره شوه او دجنازې دلمونځ لپاره دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انتظار شروع شو ، نو ما اراده وکړه چې په دومره وخت کې یو دوه رکعته لمونځ وکړم، نورو خلکو په خپل منځ کې خبرې کولې چې په دې کې له جنازې ځخه اواز راغی السلام علیکم : انصتوا انصتوا : یعني چپ شئ او خبرې واورئ ، له دې څخه وروسته مرحوم زید بن خارجه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ږدې خبرې وکړې، په کوم کې چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ متعلق او دحضر ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ،د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې یې ګواهي ورکړه، او دهغوي بعضې صفتونه یې بیان کړل او په اخره کې یې دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې پیش ګويي (وړاندې ینه) وکړه چې وروسته بالکل حق ثابته شوه، دحضرت زیدبن خارجه رضی الله عنه څخه وروسته بعد الموت دخبرې کولو واقعه او دهغوي هغه ټولې خبرې تقریبا په ټولو کتابونو کې روایت شوي دي ، کوم چې دصحابه کرامو په احوالو کې لیکلې شوي دي. (انوار الباری ص۱۲۷، فتاوی رحیمیه ج ۱ص۲۰۳)

## ۱۴-دحضرت خبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کرامت بعد الوفات

۱۴-دبدر په ورځ حضرت خبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حارث قتل کړی وو،نو دحارث زامنو حضرت خبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې بندي وو ، وایخستلو ، یوه ورځ حضرت خبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحارث دلور څخه د سر دوېښتو دکمولو لپاره چاړه وغوښتله ،نو هغې ورکړه، لږ وروسته دهغې یو بچي، دخبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خواته ورغلو دبچي مور خبره نه وه ، څه وخت وروسته دحارث لور وکتل چې حضرت خبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ماشوم په ورون کینولی دی او چاړه یې په لاس کې ده، نو هغه ښځې چیغه کړه ، حضرت خبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل ته ددې خبرې څخه ویرېږې چې زه به دا ووژنم ؟ زه به هیڅلکه داسې ونه کړم ،ځکه چې وعده ماتول زمونږ کار نه دی، دا ښځه وايي چې ما یو قیدي هم دحضرت خبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په شان ښه انسان نه دی لیدلی، ما داهم ولیدل چې حضرت خبیب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دانګورو یو وږی خوړي، جالبه دا چې هغه په زنځیرونو کې تړلی شوی وو او په مکه مکرمه کې په هغه و خت کې انګور نه وو ، ضروري خبره ده چې

الله تعالى ورته دخپلې خوا څخه خوراک ورکړی وو، له دې څخه وروسته کافرانو دهغوي وژل وغوښتل او هغوي يې دحرم څخه را ويستلو ،حضرت خبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې ماته لږ مهلت راکړئ، چې زه دوه رکعته نفل لمونځ وکړم، کافرانو اجازت ورکړو او دا دلمونځ طريقه د حضرت خبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ څخه شروع شوه، چې کله يو مسلمان بندي وژلی شي، نو دوه رکعتونه لمونځ کوي، بيا حضرت خبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کفاروته دا وويل چې تاسو دا گمان مه کوئ چې زه له مرگ څخه ويريږم، که دا گمان مونه وی نو ما به لمونځ نور هم او ږد کړی وو، او بيا يې وفرمايل: ای الله تعالى له دې کفارو څخه يو يو کس تباه کړې او يو هم باقي پاتې نه کړې او بيا يې دا شعرونه ولوستل:

وَلَسْتُ أُبَالِي حِينَ أُقْتَلُ مُسْلِمًا عَلَىٰ أَيِّ شِقٍّ كَانَ لِلَّهِ مَصْرَعِي
وَذَٰلِكَ فِي ذَاتِ الْإِلَٰهِ وَإِنْ يَشَأْ يُبَارِكْ عَلَىٰ أَوْصَالِ شِلْوٍ مُمَزَّعِ

يعنې کله چې زه داسلام په حالت کې وژلی کيږم نو هيڅ پرواه مې هم نشته چې په هر اړخ ووژلی شم، او دا وژل کيدل دالله تعالى په لاره کې دي او که الله تعالى وغواړي نو زما په ميده ميده او شکيدلو غړو دبدن کې به برکت واچوي له دې څخه وروست يې حضرت خبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په دار وخيژولو او په يوروايت کې دي چې حضرت خبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل: ای الله تعالى محمد رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته زما سلام ورسوه.

محمد بن عمرو بن سلمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ روايت کړی دی، چې حضرت اسامه بن زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وفرمايل چې مونږ واوريدل چې رسول الله رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي ... جبرائيل عليه السلام اوس اوس ماته دحضرت خبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ سلام راورسولو ، رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چې کله دا قصه معلومه شوه ،نو وې وفرمايل چې له تاسو څخه څوک داسې شته چې حضرت خبيب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له دار څخه رابښکته کړي او رايې وړي؟ هر څوک چې دا کار وکړي دهغه لپاره جنت دی ، حضرت زبير رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عرض وکړو ، يارسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ! زه او زما ملگری حضرت مقداد بن اسود رضی الله عنه به دا کار وکړو ، خلاصه دا چې دواړه لاړل، دشپې به تلل او د ورځې به پټ وو تر دې چې تنعيم ته ورسيدل، گوري چې ددار سره څلويښت مشرکان دي ، هغوي ورغلل او رابښکته يې کړو، وې کتل چې همغه شان تازه وو، حال دا چې څلويښت ورځې وروسته يې رابښکته کړی وو په لاس باندې يې زخم وو او وينه په کې تازه وه او رنګ يې دوينې په شان سور وو ، مگر خوشبويي ترې دمسکو په شان تلله دا کرامت بعد الموت دی.

## ۱۵- دحضرت خبيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بل کرامت چې بدن یې ځمکې پټ کړو.

حضرت خبيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې په آس باندې دځان سره واچولو او دواړه روان شول، په دې وخت کې کفار هم راوبښ شول او وې کتل چې حضرت خبيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نشته دی ، لاړل او قريشو ته يې خبر ورکړو په دغه وخت کې اويا سواره کسان راووتل کله چې رانږدې شول، نو حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت خبيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همغلته وغورځولو او چې څنګه يې وغورزولو نو ځمکې وخوړلو او له هغه ورځې څخه هغوي ته بليع الارض يعني (ځمکې تير کړی) ويل کيږي. ديته کرامت بعد الموت وايي. (مظهری ج ۱ص ۴۱۳، بخاری ج ۲ص ۵۶۸، رياض الصالحين ص ۲۴۷)

## ۱٦- دحضرت اويس قرنی رحمه الله کرامت:

وفی صحيح مسلم لما مات اويس القرنی وجدوا فی ثيابه اکفانا لم تکن معه وجدوا له قبرا محفورا فی لحده فی حفره فدفنوه فيه وکفنوه فی تلک الاثواب.

هرکله چې اويس قرني رحمه الله وفات شو نو دهغوي په جامو کې کفن وموندل شو اګر چې دا کفن دهغوي سره له مخکې څخه نه وو او دهغوي په قبر کې جوړ شوی لحد يې وموندلو حضرت اويس قرني همدلته ښخ او همدغه کفن ورکړی شو.

## ۱۷- دمشکو خوشبويي خوره شوه

حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې: لَمَّا أَرَادَ مُعَاوِيَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنْ يُجْرِيَ الْكِظَامَةَ قَالَ: مَنْ كَانَ لَهُ قَتِيلٌ فَلْيَأْتِ قَتِيلَهُ - يَعْنِي قَتْلَى أُحُدٍ - قَالَ: فَأَخْرَجَهُمْ رِطَابًا يَتَثَنَّوْنَ قَالَ: «فَأَصَابَتِ الْمِسْحَاةُ رِجْلَ رَجُلٍ مِنْهُمْ فَانْفَطَرَتْ دَمًا» فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: «لَا يُنْكِرُ بَعْدَ هَذَا مُنْكِرٌ أَبَدًا» (مصنف عبدالرزاق ج ۳۳ ص ۵۴۸، تفسیرمظهری ج ۲ ص ۱۷۰، حیات الصحابه ج ۳ ص ۸۵۲)

کله چې حضرت امير معاويه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اراده وکړه چې دأحد دغر په غاړه نهر تير کړي، نو اعلان يې وکړو چې په دغه ځای کې چې دچا شهيدان ښخ وي هغه دې وباسي ،نو خلکو شهيدان را وويستل ، دهغوي بدنونه نرم او تر او تازه وو، دشهيدانو د راويستلو په وخت کې ګينتي (کولنګ) ديو شهيد (حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) په پښه باندې ولګيدلو نو وينې ترينه روانې شوې، ابو سعيد فرمايي چې ددې څخه وروسته هيڅوک ددې (حيات القبر) څخه انکار نه کوي. (دا کرامت بعدالموت دی.)

## ۱۸-په قبر کې دقرآن مجيد تلاوت

حضرت مولانا محمد شفيع صاحب په احکام القرآن ج ۳ص ۱۸۷) کې ليکي :

علامه یافعي په روض الریاحین کې دبعض صالحینو څخه نقل کړي دي چې ما دیو کس قبر راوسپړلو، دلحد دجوړولو په وخت کې دنږدې قبر یوه خښته پریوتله، نو ما ولیدل چې یو شیخ ناست دی او په بدن یې سپینې جامې دي او په غیږه کې قرآن مجید دی، چې په سرو زرو لیکلی شوی دی، او په تلاوت کې مشغول دی، هغوي سر اوچت کړو او ما ته یې وویل: الله دې په تا باندې رحم وکړي ایا قیامت قائم شو؟ ما وویل: نه، هغوي وویل: خښته په خپل ځای کیږده او الله تعالی دې تا په عافیت کې وساتي، نو ما خښته په هغه ځای کینبوده، وهکذا فی فتاوی رحیمیه ج ۱صـ ۲۱۰، کتاب الایمان والعقاید).

## ۱۹-دحضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کرامت، په جنازه کې فرښتې

دحضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چې رسول الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمایل چې دحضرت سعد بن معاذ رضی الله عنه دمرګ سره الهي عرش وښوریدلو او اویازره فرښتې دهغوي په جنازه کې شریکې شوې.

## دحضرت ابو معاویه کرامت، دقبر تر لرې حده خوشبویي

حضرت علامه شامراد مارهروي په خپل تالیف (صد صحابه) کې لیکلي دي چې یو څه موده وروسته دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دصحابه وو سره په «صفراء» مقام کې ناسته وشوه نو صحابه کرام حیران شول او درسالت په بارګاه کې یې عرض وکړو چې په دې صحراء کې دمشکو دومره تیزه خوشبویي له کومه او ولې راځي، نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې په دې میدان کې دابومعایه حضرت عبیده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دقبر د موجودیدو سره سره تاسو تعجب ولې کوئ؟ چې دلته دمشکو خوشبویي راځي (صد صحابه صـ۳۱۴)

## دحضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کرامت: قبر کې دننه سلام

حضرت فاطمه خزاعیه رحمه الله فرمایي چې: یوه ورځ زه دسید الشهداء حضرت حمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دزیارت لپاره لاړم او زه دقبر مخې ته ودریدم او ومې ویل: السلام علیک یا عم رسول الله نو هغوي دقبر څخه زما دسلام جواب راکړو کوم چې ما په خپلو غوږونو واوریدلو (حجة الله ج ۲صـ ۸٦۳)

## دحضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کرامت

حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دشهادت څخه وروسته بصرې ته نږدې ښخ کړی شو، مګر په کوم ځای کې چې دهغوي قبر جوړ شو نو هغه په ښکته وو، نو ځکه به قبر مبارک کله کله په اوبو کې غوپ شو، هغوي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یو کس ته خو خو

واړي په خوب کې د قبر د بدلولو حکم ورکړو، نو هغوي حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما ته خپل خوب بیان کړو هغوي رضی الله عنه ور له لس زره درهم ورکړل او دیو صحابي کور یې واخستلو او په هغې کې یې قبر جوړ کړو او د حضرت طلحه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بدن یې راوویستلو او په نوي قبر کې یې خښ کړو، د دومره موده تیریدو با وجود دهغوي بدن مبارک بالکل سلامت وو.

غور وکړئ چې خام قبر چې په اوبو کې به ډوب وو او دیوې مودې تیردو با وجود هم دیو ولي الله او شهید بدن نه خرابیږي، دې ته کرامت بعد الموت وایي.

## دابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ کرامت

حضرت سعد بن جبیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې کله ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په طائف کې وفات شو نو یوه مرغۍ راغله چې مونږه مخکې نه وه لیدلې او دهغوي په بدن کې ورداخله شو، بیا مونږ هغه مرغۍ ونه لیدله چې کله ووتله؟ هر کله چې مونږ هغوي دفن کړل، نو دقبر څخه دا ایات واوریدل شو او مونږ ته داپته ونه لګیده چې دا چا وویل: (يَآيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ)

## کرامت بعدالموت دعلماوو دفتوو په رڼا کې

۱-کرامت قبل الوفات او بعد الوفات دقرآن او دسنت او دعلم الکلام څخه ثابت دی، ددې څخه منکر مبتدع دی او مونځ وروسته کول مکروه تحریمي دی، (فتاوی دارالعلوم دیوبند، المعروف بفتاوی دیوبند ج ۱ صـ ۵۴۵)

۲-کرامت قبل الوفات او بعد الوفات دواړه ثابت دي، ددې څخه منکرین داعتزال طرفته مایل دي. (فتوی نمبر ۲۳۳۸، دارالافتاء دارالعلوم حقانیه، ۲۳ دسمبر ۲۰۰۸)

۳- داولیاوو کرامتونه او تصرفات دوفات څخه وروسته ثابت دي، البته دا ضروري ده چې دغیر الله څخه مدد مه غواړئ (فتاوی دارالعلوم دیوبند ج ۳ صـ ۱۵۸)

۴-دمولانا محمد یوسف لدهیانوي رحمه الله څخه پوښتنه شوې ده چې ایا دوفات څخه وروسته مړی خندلی شي؟ هغه ورته په جواب کې وفرمایل چې داهل سنت والجماعت دا اجماعي عقیده ده چې داولیاوو کرامت حق دی. (آپ کی مسایل او انکاحل)

۵- کوم خلک چې داولیاوو کرامت نه مني هغه دأهل سنت والجماعت څخه وتلی دی او دمعتزله وو په ډله کې داخل دي. (فتاوی حقانیه ج ۱ صـ ۱۴۷، کتاب العقاید)

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وآله واصحابه وأهل بیته اجمعین

❁❁❁

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده

امابعد :

داهل سنت والجماعة دمسلک مطابق په مبارکه روضه کې نبي ﷺ ته د امت اعمال په اجمالي طريقه باندې پيش کولی شي ، داهل سنتو دا عقيده دقرآن ،احاديثو ،او د اقوالو داکابرو څخه ثابته ده .(احسن الفتاوی ملخصا ج ۱ص۱۸)

**داهل بدعتو مسلک:** داهل بدعتو په نيز عرض الاعمال دشيعه ګانو عقيده ده، نبي ﷺ دامت داعمالو څخه نه شي خبرولی. (عقائد علماء اسلام ، لشهاب الدين خالدي ص۶۷۹ تحقيق الحق لمولوي عبد المقدس ص۳۰۹ )

## داهل سنت والجماعة دلائل

**اول دليل:** الله تعالى فرمايي چې:( فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍ بِشَهِيْدٍ وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰـؤُلَآءِ شَهِيْدًا) سورة النساء اية ۴۱ ) څه حال به وي په هغه وخت کې چې مونږ دهر امت څخه يو شاهد راولو او تا را ولو په دوئ باندې شاهد .

ددې ايت په تشريح کې مفسرين ليکي چې:

(۱) وَقِيلَ: الْإِشَارَةُ إِلَى جَمِيعِ أُمَّتِهِ. ذَكَرَ ابْنُ الْمُبَارَكِ رحمه الله أَخْبَرَنَا رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ عن المنهال ابن عمرو رضي الله عنه حدثه أَنَّهُ سَمِعَ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ رحمه الله يَقُولُ: لَيْسَ مِنْ يَوْمٍ إِلَّا تُعْرَضُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَّتُهُ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً فَيَعْرِفُهُمْ بِسِيمَاهُمْ وَأَعْمَالِهِمْ فَلِذَلِكَ يَشْهَدُ عَلَيْهِمْ). (قرطبی تحت هٰذه الاية).

(۱)يشهد النبي ﷺ جميع الامة من رأه ومن لم يره، أخرج سعيدبن المسيب قال ليس من يوم الا وتعرض على النبي امته غدوة وعشية فيعرفهم بسيماهم واعمالهم فلذالک يشهد عليهم (مظهري تحت هذه الاية)

يعنې هرسبا او بېگا دنبي ﷺ امت نبي ﷺ ته پيش کولی شي، نو نبي ﷺ يې په علامو باندې پېژني او اعمال يې هم ورته پيش کولي شي، لـه دې وجې به ورباندې شاهدي وايي، په تفسير مظهري کې يې دا مسئله په ډېرو ځايونو کې ذکر کړې ده، مثلا وګوره، سورة هود ايت نمبر ١٨ سورة احزاب اية نمبر ۴۵ سورة زمر اية ٦٩)

(٣) په دې کې ټول امت ته اشاره ده، ځکه چې په بعضې روايا تو کې راځي چې رسول الله ﷺ ته دامت اعمال پيش کولی شي (معارف القرآن تحت هذه الاية)

(۴) ثم اخرج الحافظ احاديث عرض الاعمال فيحصل العلم اجمالاً (فيض الباري ج ١ ص١٧٥)

**دوهم دليل:** الله فرمايي چې: وَيَوْمَ نَبْعَثُ فِي كُلِّ أُمَّةٍ شَهِيدًا عَلَيْهِم مِّنْ أَنفُسِهِمْ وَجِئْنَا بِكَ شَهِيدًا عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ (نحل ٨٩)

(١) ددې ايت په تشريح کې شبير احمد عثماني رحمه الله فرمايي: چې په ايت کې راځي چې دامت اعمال هره ورځ نبي ﷺ ته پيش کولی شي، کله چې نبي ﷺ دخيراعمال وګوري نو دالله تعالی شکر اداکړي او چې کله بداعمال وګوري نو دناپوهانو لپاره ببښنه غواړي (تفسيرکابلی تحت هذه الاية)

(٢) والمراد بهؤلاء امته ﷺ عند اكثر المفسرين ولم يبعدان يكون المراد بهم مايشمل الحاضرين وقت النزول وغيرهم الى يوم القيامة فان اعمال امته تعرض عليه بعد موته فقد روى عنه صلى الله عليه وسلم انه قال حياتي خيرلكم تحدثون ونحدث لكم ومماتي خيرلكم تعرض علي اعمالكم فمارأيت من خير حمدت الله تعالى عليه ومارأيت من شر استغفرت الله لكم (روح المعاني تحت هذه الاية)

**دريم دليل:** ويه قال حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى رحمهما الله، قَالَ: نَا عَبْدُ الْمَجِيدِ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رَوَّادٍ رحمهما الله، عَنْ سُفْيَانَ رحمه الله، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ رحمهما الله، عَنْ زَاذَانَ رحمه الله، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه، عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "«إِنَّ لِلَّهِ مَلَائِكَةً سَيَّاحِينَ، يُبَلِّغُونَ عَنْ أُمَّتِي السَّلَامَ". قَالَ: وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "حَيَاتِي خَيْرٌ لَكُمْ تُحَدِّثُونَ وَنُحَدِّثُ لَكُمْ، وَوَفَاتِي خَيْرٌ لَكُمْ تُعْرَضُ عَلَيَّ أَعْمَالُكُمْ، فَمَا رَأَيْتُ مِنْ خَيْرٍ حَمِدْتُ اللَّهَ عَلَيْهِ، وَمَا رَأَيْتُ مِنْ شَرٍّ اسْتَغْفَرْتُ اللَّهَ لَكُمْ» (مسند بزار، رقم ١٩٢٥، مجمع الزوائد، باب ما يحصل لامته من استغفاره بعد وفاته)

رسول الله ﷺ فرمايي چې: دلله تعالى لپاره په زمکه کې ګرزيدونکي ملائکې دي، چې زما مت سلامونه ماته رارسوي اونبي ﷺ فرمايي چې زما ژوند تاسوته خير دی، تاسو ماته خبرې کوئ زه يې تاسو ته کوم او زما وفات هم تاسو ته خير دی ستاسو اعمال ماته پيش کولی شي، نو د خير په مالو د الله شکر اداکوم او چې د شر اعمال ماته پيش کړی شي نو د الله تعالى څخه درته بښنه غواړم.

## مصححين

(۱) امام سيوطي رحمه الله دې حديث ته صحيح ويلي دي، الخصايص الكبرى ج ۲ ص ۴۱۸)
(۲) امام زرقاني رحمه الله ورته جيد ويلي دي (شرح زرقاني ج ۱ ص ۹۷)
(۳) امام هيثمي رحمه الله ورته صحيح ويلي دي (مجمع الزوائد، باب مايحصل لامته الخ)
(۴) امام سمهودي رحمه الله ورته صحيح ويلي دي (خلاصة الوفاء ج ۱ ص ۴۳)
(۵) شبير احمد عثماني ورته جيد ويلي دي (فتح الملهم ج ۱ ص ۴۱۳)
(٦) مولنا ادريس کاندهلوي ورته جيد ويلي دي (سيرة المصطفى ج ۳ ص ۱٦۸)
(۷) علامه انور شاه کشميري رحمه الله ورته جيد ويلي دي (فهرست عقيدة الاسلام ص ۴۰۱)

فانقيل: چې په قرآن کې خو راغلي چې: (اليه يصعد الكلم الطيب).

قلنا: پدې کې تعارض نشته د اُمت اعمال اول نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته پيش کولی شي او بيا د الله تعالى طرفته وړلی شي.

**څلورم دليل:** حضرت ابو الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې: ان اعمالكم تعرض على موتاكم فيسرون ويساءون ضميمه (كتاب الزهد از ابن مبارک ص ۴۲)

ستاسو اعمال ستاسو په مړو باندې پيسش کولی شي نو (په نيکو اعمالو) خوشحاليږي او په (بدو اعمالو) خفه کيږي، دا د صحابي قول دی غير مدرک بالعقل دی، نو په حكم د مرفوع کې دی، نو چې مړو خپلوانو ته عرض الاعمال کيږي نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به په طريق اولى کيږي.

پنځم دليل: عن جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: ان اعمالكم تعرض على عشاريكم وعلى اقاربكم في قبورهم فان كان خيرا استبشروا به وان كان غير ذلک، قالوا اللّٰهُمَّ أَلهمهم أن يعملوا بطاعتک (الحاوى للفتاوى ج ۲ ص ۱۷۰، بحواله مسند ابى داوٗد الطيالسى

صـ ۲۴۸،مسند احمد ج ۳صـ ۱۶۵، شرح الصدور صـ ۱۱۰) مجمع الزوائد ج ۲صـ ۳۲۷، قبرکے زندگی، ص- ۳۲٦،)

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې ستاسو اعمال ستاسو خپلوانو ته پيش کولی شي په ښو اعمالو باندې خوشحاليږي او دبدو اعمالو په صورت کې دعا کوي چې يا الله تعالی دبندګی توفيق ورته ورکړه (کتاب الروح صـ ۲۰)

## دأمت علماء او عرض الاعمال:

(۱) امام سبکي رحمه الله فرمايي چې: لان عندنا رسول الله ﷺ حيٌّ يحس ويعلم وتعرض عليه اعمال الامة (طبقات الشافعية الكبرى ج ۳ صـ ٤١٢ )

(۲) امام سمهودي رحمه الله فرمايي چې: قال الاستاذ ابو منصور البغدادي قال المتكلمون المحققون من اصحابنا ان نبينا حيٌّ بعد وفاته وانه يسر بطاعاة أمته (خلاصة الوفاء ج۱ ص٤٣) رسول الله دوفات څخه ورسته ژوندی دی، حس او علم لري او دأمت اعمال ورته پيش کولی شي او دأمت په طاعاتو باندې خوشحاليږي.

(۳) دقرطبي، روح المعاني، مظهري، معارف القرآن، او دتفسير کابلي، عبارات لږ مخکې وليکل شول.

(۴) قاضي شوکاني ليکي چې: وقد ذهب جماعة من المحققين الى ان رسول الله ﷺ حيٌّ بعد وفاته وانه يسر بطاعاة أمته (نيل الاوطار ج ۳ صـ ۳۰٤ باب فضل يوم الجمعة)

(۵) شاه عبد العزيز رحمه الله فرمايي چې: دانبياؤ عليهم السلام څخه ورته دا هم غټه درجه حاصله ده چې دامت احوال ورته پيش کولی شي (فتاوی عزيزي صـ ۱٦۰)

(۶) مولانا اشرف على تهانوي رحمه الله فرمايي چې: دټولو رواياتو څخه دحيات څخه وروسته دا فيصله هم رامعلوميږي چې نبي ﷺ مصروف دی، دخپل امت داعمالو معاينه کوي، (نشر الطيب صـ ۲۰۰)، مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله دنفی دعلم غيب يو روايت رانقلوي او بيا دهغه په تشريح کې ليکي چې: ددې روايت سره دعرض الاعمال د روايت تعارض نشته، ځکه چې دعرض الاعمال په روايت کې دانه دی راغلي چې دقلب اعمال هم ورته پيش کولی شي، همدارنګه د ټولو اعمالو ظاهريه وذکر

هم په کې نه دی راغلي، ممکنه ده چې باريک مفاسد دعقائدو او د اعمالو پيش نه کړی شي او همدارنګه دا هم په کې نشته چې دعرض څخه وروسته ورته هرجزئي جزئي يا دوي، که نه نو په قيامت کې به ورته دامت دمعرفت لپاره دغرې او د تحجيل دعلامو ضرورت نه وو (نشرالطيب صـ ۲۱۷)

همدارنګه مولانا اشرف على تهانوي رحمه الله فرمايي چې: دسعيد بن المسيب رحمه الله څخه روايت دی چې هيڅ ورځ داسې نشته چې نبى كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته پکې دأمت اعمال نه وي پيش شوي (نشر الطيب صـ۲۱۰)

(۷) علامه انورشاه الكشميري رحمه الله فرمايي چې: (ثم اخرج الحافظ احاديث عرض الاعمال فيحصل العلم اجمالا . (فيض الباري ج ۱صـ۱۷۵)

(۸) علامه ظفر احمد العثماني رحمه الله فرمايي چې: دا مضمون په صحيح حديث کې راغلی دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د وفات څخه وروسته د امت اعمال پيش کولی شي، دنيکو اعمالو په ليدلو سره خوشحاليږي او دبدو اعمالو په ليدلو سره استغفار کوي (امداد الاحكام ج ۱صـ۱۳)

(۹) مولنا نصيرالدين الغورغشتوي رحمه الله فرمايي چې: عرض الاعمال ثابت دی، لكن دا خبره په ياد لرئ چې دعرض الاعمال څخه د ټولو اعمالو عرض نه دی مراد، لكه څرنګه چې دغالي بدعتيانو نظريه ده بلكه دا عرض صرف اجمالي دی، په کوم کې چې درود وغيره بعضې اعمال پيش کولی شي. (مجالس غورغشتوي صـ ۷۴ اووم مجلس)

(۱۰) امام اهل سنت مولنا سرفراز خان صفدر رحمه الله فرمايي چې: دعرض الاعمال په باره کې انتهائي مختصر تحقيق دا دی چې دصحيح روايت څخه اجمالي عرض الاعمال ثابت دی (حاشية تسكين الصدور صـ ۲۳۶).

(۱۱) مولانا خليل احمد سهارنپوري رحمه الله فرمايي چې ددې خبرې پوره يادول ضروري دي چې انبياء عليهم السلام په خپلو قبرونو کې ژوندي دي او دالله تعالى په اجازت سره چې په جنت کې په هرځای کې وغواړي ګرځي راګرځي او د ملايکو په ذريعه ورته دأمت صلوة او سلام رسيږي، او دأمت اعمال ورته پيش کيږي او هرکله چې الله تعالى وغواړي ددنيا احوال ورته منکشف کوي په دې کې هيڅ شک نشته (البراهين القاطعه صـ۱۹۹).

(۱۲) مواهب لدنيه د قشيري په حواله باندې نقل کړی دی چې د قيامت په ورځ به د يو مسلمان نيک اعمال کم شي، پدې وخت کې به نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورشي او يو وړوکی کاغذ به دده د نيکو په تله کې واچوي چې د هغې په وجه به دده د نيکو تله درنده شي، داسړی به ورته ووايي چې: زما مور او پلار دې ستا ځخه قربان شي، ستا څومره خوږ صورت او سيرت دی، ته څوک يې؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ورته ووايي چې زه ستا نبي کريم او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يم او پدې کاغذ کې ستا درود دی چې تا به په ما باندې په لوستلو (فضايل درود شريف ص۴۴) ازمولانا زکريا رحمه الله)

(۱۳) ابو سليمان الحراني رحمه الله فرمايي چې زمونږ په خوا کې يو بزرګ او سيدلو چې فضل نو ميدلو، ډير نوافل به يې کول، فضل به فرمايل چې ما به چې حديث ليکلو نو (د تلوار) له وجې به مې درود نه ليکلو، يو شپه مې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوب کې وليدلو، ماته يې وفرمايل چې ته چې کله زما نوم ليکې او يا يې لولې نو درود ولې نه وايې؟ ما ورته ويل چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې ځخه وروسته به يې ضرور اهتمام کوم، يو څو ورځې وروسته مې بيا په خوب کې وليدلو، نو راته وې وفرمايل چې اوس ستا درود ماته رارسيږي (فضايل درود ص۱۰۱، بحواله القول البديع)

* * *

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام علی من لانبی بعده

امابعده!

**داهل سنت والجماعت مسلک:**

۱-ایصال ثواب حق دی، ژوندي ته هم او متوفی ته هم، دمتوفی څخه وربانديې عذاب کمیږي او یا ختمیږي او یایې مرتبې وربانديې او چتیږي.

۲-ایصال ثواب دعباداتو مالیه وو په ذریعه هم کیږي او دعباداتو قولیه وو په ذریعه هم کیږي او دعباداتو بدنیه وو په ذریعه هم کیږي.

**دایصال ثواب لپاره شرطونه :**

دچالپاره چې ایصال ثواب کیږي هغه به ۱-مؤمن وي ۲-صحیح العقیده به وي. ۳-همدارنګه به دایصال ثواب کونکی هم مؤمن وي او صحیح العقیده به وي. ۴-دداسې عبادت ایصال ثواب کیږي چې هغه عبادت دنواقضو څخه خالي وي، لکه ریا، شهرت، مَن او آذی، رواج وغیره. ۵-که دایصال ثواب لپاره مالي عبادت شوی وي نو مال به حلال وي. ۶-کوم مال چې صدقه کیږي په هغې کې به دغایب او دنابالغ حق نه وي. ۷-که دایصال ثواب لپاره عبادت قولیه شوي وي لکه دقرآن تلاوت نو دا به بغیر دمعاوضې شوی وي او همدارنګه به طمع دمعاوضې هم نه وي، بنایه شرح هدایه ج ۳ص ۶۵۵) او که چیرته دقاري په زړه کې داخستلو نیت نه وي او بیا یې څوک ورکړي نو صحیح ده او کوم چې د رواج په بناء بانديې ورکولی شي او قاري هم داخستلو په نیت ختم کوي اګر چې په خوله یې څه نه وي ویلي نو بیا صحیح نه ده (فتاوی حقانیه ج۱ص۵۵۹) ۸-دخپل ځان له طرفه به دکومې خاصې ورځې تخصیص نه وي، یعنې چې داعقیده وساتي چې په دې ورځ ایصال ثواب کیږي او په نورو ورځو کې نه کیږي نو دا طریقه بدعت دی، په فتاوی حقانیه ج ۱ص ۵۱۲ کې لیکي چې کوم خوراک چې دمړي په کور کې دضیافت په توګه پخیږي نو تر دریو ورځو پورې ددې خوړول مکروه دي. او که نور خلک دمړي

کورته دودی راوړي نو دهغې خوړل په هر وخت کې روا دي، پاتې شوه دا خبره چې دمړي وارثان دمړي په کور کې خوراک تیار کړي او په نورو خلکو باندې یې دایصال ثواب په نیت باندې وخوري نو په دې کې هیڅ حرج نشته، همدارنګه په ج ا صـ ۵۱۰ کې لیکي چې دمړي وارثانو ته دایصال ثواب لپاره صدقات هر وخت جایز دي، لکن دوخت دتعین چې کوم صورتونه په عوامو کې مروج دي، لکه دجمعې دشپې، دریمه، لسمه، څلویښتمه او داسې نور، نو ددې تخصیص له وجې شرعا ناجایز دي.

**دلایل:** وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَمَلُهُ إِلَّا مِنْ ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ: صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ أوعلم ينتفع بِهِ أوولد صَالح يَدْعُولَهُ (رواه مسلم، مشكوة صـ ۳۲)

حضرت ابو هريرة رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايل چې کله چې انسان مړ شي نو داعمالو سلسله یې ختمه شي بغیر د دریو شیانو څخه (چې ددوي ثواب ورته رسیږي) یو صدقه جاریه ده، بل علم نافع دی، دریم نیک اولاد دی چې دعاګانې ورته کوي.

۲- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ مِمَّا يَلْحَقُ الْمُؤْمِنَ مِنْ عَمَلِهِ وَحَسَنَاتِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ عِلْمًا علمه ونشره وولدا صالحا تركه ومصحفا وَرَّثَهُ أَوْ مَسْجِدًا بَنَاهُ أَوْ بَيْتًا لِابْنِ السَّبِيلِ بَنَاهُ أَوْ نَهْرًا أَجْرَاهُ أَوْ صَدَقَةً أخرجها من مَالِهِ فِي صِحَّتِهِ وحياته يلحقهُ من بعد مَوته (مشكوة صـ ۳۶)

رسول الله فرمایي چې کوم اعمال او نیکۍ چې دمرګ څخه وروسته هم سړي ته رسیږي، علم دی چې خلکو ته یې ورښودلی وي او نشر کړی یې وي، او ولد صالح دی چې دمرګ څخه وروسته یې پرېښی وي، یا یې قرآن په میراث کې پرېښی وي، او یا یې مسجد جوړ کړی وي، او یایې دمسافرو لپاره مسافرخانه جوړه کړي وي، او یا یې نهر جاري کړی وي، او یایې دخپل مال څخه په خپل ژوند او صحت کې صدقه ویستلي وي.

په اول حدیث کې دانسان ذکر دی او په دوهم حدیث کې دمؤمن ذکر دی او انسان او مؤمن دروح مع الجسد څخه عبارت دی، نو دا ثوابونه روح مع الجسد ته رسیږي.

۳- وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا الْمَيِّتُ فِي الْقَبْرِ إِلَّا كَالْغَرِيقِ الْمُتَغَوِّثِ يَنْتَظِرُ دَعْوَةً تَلْحَقُهُ مِنْ أَبٍ أَوْ أُمٍّ أَوْ أَخٍ أَوْ صَدِيقٍ فَإِذَا لَحِقَتْهُ كَانَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا وَإِنَّ اللَّهَ تَعَالَى لَيُدْخِلُ عَلَى أَهْلِ الْقُبُورِ مِنْ دُعَاءِ أَهْلِ الْأَرْضِ أَمْثَالَ الْجِبَالِ وَإِنَّ هَدِيَّةَ الْأَحْيَاءِ إِلَى الْأَمْوَاتِ الِاسْتِغْفَارُ لَهُمْ» (مشكوة صـ ۲۰۶، شعب الايمان للبيهقي رقم ۷۹۰۵)

رسول الله ﷺ فرمایي چې مړی په قبر کې داسې وي لکه په اوبو کې غرق شوی چې فریاد کوي، ګویا چې د پلار یا د مور یا د ورور یا د دوست د دعا ته منتظر وي، پس کله چې د دوي دعا ورورسیږي نو هغه ورته د دنیا او د مافیها څخه محبوبه وي او بیشکه چې الله د ژوندي د دعاګانو څخه د غرونو په شان (رحمتونه) مړو ته ور رسوي او بېشکه چې مړو ته د ژوندیو تحفې د دې لپاره د بخښنې دعاګانې دي.

**فایده:** د عالم الدنیا په اعتبار سره د میت اطلاق په روح مع الجسد باندې کیږي، یو اځې په روح باندې نه کیږي نو رحمتونه روح مع الجسد ته حاصلیږي.

۴-عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: «مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامٌ صَامَ عَنْهُ وَلِيُّهُ». (بخاری باب من مات وعلیه صوم، الرقم ۱۸۵۱).

څوک چې مړ شو او روژه پرې پاتې وه نو دده له طرفه دې یې د ده ولي ونیسي.

۵-عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا: أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أُمِّي افْتُلِتَتْ نَفْسُهَا، وَأَظُنُّهَا لَوْ تَكَلَّمَتْ تَصَدَّقَتْ، فَهَلْ لَهَا أَجْرٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا؟ قَالَ: «نَعَمْ. (بخاری، باب موت الفجأة البغتة الرقم ۱۳۲۲، مسلم، باب وصول ثواب الصدقات الی المیت الرقم ۱۰۰۴)

یو زلمي رسول الله ﷺ ته وویل چې: زما مور ناڅاپي مړه شوه او زما په ګمان که په زنکدن کې یې خبرې کولی شوې، نو صدقه به یې کړې وه، نو اوس که زه د هغې له طرفه څخه صدقه وکړم، نو ثواب ورته رسیږي؟ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې: هو.

۶-حضرت عایشه رضی الله عنها فرمایي چې رسول الله ﷺ د قربانۍ لپاره یو ښکرور پسه (ګډ) واخستلو او د ذبحې په وخت کې وفرمایل: باسم الله، اللّٰهُمَّ تقبل من محمد وآل محمد ومن أمة محمد ثم ضحّى به (رواه مسلم، باب استحباب الأضحية رقم ۱۹۶۷)

۷-عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا: أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ تُوُفِّيَتْ أُمُّهُ وَهُوَ غَائِبٌ عَنْهَا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! إِنَّ أُمِّي تُوُفِّيَتْ وَأَنَا غَائِبٌ عَنْهَا، أَيَنْفَعُهَا شَيْءٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ بِهِ عَنْهَا؟ قَالَ: «نَعَمْ»، قَالَ: فَإِنِّي أُشْهِدُكَ أَنَّ حَائِطِيَ الْمِخْرَافَ صَدَقَةٌ عَلَيْهَا. (بخاری باب اذا قال أرضی اوبستانی صدقة عن أمي فهو جائز، الرقم ۲۶۰۵)

حضرت سعد ابن عباده نه وو چې مور یې وفات شوه، رسول الله ﷺ ته یې عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ زه نه وم او زما مور وفات شوې، نو که زه د مور له طرفه خیرات او صدقه کوم نو ثواب ورته رسیږي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې: هو نو حضرت سعد رضي الله عنه

وفرمایل چې: یارسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ زه تا په دې شاهد ګرزوم چې زما دمخراف په نوم باندې باغ دمور پسې صدقه ده.

۸-عَنْ أَبِی هُرَيْرَةَ رضی الله عنه قَالَ: "تُرْفَعُ لِلْمَيِّتِ بَعْدَ مَوْتِهِ دَرَجَتُهُ. فَيَقُولُ: أَیْ رَبِّ! أَیُّ شَیْءٍ هَذِهِ؟ فيقال: "ولدك استغفرلك. (الادب المفرد للبخاری الرقم ۳۶)

ابوهریر رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ فرمایي چې کله د مړي لپاره مرتبې وچتې شي، نو دی وایي چې یاربه دا څه شی دي، نو الله تعالی ورته فرمایي چې ستا بچي ستا د پاره بخښنه غوښتې ده.

۹- وَعَنْ أَبِی سَعِيدٍ الْخُدْرِیِّ رضی الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: «يَتْبَعُ الرَّجُلَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ الْحَسَنَاتِ أَمْثَالُ الْجِبَالِ، فَيَقُولُ: أَنَّى هَذَا؟! فَيُقَالُ: بِاسْتِغْفَارِ وَلَدِكَ لَكَ (مجمع الزوائد للهيثمی رقم ۲۱۰)

رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ فرمایي چې یو سړي ته به د قیامت په ورځ د غرونو په مقدار نیکی میلاو وشي، نو دی به حیران شي وایي به یا الله! دا د کوم ځای څخه راغلې؟ نو الله تعالی به ورته وفرمایي چې په سبب د استغفار د بچي ستا.

۱۰-د حضرت انس رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ په روایت کې راځي چې رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې زما امت د ګناهونو سره قبرونو ته داخلولی شي او بیا د ګناهونو څخه صفا د قبرونو څخه را ایستلی شي، د خلکو د استغفار له وجې یې الله تعالی د ګناهونو څخه صفا کوي (شرح الصدور ص۱۲۸)

۱۱- حضرت انس رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ فرمایي چې ما د رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ څخه پوښتنه وکړه چې یارسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ ایا زمونږ صدقات، خیراتونه او دعاګانې مړو ته فایده رسوي؟ رسول الله صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ د تاکید سره وفرمایل چې هو رسیږي او متوفی ورته داسې خوشحالیږي لکه تاسو چې ښکلو او قیمتي تحفو ته خوشحالیږئ (مسند احمد)

۱۲- د حضرت انس رَضِیَ اللّٰہُ عَنْہُ په روایت کې راځي چې جبرئیل علیه السلام دورځه وو صدقات په یو لوخي کې اچوي او د مړي د قبر خواته دریږي بیا متوفی ته اواز کوي چې دا ستا د اهل له طرف هدیه ده نو مړی یې قبلوي او خوشحالیږي او نور مړي چې د خپل اهل لخوا څخه ورته هدیه نه وي راغلی هغوي خفه کیږي (شرح الصدور ص۱۲۹)

۱۳- عَنْ عَلِیِّ بْنِ أَبِی طَالِبٍ رضی الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ «مَنْ مَرَّ عَلَى الْمَقَابِرِ وَقَرَأَ {قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ} إِحْدَى عَشْرَةَ مَرَّةً، ثُمَّ وَهَبَ أَجْرَهُ لِلْأَمْوَاتِ أُعْطِيَ مِنَ الْأَجْرِ بِعَدَدِ الْأَمْوَاتِ.

څوک چې لس ځلې قل هو الله احد ولولي، او ثواب يې مړو ته وبخښي، نو الله تعالی به د مړو په مقدار اُجر ورکړي.

۱۴- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ دَخَلَ الْمَقَابِرَ ثُمَّ قَرَأَ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ وَقُلْ هُوَاللّٰهُ أَحَدٌ وَأَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ ثُمَّ قَالَ إِنِّي جَعَلْتُ ثَوَابَ مَا قَرَأْتُ مِنْ كَلَامِكَ لِأَهْلِ الْمَقَابِرِ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ كَانُوا شُفَعَاءَ لَهُ إِلَى اللّٰهِ تَعَالٰى) (تحفة الاحوذی).

۱۵- عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ دَخَلَ الْمَقَابِرَ فَقَرَأَ سُوْرَةَ يٰس خَفَّفَ اللّٰهُ عَنْهُمْ وَكَانَ لَهُ بِعَدَدِ مَنْ فِيْهَا حَسَنَاتٌ) (تحفة الاحوذی).

۱۶-په حضرت سعد بن معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې قبر تنګ شو، نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سبحان الله ، سبحان الله کلمات شروع کړل صحابه وو رضی الله عنهم هم شروع کړل، الله تعالی د دوی د سبحان الله په برکت باندې قبر بيرته ازاد کړو، د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حديث خلاصه (مشکوة صـ۲۶)

۱۷-د حضرت زينب رضی الله عنها بنت رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات په واقعه کې ديو حديث خلاصه داسې ده چې د حضرت زينب رضی الله عنها د وفات په روځ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير غمګين وو د قبر تنګي او د حضرت زينب رضی الله عنها کمزوری يې په خيال کې ګرزيدله، کله چې قبر تيار شو، نو رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر ته کوز شو دعاېې وکړه، الله تعالی يې دعا قبوله کړه او بيرته خوشحاله د قبر څخه را وچت شو (مجمع الزوائد ج ۳صـ۴۷، کنز العمال، ج ۸ص، ۱۲۰، اسد الغابة ج۵صـ۴۶۸)

۱۸-شيخ ابو زيد قرطبي رحمه الله فرمايي چې ما أوريدلي وو چې څوک چې اويا زره ځلې (لااله الا الله) ولولي نو الله تعالی ورته د جهنم د اور څخه نجات ورکوي، نو ما اويا زره ځلې لااله الا الله د خپل ځان لپاره هم ولوستل او د خپلې بي بي لپاره مې هم ولوستل او د أخرت لپاره مې ذخيره کړل، حضرت قرطبي رحمه الله فرمايي چې يوه ورځ زما سره يو صاحب الکشف نوجوان په ډوډۍ ناست وو چې ناڅاپه په ژړا شو او ويلې يې چې زما مور په جهنم کې ده، حضرت قرطبي رحمه الله فرمايي چې ما هغه اويا زره ځلې (لا اله الا الله) د ده مور ته پټ وبښل، لږ وروسته هغه نوجوان وفرمايل چې کاکا زما مور ته الله د أور څخه نجات ورکړو، (فضايل اعمال از مولانا زکريا رحمه الله صـ ۴۸۴)

۱۹۔د مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمه الله خانقاه ته چا یو نوی دخاورو کنډولی راوړو ، لکن کله به چې خلکو په دې کنډولي کې اوبه واچولې نو ترخې به شوې او چې په بل ګیلاس کې به یې واچولې نو په عادي حال کې به وې، خلک حیران وو، یو چا مولانا رشید احمد ګنګوهي رحمه الله خبر کړو، هغه رحمه الله مراقبه شو او د مراقبې څخه وروسته یې وفرمایل چې د دې کنډولي خاوره په قبرستان کې د کوم قبر خاوره ده ،او دهغې قبر والا ته عذاب ورکول کیږي او دهغې عذاب اثار د دې کنډولي او بو ته هم منتقل کیږي، حضرت ګنګوهي رحمه الله وفرمایل چې او یازره ځلې (لااله الاالله) ولولئ او ثواب یې هغه مړي ته وبښئ چې دهغه دقبر د خاورو څخه دا کنډولی جوړ شوی دی، کله یې چې د اوظیفه پوره کړه او بیا یې هغه اوبه معاینه کړې ،نو هغه تریخوالی ختم شوی وو (خطبات حکیم العصر ص ۶ ص ۱۳۱).

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وآله واصحابه اجمعین



بسم الله الرحمن الرحیم

الحمدلله وحده والصلوة والسلام علی من لا نبيّ بعده، امابعد!

داهل سنت والجماعة دمسلک مطابق کله چې کوم خوش قسمته مسلمان د نبي ﷺ روضې مبارکې ته ورشي، نو دصلوة او دسلام عرض کولو څخه وروسته دې د رسول الله ﷺ په وسيله باندې دعا وکړي او رسول الله صلی الله عليه وسلم ته دې دشفاعت درخواست وکړي، داسې دې ووايي چې أي دالله رسوله! زه دخپل سفارش درخواست درته کوم، يا رسول الله زما شفاعت وکړه (عقائد علماء ديوبند عقيده نمبر ۵) داهل سنت والجماعة په نيز دا استشفاع جائزه او مستحبه ده، آب حيات ص ۴۰، نشر الطيب ص ۲۳۹)

## داهل بدعتو مسلک

مماتيان بدعتيان ليکي چې دنبي ﷺ دقبر مبارک سره استشفاع بدعت سيئه او شرک دی، د صحابه وو د اجماع او د امت دتعامل څخه مخالفت دی (اقامة البرهان ص ۳۱۲، نداي حق ص ۵۳۱، المسلک المنصور ص ۶۹)

## داهل سنت والجماعة دلائل

الله تعالی فرمايي چې: وَمَا أَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللهِ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَّلَمُوْا أَنْفُسَهُمْ جَآءُوْكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا اللهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا. (النساء ۶۴) حاصل دا چې الله تعالی فرمايي چې: ما پيغمبران صرف ددې لپاره ليږلي دي چې دالله په اذن باندې يې پيروي وکړی شي او کله چې دوي د خپلو ځانونو سره ظلم وکړو، نو که تا ته راغلي وی او د الله تعالي څخه يې ښښنه غوښتې وی او رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته ښښنه غوښتې وي، نو خامخا به دوي الله تعالی ښه توبه قبلونکی او مهربان موندلی وي.

ددې ايت په تشريح کې مفسرين فرمايي چې: يُرْشِدُ تَعَالَى الْعُصَاةَ وَالْمُذْنِبِيْنَ إِذَا وَقَعَ مِنْهُمُ الْخَطَأُ وَالْعِصْيَانُ أَنْ يَأْتُوا إِلَى الرَّسُوْلِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَسْتَغْفِرُوا اللهَ عِنْدَهُ، وَيَسْأَلُوْهُ أَنْ يَسْتَغْفِرَ لَهُمْ، فَإِنَّهُمْ إِذَا فَعَلُوْا ذٰلِكَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِمْ وَرَحِمَهُمْ وَغَفَرَ لَهُمْ، وَلِهٰذَا قَالَ: {لَوَجَدُوا اللهَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا} وَقَدْ ذَكَرَ جَمَاعَةٌ مِنْهُمْ: الشَّيْخُ أَبُوْ نَصْرِ بْنُ الصَّبَّاغِ رحمهما الله تعالی في

كِتَابِهِ "الشَّامِلِ" الْحِكَايَةَ الْمَشْهُورَةَ عَنْ عن العتبى رحمه الله قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ، سَمِعْتُ اللّٰهَ يقول: ﴿وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللّٰهَ تَوَّابًا رَحِيمًا﴾ وَقَدْ جِئْتُكَ مُسْتَغْفِرًا لِذَنْبِي مُسْتَشْفِعًا بِكَ إِلَى رَبِّي ثُمَّ أَنْشَأَ يَقُولُ:

يَا خَيْرَ مَنْ دُفِنَتْ بِالْقَاعِ أَعْظُمُه  فَطَابَ مِنْ طِيبِهِنَّ الْقَاعُ وَالْأَكَمُ...

نَفْسِي الفداءُ لقبرٍ أَنْتَ ساكِنُه  فِيهِ العفافُ وَفِيهِ الجودُ والكرمُ...

ثُمَّ انْصَرَفَ الْأَعْرَابِيُّ فَغَلَبَتْنِي عَيْنِي، فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّوْمِ فَقَالَ: يَا عُتْبِي، الحقِ الْأَعْرَابِيَّ فَبَشِّرْهُ أَنَّ اللّٰهَ قَدْ غَفَرَ لَه. [تفسير ابن كثير ج۲ ص۳۲۸، تفسير در منثور ج۲ صـ۴۷۳ والقول البديع صـ۲۸، كتاب الايضاح في مناسك الحج والعمرة للنووي صـ۴۵۵ حاشية على شرح الايضاح لابن حجر المكي صـ۴۸۹ كتاب المناسك لملاعلي القاري صـ۵۱۳].

خلاصه دا چې الله تعالى ګناهګارانو ته دا طريقه خودلې ده چې (د وفات څخه مخکې او يا د وفات څخه وروسته) رسول الله ﷺ ته ورشي، هلته دالله تعالى څخه ښښنه وغواړي او د نبي ﷺ څخه هم غوښتنه وکړي چې دالله تعالى څخه ورته ښښنه وغواړي، کله چې دا کار وکړي نو الله تعالى به يې توبه قبوله کړي رحم به ورباندې وکړي او ښښنه به ورته وکړي، حضرت عتبي رحمه الله فرمايي چې يوه ورځ د نبي ﷺ د قبر مبارک سره ناست وم، نو يو بانده چې راغلو او وې فرمايل چې السلام عليکم يا رسول الله ﷺ ما دالله تعالى څخه اوريدلي دي چې فرمايلي يې دي چې که چيرته دوي ګناه وکړي او تا ته راشي دالله څخه دخپلو ګناهونو لپاره ښښنه وغواړي او رسول الله ﷺ هم ورته ښښنه وغواړي، نو الله تعالى به ښه توبه قبلوونکى او مهربان پيدا کړي، نو يا رسول الله ﷺ! زه تا ته راغلى يم او دخپلو ګناهونو څخه مغفرت غواړم او تا الله ته سفارش کوم، بيا يې دا مذکور اشعار وويلې او لاړو، حضرت عتبي رحمه الله فرمايي چې په ما باندې خوب غلبه وکړه نو نبي ﷺ مې په خوب کې وليدلو راته وې فرمايل چې دې بانده چې پسې ورشه او زيرى ورته ورکړه چې الله تعالى وبښلې.

ددې واقعې تحسين کونکي ډير محدثين دي لکه امام نووي. [کتاب الايضاح صـ ٤٥٤ تقي الدين السبکي، شفاء السقام صـ ٢٣٥) امام سمهودي خلاصة الوفاء ج ١ صـ ٥٦]

مولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمايي چې په مواهب کې د امام ابو المنصور الصباغ، ابن نجار، ابن عساکر، او ابن الجوزي، رحمهم الله په سند باندې د محمد بن حرب څخه دا واقعه رانقل شوې ده

او محمد بن حرب په ۲۲۸ هـ کې وو، خلاصه دا چې دا دخیرالقرون واقعه ده او دهیچا څخه ورباندې نکیر نه دی رانقل شوی، لهذا دا واقعه حجت دی. (نشر الطیب صـ ۱۴۳)

## دا حکم اوس باقي دی

(۱) امام سمهودي رحمه الله فرمايي: (وقد فهم العلماء من الاية العموم واستحبوا لمن أتى القبر ان يتلوها ويستغفرالله و اورد واحكاية العتبي الاتية في كتبهم مستحسنين لها،( خلاصة الوفاء باخبار دار المصطفى ج ۱ صـ ۴۵ )

علماوو ددې ایت څخه عموم رافهمولی دی او مستحبه یې ګڼلې ده چې څوک دنبي ﷺ قبر مبارک ته ورشي نو دا ایت دې ولولي او دالله تعالی څخه دې بښنه وغواړي او د عتبي رحمه الله واقعه یې ذکر کړې ده او ددې واقعې تحسین یې کړې دی.

(۲) امام سبکي رحمه الله فرمايي چې: والاية وان وردت في اقوام معينين في حالة الحياة فتعم بعموم العلة كل من وجد فيه ذلك الوصف فى الحياة وبعد الموت ولذلك فهم العلماء من الاية العموم فى الحالتين واستحبوا لمن أتى الى قبره ﷺ ان يتلوا هذه الاية ويستغفرالله تعالى. (شفاء السقام صـ ۱۲۵ )

(۳) مولنا قاسم نانوتوي رحمه الله فرمايي چې په دې ایت کې تخصیص نشته، د رسول الله ﷺ د زمانې خلکو به هم همداسې کول او وروستني خلک به هم همداسې کوي او څرنګه به تخصیص راشي؟ د رسول الله ﷺ وجود خود ټول امت لپاره رحمت دی، لکه د نبي ﷺ په ژوند کې چې نبي ﷺ ته راتلل او استشفاع متصوره وه نو اوس هم متصوره ده، ځکه چې نبي ﷺ په قبر کې ژوندی دی، (اب حیاة صـ ۵۲)

(۴) مفتي شفیع رحمه الله ددې ایت لاندې لیکي چې: دا ایت اګر چې د منافقانو په باره کې نازل شوی دی لکن ددې ایت کریمه څخه یو قانون را ووتلو، هغه دا چې هر سړی چې نبي ﷺ ته ورشي او نبي ﷺ ورته د مغفرت دعا وکړي، نو الله تعالی هغه سړي ته ضرور مغفرت کوي او نبي ﷺ ته ورتلل لکه چې په دونیوي ژوند کې کیدلو نو همدا رنګه اوس هم د نبي ﷺ روضې مبارکې ته دورتللو همدا حکم دی حضرت علي رضي الله عنه فرمايي چې کله چې مونږ د نبي ﷺ د دفن کولو څخه فارغ شو، نو درې ورځې وروسته یو نوجوان راغلو او په چیغو او په ژړا ژړا یې دا ایت کریمه لوستلو او ویل به یې چې یا الله تعالی تاخو په دې ایت کریمه کې وعده کړې ده چې څوک نبي ﷺ ته ورشي او دخپلو ګناهونو لپاره بښنه وغواړي او رسول الله ﷺ ورته بښنه وغواړي نو الله تعالی ورته بښنه کوي نو له دې وجې یا رسول

الله ﷺ ته راغلی یم ماته د مغفرت سوال وکړه ، په دغه وخت کې چې کوم خلک حاضر وو دهغوي بیان دی چې د رسول الله ﷺ د قبر څخه دې څوان ته اواز راغلو چې (قد غفر لک) تا ته مغفرت وشو. (معارف القرآن ج ۲ صـ۴۵۹) دجواز او د استحباب لپاره ضعیف غیر موضوع حدیث هم حجت دی (کتاب الأذکار صـ۷ص، تسکین الصدور صـ۳۶۷)

(۵) ظفر احمد العثماني رحمه الله فرمايي چې: فثبت ان حكم الاية باق بعد وفاته ﷺ فينبغي لمن ظلم نفسه ان يزور قبره ويستغفرالله عنده فيستغفر له الرسول ﷺ (اعلاء السنن ج ١٠ صـ ٤٩٨).

(٦) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې: (روى بعض الحفاظ عن ابي سعيد السمعاين انه روى عن علي رضي الله عنه انه بعد ما دفن ﷺ جاء اعرابي فقال يا رسول الله ﷺ جئتك تستغفرلي الى ربي فنودي من القبر الشريف ان قد غفر لک (تحريرات حديث صـ ٣٩٦).

**دوهم دلیل:** ویه قال حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ رحمه الله، عَنِ الْأَعْمَشِ رحمه الله، عَنْ أَبِي صَالِحٍ رحمه الله، عَنْ مَالِكِ الدَّارِ رحمه الله، قَالَ: وَكَانَ خَازِنَ عُمَرَ رضي الله عنه عَلَى الطَّعَامِ، قَالَ: أَصَابَ النَّاسَ قَحْطٌ فِي زَمَنِ عُمَرَ رضي الله عنه، فَجَاءَ رَجُلٌ إِلَى قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، اسْتَسْقِ لِأُمَّتِكَ فَإِنَّهُمْ قَدْ هَلَكُوا، فَأُتِيَ الرَّجُلُ فِي الْمَنَامِ فَقِيلَ لَهُ: "ائْتِ عُمَرَ فَأَقْرِئْهُ السَّلَامَ، وَأَخْبِرْهُ أَنَّكُمْ مُسْتَقِيمُونَ وَقُلْ لَهُ: عَلَيْكَ الْكَيْسُ، عَلَيْكَ الْكَيْسُ "، فَأَتَى عُمَرَ رضي الله عنه فَأَخْبَرَهُ فَبَكَى عُمَرُ رضي الله عنه ثُمَّ قَالَ: يَا رَبِّ لَا آلُو إِلَّا مَا عَجَزْتُ عَنْهُ. (مصنف ابن ابی شیبه رقم ۳۲۰۰۲ باب ماذکر فی فضل عمر رضي الله عنه).

د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې سخته قحطي راغله، نو یو سړی د نبي ﷺ قبر ته راغلو او وې فرمایل چې یا رسول الله ﷺ د خپل امت لپاره باران وغواړه ځکه چې دوي هلاک شو، نو نبي ﷺ همدې سړي ته په خوب کې ورغلو او ورته وې ویل چې عمر ته ورشه، زما له خوا ورته سلام ووایه او خبر ورته ورکړه چې په تاسو باندې به باران راوورېږي او دا هم ورته ووایه چې هوښیار اوسه، هوښیار اوسه ، هغه سړي حضرت عمر رضي الله عنه ته راغلو ټوله واقعه یې ورته بیان کړه، حضرت عمر رضي الله عنه په ژړا شو او وې فرمایل چې یا الله تعالی زه به د خپل طاقت مطابق سستي نه کوم.

**مصححين:** حافظ ابن حجر رحمه الله دې روایت ته صحيح ویلي دي. (فتح الباري ج ۲ صـ۴۹۵ باب سؤال الناس الامام الاستسقاء الخ)

حافظ ابن کثیر رحمه الله ورته صحيح ویلی دی (البدایه والنهایه ج ۷ صـ۱۰۵)

امام سمهودي رحمه الله ورته صحيح ویلي دي (خلاصة الوفا ج ۱ صـ۴۹)

ابن حجر المکي ورته صحيح ویلي دي (حاشية على الايضاح صـ۴۹۰)

امام تقي الدين السبكي ورته صحيح ويلي دي: (شفاء السقام صـ ۳۸۲).

**فائده:** د رسول الله ﷺ روضې مبارکې ته دا راغلي سړی حضرت بلال ﷺ وو، وګوره فتح الباري، تاريخ طبري، البدايه والنهايه.

## دامت دعلماوو څخه داستشفاع ثبوت

(۱) ثم تأتي القبر وتستقبل وتقول السلام عليک أيها النبي ... اللّهمّ انک قلت وقولک الحق ولوانهم اذ ظلموا الايه وقد اتيتک مستغفرا من ذنوبي مستشفعا بک الى بى الخ (المغني لابن قدامه ج ۳ صـ ۵۹۹)

(۲) ويتوسل به في حق نفسه ويستشفع به الى ربه سبحانه وتعالى (المجموع شرح المهذب ج ۳ ص۲۷٤)

(۳) ثم يقول يا رسول الله ﷺ ان الله تعالى قال: فيما انزل عليک (ولوانهم اذ ظلموا) وقد ظلمت نفسي ظلما كثيرا وأتيت بجهلي وغفلتي امرا كبيرا وقد وفدت عليک زائرا وبک مستجيرا مستغفرا من ذنبي سائلا منک ان تشفع الى ربي ... متوسل بک الى الله تعالى (خلاصة الوفاء صـ ۵۷ ج ۱)

(٤) وقدجئناک من بلاد شاسعة وامكنة بعيدة قطعنا ها بقصد زيارتک لنفوز شفاعتک والنظر الى مأثرک ومعاهدک والقيام بقضاء بعض حقک والاستشفاع بک الى ربنا .... فاشفع لنا الى ربنا الخ (نورالايضاح ج۱صـ ۱۵۵)

(۵) فيتوجه الى قبره ﷺ فيقف عند رأسه الشريف مستقبل القبلة ثم يدنو منه ثلاثة اذرع او اربعة ولا يدنو اكثر من ذلک ولا يضع يده على جدار التربة ويقف كما يقف فى الصلوة ويمثل صورته الكريمة البهية كانه نايم في لحده عالم به يسمع كلامه ثم يقول السلام عليک يانبي الله ورحمة الله وبركاته .... ولا يرفع صوته ولا يخفضه كثيرا ويبلغه سلام من اوصاه فيقول السلام عليک يارسول الله ان فلان بن فلان يتشفع بک الى ربک فاشفع له ولجميع المسلمين . (كتاب الفقه على المذاهب الاربعة فصل زيارة قبر النبي ﷺ).

(٦) ويبلغه سلام من اوصاه فيقول السلام عليک يا رسول الله ﷺ من فلان بن فلان يستشفع بک الى ربک فاشفع له ولجميع المسلمين الخ (فتاوى عالمگيري خاتمة في زيارة قبر النبى ﷺ.

(۷) وقد اطبق الائمة الحنفية على سنية زيارة النبي ﷺ وزيارة صاحبيه وطلب الشفاعة منهم (المنحة الوهبية في رد الوهابية صـ ۱۵)

(۸) مولنا عبد الحي لکنوي رحمه الله د وسیلې او د استشفاع لپاره د احادیثو درا نقلولو څخه وروسته فرمایي چې د دې ایاتونو او احادیثو څخه ظاهره شوه چې د اولیاوو څخه دعا غوښتل او د دوئ په ذریعه باندې دعا کول په هیڅ صورت کې ناجائز نه دي. (مجموعة الفتاوی اردو ج ۳ صـ ۲۹۲)

(۹) مولنا رشید احمد گنگوهي رحمه الله فرمایي چې: د یو ولي قبر ته ورتلل او دا ورته ویل چې ای فلانکیه الله تعالی ته سوال وکړه چې زما حاجت پوره کړي په دې کې د علماو و اختلاف دی څوک چې سماع الموتی مني نو هغوي د ېته جائز وایي او څوک چې سماع الموتی نه مني نو هغوي د دې څخه منع کوي، لکن د انبیاوو په سماع کې د هیچا اختلاف نشته له دې وجې دا به مستثنی کولی شي او د دې د جواز دلیل دا دی چې فقهاوو دا لیکلي دي چې د روضې مبارکې د زیارت په وخت کې به د شفاعت طلب کوی همدا د جواز لپاره کافي دی. (فتاوي رشیدیه صـ ۱۲۳، تالیفات رشیدیه صـ ۱۳۴)

په بل ځای کې فرمایي چې بیا به د نبي ﷺ په وسیله باندې دعا وکړې او شفاعت به وغواړې داسې به ووایې چې یارسول الله ﷺ اسألک الشفاعة واتوسل بک الی الله في ان أموت مسلما علی ملتک وسنتک، (تالیفات رشیدیه صـ ۶۵۰)

(۱۰) د حضرت مولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله قول مخکې د اول دلیل په تشریح کې ولیکل شو (نشر الطیب صـ ۲۴۳)

(۱۱) مولنا یوسف لدهیانوي شهید رحمه الله فرمایي چې د ټولو پیغمبرانو او د نبي ﷺ په باره کې زما عقیده حیات دی او د رسول الله ﷺ روضې مبارکې ته د ورتللو څخه وروسته د نبي ﷺ څخه د شفاعت د غوښتلو مسئله زمونږ په کتابونو کې لیکل شوی ده، لدې وجې څخه د کوم نیک بخته سړی چې دا سعادت په نصیب شو چې د نبي ﷺ روضې مبارکې ته ورشي نو د رسول الله ﷺ په دربار کې دې د دعا او د شفاعت درخواست وکړي (اختلاف امت او صراط مستقیم صـ ۵۹)

(۱۲) مفتي محمود حسن گنگوهي رحمه الله فرمایي چې: د نبي ﷺ قبر ته د ورتللو څخه وروسته داسې دعا کول ثابت دي، فتاوی محمودیه ج ۱ صـ ۳۵۷) د کوم ولي او یا د نبي قبر ته ورتلل او د دعا درخواست کول څه حکم لري؟

**جواب:** د رسول الله ﷺ روضې ته ورتلل او خطاب ورسره کول صحيح دي، ځکه چې د حديث څخه ثابته ده چې نبي ﷺ يې اوري، (فتاوى محموديه ج ۱ صـ ۵۷۷)

(۱۳) مفتي عبد الرحيم لاچپوري رحمه الله د زبدة المناسک په حوالې سره ليکي چې بيا به د رسول الله ﷺ په وسيله باندې دعا وکړئ او شفاعت به ترېنه وغواړئ او داسې به ووايې چې ای د الله تعالى رسوله زه تا ته د شفاعت درخواست کوم او الله تعالى ته دې وسيله کوم (فتاوى رحيميه ج ۱ صـ ۱۵۵)

(۱۴) مفتـي عبد الشـکور ترمـذي رحمه الله فرمـايي چې: د رسـول الله قبـر تـه ورتلـل او د شـفاعت غوښتنه ترېنه کول او داسې ويل چې يا رسول الله ﷺ زما د مغفرت شفاعت وکړه جائز دي (عقائد علماء ديوبند عقيده نمبر ۵) په دې کتاب باندې دلاندې علماؤ تصديقونه دي.

د ديوبند څلويښت کلن مهتمم قـاري طيب رحمه الله مفتي شـفيع رحمه الله ظفر احمد عثماني رحمه الله، مولنا عبد الله بهلوي رحمه الله، محمد يوسف بنوري رحمه الله، خير محمد جالندهري رحمه الله، جميـل احمد تهانوي رحمه الله، مفتي محمـود رحمه الله، شـمس الحق افغاني رحمه الله، مولنا على محمد رحمه الله، مفتـي عبد القادر رحمه الله، مولنا محمد شريف کشميري، وغيره.

(۱۵) د اهل سنت والجماعة امام مولنا سرفراز خان صفدر رحمه الله فرمايي چې چونکې د نبي ﷺ حيات په قبر کې په تواتر سره ثابت دی لدې وجې د نبي ﷺ قبر ته ورتلل او داسې ويـل چې يا رسـول الله ﷺ زما د مغفرت لپاره شفاعت وکړه، جائز او صحيح دی، تسکين الصدور صـ ۳۳۶)

اللهم ارزقنا زيارته وشفاعته بجاهه صلي الله عليه وسلم .
واصحابه وازواجه وزرياته وسلم.

بسم الله الرحمن الرحیم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام علی من لا نبی بعده،

امابعده!

**د اهل السنة والجماعت مسلک:**

سماع الموتی (ای الموتی باعتبار عالم الدینا، لکنهم الاحیاء باعتبار عالم البرزخ) نو سماع الموتی په ځلور قسمه ده

درې قسمه اتفاقي او څلورم قسم اختلافي ده

(۱) د نبي ﷺ په سماع عند القبر کې اختلاف نشته، بلکې د أهل سنت والجماعت د ټولو محدثينو او مجتهدينو او د علماوو په مابين کې اتفاقي ده (فتاوی رشيديه صـ ۱۵۷، کتاب العلم، اہل قبور سے استعانت) او اهل بدعت مماتيان د ټول امت په خلاف د سماع النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عند القبر قايلينو ته مشرکان وايي.

(۲) سماع في الجملة: د عامو مړو سماع في الجمله هم اتفاقي ده، حافظ ابن کثير رحمه الله فرمايي چې په سماع في الجمله باندې د سلفو صالحينو اجماع ده او په تواتر سره ثابته ده (تفسير ابن کثير ج ۳ صـ ۴۳۴) مماتيان د سماع في الجملة قايلين هم مشرکان کڼي.

(۳) سماع عن داخل القبر من النکيرين وغيرهما من الملائکة: د نکيرينو د سوال او جواب سماع هم يقيني ده، نکيرين مړي ته وايي چې: من ربك؟ مړی يې اوري او جواب ورکوي چې: ربي الله، بيا ورته وايي چې: ما دينك؟ مړی يې اوري او جواب ورکوي چې: دِيْنِيَ الإِسْلَام، بيا ورته وايي چې: ومن نبيك؟ مړی يې اوري او جواب ورکوي چې: نبي محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

(۴) عامه سماع: په غیر منصوصو ځایونو کې دعامو مړو په سماع کې اختلاف دی، مولنا رشید احمد ګنګوهي رحمه الله فرمایي چې: دا مسئله دصحابه کرامو دزماني څخه اختلافي ده. (فتاوی رشیدیه صـ(۲۴۹) کتاب العقائد، آپ کے مسائل اور انکا حل ج ۱ ص- ۲۹)

مفتي کفایت الله الدهلوي رحمه الله فرمایي چې په غیر منصوصو ځایونو کې دسماع الموتی مسئله داولو قرنونو څخه اختلافي ده، دصحابه وو کرامو هم په دې کې اختلاف وو او دهغوئ څخه وروسته تر ننه پورې دا مسئله اختلافي ده، له دې وجې هیڅوک دا حق نه لري چې په دې مسئله کې دبل فریق تضلیل یا تفسیق او یا تجهیل وکړي، ځکه چې دده ددې تضلیل، تفسیق او تجهیل اثر تر صحابه وو کرامو پورې رسیږي (کفایة المفتي ج ۱ صـ ۲۰۱)

مولنا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمایي چې: دواړه طرفته دلایل او اکابر دي، د داسې اختلافي امر فیصله څوک کولی شي؟ (امداد الفتاوی ج ۵ صـ ۳۷۷)

حاصل دا چې په څلورم قسم سماع الموتی کې د اهل سنت والجماعت مسلک دادی چې مثبتین د سماع الموتی هم اهل الحق دی او نافیین د سماع الموتی هم اهل الحق دي او د اهل بدعتو مماتیانو مسلک دادی چې مثبتین د سماع الموتی اهل حق نه دی، بلکې مشرکان دي.

فائده: بعضې اسلافو چې فرمایلي دي چې په مړي یې نه اوري، هغوي نفې د سماع فی الجمله نه کوي بلکې، دهغې معنی داده چې په کومو ځایونو کې چې د احادیثو څخه سماع ثابته وي، هلته یې یقینا أوري او په کومو ځایونو کې چې د احادیثو څخه نه ده ثابته هلته معامله الله تعالی حواله ده.

**د اهل بدعتو د مسلک تفصیل:** د اهل بدعتو مماتیانو مسلک دادي چې د سماع الموتی مسئله اختلافي نده، بلکې د اشاعت التوحید والسنة په نوم د بدعتیانو د ډلګۍ تکفیري اکابرو په خپل مقننه مجلس کې څو ځلې فیصلې وکړې او قایلینو د سماع الموتی ته یې پکې کافر او مشرک وویلې.

(۱) فیصله یې په سنه (۱۹۸۱ هق) وشوه، ددې فیصلو په متن کې د دوي اختلاف پدې کې وو چې قایلینو د سماع الموتی ته کافران وو وایو او که مشرکان؟ (نو بعضو پکې وویلې چې د دې فتوی په وجه خو د امام بخاري رَحِمَهُ اللّٰهُ په شان اسلاف او اکابر هم کافران ثابتیږي، لهذا قایلینو د سماع الموتی ته به

مشركان وو ايو ،(لهذا امام بخاري وغيره اكابر او اسلاف د دوي په نيز مشركان دي) او بعضو ورته كافر ويلي دي.

(۲) په سنه (۱۴۰۶هـ) د صفر المظفر په مياشت كې مطابق د (۱۹۸۶م) په لسم د اكتوبر د بدعتي اشاعتي تكفيريانو مقتّنه مجلس په قائلينو د سماع الموتى د كفر فتوى ولګوله، پدې فتوى د مولوي طاهر پنج پير، مولوي عنايت الله ګجراتي ، مولوي محمد حسين نيلوي، مولوي خان بادشاه ابن شاند يګل او د احمد سعيد ملتاني دسخطونه موجود دي .

(۳) بيا په سنه (۱۹۹۲م) كې چې د بدعتي تكفيريانو يعنې د اشاعت التوحيد والسنة مقنّنه مجلس كومه فتوى صادره كړه نو په هغې كې يې قايلينو د سماع الموتى ته مشركان وويلې، پدې فتوى د دوي د موجوده امير طيب معتزلي ، عنايت الله ګجراتي ، محمد حسين نيلوي او احمد سعيد ملتاني وغيره وو دستخطونه موجود دي، نو قاضي عصمت الله اشاعتي به ويل چې دا د كفر او د شرك فتوه يوه ده، دوهمه د أولې وضاحت دى، (خس كم جهان پاک ص ۶۸) درانګه ماهنامه صراط مستقيم او نغمه توحيد ،د مماتيانو كتابونه دي، نو د دوي په فتوى په سماع النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ عند القبر، او سماع في الجمله كې ټول صحابه وو، تابعين ،تبع تابعين، محدثين، فقهاء او ټول اكابرو د ديوبند كافران دي ، ځكه چې په سماع النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ عند القبر او سماع في الجمله د دې ټولو اتفاق دى او په عامه سماع الموتى كې هم جمهور صحابه ، تابعين، تبع تابعين محدثين، فقهاء امام بخاري او اكابر د ديوبند د دوي په نيز كافران دي، ځكه چې عامه سماع الموتى اختلافي ده، لكن جمهور د سماع الموتى قايل دي،(نداء حق ج۲ص۸۵)

امام بخاري مطلقا د سماع الموتى قايل دى.

فايده: دا تكفير ټول پنچپيران كوي، خو نومونه نه أخلي او احمد سعيد ملتاني نومونه أخلي، نوم په نوم د دې محدثينو فقهاوو علماوو د ديوبند وغيره وو تكفير كوي، د امام بخاري په باره كې كفري خبرې كوي، دا امام بخاري د راويانو په باره كې كفري خبرې كوي، د امام بخاري په خلاف يې كتاب ليكلى دى، په نوم د قرآن مقدس بخاري محدث، په صحيح البخاري يې (۵۴) اعتراضونه كړي دي، نو دا نور پنچپيريان داسې دي لكه د مدينې منافقان، ټول امت ته كافر وايي د امام بخاري په شان

محدثينو ته کافر وايي، خو نومونه، نه اخلي او احمد سعيد ملتاني پکې منافقت نکوي، بلکې د ابو جهل په شان ښکاره نوم په نوم ورته کافر وايي.

داحمد سعيد ملتاني (خادم مرکزي اشاعت التوحيد والسنة) يو څو عبارات تاسو ولولئ:!

## د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ په باره کې گستاخيانې :

۱-وايي چې: امام بخاري پخپل روايت سره د نابالغه جنکيانو سره د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ جنسي لوبې ثابتوي، (ص۵۷)

۲-وايي چې: په رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ کې چې د لا أدري کومې تاريکيانې وې نو د جبرئيل عليه السلام په وجه لرې شوې، ص(۸۸)

۳-وايي چې: دبخاري د روايت څخه معلوميږي چې دابن أم مکتوم په وينا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ دخپل طرف څخه په ايت کې غير أولى الضرر وليکلو، ص(۱۰۶)

## دصحابه کرامو په باره کې گستاخي:

يو صحابي حضرت نعمان بن شراحيل او دهغه ذلور حضرت أميمې رضى الله عنها په باره کې ليکي چې: کافره او دکافر لور، ص(۷۰) معاذ الله، حالانکې اميمه دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ بي بي وه او حضرت نعمان جليل القدر صحابي وو.

## د امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ په باره کې گستاخي:

۱-بخاري ضعيف فى الحديث او متعصب وو ص(۱)

۲-په قران کې يې بصيرت نه وو ص(۶)

۳-امام بخاري دقران د قطعي نص په خلاف دسماع الموتى دروغژن روايت پيش کړی دی ص(۱۱)

احمد سعيد ملتاني ديرش کاله د الله تعالى، دنبي کريم صلى الله عليه وسلم، دصحابه وو، دمحدثينو او دامام بخاري تکفير کولو، او د اشاعت التلبيس والضلالة پنچپيريانو برداشت کولو، داشاعت التوحيد موجوده امير طيب طاهري ليکي چې: زما پلار به د احمد سعيد عزت کولو او دمقتدى

مجلس صدر یې جوړ کړی وو، (خس کم جهان پاک صـ ۱۴) دیرش کاله وروسته یې چې د اشاعتیانو تکفیر شروع کړو نو بیا یې د خپل جماعت څخه خارج کړو.

پروفیسر محمد افضل ضیاء لیکي چې: احمد سعید ملتانی کو کسی فقہی (شرعی) اختلاف کی بناپر جماعت سے نہیں نکالا گیا) په خس کم جهان پاک صـ (۱۶۷) کې یې چې د ده د اخراج کومې وجې ذکر کړې دي هغه صرف دادي چې ده به داشاعت د اکابرو تذلیل کولو.

نوچونکې فریق مخالف په دې مسئله کې د حد څخه تجاوز کولو او د دوي د کفر او د شرک د فتوو نسبت تر هغو صحابه وو کرامو پورې رسیدلو کوم چې د سماع الموتی قائل وو لدې وجې به دلته مونږ دا ثابته کړو چې د سماع الموتی د قائلینو موقف د قرآن او د سنت، او د امت د اکابرو د اقوالو څخه ثابت دی، زمونږ موقف هم دادی چې سماع الموتی شته دی، څوک چې کوم قبر ته لاړ شي او سلام وا چوي نو متوفی د ده سلام اوري او جواب هم ورکوي، که د مخکې څخه یې پیژندلو نو پیژني یې هم او زیارت ته په ورتللو سره خوشحالیږي هم، څوک چې په زوره باندې تلاوت کوي نو متوفی د ده تلاوت أوري هم او خوشحالیږي هم.

**۱-فایده:** په سماع الموتی کې افراط او تفریط شرک او ګمراهي ده، افراط دادی چې یو څوک دیو مخلوق په باره کې دا عقیده ولري چې دا هره خبره، دهر چا خبره، دهر ځای څخه، په هر وخت کې اوري، دا شرکي عقیده ده او تفریط دادی چې یو څوک دا عقیده ولري چې متوفی دهیچا خبره نه أوري، دهیڅ ځای څخه یې نه أوري، قریب وي او که بعید، په هیڅ وخت کې یې نه أوري، د داسې عقیدې والا ګمراه او بدعتي دي، دا د معتزله وو عقیده ده، اهل سنت والجماعت فرمایي چې متوفی د نزدې څخه خبرې اوري او د لرې څخه یې نه اوري، کله یې اوري او کله یې نه أوري، د الله تعالی په ور اورولو سره یې اوري په خپله مرضی یې نه أوري، دا عقیده د قرآن او د سنت سره موافقه ده او د خیر الأمور اوسطها مصداق ده، همدې ته سماع فی الجملہ وایي، بعضې علماء د سماع فی الجملہ تفسیر داسې کوي چې دعامو مړو سماع صرف دو مره یقیني ثابته ده څومره چې په احادیثو او په اثارو کې راغلې ده، لکه دسلام سماع، تلقین د تلاوت وغیره او د دې څخه ماسوی الله تعالی ښه خبر دی.

**۲- فایده:** په دې خبره اتفاق دی چې ژوندی انسان د نزدې څخه اوریدل کوي او د لرې څخه یې نه کوي.

په دې خبره هم اتفاق دی چې جمادات لکه تيګې او لوټې او ريدل نه کوي ، نه دنړۍ ځخه اونه د لرې ځخه، وجه دفرق يې دا ده چې په ژونديو کې د روح او دجسد تعلق دی او په جماداتو کې نشته، اوس که په متوفی کې د روح او دجسد تعلق وي، نو د ژوندي په شان به دا هم اوريدل کوي، او که د روح او دجسد تعلق نه وي ، بلکې دجماداتو په شان وي نو بيا به دجماداتو په شان دا هم أوريدل نه کوي، حالانکې د روح او دجسد تعلق ثابت دی نو سماع هم ثابته شوه، همدا رنګه په احاديثو کې دمتوفی احکام داسې دي لکه دژوندي، مثلا نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې سلام پرې أچوئ، دمړي دهډوکو ماتول داسې دي لکه دژوندي دهډوکو ماتول، کله چې څوک مړ شي نو دثابت قدمۍ دعا ورته وکړئ، مشکوة، حضرت عايشې رضی الله عنها به دحضرت عمر رضی الله عنه ځخه بعدالوفات پرده کوله ، نو چې کله د ژوندي په شان شو نو دژوندي په شان به أوريدل هم کوي.

**خلاصه:** چې حيات نه وي يعنې د روح د بدن سره تعلق نه وي ،هلته سماع نه وي او چې حيات وي هلته سماع وي او د مړو لپاره په عالم البرزخ کې حيات شته ،لهذا سماع به يې هم وي .

## دسماع الموتی لپاره د جمهورو دلائل

مماتيان هم مني چې سماع الموتی د جمهورو قول دی:

د مماتيانو په مشهور کتاب ، نداء حق ج (۲صـ۸۵) کې ليکي چې: ابن تيميه ، ابن القيم،ابن عبدالهادي، ابن حجر ،سيوطي ، نووي، عياض، محدث عبدالحق الدهلوي، ملا علي القاري رحمهم الله، وغيره دسماع الموتی قايل دي او همدا د جمهورو قول دی،انتهی.

حافظ ابن حجر او علامه عيني رحمهم الله فرمايي چې جمهور دسماع الموتی قايل دي، (بخاري ج اصـ ۱۸۳،حاشيه ۹)

**اول دليل:** عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ،عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: "العَبْدُ إِذَا وُضِعَ فِي قَبْرِهِ، وَتُوُلِّيَ وَذَهَبَ أَصْحَابُهُ حَتَّى إِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ، أَتَاهُ مَلَكَانِ،،(الحديث) بخاری ج۱صـ۱۷۸،باب الميت يسمع خفق النعال،مسلم ج۲صـ۳۸۶عرض مقعد الميت الخ

په موار الظمأن کې د ابو هريرة رضى الله عنه څخه داسې الفاظ مروي دی چې: إِنَّ الْمَيِّتَ لَيَسْمَعُ خفق نِعَالِهِمْ إِذَا وَلَّوْا مُدْبِرِينَ (ص ۱۹۶) او په شرح السنة کې داسې الفاظ دي چې: إِنَّ الْمَيِّتَ يَسْمَعُ حِسَّ النِّعَالِ إِذَا وَلَّوْا عَنْهُ النَّاسُ مُدْبِرِينَ (شرح السنة ج ۵ صـ ۴۱۳)

حضرت انس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چې کله چې مړی په قبر کې کيښودل شي او خلک ترېنه لاړشي نو مړی لا د خلکو د پښو اواز اوري، چې دوه ملائکې ورته راشي الخ

**حافظ ابن حجر** رحمه الله: حافظ ابن حجر فرمايي چې: وَقَدْ ثَبَتَتِ الْأَحَادِيثُ بِمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ الْجُمْهُورُ كَقَوْلِهِ إِنَّهُ لَيَسْمَعُ خَفْقَ نِعَالِهِمْ وَقَوْلُهُ تَخْتَلِفُ أَضْلَاعُهُ لِضَمَّةِ الْقَبْرِ وَقَوْلُهُ يَسْمَعُ صَوْتَهُ إِذَا ضَرَبَهُ بِالْمِطْرَاقِ وَقَوْلُهُ يُضْرَبُ بَيْنَ أُذُنَيْهِ وَقَوْلُهُ فَيُقْعِدَانِهِ وَكُلُّ ذَٰلِكَ مِنْ صِفَاتِ الْأَجْسَادِ. (فتح الباری، باب ما جاء فی عذاب القبر ج ۳ صـ ۲۹۹)

**علامه بدرالدين عيني** رحمه الله: علامه عيني د امام بخاري د باب په تشريح کې فرمايي چې: اى هذا باب يذكر فيه الميت يسمع خفق نعال الاحياء وصوتها عند دسها على الارض (عمدة القاري ج ٦ صـ ١٩٦ )

**سلطان المحدثين ملا علي القاري** رحمه الله: د دې حديث په تشريح کې فرمايي چې: وَقَالَ ابْنُ الْمَلَكِ رحمه الله: أَيْ صَوْتَ دَقِّهَا، وَفِيهِ دَلَالَةٌ عَلَى حَيَاةِ الْمَيِّتِ فِي الْقَبْرِ لِأَنَّ الْإِحْسَاسَ بِدُونِ الْحَيَاةِ مُمْتَنِعٌ عَادَةً، وَاخْتَلَفُوا فِي ذَٰلِكَ، فَقَالَ بَعْضُهُمْ: يَكُونُ بِإِعَادَةِ الرُّوحِ، وَتَوَقَّفَ أَبُو حَنِيفَةَ رحمه الله فِي ذَٰلِكَ آه. وَلَعَلَّ تَوَقُّفَ الْإِمَامِ فِي أَنَّ الْإِعَادَةَ تَتَعَلَّقُ بِجُزْءِ الْبَدَنِ أَوْ كُلِّهِ.. (مرقات، باب اثبات عذاب القبر ج ۱ صـ ۱۹۸)

د دې حوالو څخه معلومیږي د (انه ليسمع قرع نعالهم) څخه حقيقت مراد دی، چې مړی د ښخولو څخه وروسته بالكل د خلکو د پښو کشاری اوري.

د ابو هريره رضي الله عنه په يو روايت کې داسې الفاظ دي چې: والذى نفسى بيده انه يسمع خفق نعالهم حين يولون عنه (مستدرک حاکم ج ۱ صـ ۳۸۰)

قسم په هغه ذات چې زما روح د هغه په قبضه کې دی چې مړی د خلکو د پښو کشاری اوري کله چې ترېنه خلک واپس شي.

**دوهم دليل:** کله چې څوک هديرې او يا قبر ته ورشي نو رسول الله ﷺ فرمايي چې په اهل قبورو باندې به سلام اچوي او دعا به ورته کوي او ورته به وائي چې ستاسو لپاره مونږ د الله تعالى څخه ښ[illegible]

غوا ړو او مونږ هم ان شاء الله چې درتلونکي يو ، او سلام په داسې چاباندې اچول کيږي چې هغه يې اوري او همدارنګه دخطاب صيغې هم حقيقةً په هغه ځای کې استعماليږي چې مخاطب يې أوري.

(۱) وعن بريدة رضي الله عنه قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعَلِّمُهُمْ إِذَا خَرَجُوا إِلَى الْمَقَابِرِ، فَكَانَ قَائِلُهُمْ يَقُولُ - فِي رِوَايَةِ أَبِي بَكْرٍ -: اَلسَّلَامُ عَلَى أَهْلِ الدِّيَارِ، - وَفِي رِوَايَةِ زُهَيْرٍ -: اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ أَهْلَ الدِّيَارِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ وَالْمُسْلِمِينَ، وَإِنَّا، إِنْ شَاءَ اللهُ لَلَاحِقُونَ، أَسْأَلُ اللهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَةَ (مسلم ج۱ص۳۱۳ كتاب الجنائز)

(۲) رسول الله ﷺ به چې دبقيع هديرې ته لاړو نو فرمايل به يې چې: اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ، وَأَتَاكُمْ مَا تُوعَدُونَ غَدًا، مُؤَجَّلُونَ، وَإِنَّا، إِنْ شَاءَ اللهُ، بِكُمْ لَاحِقُونَ، اللَّهُمَّ، اغْفِرْ لِأَهْلِ بَقِيعِ الْغَرْقَدِ (مسلم ج۱ص۳۱۳ كتاب الجنائز، مشكوة باب زيارة القبور.

علامه محمد بن اسماعيل فرمايي چې: وفيه أنهم يعلمون بالمارين بهم وسلامه عليهم والا لكان اضاعة (سبل السلام، كتاب الجنايز رقم ٦٠، ج ٢ص ١٥٧)

علامه عثماني رحمه الله فرمايي چې: اشارة الى أنهم يعرفون الزاير ويدركون سلامه وكلامه، (فتح الملهم، ج ١ص ٤١٣)

حافظ ابن كثير رحمه الله فرمايي چې: وَهَذَا خِطَابٌ لِمَنْ يَسْمَعُ وَيَعْقِلُ، وَلَوْلَا هَذَا الْخِطَابُ لَكَانُوا بِمَنْزِلَةِ خِطَابِ الْمَعْدُومِ وَالْجَمَادِ، وَالسَّلَفُ مُجْمِعُونَ عَلَى هَذَا، وَقَدْ تَوَاتَرَتِ الْآثَارُ عَنْهُمْ بِأَنَّ الْمَيِّتَ يَعْرِفُ بِزِيَارَةِ الْحَيِّ لَهُ وَيَسْتَبْشِرُ بِهِ (تفسير ابن كثير سورة روم)

**دريم دليل:** عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، تَرَكَ قَتْلَى بَدْرٍ ثَلَاثًا، ثُمَّ أَتَاهُمْ فَقَامَ عَلَيْهِمْ فَنَادَاهُمْ، فَقَالَ: «يَا أَبَا جَهْلِ بْنَ هِشَامٍ! يَا أُمَيَّةَ بْنَ خَلَفٍ! يَا عُتْبَةَ بْنَ رَبِيعَةَ! يَا شَيْبَةَ بْنَ رَبِيعَةَ! أَلَيْسَ قَدْ وَجَدْتُمْ مَا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا؟ فَإِنِّي قَدْ وَجَدْتُ مَا وَعَدَنِي رَبِّي حَقًّا» فَسَمِعَ عُمَرُ رضي الله عنه قَوْلَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ! كَيْفَ يَسْمَعُوا وَأَنَّى يُجِيبُوا وَقَدْ جَيَّفُوا؟ قَالَ: «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ، وَلَكِنَّهُمْ لَا يَقْدِرُونَ أَنْ يُجِيبُوا» ثُمَّ أَمَرَ بِهِمْ فَسُحِبُوا، فَأُلْقُوا فِي قَلِيبِ بَدْرٍ (مسلم ج۲ص۳۸۷ باب عرض مقعد الميت)

حضرت انس رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ په بدر کې وژل شوي کفار درې ورځې پرېښو دل، درې ورځې وروسته ورغلو او اواز يې ورته وکړو چې ای ابو جهله! ای أميه! ای عتبه! او ای شيبه! ايا تاسو هغه وعده رشتيني ونه موندله کومه چې ستاسو سره ستاسو رب کړی وه ؟ ما سره چې زما رب کومه وعده کړې وه

ماخو رشتيني ومو ندله، کله چې عمر ﷛ د نبي ﷺ خبرې واوريدلې نو ورته وېفرمايل چې يارسول الله ﷺ دوي به ستا خبرې څرنګه واورې او څرنګه به تا ته جواب درکړي حال دا چې دوي خو مړه دي؟

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې په هغه ذات مې دې قسم وي چې زما روح د هغه په قبضه کې دی چې دوي يې ستاسو څخه ښه اوري لکن جواب نه شي راکولې بيا يې امر وکړو او ټول مړي د بدر په کوهي کې وغورزول شو.

**مستدلين:** (۱) امام نووي رحمه الله د دې حديث په تشريح کې ليکي چې: **قَالَ الْمَازِرِيُّ رحمه الله: قَالَ بَعْضُ النَّاسِ: الْمَيِّتُ يَسْمَعُ عَمَلًا بِظَاهِرِ هٰذَا الْحَدِيثِ ثُمَّ أَنْكَرَهُ الْمَازِرِيُّ رحمه الله وَادَّعٰى أَنَّ هٰذَا خَاصٌّ فِي هٰؤُلَاءِ وَرَدَّ عَلَيْهِ الْقَاضِي عِيَاضٌ رحمه الله وَقَالَ يُحْمَلُ سَمَاعُهُمْ عَلٰى مَا يُحْمَلُ عَلَيْهِ سَمَاعُ الْمَوْتٰى فِي أَحَادِيثَ عَذَابِ الْقَبْرِ وَفِتْنَتِهِ الَّتِي لَا مَدْفَعَ لَهَا وَذٰلِكَ بِإِحْيَائِهِمْ أَوْ إِحْيَاءِ جُزْءٍ مِنْهُمْ يَعْقِلُونَ بِهِ وَيَسْمَعُونَ فِي الْوَقْتِ الَّذِي يُرِيدُ اللّٰهُ هٰذَا كَلَامُ الْقَاضِي وَهُوَ الظَّاهِرُ الْمُخْتَارُ الَّذِي يَقْتَضِيهِ أَحَادِيثُ السَّلَامِ عَلَى الْقُبُورِ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ.** (شرح مسلم للنووي ج۲ ص۳۸۷)

علامه مازري فرمايي چې بعضې خلک د حديث په ظاهر باندې عمل کوي او وايي چې مړي يې اوري لکن بيا مازري رحمه الله د دې موقف څخه انکار کړی دی او فرمايلي يې دي چې دا اوريدل د بدر ترمقتولينو پورې خاص وو، لکن قاضي عياض رحمه الله په مازري رحمه الله باندې رد کړی دی او فرمايل يې دي چې د دوي سماع به په هغه موقف باندې ورحملو په کوم باندې چې سماع الموتی په احاديثو د عذاب القبر او د فتنة القبر کې ورحمل شوی ده د کومو چې ترديد نه کيږي، او هغه داسې چې الله تعالی د دوي پوره بدن او يا د بدن يوه حصه راژوندی کړي او په هغه وخت کې اوريدل وکړي په کوم کې چې د الله تعالی اراده وشي او همدا ظاهره او مختاره ده، چې د قبرونو د سلام احاديث ورباندې دلالت کوي.

**حافظ ابن تيميه رحمه الله: وَأَمَّا سُؤَالُ السَّائِلِ هَلْ يَتَكَلَّمُ الْمَيِّتُ فِي قَبْرِهِ فَجَوَابُهُ أَنَّهُ يَتَكَلَّمُ وَقَدْ يَسْمَعُ أَيْضًا مَنْ كَلَّمَهُ كَمَا ثَبَتَ فِي الصَّحِيحِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ: {إِنَّهُمْ يَسْمَعُونَ قَرْعَ نِعَالِهِمْ} ... وَثَبَتَ عَنْهُ فِي الصَّحِيحِ أَنَّهُ {نَادَى الْمُشْرِكِينَ يَوْمَ بَدْرٍ: لَمَّا أَلْقَاهُمْ فِي الْقَلِيبِ. وَقَالَ: مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ} . وَالْآثَارُ فِي هٰذَا كَثِيرَةٌ مُنْتَشِرَةٌ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ** (مجموع الفتاوى ج۴ ص۲۳۹ کتاب مفصل الاعتقاد رقم السؤال ۳۳)

پاتې شوه د سائل دا پوښتنه چې مړی په قبر کې خبرې کولی شي او کنه؟

**جواب:** دادي چې مړی خبرې کولی شي او کله د خبرو کونکي اواز اوري، ځکه چې د نبي ﷺ څخه په صحيح حديث کې راغلي دي چې مړی د پښو د کشاري اواز اوري... او همدارنګه په صحيح حديث کې راغلي دي چې کله چې نبي ﷺ د بدر مړي کوهي ته ورغوځولنو او ازيې ورته وکړو او (اصحابو ته يې) وفرمايل چې ستاسو څخه يې ښه اوري، ددې (سماع الموتی) په باره کې ډېر احاديث راغلي دي چې خوارو واره دي.

**څلورم دليل:** کله چې حضرت عمرو بن العاص ﷺ وفات کيدلو نو ويفرمايل چې: فَإِذَا أَنَا مُتُّ فَلَا تَصْحَبْنِي نَائِحَةٌ، وَلَا نَارٌ، فَإِذَا دَفَنْتُمُونِي فَشُنُّوا عَلَيَّ التُّرَابَ شَنًّا، ثُمَّ أَقِيمُوا حَوْلَ قَبْرِي قَدْرَ مَا تُنْحَرُ جَزُورٌ وَيُقْسَمُ لَحْمُهَا، حَتَّى أَسْتَأْنِسَ بِكُمْ، وَأَنْظُرَ مَاذَا أُرَاجِعُ بِهِ رُسُلَ رَبِّي (مسلم ج۱ ص۷۶ باب كون الاسلام يهدم ما قبله).

کله چې زه وفات شم نو نه دې زما سره ژړيدونکي وي او نه دې اور وي، کله مو چې زه ښخ کړم نو په ما باندې خاورې راواړوئ، او بيا زما د قبر څخه ګير چاپير دومره وخت کينئ په څومره وخت کې چې اوښ حلاليږي او غوښه يې تقسيمږي ترڅو چې زه ستاسو د قرب څخه اُنس حاصل کړم او وګورم چې زه د خپل رب فرشتو ته څه جواب ورکوم؟.

**امام نووي** رحمه الله: امام نووي رحمه الله ددې حديث په تشريح کې ليکي چې: فِيهِ فَوَائِدُ مِنْهَا إِثْبَاتُ فِتْنَةِ الْقَبْرِ وَسُؤَالِ الْمَلَكَيْنِ وَهُوَ مَذْهَبُ أَهْلِ الْحَقِّ وَمِنْهَا اسْتِحْبَابُ الْمُكْثِ عِنْدَ الْقَبْرِ بَعْدَ الدَّفْنِ لَحْظَةً نَحْوَ مَا ذُكِرَ لِمَا ذُكِرَ وَفِيهِ أَنَّ الْمَيِّتَ يَسْمَعُ حِينَئِذٍ مَنْ حَوْلَ الْقَبْرِ. (شرح مسلم ج۱ ص۷۶)

په دې حديث کې ډېرې فائدې دي، يوه د قبر فتنه او د ملائکو سؤال او جواب دی او دا د اهل حقو مذهب دی، بله دا چې د مړي د ښخولو څخه وروسته د قبر ګير چاپيره لږه زمانه کيناستل مستحب دي او يوه فائده په کې دا هم ده چې د قبر په خوا کې چې کوم خبرې کيږي نو مړی هغه اوري.

**پنځم دليل:** (۱) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى الْمَقْبَرَةَ فَقَالَ: «السَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ بِكُمْ لَاحِقُونَ (مشكوة ص۴۰ كتاب الطهارة، الفصل الثالث، ابوداود باب ما يقول اذا مرّ بالقبور ج۲ ص۱۰۵)

(۲) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ: مَرَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقُبُورِ الْمَدِينَةِ فَأَقْبَلَ عَلَيْهِمْ بِوَجْهِهِ، فَقَالَ: السَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُورِ، يَغْفِرُ اللهُ لَنَا وَلَكُمْ، أَنْتُمْ سَلَفُنَا، وَنَحْنُ بِالْأَثَرِ. (ترمذی باب ما يقول الرجل اذا دخل المقابر ج۱ ص۲۰۳) مشكوة، باب زيارة القبور، الفصل الثانی ج۱ ص۱۵۴)

رسول الله په اهل القبورو باندې سلام واچولو او د خطاب په صيغه باندې يې دعا ورته وکړه دا دليل د سماع الموتی دی.

**مستدلين:**

**علامه ابن عبدالبر رحمه الله:** احاديث السلام على القبور متواترة (التمهيد ج٥ صـ ٣٨٢ تحت هذ الحديث١٩).

**حافظ ابن تيميه رحمه الله:** فاما استماع الميت للاصوات مـن القرائـة وغيرهـا فحـق، أقتضـاء الصراط المستقيم صـ٣٧٩ )

**حافظ ابن القيم رحمه الله:** وَقد شرع النَّبِي لأمته إِذا سلمُوا على أهل الْقُبُور أَن يسلمُوا عَلَيْهِم سَلام من يخاطبونه فَيَقُول السَّلَام عَلَيْكُم دَار قوم مُؤمنين وَهَذَا خطاب لمن يسمع وَيعْقل وَلَوْلَا ذَلِك لَكَانَ هَذَا الْخطاب بِمَنْزِلَة خطاب الْمَعْدُوم والجماد وَالسَّلَف مجمعون على هَذَا وَقد تَوَاتَرَت الْآثَار عَنْهُم بِأَن الْمَيِّت يعرف زِيَارَة الْحَيّ لَهُ ويستبشر بِهِ. (كتاب الروح، المسألة الاولى: صـ ٧)

رسول الله ﷺ خپل امت ته دا حکم کړی دی چې په هديره دې داسې سلام اچوي لکه څرنګه يې چې په مخاطب باندې اچوي، نو داسې دې وايي چې السلام عليکم ای د مسلمانانو د کلي اوسېدونکو، او داسې خطاب د هغه چا سره کيږي چې هغه اورېدل کولی شي او پوهيږي، نو که مړی يې نه اوري او نه پوهيږي نو بيا خو دا د معدوم او بې روحه سره خطاب دی او د سلفو په دې (سماع الموتی وفهمهم) باندې اجماع ده او په دې کې متواتر احاديث راغلي دي چې کوم ژوندی چې د مړي زيارت ته راشي نو مړی هغه پيژني او خوشحاليږي ورباندې.

**شپږم دليل:** دامام بخاري رحمه الله استاد ابن ابی شيبه رحمه الله د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه يوه واقعه رانقل کړی دی چې: عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ رضي الله عنه، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ كَانَ يَرْجِعُ مِنْ ضَيْعَتِهِ فَيَمُرُّ بِقُبُورِ الشُّهَدَاءِ فَيَقُولُ: «اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ، وَإِنَّا بِكُمْ لَلَاحِقُونَ» ثُمَّ يَقُولُ لِأَصْحَابِهِ: «أَلَا تُسَلِّمُونَ عَلَى الشُّهَدَاءِ فَيَرُدُّونَ عَلَيْكُمْ». (مصنف ابن ابی شيبه كتاب الجنائز، باب ما ذكر على التسليم على القبور)

کله به چې حضرت سعد رضي الله عنه د خپلې زمکې څخه را واپس شوا و د شهيدانو په قبرونو باندې به تيريدلو نو السلام عليکم به يې ورته ويل او بيا به يې خپلو ملګرو ته ويل چې تاسو ولې په شهيدانو

باندې سلام نه اچوئ چې هغوي درته جواب درکړي؟ ددې څخه معلومه شوه چې د حضرت سعد ﷺ نظریه دا وه چې شهیدان د ژوند یو سلام اوري او جواب هم ورکوي، حضرت سعد ﷺ جلیل القدر صحابي دی او دعشره مبشره وو څخه دی.

**اووم دلیل:** (۱) **عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ قَالَ: "إِذَامَرَّ الرَّجُلُ بِقَبْرٍ يَعْرِفُهُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ وَعَرَفَهُ وَإِذَا مَرَّ بِقَبْرٍ لَا يَعْرِفُهُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ** (شعب الایمان للبیهقي ج۷ صـ۱۷ رقم۹۲۹۶ فصل، فی زیارة القبور)

(۲) **عَنْ بن عَبَّاسٍ ﷺ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (مَا مِنْ أَحَدٍ مَرَّ بِقَبْرِ أَخِيهِ الْمُؤْمِنِ كَانَ يَعْرِفُهُ فِي الدُّنْيَا فَسَلَّمَ عَلَيْهِ إِلَّا عَرَفَهُ وَرَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ)**. (الاستذكار ج۱ صـ۱۸۵ کتاب الطهارة، باب جامع الوضوء، کنزالعمال، ج۱۵، صـ۶۵۶، رقم: ۴۲۶۰۲)

په دې دواړو حدیثونو کې راغله چې نبي ﷺ فرمایي چې کله چې یو څوک په مړي باندې سلام واچوي نو که په دنیاکې یې پیژندلو نو مړی یې پیژني هم او جواب هم ورکوي او که نه یې پیژندلو نو یوائې جواب ورکوي.

## مصححین او مستدلین

**(۱) امام محمد بن احمد الانصاري القرطبي** ﷺ. (صححه ابو محمد عبد الحق (التذكرة للقرطبي صـ ۱۳۰ باب ماجاء ان الميت يسمع مايقال)

**(۲) حافظ ابن تیمیه الحنبلي** ﷺ: وقد روي حديثٌ صححه ابنُ عبدِالبر انه قال ما من رجل الخ (اقتضآء الصراط المستقيم صـ ۳۲٦)

**(۳) ابن عبدالهادي الحنبلي** ﷺ: وهو صحيح الاسناد (الصارم المنكي صـ ۲۲٤، ۱۱۵)

**(٤) حافظ ابن القیم الحنبلي** ﷺ: قال ابن عبدالبر ثبت عن النبي ﷺ انه قال ما من أحد الخ (كتاب الروح صـ۷ مسئله اولی) **همدارنګه فرمایي چې:** فهذا نص فی أنه يعرفه بعينه ويرد عليه السلام(كتاب الروح صـ٤)

**علامه تقي الدین السبکي الشافعي** ﷺ: ذكره جماعة وقال القرطبي فی التذكرة ان عبد الحق صححه، شفاء السقام صـ ۲٤٦ باب خامس)

**(۵) حافظ ابن کثیر الدمشقي** ﷺ: من اشهر ذلک مارواه ابن عبدالبر مصححاله عن ابن عباس ﷺ مرفوعا مامن احد (تفسير ابن كثير سورة روم اية ۵۲).

**(۷) علامه سهمودي** رحمه الله: ورواه ابن عبد البر وصححه. (وفاء الوفاء الفصل الثاني في بقية ادلة الزيارة ج ٤صـ ۱۳۵۱

**(۸) علامه طحطاوي الحنفي** رحمه الله: واخرج ابن عبد البر فى الاستذكار والتمهيد بسند صحيح (حاشية الطحطاوي صـ۶۲۱ فصل في زيارة القبور)

**(۹) علامه سيد محمود الوسي** رحمه الله : اخرج ابن عبد البر وقال عبدالحق الاشبيلي اسناده صحيح (روح المعاني سورة روم اية ۵۲)

حافظ ابن القيم رحمه الله په خپله مشهوره «قصيده نونيه» کې فرمايي:

وهـــذا وردُ نبينــا التسـليم مــن

يــأتى بتســليم مــع الاحســان

مــا ذاک مختصّــاً بــه ايضــا كمــا

قــد قــاله المبعــوث بــالقرآن

مــن زار قــبر أخٍ له فــأتى

بتســليم عليــه وهــو ذو ايمــان

ردّ الا له عليــه حقّــاً روحــه

حــتى يــرد عليــه رد بيــان

**القصيده النونيه صـ(۱۴۵)**

او دا امر چې زمونږ نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هر هغه سړي د سلام جواب ورکوي کوم چې په عمده طريقه سلام ووايي او دا د نبي کريم صلى الله عليه وسلم تر ذات پورې خاص نه دی، لکه څرنګه چې خپله صاحب القران ارشاد فرمايلی دی چې چا چې د خپل مؤمن ورور زيارت وکړو او هغه ته يې سلام وکړو، نو الله تعالی په يقيني طريقه د غې متوفی ته دده روح را واپس کوي، تر څو چې د دې سړي سلام ته په واضحه طريقه جواب ووايي.

**اتم دليل:** وَأخرج العقيلىّ رحمه الله عَن أبى هُرَيْرَة رَضِى اللّٰه عَنهُ قَالَ قَالَ أَبورزين رضي الله عنه : يَارَسُول اللّٰه! إن طريقى على الْمَوْتى فَهَل من كَلَام أتكلم بِهِ إِذا مَرَرْت عَلَيْهِم قَالَ قل السَّلَام عَلَيْكُم يَا أهل الْقُبُور من الْمُسلمين وَالْمُؤمنِينَ أَنْتُم لنا سلف وَنحن لكم تبع وَإِنَّا إِن شَاءَ اللّٰه بكم لاحقون قَالَ أَبورزين رضي الله عنه : يَارَسُول اللّٰه! يسمعُونَ

قَالَ يسمعُونَ وَلَكِن لَا يستطيون أَن يجيبوا قَالَ يَا أَبَا رزين أَلا ترْضى أَن يرد عَلَيْك بعدهم من الْمَلَائِكَة؟ [شرح الصدور بشرح حال الموتى والقبور صـ۲۰۳ باب زيارة القبور].

يوه ورځ حضرت ابو رزين ﷺ رسول الله ﷺ ته وفرمايل چې يارسول الله ﷺ زما لاره په هديره باندې ده نو زه چې ددوي سره نزدې تيريږم نو څه ووايم؟

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې داسې ورته ووايه چې اى مسلمانانو او مؤمنانو دقبرونو والاوو! په تاسو دې سلام وي، تاسو زمونږ څخه مخکې يې او مونږ درپسې يو او مونږ هم ان شاء الله چې ستاسو سره يو ځاى كيدونكي يو، ابو رزين ﷺ پوښتنه وكړه چې يا رسول الله ﷺ ايا دوي زما دا خبرې اوري؟ نبي ﷺ ورته وفرمايل چې هو اوري يې لكن د جواب وركولو طاقت نه لري، بيا ورته نبي ﷺ وفرمايل چې يا ابارزينه ﷺ ايا ته په دې باندې نه خوشحاليږې چې څومره چې دا مړي دي دهمدوي په شمېر تاته ملائكې جواب دركړي؟

**فانقيل:** چې په دې حديث كې خو راغله چې مړي د جواب دوركولو طاقت نه لري او په اووم نمبر حديث كې خو تيرشول چې جواب وركوي.

**قلنا:** علامه سيوطي ﷫ جواب وركوي چې قوله لايستطيعون اى جوابا يسمعه الجن والانس فهم يردون حيث لايسمع . (شرح الصدور صـ ۲۰۳ )

يعني دداسې جواب طاقت نه لري چې انسانانا او پيريان يې واوري، علامه الوسي ﷫ هم همداسې جواب كوي فرمايي چې: وما اخرجه العقيلي من انهم يسمعون السلام ولا يستطيعون ردها محمول على نفى استطاعة الرد على الوجه المعهود الذي يسمعه الاحياء (روح المعاني، سورة الروم، ايت نمبر ۵۲ )

شاه اسحاق ﷫ ددې اعتراض په جواب كې د ملاعلي القاري قول رانقلوي چې: د رسول الله ﷺ مقصد دادى چې داسې جواب نه شي وركولى چې څوک يې واوري بلكه داسې جواب وركوي چې څوک يې نه اوري (امداد السائل، ترجمه مأة مسائل صـ ۳۸.۳۷ )

**نهم دليل:** علامه سيوطي ﷫ د رساله قشيريه په حواله باندې يوه واقعه رانقلوي فرمايي چې: يو كفن كش ديوې ښځې جنازه وكړه بيا د شپې ورغلو چې د ښځې څخه كفن وباسي، د قبر څخه ورته ښځې وويل چې سبحان الله يو ښنبل شوى د بل ښنبل شوي څخه كفن وباسي؟ كفن كش ورته وويل چې صحيح ده ته خو به الله تعالى ښنبلې يې لكن زه يې څرنګه ښنبلى يم؟ هغه ښځې ورته وويل چې الله

تعالى چې زه وبښلم نو زما په جنازه کې چې چا شرکت کړی وو هغه ټول یې هم وبښل له دې وجې یې ته هم وبښلې، د دې څخه وروسته هغه سړي کفن کشي پرېښودله (شرح الصدور صـ ۲۰۸) باب زيارة القبور وعلم الموتى بزوارهم)

**لسم دليل:** علامه الوسي رحمه الله دعبيد بن مرزوق دمرسل څخه دابو الشيخ په حواله باندې يو مرسل روايت ذکر کړی دی چې يوې زنانه به مسجد نبوي جارو کولو، بيا دا زنانه وفات شوه رسول الله ﷺ چا خبر نه کړو او خبنه یې کړه، رسول الله ﷺ يوه ورځ په لاره باندې تيريدلو نو د دې بي بي رضي الله عنها قبر په نظر ورغلو، نو پوښتنه یې وکړه چې دا دچا قبر دی؟

صحابه ووکرامو عرض وکړو چې دا قبر دأم محجن رضى الله عنها دی، رسول الله ﷺ وفرمايل چې هغه مسجد به یې چې جارو کولو؟ صحابه وو کرامو عرض وکړو چې هو، رسول الله ﷺ دصحابه ؤکرامو صفونه جوړ کړل او په قبر یې ورته جنازه وکړه (دا دنبي خصوصيت وو او يا یې اجتماعي دعا کړې وه) بيا رسول الله ﷺ د دې وفات شوی بي بي رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چې کوم عمل دی بهتر موندلو؟ صحابه وو رضى الله عنهم پوښتنه وکړه چې يارسول الله ﷺ دا یې اوري؟ نبي ﷺ ورته وفرمايل چې ستاسو څخه یې ښه اوري بيا نبي ﷺ وفرمايل چې دې بي بي جواب راکړو چې ما دمسجد صفا کول بهتر عمل وموندلو (روح المعاني، سورة الروم اية نمبر ۵۲)

## سماع فى الجمله داجماع الأمت په رڼا کې

حافظ ابن كثير رحمه الله فرمايي چې: والسلف مجمعون على هذا وقد تواترت الاثار عنهم بأن الميت يعرف بزيارة الحى ويستبشر به (تفسير ابن كثير ج ۳صـ ۴۳۸)

په سماع الموتى باندې دسلفو اجماع ده، دا په تواتر ثابته ده چې مړی خپل زيارت کونکی پيژني او خوشحاليږي ورته.

حافظ ابن القيم رحمه الله فرمايي چې: والسلف مجمعون على هذا وقد تواترت الأخبار عنه بأن الميت يعرف زيارة الحى له ويستبشر به (كتاب الروح صـ ۴)

صاحب د فتح الملهم فرمايي چې: والذی تحصل لنا من النصوص والله اعلم أن سماع الموتی ثابت فی الجملة بالاحاديث الكثيرة الصحيحة،(فتح الملهم ج ۲صـ ۲۷۹)

علامه محمد انور شاه الكشميري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې: والاحاديث فی سمع الاموات قد بلغت مبلغ التواتر، فالانكار فی غير محله، سيما اذا لم ينقل عن أحد من أيمتنا رحمهم الله تعالی، فلا بد بالتزام السماع فی الجملة (فيض الباري ،كتاب الجنائز)

سرفراز خان صفدر رحمه الله فرمايي چې: د حافظ ابن كثير رحمه الله او د حافظ ابن القيم رحمه الله پيش كرده اجماع حق ده .... بلكې د شرعي دلايلو په بناء باندې د سماع الموتی څخه انكار نه دی ممكن. (سماع موتی صـ ۵۶، صـ ۶۰)

قال التفتازانی : فی شرح المقاصد ان علم الميت مجمع عليه . او چې علم اجماعي شو نو سماع هم اجماعي شوه ، ځكه چې علم فرع د سماع ده.

شاه عبدالعزيز رحمه الله فرمايي چې: انسان را بعد موت ادراک باقی می ماند.... الی ان قال) بالجمله انكار شعور وادراک اموات اگر كفريه نباشد در الحاد بودن او شبه نيست (فتاوی عزيزيه ص ـ۸۸)

حافظ ابن تيميه رحمه الله فرمايي چې: لان هذه المسئلة (سماع الموتی) صارت معلومة من الدين بالضرورة. (المنحة الوهبية صـ ۱۳۰)

## سماع الموتی ته دكفر او د شرک ويونكو مماتيانو بدعتيانو دلائل

د اشاعت التوحيد والسنة په نوم بدعتيان تكفيريان يوائې نفي د سماع الموتی نه كوي، بلكې قائلينو د سماع الموتی ته مشركان وايي، نو پكار دی چې دوي يوائې د نفي د سماع الموتی دلايل پيش نكړي، ځكه چې د نفي د سماع الموتی دلايل خو دوي ته فائده نكوي ،بلكې اهل سنت والجماعت ته فائده كوي چې په عامو حالاتو كې سماع الموتی ته اختلافي وايي، مثبتينو د سماع الموتی ته هم اهل الحق وايي او نافيينو د سماع الموتی ته هم اهل الحق وايي، د نفي دلايل يې هم مني، اگر چې كمزوري دي او د اثبات دلايل يې هم مني او قوي ورته وايي، يعنې د سماع الموتی مسئله اختلافي گڼي، نو د اثبات د دلايلو سره سره د نفي دلايل د

سماع الموتی د اختلافي والي دلايل دي، مماتيان دي داسې دلايل ذکر کړي چې قايلينو د سماع الموتی ته په کې مشرکان ويلی شوي وي او داسې يو دليل هم نشته، په هيڅ ايت او په هيڅ حديث کې قايلينو د سماع الموتی ته مشرک ندي ويلي شوي، هيڅ صحابي هيڅ تابعي، هيڅ تبع تابعي، هيڅ محدث، هيڅ مفسر، هيڅ فقيه او هيڅ سني قايلينو د سماع الموتی ته مشرک او يا کافر نه دي ويلي، دا صرف د پنجاب په يوه دار الندوه کې ورته د بدعتي اشاعتيانو تکفيري مشرانو کفر او شرک ويلی دی.

مماتيان بدعتيان د دريو اياتونو څخه استدلال کوي.

(۱) (اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى) سورة روم (۲) (فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى) نمل (وَ مَا اَنْتَ بِمُسْمِعٍ مَّنْ فِي الْقُبُوْرِ) سورة فاطر.

**الجواب۱-:** د دې ايتونو په تفسير کې کوم صحابي، کوم تابعي، کوم تبع تابعي، کوم مفسر، کوم محدث، کوم فقيه قايلينو د سماع الموتی ته مشرک ويلي دي؟ د دې څخه خو به اقلاً بالفرض والتقدير صرف نفې د سماع الموتی ثابته شي او ستاسو دعوی خو يوازې نفې د سماع الموتی نده، بلکې تاسو خو قايلينو د سماع الموتی ته کافران او مشرکان وايئ.

۲-د دې ايتونو څخه بعضې نفې د سماع الموتی ثابتوي او جمهور فرمايي چې د دې ايتونو څخه نفې د سماع الموتی نه ثابتيږي، نو اختلاف راغلو او همدا زمونږ مسلک دی چې په عامو حالاتو کې سماع الموتی اختلافي ده، نو دا خو زمونږ دليل دی.

۳-او چې د دې ايتونو څخه دا ثابته نه شوه چې سماع الموتی شرکي مسئله ده، نو همدارنګه ترينه نفس نفې د سماع الموتی هم نه ثابتيږي، ځکه دا درې واړو اياتونه مکي دي، په دې اياتونو کې د کفارو تشبيه ورکړل شوې ده د مړو سره او د دوي په مابين کې وجه د شبه عدم سماع نه ده، بلکه عدم انتفاع ده، نو الله تعالی د لته دوه ډلې ذکر کوي يوه ډله يې اوري لکن قبولول نه کوي، چې دا د کفارو ډله ده، الله تعالی د دوي په باره کې فرمايي چې (انک لاتسمع الموتی) او دوهمه ډله يې اوري هم او قبلوي يې هم، دا د مؤمنانو ډله ده الله تعالی فرمايي چې (اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا) [تفسير حقاني، تفسير ابن کثير، قرطبي، کتاب الروح ص ۵۷ جلالين].

علامه قرطبي رحمه الله فرمايي چې: هـم بمنزلـة اهـل القبـور فى أنهـم لا ينتفعـون بمـا يسمعونه ولا يقبلونه (الجامع الاحكام القرآن، سورة فاطر، تحت قوله تعالى: وما انت بمسمع من فى القبور)

مولانا عبدالحق الحقاني الدهلوي فرمايي چې: پدې ايت کې عدم سماع موتى (دمړو نه اوريدلو) ته اشاره هم نده شوې، لهذا د دې ايت څخه استدلال بې فائدې دى. (تفسير فتح المنان، المشهور به تفسير حقاني ج ۳ ص ۵۶۱)

**فانقيل** چې د (انك لاتسمع الموتى) پسې وروسته الله تعالى فرمايي چې: (وَ لَا تُسْمِعُ الصُّمَّ الدُّعَآءَ) نو ايا د دې څخه هم همدا معنى مراده ده؟

**قلنا:** اصم کلي مشکک دى او د دې لپاره مرتبې دي، الله تعالى کافرانو ته کاڼه، ګونګيان او ړانده ويلي دي، **صم بكم عمى**، نو الله تعالى کافرانو ته عمىٌ وايي په دې معنى چې حق نه ګوري، بكمٌ ورته وايي په دې معنى چې حق نه وايي، نو په همدې معنى باندې کاڼه هم دي، يعني حق نه اوري.

**دوهـم جـواب:** علامه محمد انور شاه الکشميري رحمه الله جواب کوي چې: په دې ايت کې نفى داسماع ده او نفې د اسماع په نفې د سماع باندې دلالت نه کوي، يعنې د ايت معنى دا نده چې مړي يې نه اوري، بلکې معنى يې داده چې ته يې مړو ته نه شې وراوروَلى (فيض الباري، کتاب الجنايز، ج۲ ص ۲۷۴)

**فانقيل:** چې سماع مطاوع د اسماع دى او په نفې د مطاوَع سره نفې د مطاوِع راځي.

**قلنـا:** دلته مطاوَع خاص نفې شوى دى چې اسماع النبى صلى الله عليه وسلم ده. او په نفې د مطاوَع خاص باندې نفې د مطلق مطاوِع نه راځي، ځکه چې په انتفاء د خاص باندې انتفاء د عام نه راځي، مثلاً زه وايم چې زيد په تا باندې ډوډى نه شي خوړلى، نو د دې څخه نو دا نه لازميږي چې ته ډوډى نه شى خوړلى.

## دحجة الله فى الارض محمد امين صفدر اوکاړوي رحمه الله خوندوره مکالمه

مولانا محمد امين صفدر فرمايي چې: زه يوه ورځ په درسګاه کې ناست وم، چې دوه پروفيسران راغلل دراتللو سره يې راته وويل چې مولانا صاحب! په قرآن کې په سلګونو ايتونه دي چې په هغوي کې راغلي دي چې مړي يې نه أوري، ما ورته وويل چې: داسې مه وايه، بلکې داسې ووايه چې مونږ په قرآن باندې په سلګونو دروغ تړلي دي، ځکه چې په قرآن داسې يو ايت هم نشته چې په هغې کې راغلي

وي چې مړي يې نه أوري ، او همدارنګه په ټوله ذخيره داحاديثو کې په يو حديث کې هم نه دي راغلي چې مړي يې نه أوري.

**پروفيسران:** هغوي (منکرين حيات) خو ايتونه لولي .

**محمد امين صفدر:** ورشئ ليکلي يې ترينه راوړئ.

**پروفيسران:** هغه ايتونه تاسو ته هم ياد دي.

**محمد امين صفدر:** منکرين حيات دا ايتونه لولي چې (اِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى).

**پروفيسران:** هو بالکل همدا ايتونه لولي.

**محمدامين صفدر:** دا دلفظي ترجمې والا قرآن پاک دی دا واخله او دا پکې راپيدا کړه ، دکوم ايت په ترجمه کې يې ليکلي دي چې مړي يې نه اوري ؟ دلته خو يې په ترجمه کې ليکلي دي چې: ته يې مړو ته نه شې ورأورولی، داسې خو يې نه دي ليکلي چې مړي يې نه أوري ، صحيح ده، ته يې نه شې ورأورولی ، لکن ددې څخه به دا څرنګه ثابته کړئ چې دوي يې نه أوري، زه وايم چې زه نن تاته ناشته نشم درکولی، نو ايا ددې معنى داده چې ته يې نشې خوړلی ؟(يا يو سړی ووايي چې ته زيد نه شې مړ کولی نو ايا ددې معنى داده چې زيد نه مړ کيږي؟)

**محمد امين صفدر:** ددې ايت پسې مخکې ولوله چې څه يې ليکلي دي ؟ مخکې خو يې تقسيم کړی دی چې ته يې مسلمان ته ور اورولی شئ او ددې څخه دا لازميږي چې ته يې کافر ته نه شې ور اورولی (اِنْ تُسْمِعُ اِلَّا مَنْ يُّؤْمِنُ بِاٰيٰتِنَا) .

خلاصه دا چې کافر ته يې نه شی ورأورولی ، او مسلمان ته يې ور أورولی شی، نو زه اوس ستاسو څخه پوښتنه کوم چې دنبي کريم ﷺ وعظ خو ابوبکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اوريدلو، نو ايا ابو جهل اوريدلو او که نه ؟ که نه يې اوريدلو نو بيا يې انکار او تکذيب څرنګه کولو؟ او بيا ورته کافر څرنګه وايو ؟ په نه اوريدلو.کې خو بيا تيګه او کافر يو برابر شو ،نو څرنګه کافر ته کافر وايو او تيګې ته کافر نه وايو ؟ معلوميږي دا چې کافر يې هم أوري ، لکن نفع ورته نه رسيږي، نو کافر مشبه دی او مړی

مشبه به دی او وجه دشبه عدم انتفاع ده، کافر هم د أوریدلو څخه وروسته نفع نه أخلي او مړی هم د أوریدلو څخه وروسته نفع نه شي اخستلی، مثلاً توبه نه شي ویستلی.

**محمدامین صفدر:** ما درته وویل چې مسلمان ته ور أورول کولی شی او کافر ته یې نه شی کولی، حالانکې کافر ته یې هم ور اورولی شی ،لکن هغه ترینه نفع نه أخلي.

کله یې ور أورولی شی؟ او کله یې نه شی ور أورولی ؟ الله تعالی فرمایي چې: (اذا ولّوا مدبرین) کله چې هغوي شا واړوي او روان شي، نو ایا مړی هم شا اړوي او روانیږي؟(اذا ولّو مدبرین) دچا په باره کې دی ؟ کافر تښتي او که مړی؟

**پروفیسران:** اوس پوه شو، یقینا چې مماتیان خلکو ته دوکه ورکوي (یادګار خطبات ص ۳۱۵)

**دریم جواب:** دا چې حافظ ابن کثیر فرمایي چې په دې ایتونو کې نفې د سماع نافعې ده ای لا تسمعهم شیئًا ینفعهم، ابن کثیر (سورة نمل) حافظ سیوطي دا جواب په یو شعر کې رانقل کړی دی چې:

سماع الموتی کلام الخلق قاطبة
قد صح فیها لنا الاثار بالکتب
وایة النفی معناها سماع هدیٍ
لایسمعون ولایصغون للادب
(فیض الباري، کتاب الجنایز)

**څلورم جواب:** شاه صاحب فرمایي چې په عرف کې اوریدل په معنی دعمل کولو سره راځي او عدم سمع په معنی دعدم عمل سره راځي لکه: قلت له مرارًا أن لایترک صلوة لکنه لایسمع کلامی.

خلک وایي چې زید زما خبره نه أوري، یعنې عمل وربانديې نه کوي، نو په دې ایت کې به سماع په معنی دمنلو سره وي، یعنې ته یې وربانديې منلی نه شي.

**پنځم جواب:** سماع الموتي په اسبابو غیر اخیتاریه وو غیر عادیه وو باندې بناء ده، همدارنګه خلاف التوقع ده او کوم فعل چې په اسبابو غیر اختیاریه وو غیر عادیه وو باندې بناء وي، هغه الله تعالی دبنده څخه نفې کوي خپل ذات ته یې منسوبوي لکه ﴿وَمَا رَمَيْتَ إِذْ رَمَيْتَ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ رَمَىٰ﴾ (فتح الملهم ج ا ص ۴۶۸)

**فائقیل:** چې حضرت عائشې ﷺ ددې ایت څخه دعدم دسماع الموتی لپاره استدلال کړی دی، کله چې حضرت عائشې تـه چا دحضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه دقلیب بدر والا حدیث واورولو نو حضرت عائشې رضی الله عنها وفرمایل چې داسې نه ده، ځکه چې ددې حدیث ددې ایت سره تعارض دی چې (فَاِنَّكَ لَا تُسْمِعُ الْمَوْتٰى) بلکه نبي ﷺ داسې فرمایلي دي چې (انهم لیعلمون الأن) بخاري ج ۱صـ۱۸۳)

**جواب:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې دا دجمهورو صحابه وو، کرامو په مقابل کې دحضرت عائشې رضی الله عنها انفرادي رأیه ده (فتح الباري ج ۳ صـ۴۷۷ حاشیه بخاري صـ۱۸۳)

**۲جواب:** حافظ ابن حجر فرمایي چې: په یو روایت کې دحضرت عائشې څخه داسې لفظ مروي دی چې (ما انتم بأفهم منهم) فتح البـاري ج ۸ صـ ۳۰٦) ددې څخه معلومیږي چې حضرت عائشې رضی الله عنها دخپل قول څخه رجوع کړې ده، مخکې دحضرت عایشې رضی الله عنها دا ګمان وو چې حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به په دې روایت کې متفرد وي، لکن چې کله ورتـه معلوم شو چې حضرت ابن عمر متفرد نـدی، بلکې دا روایـت د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه عـلاوه د ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عبد الله بن سیدان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه هم مروي دی نو بیا یې دخپل قول څخه رجوع وکړه.

**۳جواب:** همدارنګه دا واقعه ددوهم کال دهجرت ده، ددې څخه وروسته چې کله حضرت عمر رضی الله عنه په حجره مبارکه کې دفن شو نو حضرت عائشه رضی الله عنها به بیا د پوره پردې سره خپلې حجرې تـه تلله (حیاء من عمر) مسند احمد ج ٦ صـ۲۰۲) دا دعهد عثماني واقعه ده، همدارنګه مخکې دحضرت عائشې رضی الله عنها څخه دخطاب په صیغو په مړو باندې سلام رانقل کړل شو . (مسلم ج ۱ صـ۳۱۳)

بیا چې کله دحضرت معاویه رضی الله عنه په زمانه کې دحضرت عائشې رضی الله عنها ورور وفات شو نو حضرت عائشه رضی الله عنها قبر ته ورغله او دخطاب په صیغو باندې یې ورته اشعار ولوستل بیا یې ورتـه دخطاب په صیغه وفرمایل چې: (والله لو حضرتک ما دفنت الا حیث مت ولو شهدتک مازرتک (ترمذي، باب فی زیارة القبور للنساء) که دا نفس تحسر وی، نو تحسر خو په غیاب کې هم کیدلی شو، نو په قبر باندې حاضري ته بیا څه ضرورت وو؟ (مجمع الزوائد ج ۳صـ۶۰، باب زیارة القبور) دا ټول دحضرت عائشې رضی الله عنها په رجوع باندې دلالت کوي.

حافظ ابن حجر رحمه الله دامام بيهقي په حواله باندې فرمايي چې: وَمِنَ الْغَرِيبِ أَنَّ فِي الْمَغَازِي لِابْنِ إِسْحَاقَ رحمهما الله تعالى رِوَايَةَ يُونُسَ بْنِ بُكَيْرٍ رحمهما الله تعالى بِإِسْنَادٍ جَيِّدٍ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها مِثْلَ حَدِيثِ أَبِي طَلْحَةَ رضي الله عنه وَفِيهِ مَا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ وَأَخْرَجَهُ أَحْمَدُ رحمه الله بِإِسْنَادٍ حَسَنٍ فَإِنْ كَانَ مَحْفُوظًا فَكَأَنَّهَا رَجَعَتْ عَنِ الْإِنْكَارِ لِمَا ثَبَتَ عِنْدَهَا مِنْ رِوَايَةِ هٰؤُلَاءِ الصَّحَابَةِ رضي الله عنهم لِكَوْنِهَا لَمْ تَشْهَدِ الْقِصَّةَ. (فتح الباری)

ډير عجيبه خبره داده چې دابن اسحاق په معازيو کې ديونس بن بکير په طريقه باندې په جيد سند سره دعايشې رضی الله عنها څخه دحضرت ابو طلحه په شان روايت شوی دی، په هغې کې داسې الفاظ دي چې: (ماأنتم باسمع لما أقول منهم) او امام احمد هم ددې تخريج کړی دی که دا محفوظ شي نو په دې به دلالت وکړي چې حضرت عايشې رضی الله عنها دخپلې خبرې څخه رجوع کړې ده ځکه چې دېږو صحابوؤ روايات يې مخې ته راغلل.

دحضرت عائشې رضي الله عنها په الفاظو کې دبدر مړو ته علم او فهم ثابت شو او علم او فهم حيات غواړي او مماتيان خو دنفي دسماع اود نفی دعلم او فهم دواړو قائل دي، فما هو جوابکم فهو جوابنا.

**۴-جواب:** که رجوع ثابته نه شي، بيا هم دحضرت عايشې رضی الله عنها خبره د کافرانو مړو په باره کې ده.

**فانقيل:** دقليب بدر په حديث کې د( انهم يسمعون الآن) جمله ده ، بخاري ج ۲ ص-۹۸۱) ددې څخه معلوميږي چې دمړو سماع صرف دهغه وخته پورې خاصه وه دائمي نه وه .

**جواب:** په ترمذي کې روايت دی چې دنبوت څخه مخکې به چې کومو تيګو په ما باندې سلام اچولو نو (اني لأعرفه الآن) ج ۲ ص-۲۰۳) نو آيا اوس ددې معنی هم دا ده چې زه يې صرف اوس په موقت طور باندې پيژنم او په دائمي طور باندې يې نه پيژنم؟ همدرانګه په مسند احمد ج ۱ ص-۳۱) کې روايت دی چې نبي ﷺ ديو مړي په باره کې وفرمايل چې (ان هذا ليعذب الآن) نو ايا ددې هم دا معنی ده چې ددې مړي لپاره صرف اوس په وقتي طور باندې عذاب دی دائمي نه دی؟ نو ألان په نفي ددوام باندې دلالت نه کوي.

**فانقيل:** په قرآن کې واقعه ده چې يو سړی سل کاله مړ وؤ ، بيا چې الله راژوندی کړو نو پوښتنه يې ترېنه وکړه چې (کم لبثت) هغه ورته وويل چې (لبثت يوماً او بعض يوم) نو دې سړي ته دخپل ځان علم نه وو نو دبل چا خبرې يې څرنګه واورېدلی؟

**قلنا:** علامه کشمیري رحمه الله فرمايي چې تر اوسه پورې د قرآن تقريبا دوه لکه تفسرونه ليکل شوي دي انتهى نو د اشاعة التوحيد والسنة د تنظيم څخه مخکې تقريبا دوه لکه تفسيرونه ليکل شوي دي په دې دوه لکه تفسيرونو کې کوم مفسر په دې واقعه باندې د نفى د سماع الموتى لپاره استدلال کړى دى ؟

(۲) دا واقعه د چاسره پېښه شوه ؟ نو په دې کې نهه قوله دي، څوک وايي چې داسړى کافر وو، څوک وايي چې مؤمن وو بيا څوک وايي چې نبي وو او څوک وايي چې نبي نه وو، بيا که نبي شي نو کوم نبي وو؟ په هر تقدير دا ټوله واقعه د خوارقو څخه ده، ځکه چې په سلو کالو کې يې خوراک همغسې پخپل حال وو د سلو کالو په بارانونو او هواګانو باندې خراب شوي نه وو، په سلو کالو کې څوک په دې لاره ورغلى نه وو، په سلو کالو کې يې د خره هډوکي پخپل حال وو، وغيره.

## جواهر القرآن

(۱) صاحب د جواهر القرآن ليکي چې: د سماع الموتى او د نفى د سماع الموتى لپاره منشا داده چې څوک چې روح په قبر کې ګڼي هغوي د سماع الموتى قائل دي، او څوک چې روح په عليين او يا په سجين کې ګڼي او بيا عليين او سجين د قبر څخه ډېر لرې ګڼي نو هغوي د سماع الموتى څخه منکر دي.

**نوټ:** مونږ مخکې په ډېرو دلايلو باندې دا ثابته کړه چې د روح تعلق په دې قبر کې د مړي سره شته دى، له دې وجې د صاحب الجواهر د دې قول څخه هم سماع الموتى ثابته شوه.

(۲) صاحب د جواهر القرآن ليکي چې د سماع الموتى په مسئله کې د احنافو او د شوافعو اختلاف شوافع د سماع الموتى اثبات کوي او احناف يې نفې کوي.

**نوټ:** مولنا صاحب چې د احنافو او د شوافعو د اختلاف کومه خبره کړې ده نو حواله يې نه ده، پيش کړې، امام صاحب ته د دې خبرې نسبت د احنافو په کتابونو کې نشته، مونږ صاحب د جواهر القرآن ته وايو چې امام صاحب د اعادې د روح قائل دى کما مرّ او تا مخکې وويل چې څوک چې اعاده د روح او تعلق د روح د جسد عنصري سره مني هغه د سماع الموتى قائل دي، نو پکار دى چې ستا د وينا مطابق د امام صاحب مذهب اثبات د سماع الموتى شي.

(۳) مولنا صاحب ليکي چې: ابو قتادة رضي الله عنه د بخاري د قليب البدر په حديث کې تاويل کوي معلوميږي دا چې سماع الموتى نشته.

قلنا: چې داخبره غلطه ده، داسړی ابو قتادة صحابي نه دی، بلکه خالي قتادة دی، مماتیان دقتاده معتزلي څخه ابو قتادة صحابي جوړوي او قتادة معتزلي دی او معتزله چونکه د ثواب او د عذاب دقبر څخه منکر دي له دې وجې په دې مسئله کې دده قول په مونږ باندې حجت نه دی.

فانقیل: چې په کتاب الأیمان کې یوه مسئله ده دهغې څخه معلومیږي چې احناف په نفي دسماع الموتی قول کوي، مسئله داسې ده چې یو سړی قسم وکړي چې زه به دزید سره خبرې نه کوم بیا یې ورسره دمرګ څخه وروسته خبرې وکړې نو دا سړی نه حانثیږي.

قلنا: دلته دعدم حنث مدار په سماع او عدم سماع باندې نه دی، بلکې په دې باندې دی چې بناء دایمانو په عرف ده او په عرف کې دیته کلام نه شي ویل کیدلی.

**الحاصل:** (اکثر بلکه تحقیق دادی چې ټول صحابه کرام دسماع الموتی قائل دي، اوصوفیا کرام سل فیصده دسماع الموتی قائل دي په فقهاوو کې نهه نوي فیصده دسماع الموتی قائل دي.

او یو فیصد چې دنفی دسماع الموتی قائل دي نو هغوي هم دمماتیانو په شان نفي دسماع نه کوي بلکه (۱) هغوي صرف نفي دسماع کوي او قائلینو دسماع الموتی ته کافران، مشرکان، او بدعتیان نه وایي، او مماتیان په قائلینو دسماع باندې دافتوې لګوي، (۲) یو فیصد فقهاء داسې وایي چې قانون نفی دسماع الموتی دی او په کومو احادیثو کې چې اثبات دسماع الموتی راغلی دی نو هغه ترخپلو احوالو اوموارد و پورې خاص دی، شاه صحاب دابن الهمام قول داسې بیانوي چې (انما الضابطة هو عدم السماع لكن المستثنيات فى هذا الباب كثيرة (فتح الملهم ج ۲ صـ ۴۷۹) نو دوي هم دسماع فی الجمله قائل دی بخلاف المماتیین. شاه صاحب فرمایي چې: والاحاديث فى سماع الأموات قد بلغت مبلغ التواتر (فيض البارى ج ۲صـ ۴۶۷)

او صاحب دفتح الملهم لیکي چې: والذى تحصل لنا من النصوص والله اعلم أن سماع الموتى ثابت فى الجمله بالاحاديث الكثيرة الصحيحة (فتح الملهم ج ۲صـ ۴۷۹)

علامه سیوطي رحمه الله فرمایي چې: سماع الموتى كلام الخلق قاطبة، قد صح فيها لنا الاثار فى الكتب واية النفى معناها سماع هدى، لايسمعون ولا يصغوا الى ادب. (تفسير ابن كثير ج ۳صـ ۳۷۴)

ددارالعلوم ديوبند اولنى مفتي، مفتي عزيزالرحمن ديوبندي رحمه الله المتوفى (۱۳۴۷هـ) هغه دسماع الموتى په باره كې مختلفې فتوى وركړې دي، دهغو فتواو څخه بعضې فتوې دعدم سماع الموتى سره تعلق لري.

سوال نمبر (۳۱۸۹) داحنافو په مذهب باندې ددين دبزرګانو مزاراتو او قبرونو ته تلل او داعرض كول چې دا دالله يو مقبول بنده دى او دا ماته دعا كوي چې زما فلان مراد پوره شي دا جائز دى او كنه؟

سوال نمبر(۳۱۹۰) دامام صاحب په نيز باندې ددين بزرګان د وفات څخه وروسته دزيارت كوونكو خبرې اوري او كنه؟

سوال نمبر (۳۱۹۱) ايا دا خبره صحيح او ثابته ده چې يو كس او شخص دې دقبر په خواكې دعرض او معروض په مسئله كومه چې په سوال نمبر ۳۱۸۹ كې تېره شو اخته وي او امام ابو حنيفه رحمه الله ورته ويلي وي چې دا خو ته التجاء او غوښتنه ترې كوې او حال دا چې هغه يې نه اوري؟

سوال نمبر (۳۱۹۲) كه چرته دامام صاحب دقول دتائيد لپاره يو آية يا حديث وي هغه هم وليكى.

الجواب :د ۱ - ۴ پورې سماع الموتى اختلافي مسئله ده او دا اختلاف دصحابه وو رضى الله عنهم دزمانې څخه را روان دى، خو اكثره امامان په سماع الموتى باندې قائل دي او د احنافو په كتابونو كې بعضې داسې مسائل (لكه مسئلم ديمين) موجود دي چې عدم السماع ترېنه معلوميږي، خو دامام صاحب څخه پدې باره كې صراحةً څه ندي رانقل شوي.

قائلين دعدم السماع ددغه اية (انك لَاتُسْمِعُ الْمَوْتٰى) وغيره څخه استدلال كوي او قائلين دسماع الموتى ددغه حديث ما انتم باسمع منهم الخ او دحديث دقرع النعال څخه استدلال كوي او دمذكوره آية څخه جواب كوي چې دلته نفى دسماع قبولٍ مراد ده، مقصد دا چې دا مسئله مختلف فيها ده او قول فيصل په كې ګران او مشكل دى، خو دعوامو دسكوت لپاره دا مناسب ده چې دا مسئله دعلماوو ترمنځ اختلافي ده او دواړه فريقين دلائل لري او چې دسماع الموتى مسئله اختلافي ده نو همدارنګه دا مسئله چې دبزرګانو او اولياوو په قبرونو باندې داسې دعاوې كول چې تاسو دالله تعالى نه وغواړئ چې زما فلانى حاجت پوره كړي داهم اختلافي شوه خو احتياط دادى چې داسې دعا وشي چې آى الله ددغه خپلو نېكو بندګانو په بركت زما دعاء قبوله كړې او زما حاجت پوره كړې! انتهى (فتاوى درالعلوم ديوبند ج۵ ص۴۶۱) طبع ديوبند

**دمذکوره فتوی څخه په صراحة سره پنځه امور رامعلوم شول:**

(۱) مسلة دسماع الموتی دصحابه رضی الله عنهم دزماني څخه تر نن پورې اختلافي را روانه ده.

(۲) او د دواړو فریقینو لپاره دلائل موجود دي.

(۳) او دفقه حنفي په کتابونو کې بعضې داسې مسائل شته چې عدم السماع ترېنه معلومیږي.

(۴) لکن دحضرت امام ابو حنیفه رحمه الله څخه صراحةً هیڅ ندي رانقل شوي (یعنې دفتاوی غرائب حواله چې منکرین دسماع الموتی یې امام صاحب ته منسوبوي دا بې اصله او بې بنیاده خبره ده)

(۵) دبزرګانو او اولیاوو په طفیل او وسیله دعا کول درست او صحیح دي.

## د مماتیانو یو څو وسوسې

**۱-سوال:** دمرګ په وخت کې دمیت ظاهري او باطني دونیوي حواس، معطلیږي او که نه؟ که معطلیږي نوسماع په څه کوي؟

قلنا: هو دمرګ په وجه دونیوي ظاهري او معنوي حواس معطلیږي، لکن دعالم القبر والبرزخ حواس ورکولی کیږي، چې دهغې په وجه حس، ادارک، شعور، دنکیرینو دسوالونو جواب وغیره کولی شي، په یو لوی حدیث کې د عذاب قبر او د نکیرینو دسوال او د جواب ذکر دی، دحدیث په اخر کې راځي حضرت عمر رضي الله عنه فرمایي چې: (قلت یا رسول الله صلی الله علیه وعلی آله وسلم و انا علی حالي هذا؟ قال نعم، قال اذن اکفیکهما، مسند احمد ج۲ص ۳۶۲، مصنف عبدالرزاق ص ۵۸۳) اعلام الموقعین ج۴ص ۲۸۸) یارسول الله صلی الله علیه وعلی آله وسلم ایا زه به پخپل دغه حالت یم چې زما عقل او هوش به په ځای وی؟ رسول الله صلی الله علیه وعلی آله وسلم وفرمایل چې: هو، ستا عقل او هوش به همداسې وي لکه اوس چې دي، نو حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل چې بیا زه دې دواړو ته کافي یم، یعنې بیا ماته جواب ورکول مشکل نه دی.

په صحیح البخاري ج ۱ص ۱۸۳، باب ماجاء فی عذاب القبر، حاشیه ۷) کې فرمایي چې: لانه لما ثبت سماع اهل القلیب کلامه صلی الله علیه وعلی آله وسلم وتوبیخه لهم دل علی ادراکهم بحاسة السمع.

**۲- سوال: ایا مړی صرف سلام ، خفق النعال،اذان، پیغام اوري او که هر څه اوري؟**

قلنا: په منصوصي ځایونو کې سماع یقیني ده او په غیر منصوصي ځایونو کې (ان الله یسمع من یشاء).

**۳- سوال: دڅومره نږدې فاصلې څخه يې اوري؟**

قلنا: په عام عرف کې چې څومره فاصلې ته قريب ويلی شي هغه قريب ده او څومره فاصلې ته چې بعيد ويلی شي هغه بعيده ده ايا کوم مماتي په عالم الدينا کې دټولو انسانانو د سماع لپاره يو معين حد ښودلی شي؟

**۴- سوال: سماع صرف روح کوي او که صرف جسد يې کوي او که روح مع الجسد يې دواړه کوي؟**

قلنا: په صحيحو احديثو کې د روح او د جسد په مابين کې تعلق ذکر شوی دی، د دې تعلق په وجه د سماع الموتی تحقق راځي، نو اوس داسې هم ويلی شي چې روح يې اوري ځکه روح اصل دی او داسې هم ويلی شي چې جسد يې اوري، ځکه چې د روح د جسد سره تعلق دی.

**۵- سوال: ايا مړی يې عادةً اوري او که خرق العادة.؟**

قلنا: د عام عادت او ظاهري اسبابو په خلاف يې اوري.

**٦- سوال: سماع الموتی ماتحت الاسباب ده او که مافوق الاسباب ؟**

قلنا۱-: زمونږ سلام او اواز ماتحت الاسباب الطبيعة الظاهره دی او داهل القبور اوريدل د الله تعالی په قدرت دي او په اسبابو غير ظاهره وو، يعنې په اسبابو باطنيه ووو برزخيه وو سره دي، ددنيا والا اسباب غوږونه وغيره د عذاب قبر او ثواب قبر لپاره شرط ندي، نو د سماع لپاره هم شرط دي.

۲- د قرپه داخل کې مړی دنکيرينو سوالونه چې من ربک، مادينک، ومن نبيک دی اوري ،نو مونږ مماتيانو ته الزاماً وايو چې دا سماع مافوق الاسباب ده او که ماتحت الاسباب؟ که ماتحت الاسباب وي، نو ماتحت الاسباب الظاهره ده او که ماتحت الاسباب الباطنه؟ فما هو جوابکم فهو جوابنا او که مافوق الاسباب وي نو بيا خو يې مماتيان هم مني ،نو اول نمبر مشرکان خو بيا مماتيان اشاعتيان شو.

۳- کوم صحابه ،تابعين، تبع تابعين ،فقهاء او د امام بخاري رحمه الله په شمول محدثين چې د سماع الموتی قايلين دي، نو دوي دکومې سماع قايلين دي، دمافوق الاسباب او که ماتحت الاسباب ؟

**٧- سوال: په قرآن کريم کې الله تعالی ته سميع ويلی شوی دی او دانسان په باره کې راځي چې: (و جعلناه سميعًا بصيرا)، نو د دواړو په مابين کې څه فرق دی؟**

قلنا: الله تعالی الاتو او اسبابو ته محتاج نه دی او انسان ورته محتاج دی، په دنيا کې اسباب ظاهر وو دنياويه وو ته محتاج دی او په برزخ اسبابو باطنيه وو برزخيه وو ته محتاج دی، همدارنګه د الله تعالی سمعه لامحدوده او بې مثاله ده او دانسان سمعه محدوده ده

٨- سوال: اهل البرزخ چې داهل الدنيا سلام اوري، نو بيا اهل الدنيا ولې د اهل البرزخ جواب نه اوري؟ په حديث کې خو راغلي دي چې تاسو چې په مړو سلام واچوئ نو مړي يې اوري هم او جواب هم ورکوي؟

قلنا: کله چې زنانه په پرده کې ډاکټر ته لاړه شي، نو زنانه په برزخ او پرده کې وي، ډاکټر ته زنانه نه ښکاري، ځکه چې زنانه په پرده کې ده، لکن زنانه ته ډاکټر ښکاري، ځکه چې ډاکټر په پرده کې نه دی، ددنيا د برزخ او پردې تعلق يواځې دسترګو سره دی، او مړی په عالم البرزخ کې دی او د عالم البرزخ تعلق د متوفی دټولو حالاتو سره دی، نو اهل الدنيا د اهل البرزخ جواب نه اوري، ځکه چې اهل البرزخ په برزخ کې دي او اهل البرزخ د اهل الدنيا سلام اوري، ځکه چې اهل الدنيا په برزخ کې نه دي.

الله تعالی فرمايلي دي چې: ولکن لاتشعرون، داهل الدنيا شعور يې نفې کړی دی د اهل البرزخ شعور يې ندی نفې کړی، ولکن لايشعرون يې نه دی ويلي.

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده. امابعد!

د اهل سنت والجماعة د مسلک مطابق په دعا کې نبي ﷺ وسيله کول او يا کوم شهيد او ولي وسيله کول مستحب دي، او داسې دعا أقربه الى الاجابة ده او په دعا کې په انبياوو او په اولياوو باندې وسيله نيول ددعا د ادابو څخه دي. (عزيز الفتاوی ج ۱ ص ۱۷۱ حجة الله البالغه ج ۲ ص ٦، احسن الفتاوی رشيديه ج ۱ ص ۶۳)

## د اهل بدعتو مسلک

د اهل بدعتو په کتابونو کې د توسل په باره کې مختلف قسم اقوال پيدا کيږي مثلاً:

(۱) د توسل مسئله د يهودو او دنصاری وو څخه را روانه ده، توسل بالاموات د صحابه وو معمول نه وو، لهذا د توسل بالاموات ټول اقسام ناجائز او بدعت دي. (ندای حق ج ۲ ص ۳۳۵، ۳۴۹، ۲۹۷)

(۲) د مماتيانو موجوده امير مولوي طيب طاهري پنجبيري د خپل پلار د کتاب البصائر په ابتداء کې د کلمهٔ نشر د عنوان لاندې ليکي چې: (فرق بين التوسل الشرعي والشركي)

(۳) د البصائر په حاشيه کې دي چې: توسل د رفض سبب دی (حاشيه البصائر ص ۳۰۰)

(۴) په بل ځای کې ليکي چې: د توسل د قائلينو او د مکې د مشرکانو عقيده حذو النعل بالنعل ده، (حاشية البصائر ص ۲۳۷)

(۵) وسيله شرک د اسبابو څخه ده (مولنا طاہر کے خدمات ص ۱۹۴)

(٦) توسل بالذوات شرک دی (الانتصار ص ٦۵ لمولوی طاهر)

(۷) يقول ببركة فلان كلمة الشرک لا يصح بوجه (العرفان ص ۱۳۸، )

(۸) ان هذ التوسل عين الشرک (الصواعق المرسله ص ۱۲۷)

**الحاصل:** داهل سنتو په نيز توسل مستحب دى او ددعاء د ادابو څخه دى او دبدعتيانو په نيز باندې توسل حرام دى ، بدعت دى، بلکه مشرکانه عقيده ده .

**فائده:** والاستحباب يثبت بالضعيف غير الموضوع (فتح القدير ج ۲ صـ ۱۳۳ فصل في حمل الجنازة)

## دتوسل معنى او مفهوم

الوسيلة: دنزديکت ذريعه (مصباح اللغات صـ ۹۴۶)

الوسيلة: ذريعه، واسطه، مقام او مرتبه، قرب (النهايه في غريب الاثر لابن الاثير الجزري ج ۵صـ ۴۰۲)

الوسيلة: هى مايتقرب به الى الغير (كتاب التعريفات ج ۱صـ ۳۲۶ مختار التعريفات ج ۱ صـ ۷۴۰ )

وابتغوا اليه الوسيلة ـ قال سفيان الثوري ، حدثنا ابي عن طلحه عن عطاء عن ابن عباس اى القربة وكذا قال مجاهد وعطاء ، و ابو وائل والحسن وقتادة ، وعبد الله بن كثير ، والسدي، وابن زيد (درمنثور وابن كثيز تحت قوله تعالى وابتغوا اليه الوسيلة)

حكيم الامة حضرت تهانوي رحمه الله فرمايي چې: توسل په لغت کې تقرب او نزديکى ته وايي، الله تعالى فرمايي چې: وابتغوا اليه الوسيلة يعنې د الله تعالى قرب حاصل کړئ (ملفوظات حكيم الامة ج ۲۵صـ ۱۲۳)

**دتوسل بالذوات حقيقت اوطريقه:** دمولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله د لاندېنيو دوو ارشاداتو څخه ظاهرېږي .

(۱) د کوم انسان چې د الله تعالى په نيز څومره جاه او مرتبه وي دهغې په مقدار ورته رحمتونه متوجه وي ، نو دتوسل معنى دا ده چې يا الله تعالى څومره رحمتونه چې ده ته متوجه دي او څومره قرب چې ستا په نيز ده ته حاصل دى، ددې په برکت ماته فلانى شى راکړه، ځکه چې زما ددې شخص سره تعلق دى ، همدا رنګه په اعمال صالحه وو باندې توسل راغلى دى، په حديث کې ددې معنى همدا ده چې د اما چې کوم عمل کړى دى ، ددې عمل چې د الله تعالى په نيز کومه مرتبه ده يا الله ددې په برکت په ما رحم وکړه . (ملفوظات حكيم الامة ج ۲۱ صـ ۲۶ )

(۲) دتوسل حقيقت دا دى چې يا الله زما په نظر کې فلانکى شخص تاته مقبول دى او دمقبولينو سره په تعلق لرونکو باندې تا درحم وعده کړې ده (المرء مع من احب) نو زه ستا څخه دغه (موعود)

رحمت غواړم، نو په توسل کې دعاکونکی د الله تعالی د اولیاوو سره خپل محبت ښکاره کوي، او په دې محبت باندې د الله تعـالی څخـه رحمتونـه او ثوابونـه غـواړي او د الله تعـالی د اولیـاوو سـره محبت د رحمتونو او د ثوابونو سبب دی، دا د ډېرو نصوصو څخه ثابته ده، لکه څرنګه چې د متحابین فی الله د فضائلو څخه احادیث ډک دي، پاتې شو دا اشکال چې د بزرګی او د برکت لپاره په رحمتونو کې څه دخل دی؟ نو دخل دا دی چې د دې بزرګ سره محبت کول د حب فی الله یو فرد دی، او په حب فی الله باندې د ثوابونو وعده شوې ده (ملفوظات حکیم الامة ج ۲۱ ص ۴۸)

## دمستحب توسل اقسام

(۱) توسل بالایمان وبالاعمال الصالحة، خپل عمل وي او که د بل چا وي.

(۲) دیو نبي د پیدائش څخه مخکې د هغه ذات وسیله کول.

(۳) د یو ولي یا د یو نبي څخه دعا غوښتل.

(۴) د یو نبي یا یو ولي د پیدائش څخه وروسته د هغه ذات وسیله کول.

(۵) دیو نبي یا د یو ولي د وفات څخه وروسته د هغه ذات وسیله کول.

(٦) د توسل سره متعلقه مسئله، دیو نبي او یا د یو ولي په اثارو باندې تبرک حاصلول.

دا ټول اقسام جائز او مستحب دي، یو بل قسم دی چې هغه عبادت د غیر الله دی، د دې لپاره چې الله تعالی ته ورباندې نیږدې شي، دا کفر دی، الله تعالی فرمایي چې کفارو به د غیر الله عبادة کولو او ویلې به یې چې ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِیُقَرِّبُوْنَآ اِلَی اللهِ زُلْفٰی﴾ په دې کې عبادت د غیر الله راغلی دی، مخکنیو شپږ قسمه وسیلو کې عبادت د غیر الله نه وي.

### د اول قسم توسل لپاره دلائل:

د دې قسم توسل د دلایلو استیعاب متعذر دی، لهذا یو څو اجمالي دلائل به یې ذکر کړو.

(۱) د عیسی ﷺ حوارین د خپل ایمان او د اتباع الرسول الله په وسیله باندې دعا کوي او فرمایي چې: (وَاتَّبَعْنَا الرَّسُوْلَ فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ) سورة ال عمران.

(۲) همدارنګه الله تعالی فرمايي چې: (رَبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُنَادِي لِلْإِيمَانِ أَنْ آمِنُوا بِرَبِّكُمْ فَآمَنَّا رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَكَفِّرْ عَنَّا سَيِّئَاتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْأَبْرَارِ) ال عمران اية نمبر ۱۹۳) دلته د ايمان په وسيله باندې دعا شوې ده.

(۳) همدارنګه الله تعالی فرمايي چې: (إِنَّهُ كَانَ فَرِيقٌ مِنْ عِبَادِي يَقُولُونَ رَبَّنَا آمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا وَأَنْتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ) (مؤمنون نمبر ص ۱۰۹) دلته الله تعالی د هغو مؤمنانو مدحه بيانوي چې د خپل ايمان په وسيله باندې دعا کوي.

(۴) په صحيح بخاري کې تفصيلي حديث دی چې درې کسان په غار کې وو دغره څخه يو غټ ګاټ راورغړيدو او دغار خوله يې بنده کړه، نو بيا دې درې واړو خپل خپل اعمال الله تعالی ته وسيله کړل، يو دمور او دپلار خدمت وسيله کړو. بل دزنا څخه دځان ساتل الله تعالی ته وسيله کړه او دريم دحرامو څخه ځان ساتل الله تعالی ته وسيله کړل، الله تعالی ورته نجات ورکړو. (صحيح البخاري باب من استأجر اجيرا الخ)

(۵) امام نووي رحمه الله ددې (حديث الغار) په تشريح کې فرمايي چې: اسْتَدَلَّ أَصْحَابُنَا بِهَذَا عَلَى أَنَّهُ يُسْتَحَبُّ لِلْإِنْسَانِ أَنْ يَدْعُوَ فِي حَالِ كَرْبِهِ وَفِي دُعَاءِ الِاسْتِسْقَاءِ وَغَيْرِهِ بِصَالِحِ عَمَلِهِ وَيَتَوَسَّلَ إِلَى اللهِ تَعَالَى بِهِ لِأَنَّ هَؤُلَاءِ فَعَلُوهُ فَاسْتُجِيبَ لَهُمْ وَذَكَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَعْرِضِ الثَّنَاءِ عَلَيْهِمْ وَجَمِيلِ فَضَائِلِهِمْ. (شرح مسلم للنووي، باب قصة اصحاب الغار).

## ددوهم قسم توسل لپاره دلائل:

(۱) يهودو به دنبي ﷺ دپيدائش څخه مخکې دنبي ﷺ ذات الله ته وسيله کولو او دنبي ﷺ د ذات په وسيله به يې دالله تعالی څخه فتحه غوښتله، الله تعالی فرمايي چې: (وَلَمَّا جَاءَهُمْ كِتَابٌ مِنْ عِنْدِ اللهِ مُصَدِّقٌ لِمَا مَعَهُمْ وَكَانُوا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُونَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا فَلَمَّا جَاءَهُمْ مَا عَرَفُوا كَفَرُوا بِهِ فَلَعْنَةُ اللهِ عَلَى الْكَافِرِينَ)(البقره)

* ددې ايت په تشريح کې حبر الامة حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې دبنو قريظه او دبنو نضير يهودو به دنبي ﷺ دبعثت څخه مخکې دنبي ﷺ په وسيله باندې دعا کوله.

عَن ابن عَبّاس رضي الله عنهما قَالَ: كَانَت يهود بني قُرَيْظَة وَالنضير من قبل أن يبْعث مُحَمّد صلى الله عَلَيْهِ وَسلم يستفتحون الله يدعونَ على الَّذين كفرُوا وَيَقُولُونَ: اللَّهُمَّ إِنَّا نستنصرك بِحَق النَّبِي الْأُمِّيّ إِلَّا نصرتنا عَلَيْهِم فينصرون.
(الدر المنثور ج۱ ص۲۱۵).

• قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما: كَانَتْ يَهُودُ خَيْبَرَ تُقَاتِلُ غَطَفَانَ فَلَمَّا الْتَقَوْا هُزِمَتْ يَهُودُ، فَعَادَتْ يَهُودُ بِهَذَا الدُّعَاءِ وَقَالُوا: إِنَّا نَسْأَلُكَ بِحَقِّ النَّبِيِّ الْأُمِّيِّ الَّذِي وَعَدْتَنَا أَنْ تُخْرِجَهُ لَنَا فِي آخِرِ الزَّمَانِ إِلَّا تَنْصُرُنَا عَلَيْهِمْ. قَالَ: فَكَانُوا إِذَا الْتَقَوْا دَعَوْا بِهَذَا الدُّعَاءِ فَهَزَمُوا غَطَفَانَ (تفسير قرطبي ج۱ ص۲۳۸.

* بيهقي، حاکم او ابو نعيم په صحيح سندونو او په متعددو طريقو باندې دا روايت ذکر کړی دی چې د مدينې د يهودو او د خيبر د يهودو، د بني اسد او د بني غطفان او د جهينه د قبيلو د مشرکانو سره جنګ وو، يهودو شکست وخوړو، نو خپل کتاب ته يې رجوع وکړه او د خپلو پوهانو څخه يې مشوره وغوښتله، هغوي د دې پرسو چ څخه وروسته ورته وفرمايل چې د جنګ په وخت کې د محمد ﷺ ذات الله تعالی ته وسيله کوئ او په دا سې مضمون باندې دعا کوئ چې: (اللّٰهُمَّ انا نسئلک بحق احمد النبي الامي الذي وعدتنا ان تخرجه لنا في اخر الزمان وبکتابک الذي تنزل عليه اخر ماينزل ان تنصرنا على اعدائنا ) (تفسير عزيزي ج۲ ص۵۸۱)

* يهودو د بنو غطفان او د بنو اسد سره په جنګ کې شکست وخوړلو کله چې د مقابلې څخه عاجز شول نو خپلو علماوو ورته دا دعاء وښودله چې: (اللّٰهُمَّ ربّنا انا نسألک بحق احمد النبي الامي الذي وعدتنا ان تخرجه لنا في اخر الزمان وبکتابک الذي تتنزل عليه اخرما ينزل ان تنصرنا على اعدائنا ی) يا الله د محمد ﷺ او د قران په وسيله باندې مونږ ته فتح راکړه (تفسير حقاني ج ۱ ص ۵۱۰)

* حالانکه کافرانو به د نبي ﷺ د بعثت څخه مخکې د نبي ﷺ په برکت باندې د الله تعالی څخه فتح او مدد د غوښتلو حتی چې د يهودو به چې د مشرکانو سره جنګ شو نو داسې دعا به يې کوله چې: (اللّٰهُمَّ ربنا انا نسألک بحق احمد النبي الامي الذي وعدتنا ان تخرجه لنا في أخر الزمان وبکتابک الذي تنزل عليه اخر ما تنزل ان تنصرنا على اعدائنا ) (تفسير معارف القران کاندهلوي ج ۱ ص ۲۳۳ )

## شرائع من قبلنا

د مخکېنو دينونو احکام او مسائل په مونږ باندې لازم دي، چې کله ورباندې زمونږ په دين کې انکار نه وي راغلی:

(۱) شرايع من قبلنا تلزمنا اذا قص الله تعالى ورسوله من غير انكار (تفسير قرطبي ج۱ ص۵۰)

(۲) مذهبنا في شرع من قبلنا انه يلزمنا على انه شريعتنا لكن لامطلقا بل ان قصه الله علينا بلا انكار، وانكار رسوله كانكاره عزوجل (روح المعاني، سورة الكهف، اية نمبر ۲۱)

(۳) وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ) وهٰذه الأية دليل علىٰ ان شرائع من قبلنا مالم يظهر كونها منسوخة فى شريعتنا واجب علينا اتيانها اذا ثبت عندنا بالكتاب والسّنة. (مظهرى: تحت قوله تعالى: ويهديكم سنن الّذين الأية.

(۴) هٰذَا يَدُلُّ عَلٰى أَنَّ شَرَآئِعَ مَنْ قَبْلَنَا مِنَ الْأَنْبِيَآءِ لَازِمَةٌ لَنَا مَا لَمْ تُنْسَخْ, وَأَنَّهَا حُكْمُ اللّٰهِ بَعْدَ مَبْعَثِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. (احكام القرآن: جصاص تحت هذه الأية).

(۵) وَأَصَحّ الْأَقَاوِيل عندنا أَن مَاثبت بِكِتَاب اللّٰه أَنه كَانَ شَرِيعَة من قبلنا أَو بِبَيَان من رَسُول اللّٰه صلى اللّٰه عَلَيْهِ وَسلم فَإِن علينا الْعَمَل بِهِ على أَنه شَرِيعَة لنبينا عَلَيْهِ السَّلَام مَالم يظْهر نَاسخه. (اصول سرخسي: ج۲ ص۹۹)

**دوهم دليل:** ويه قال حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ عَمْرُو بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ مَنْصُورٍ الْعَدْلُ رحمهما الله تعالى، ثنا أَبُو الْحَسَنِ مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ الْحَنْظَلِيُّ رحمهما الله تعالى، ثنا أَبُو الْحَارِثِ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مُسْلِمٍ الْفِهْرِيُّ رحمهما الله تعالى، ثنا إِسْمَاعِيلُ بْنُ مَسْلَمَةَ رحمهما الله تعالى، أَنْبَأَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ رَحِمَهُمُ اللّٰهُ، عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَمَّا اقْتَرَفَ آدَمُ الْخَطِيئَةَ قَالَ: يَا رَبِّ أَسْأَلُكَ بِحَقِّ مُحَمَّدٍ لَمَا غَفَرْتَ لِي، فَقَالَ اللّٰهُ: يَا آدَمُ! وَكَيْفَ عَرَفْتَ مُحَمَّدًا ﷺ وَلَمْ أَخْلُقْهُ؟ قَالَ: يَا رَبِّ، لِأَنَّكَ لَمَّا خَلَقْتَنِي بِيَدِكَ وَنَفَخْتَ فِيَّ مِنْ رُوحِكَ رَفَعْتُ رَأْسِي فَرَأَيْتُ عَلَى قَوَائِمِ الْعَرْشِ مَكْتُوبًا: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللّٰهِ فَعَلِمْتُ أَنَّكَ لَمْ تُضِفْ إِلَى اسْمِكَ إِلَّا أَحَبَّ الْخَلْقِ إِلَيْكَ، فَقَالَ اللّٰهُ: صَدَقْتَ يَا آدَمُ، إِنَّهُ لَأُحِبُّ الْخَلْقِ إِلَيَّ ادْعُنِي بِحَقِّهِ فَقَدْ غَفَرْتُ لَكَ وَلَوْلَا مُحَمَّدٌ ﷺ مَا خَلَقْتُكَ «هٰذَا حَدِيثٌ صَحِيحُ الْإِسْنَادِ وَهُوَ أَوَّلُ حَدِيثٍ ذَكَرْتُهُ لِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ رحمهم الله تعالى فِي هٰذَا الْكِتَابِ، (المستدرك على الصحيحين ج۲ ص۶۱۵)

يعني ادم عليه السلام دنبي ﷺ په وسيله دالله تعالى څخه معافي وغوښتله، الله تعالى ورته وفرمايل چې محمد ﷺ خو لا پيدا شوى نه دى ته هغه څه پېژني ؟ ادم عليه السلام ورته وفرمايل چې زه چې دې كله پيدا كړم نو ما په عرش باندې ستا د نوم سره دده نوم وليدلو، نو زه پوه شوم چې دا په مخلوق كې تا ته محبوب دى، الله تعالى ورته وفرمايل چې رښتيا دې وويل دا په ټول مخلوق كې ماته محبوب دى، دده په وسيله باندې يې زما څخه غوا ړه كه محمد نه وى نو ته به مې نه وې پيدا كړى . (ددې حديث سند صحيح دى )

امام سبکی رحمه الله ددې حديث د ذکر کولو څخه وروسته ليکي چې: (اما الحالة الاولی قبل خلقه فيدل لذلک اثار عن الانبياء الماضيين اقتصرنا منها ما تبين لنا صحته وهو مارواه الحاكم (شفاء السقام صـ ۳۵۸) بعضې علماء ليکي چې تفرد به عبد الرحمن بن زيد بن اسلم وهو ضعيف (البدايه والنهايه ج ۱ صـ ۹۱ لکن د معنی په لحاظ دا حديث مقبول دی، خطبات حکيم الاسلام ج ۲ صـ ۳)

**ددريم قسم توسل دلائل:**

(۱) حضرت انس بن مالک رضي الله عنه فرمايي چې: أَنَّ رَجُلًا دَخَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ مِنْ بَابٍ كَانَ وِجَاهَ الْمِنْبَرِ، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ يَخْطُبُ، فَاسْتَقْبَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمًا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ: هَلَكَتِ المَوَاشِي، وَانْقَطَعَتِ السُّبُلُ، فَادْعُ اللَّهَ يُغِيثُنَا، قَالَ: فَرَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ، فَقَالَ: «اللَّهُمَّ اسْقِنَا، اللَّهُمَّ اسْقِنَا، اللَّهُمَّ اسْقِنَا» قَالَ أَنَسُ رضي الله عنه: وَلاَ وَاللَّهِ مَا نَرَى فِي السَّمَاءِ مِنْ سَحَابٍ، وَلاَ قَزَعَةً وَلاَ شَيْئًا وَمَا بَيْنَنَا وَبَيْنَ سَلْعٍ مِنْ بَيْتٍ، وَلاَ دَارٍ قَالَ: فَطَلَعَتْ مِنْ وَرَائِهِ سَحَابَةٌ مِثْلُ التُّرْسِ، فَلَمَّا تَوَسَّطَتِ السَّمَاءَ، انْتَشَرَتْ ثُمَّ أَمْطَرَتْ، قَالَ: وَاللَّهِ مَا رَأَيْنَا الشَّمْسَ سِتًّا، ثُمَّ دَخَلَ رَجُلٌ مِنْ ذَلِكَ البَابِ فِي الجُمُعَةِ المُقْبِلَةِ، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَائِمٌ يَخْطُبُ، فَاسْتَقْبَلَهُ قَائِمًا، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ: هَلَكَتِ الأَمْوَالُ وَانْقَطَعَتِ السُّبُلُ، فَادْعُ اللَّهَ يُمْسِكْهَا، قَالَ: فَرَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: «اللَّهُمَّ حَوَالَيْنَا، وَلاَ عَلَيْنَا، اللَّهُمَّ عَلَى الآكَامِ وَالجِبَالِ وَالآجَامِ وَالظِّرَابِ وَالأَوْدِيَةِ وَمَنَابِتِ الشَّجَرِ» قَالَ: فَانْقَطَعَتْ، وَخَرَجْنَا نَمْشِي فِي الشَّمْسِ قَالَ شَرِيكٌ: فَسَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رضي الله عنه: أَهُوَ الرَّجُلُ الأَوَّلُ؟ قَالَ: «لاَ أَدْرِي». (صحيح البخاری، باب الاستسقاء في المسجد الجامع).

خلاصه دا چې: د جمعې په ورځ يو سړي راغلو او نبي ﷺ ته يې د قحطۍ څخه شکايت وکړو او ددعا غوښتنه يې ترينه وکړه، نبي ﷺ دعا وکړه، سمدستي په اسمان کې وريځ را پيدا شوه او يوه هفته چا لمر ونه ليدلو، په را روانه جمعه کې بيا يو سړی راغلو او نبي ﷺ ته يې د ډېر باران څخه شکايت وکړو، د باران دبنديدلو غوښتنه يې ترېنه وکړه، نبي ﷺ بيا دعا وکړه، باران ودرېدلو او مونږ چې بهر ته راووتلو په لمر کې روان وو.

(۲) حضرت عمر رضي الله عنه فرمايي چې: اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعُمْرَةِ، فَأَذِنَ لِي، وَقَالَ: «لَا تَنْسَنَا يَا أُخَيَّ مِنْ دُعَائِكَ»، فَقَالَ كَلِمَةً مَا يَسُرُّنِي أَنَّ لِي بِهَا الدُّنْيَا، قَالَ شُعْبَةُ رحمه الله، ثُمَّ لَقِيتُ عَاصِمًا بَعْدُ بِالْمَدِينَةِ، فَحَدَّثَنِيهِ، وَقَالَ: «أَشْرِكْنَا يَا أُخَيَّ فِي دُعَائِكَ»

ما دنبي ﷺ ځخه دعمرې اجازت وغوښتلو، نبي ﷺ اجازت راکړو او راته وې فرمايل چې اې وروركه ما ددعا ځخه مه هېروه، حضرت عمر ﷺ فرمايي چې زه د ټولې دنيا ځخه زيات په دې وينا باندې خوشحاله شوم.

**فائده:** ددې قسم توسل دلائل تواتر ته رسيدلي دي. (شفاء السقام، نظم المتناثر)

**دخلورم قسم توسل دلائل:**

(۱) وَبِه قَالَ حَدَّثَنَا رَوْحٌ رحمه الله، قَالَ: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ رحمه الله، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ الْمَدِينِيِّ رحمه الله، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَارَةَ بْنَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ رَحِمَهُمَا اللهُ، يُحَدِّثُ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ ﷺ، أَنَّ رَجُلًا ضَرِيرًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللهِ، ادْعُ اللهَ أَنْ يُعَافِيَنِي، فَقَالَ: «إِنْ شِئْتَ أَخَّرْتُ ذٰلِكَ، فَهُوَ أَفْضَلُ لِآخِرَتِكَ، وَإِنْ شِئْتَ دَعَوْتُ لَكَ». قَالَ: لَا بَلِ ادْعُ اللهَ لِي. "فَأَمَرَهُ أَنْ يَتَوَضَّأَ، وَأَنْ يُصَلِّيَ رَكْعَتَيْنِ، وَأَنْ يَدْعُوَ بِهٰذَا الدُّعَاءِ: اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ وَأَتَوَجَّهُ إِلَيْكَ بِنَبِيِّكَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَبِيِّ الرَّحْمَةِ، يَا مُحَمَّدُ إِنِّي أَتَوَجَّهُ بِكَ إِلٰى رَبِّي فِي حَاجَتِي هٰذِهِ فَتَقْضِي، وَتُشَفِّعُنِي فِيهِ، وَتُشَفِّعُهُ فِيَّ" قَالَ: فَكَانَ يَقُولُ هٰذَا مِرَارًا. ثُمَّ قَالَ بَعْدُ: أَحْسِبُ أَنَّ فِيهَا: أَنْ تُشَفِّعَنِي فِيهِ. قَالَ: فَفَعَلَ الرَّجُلُ، فَبَرَأَ. (ابن ماجه، باب ما جاء في صلوة الحاجة، مسند احمد رقم الحديث ۱۷۲۴۱)

خلاصه دا چې يو ړوند سړى ﷺ نبي ﷺ ته راغلو او غوښتنه يې ترېنه وکړه چې ماته دعا وکړه چې الله زما سترګې جوړ کړي، نبي ﷺ ورته دصبر تلقين وکړو، لکن هغه سړي ﷺ ورته وويل چې يارسول الله ﷺ دعا راته وکړه چې الله مې سترګې جوړې کړي، نبي ﷺ امر وکړو چې اودس وکړه بيا دوه رکعته لمونځ وکړه او بيا دعا وکړه او ما په کې الله تعالى ته وسيله کړه، يعنې داسې دعا وکړه، چې يا الله زه ستا ځخه غوښتنه کوم او ستا پيغمبر ﷺ تا ته وسيله کوم چې ته زما حاجت پوره کړې، هغه چې دا دعاء وکړه نو الله تعالى يې سترګې جوړې کړې. لاندې علماوو دې حديث ته صحيح ويلي دي.

(۱) امام حاکم رحمه الله فرمايي چې: حديث صحيح على شرط الشيخين ولم يخرجاه (المستدرک ج ۱ صـ ٦٢١ رقم ۱۲۲۱) هذا حديث صحيح الاسناد ولم يخرجاه (المستدرک ج ۲ صـ ۲۰۳ رقم ۱۹۵۲، هذا حديث صحيح على شرط البخاري ولم يخرجاه (المستدرک ج ۲ صـ ۲۱۳ رقم ۱۹ ۷۳)

(۲) امام ترمذي فرمايي چې: هذا حديث حسن صحيح غريب (رقم ۳۵۷۸)

(۳) قال ابو اسحاق هذا حديث صحيح (ابن ماجه، باب ما جاء في صلوة الحاجة)

(٤) حافظ ابن تيميه رحمه الله فرمايي چې: ومن ذلک مارواه اهل السنن وصححه الترمذي (فتاوى ابن تيميه ج ٢٧ صـ ١٣ )

(٥) قال الالباني صحيح (جامع ترمذي رقم ٧٨٣٥ )

(٦) قال الاعظمي اسناده صحيح (صحيح ابن خزيمه رقم ١٢١٩ )

لاندې علماوو ددې حديث څخه د توسل لپاره استدلال کړی دی.

(١) مولنا اشرف على تهانوي رحمه الله ددې حديث د رانقلولو څخه وروسته فرمايي چې ددې حديث څخه صراحةً توسل ثابتيږي ،او په دې حديث کې دا نه دی راغلي چې نبي ﷺ دې صحابي رضي الله عنه ته دعا وکړه ، نو ددې څخه معلوميږي چې لکه څرنګه چې توسل د چا په دعا سره جائز دی نو همدارنګه په دعا کې د چا په ذات سره هم توسل جائز دی (نشر الطيب صـ ٢٤٠ )

(٢) مفتي کفايت الله الدهلوي رحمه الله د توسل په باره کې د يو سوال په جواب کې فرمايي چې: اکثر علماء يې د جواز قائل دي او په استدلال کې يې همد احديث پيش کړی دی (کفاية المفتي ج ٢)

(٣) قاضي شوکاني ليکي چې: وفي الحديث دليل على جواز التوسل برسول الله ﷺ الى الله عزوجل مع اعتقاد أن الفاعل هو الله تعالى (تحفة الذاكرين ج ١ صـ ٢٠٨ )

**اعتراض:** ددې حديث په سند کې د ابو جعفر څخه مراد ابو جعفر عبد الله بن مسور المدايني دی چې ضعيف ، بلکه وضاع دی.

**اول جـواب:** ددې حديث پـه سند کې د ابو جعفر څخه مراد ابو جعفر عمير بن يزيد الانصاري ،الخطمي ، المدني دی ، ځکه چې :

(١) امام ابو بکر احمد بن محمد المعروف بابن السني رحمه الله المتوفي ٣٦٤ هـ دا حديث رانقل کړی دی او په الخطمي يې تصريح کړی ده (عمل اليوم والليلة، رقم الحديث ٦٢٧ )

(٢) د مسند احمد په يو سند کې هم د الخطمي تصريح ده ، حدثنا مؤمل ، قال حدثنا حماد يعنى ابن سلمة، قال حدثنا ابو جعفر الخطمي عن عمارة بن خزيمة بن ثابت عن عثمان بن حنيف رضي الله عنه ان رجلا (الحديث) (مسند احمد رقم ١٧٢٤٢).

(۲) د مستدرک په یو ځو ځایونو کې هم دالخطمي تصریح ده ، أَخْبَرَنَا حَمْزَةُ بْنُ الْعَبَّاسِ الْعَقَبِيُّ رحمهما الله تعالى بِبَغْدَادَ، ثنا الْعَبَّاسُ بْنُ مُحَمَّدٍ الدُّورِيُّ، ثنا عَوْنُ بْنُ عُمَارَةَ الْبَصْرِيُّ، ثنا رَوْحُ بْنُ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ الْخَطْمِيِّ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ رَحِمَهُمَا اللهُ، عَنْ عَمِّهِ عُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، أَنَّ رَجُلًا ضَرِيرَ الْبَصَرِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (الحديث) المستدرك ج۲ صـ۲۱۳ رقم ۱۹۲۷)

همدارنګه: أَخْبَرَنَا أَبُو مُحَمَّدٍ عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَهْلٍ الدَّبَّاسُ رحمهم الله تعالى، بِمَكَّةَ مِنْ أَصْلِ كِتَابِهِ، ثنا أَبُو عَبْدِ اللهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ زَيْدٍ الصَّائِغُ رحمهم الله تعالى، ثنا أَحْمَدُ بْنُ شَبِيبِ بْنِ سَعِيدٍ الْحَبَطِيُّ رحمهم الله تعالى، حَدَّثَنِي أَبِي رحمه الله، عَنْ رَوْحِ بْنِ الْقَاسِمِ رحمهما الله تعالى، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ الْمَدَنِيِّ رحمه الله، وَهُوَ الْخَطْمِيُّ رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ رضي الله عنه، عَنْ عَمِّهِ عُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ رضي الله عنه، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَاءَهُ رَجُلٌ ضَرِيرٌ (المستدرك ج۲ صـ۲۱۳ رقم ۱۹۲۳)

(۳) په معجم صغير کې هم د دې تصريح ده: عن روح بن القاسم عن أبي جعفر الخطمي المدني الحديث، المعجم الصغير، رقم ۵۰۳)

(۴) امام اهل سنت مولنا سرفراز خان صفدر رحمه الله فرمايي چې په مصري چاپ ترمذي کې د وهو الخطمي لفظ شته دی ، او په هندي چاپ کې دغير دلفظ زيادت سهو د قلم د کاتب ده ، (تسكين الصدور صـ ۴۳۲ ) لکه څرنګه چې په شامله کې په موجوده ترمذي کې د الخطمي لفظ شته دی، الفاظ داسې دي چې: قَالَ هذا حديث حسن صحيح غريب لانعرفه الأمن هذا الوجه من حديث ابي جعفر وهو الخطمي (ترمذي رقم ۳۵۷۸).

(۵) وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح غريب لانعرفه الا من هذا الوجه من حديث ابي جعفر وهو غير الخطمي ، هكذا وقع فى الترمذي وساير العلماء قالوا هو ابو جعفر الخطمي وهو الصواب (قاعدة جليلة فى التوسل والوسيلة ج ۲ صـ ۲۰۲ )

**دوهم جواب:** په دې روايت کې د ابو جعفر په استاذانو کې عمارة بن خزيمة رحمه الله دی .

كما في مسند احمد رقم ۱۷۲۴۲ سنن الكبرى للنسائي رقم ۱۹۴۱۹ ، وابن خزيمة رقم ۱۲۱۹ وترمذي رقم ۳۵۷۸ همدارنګه ابو امامة دی، كما فى المستدرک رقم ۱۹۷۳ سنن الكبرى للامام السنائي رقم ۱۰۴۲۰ )

په شاګردانو کې یې امام شعبه رحمه الله ، روح بن قاسم رحمه الله ، معاذ بن هشام رحمه الله ، او حماد بن سلمة رحمه الله دی، په همدې مذکورو حوالو سره سندونه وګوره او د اسماء الرجالو په کتابونو کې دا استاذان او شاګردان د خطمي دي.

مثلا وګوره تاریخ کبیر د امام بخاري ج ٦ صـ ٢١٠ کتاب الثقات لابن حبان، رقم الترجمة ١٠٠٢٨، الجرح والتعدیل للرازي رقم الترجمة ٢٠٠٩٩، طبقات الکبری لابن سعد رقم الترجمة ٢٥٧، کاشف للامام الذهبی رقم ٤٢٩٠ تهذیب التهذیب رقم ٢١٦٨ )

**دریم جواب:** امام ذهبي فرمایي چې: د کوم راوي روایت په بخاري کې وي هغه ته زه د (خ) رمز لګوم، چې په مسلم کې وي نو د (م) رمز ورکوم، چې په ترمذي کې وي نو د (ت) رمز ورته لګوم، چې په ابن ماجه کې وي نو د (ق) رمز ورته لګوم، که په ټولو کې وي نو د (ع) رمز ورته لګوم او که په سنن اربعه وو کې وي نو د (۴) رمز ورته لګوم، حالانکه امام ذهبي د دې مجروح راوي ابو جعفر المدایني حالات په میزان کې ذکر کوي، جرحې وربانډې رانقلوي، لکن په دې مذکورو علاماتو کې یوه علامه هم ورسره نه ذکر کوي، معلومیږي چې د دې مذکور روایت راوي چې په دې کتابونو کې دی دا مجروح ابو جعفر نه دی.

**خلاصه:** دا چې زمونږ د دې روایت راوي ابو جعفر عمیر بن یزید الخطمي دی او دا ثقه دی، ابن معین، نسائي، ابن حبان، او عبد الرحمان بن مهدي، ابن نمیر، عجلي، او طبراني وغیره ورته ثقه وایي. (تهذیب التهذیب ج ٥ صـ ١٣٩ رقم الترجمه ٢١٦٨ ) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایي چې: صدوق من السادسة (تقریب رقم ٥١٩٠).

## تفسیر جواهر القرآن

په دوهم جلد کې مولنا غلام الله خان (صاحب د جواهر القرآن) د وسیلې په بحث کې لیکي چې د دې حدیث په باره کې امام ترمذي لیکي چې: (هذا الحدیث لا نعرفه الا من هذا لوجه الخ) حالانکه هلته یې داسې نه دي لیکلي بلکې داسې یې لیکلي دي چې: (هذا حدیث حسن صحیح غریب لا نعرفه الا من هذا الوجه) صاحب د جواهر القران د دې څه وروسته لیکي چې دا حدیث بالکل دروغ دی، د دې حدیث په سند کې عبد الله بن مسور دی او دا دروغژن دی الخ حالانکه تاسو اوس وا وریدل چې دا راوي د دې حدیث په سند کې بالکل نشته، بلکه د دې حدیث په سند کې عمیر بن یزید ابو جعفر الخطمي دی چې ثقه دی.

(۲) په صحيح بخاري کې د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چې: (ان عمر بن الخطاب رضي الله عنه كان اذا قحطوا استسقى بالعباس بن عبد المطلب قال اللّٰهمّ انا كنا نتوسل اليک بنبيک فتسقينا وانا نتوسل اليک بعم نبينا فأسقنا قال فيسقون (بخاري، باب سوال الناس الامام الاستسقاء اذا قحطوا وباب فضل العباس رضي الله عنه.

د واقعې تفصيل دا دی چې په اتلسم کال د هجرت باندې د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې ډېر سخته قحطي راغله، چې د عام الرباط په نوم باندې يې شهرت پيدا کړو، کله چې صحابه رضي الله عنهم د قحطۍ څخه ډېر تنګ شول نو حضرت بلال رضي الله عنه د رسول الله ﷺ روضې مبارکې ته راغلو او د رسول الله ﷺ څخه يې د دعا غوښتنه وکړه، کله چې حضرت بلال رضي الله عنه ويده شو، نو رسول الله ﷺ يې په خوب کې وليدلو او ورته وېفرمايل چې حضرت عمر رضي الله عنه ته ووايه چې د استسقاء مونځ وکړي، کله چې د خوب څخه را بيدار شو نو حضرت عمر رضي الله عنه ته ورغلو او ټوله واقعه يې ورته واوروله، حضرت عمر رضي الله عنه صحابه کرام يو ميدان ته راټول کړل او ټولو صحابه وو ته يې دا واقعه واوروله، بيا يې د استسقاء د مانځه څخه وروسته حضرت عباس رضي الله عنه را وغوښتلو او په ده رضي الله عنه يې توسل وکړو.

## د حديث وضاحت

(۱) قلت فهذه دعوة مستجابة ببركة نبينا محمد ﷺ (طبقات الشافعية الكبرى ج ۲ صـ ۳۱)

(۲) مولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله د دې حديث دا رانقلولو څخه وروسته فرمايي چې: د مخکې حديث په شان د دې حديث څخه هم د توسل جواز ثابتيږي، په نبي ﷺ باندې د توسل جواز خو ظاهر وو لدې وجې حضرت عمر رضي الله عنه خلک په دې باندې پوهول چې په غير نبي ﷺ باندې هم توسل جائز دی، نو د بعضې خلکو دا خبره چې په ژوندو او په مړو کې فرق دی بې دليله ده ځکه چې اول خو د حديث د تصريح مطابق نبي ﷺ په قبر کې ژوندی دی او دوهم دا چې کله چې د جواز علت مشترک دی نو حکم څرنګه مشترک نه دی؟ (التکشف صـ ۶۷۵).

همدارنګه په بل ځای کې فرمايي چې: د دې څخه دا خبره هم را ووتله چې په غير نبي باندې هم توسل جائز دی، د کوم چې د نبي ﷺ سره قرابت حسي او يا قرابت معنوي وی او دا د قرابت بالنبي ﷺ په وجه توسل هم په حقيقت کې توسل بالنبي ﷺ دی، پوهان علماء فرمايي چې د همدې نکتې د ښکاره

کولو لپاره حضرت عمر ﷺ توسل په عباس ﷺ باندې وکړو، نه لدې وجې چې توسل بعد الوفات جائز نه دی، ځکه چې دنورو روایاتو څخه توسل بعد الوفات هم ظاهر دی او چونکه پدې کارباندې هیڅ صحابي انکار ونه کړو لدې وجې دا داجماع په معنی کې شو (نشر الطيب صـ ۲۴۲)

(۳) دمولنا ظفر احمد العثماني رحمه الله څخه یو چا دحضرت انس ﷺ ددې مذکوره حدیث په باره کې پوښتنه کړې ده هغه ورته په جواب کې فرمایلي دي چې صحابه کرامو رضی الله عنهم چې د رسول الله ﷺ د وفات څخه ورسته په استسقاء کې په حضرت عباس ﷺ باندې توسل کړی دی نو دا هیڅکله ددې خبرې لپاره دلیل نه دی چې په دعا کې په رسول الله ﷺ باندې توسل ناجائز دی، که څوک ددې دعوی کوي نو په عبارت النص یا په اشارة النص یا په دلالة النص او یا په اقتضاء النص کې دی یې په کومه طریقه باندې پیش کړي، بلکې که سوچ وکړی شي نو په دې واقعه کې توسل بسید المرسلین دی، ځکه چې دحضرت عمر ﷺ الفاظ داسې دي چې (اللّٰهُمَّ انا نتوسل الیک بعم نبیک) دلته هم په حقیقت کې په نبي ﷺ باندې توسل شوی دی، توسل بالعباس یې دتوسل بالنبي ﷺ دتقویت لپاره ذکر کړی دی (امداد الاحکام ج ۱ صـ ۱۳۳)

(۴) فقیه العصر مفتي رشید احمد لدهیانوي رحمه الله په احسن الفتاوی کې دا حدیث رانقل کړی دی او بیا یې فرمایلي دي چې بعضې خلکو دحضرت عمر ﷺ دفعل له وجې صرف دتوسل بالاحیاء دجواز دعوه کړې ده، حالانکه دا خبره غلطه ده، ځکه چې توسل ثابت شو نو بیا دمړي او دژوندي څه فرق دی؟ او که فرق ومنلی شي نو بیا مسئله بالعکس مناسبه ده ځکه چې ژوندی انسان دحالاتو دتغیر څخه په امن نه وي لدې وجې په حدیث کې راځي چې که دچاپسې اقتداء کول غواړئ نو دمړو پسې اقتداء وکړئ.

وعن ابن مسعود ﷺ قال من کان مستنًا فلیستن بمن قدمات فان الحيّ لاتؤمن علیه الفتنة)

نو چې دصحابه وو په اجماع سره دتوسل بالحی استحباب ثابت شو نو توسل بالاموات په طریق اولی باندې مستحب شو ، علاوه لا دا چې اول دریم او څلورم دلیل د توسل بالاموات په باب کې صریح دی ، پاتې شو دا اشکال چې حضرت عمر ﷺ د رسول الله ﷺ په ځای په حضرت عباس ﷺ باندې ولی توسل وکړو نو ددې لپاره دېرې وجې دي.

(۱) په حضرت عباس ﷺ باندې دتوسل سره سره دده ﷺ دعا هم مقصود وه.

(۲) دې خبرې ته اشاره کول دي چې د توسل بالنبي ﷺ لپاره دوه صورتونه دي، اول توسل بذاته ﷺ دوهم توسل بقرابته ﷺ.

(۳) دې خبرې ته اشاره ده چې توسل بغیر الانبیاء من الاولیاء والصلحاء هم باعث د برکت او جالب د رحمت دی.

(۴) د انسان په طبیعیت کې دا خبره ده چې په محسوس شي باندې ورته زیات اطمنان حاصلیږي لکه چې رسول الله ﷺ ته د سلام په لیګلو او ترېنه د دعا په غوښتلو کې د انساني واسطو اهتمام کولی شي، حالانکه د ملائکو واسطه د انتهائي سرعت سره انتهائي قوي هم ده او د امانت په اداکولو کې په کې د هیڅ غفلت او د نسیان اندېښنه هم نشته (احسن الفتاوی ج ۱ ص ۳۳۵.۳۳۴)

(۵) په مشکوة ص ۴۴۶ باب الفقراء کې حدیث دی چې: (هل تنصرون وترزقون الا بضعفائکم) یعنې د الله تعالی رحمت بالذات کمزورو خلکو ته متوجه وي او د هغوئ سره د تعلق په وجه الله تعالی په تاسو باندې هم رحم کوي، په توسل کې هم همداسې دعا کیږي لکه څرنګه چې د توسل په طریقه کې مونږ بیان کړه.

(٦) په مشکوة ص ۴۵۳ کې د حضرت انس ﷺ حدیث دی چې دوه ورونه وو یو کار کولو او بل ورور په دین کې مصروف وو کار ته نه وو وزګار، دې کاروباري ورور نبي ﷺ ته شکایت وکړو چې دا بل ورور مې زما سره کار نه کوي نبي ﷺ ورته وفرمایل چې (لعلک ترزق به) کیدې شي چې تا ته هم دده په برکت باندې رزق میلاویږي یعنې د رزق د رحم مستحق او لائق هغه دی لکن د هغه سره د تعلق له وجې ته هم ورسره په دې رحمت کې شریک یې.

(۷) عن امیه بن خالد بن عبد الله بن أسید رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم أنه كان يستفتح بصعاليک المهاجرين (مشکوة ص ۴۳۹)

## دپنځم قسم توسل لپاره دلائل:

(۱) حَدَّثَنَا طَاهِرُ بْنُ عِيسَى بْنِ قَيْرَسَ الْمُقْرِي الْمِصْرِيُّ التَّمِيمِيُّ، حَدَّثَنَا أَصْبَغُ بْنُ الْفَرَجِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ شَبِيبِ بْنِ سَعِيدٍ الْمَكِّيِّ، عَنْ رَوْحِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ الْخَطْمِيِّ الْمَدَنِيِّ رحمهم الله، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ رضي الله عنه، عَنْ عَمِّهِ عُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ رضي الله عنه "أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَخْتَلِفُ إِلَى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي حَاجَةٍ لَهُ،

فَكَانَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لَا يَلْتَفِتُ إِلَيْهِ, وَلَا يَنْظُرُ فِي حَاجَتِهِ, فَلَقِيَ عُثْمَانَ بْنَ حَنِيفٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ, فَشَكَا ذٰلِكَ إِلَيْهِ, فَقَالَ لَهُ عُثْمَانُ بْنُ حَنِيفٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: ائْتِ الْمِيضَأَةَ فَتَوَضَّأْ, ثُمَّ ائْتِ الْمَسْجِدَ فَصَلِّ فِيهِ رَكْعَتَيْنِ, ثُمَّ قُلِ: اللّٰهُمَّ, إِنِّي أَسْأَلُكَ وَأَتَوَجَّهُ إِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ نَبِيِّ الرَّحْمَةِ يَا مُحَمَّدُ إِنِّي أَتَوَجَّهُ بِكَ إِلَى رَبِّكَ عَزَّ وَجَلَّ فَيَقْضِي لِي حَاجَتِي, وَتَذْكُرُ حَاجَتَكَ, وَرُحْ إِلَيَّ حَتَّى أَرُوحَ مَعَكَ, فَانْطَلَقَ الرَّجُلُ, فَصَنَعَ مَا قَالَ لَهُ عُثْمَانُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ, ثُمَّ أَتَى بَابَ عُثْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ, فَجَاءَ الْبَوَّابُ حَتَّى أَخَذَ بِيَدِهِ, فَأَدْخَلَهُ عَلَى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ, فَأَجْلَسَهُ مَعَهُ عَلَى الطِّنْفِسَةِ, وَقَالَ: حَاجَتُكَ؟ فَذَكَرَ حَاجَتَهُ, فَقَضَاهَا لَهُ, ثُمَّ قَالَ لَهُ: مَا ذَكَرْتَ حَاجَتَكَ حَتَّى كَانَتْ هٰذِهِ السَّاعَةُ, وَقَالَ: مَا كَانَتْ لَكَ مِنْ حَاجَةٍ, فَأْتِنَا, ثُمَّ إِنَّ الرَّجُلَ خَرَجَ مِنْ عِنْدِهِ, فَلَقِيَ عُثْمَانَ بْنَ حُنَيْفٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ, فَقَالَ: لَهُ جَزَاكَ اللَّهُ خَيْرًا, مَا كَانَ يَنْظُرُ فِي حَاجَتِي, وَلَا يَلْتَفِتُ إِلَيَّ حَتَّى كَلَّمْتَهُ فِيَّ, فَقَالَ عُثْمَانُ بْنُ حُنَيْفٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: وَاللَّهِ, مَا كَلَّمْتُهُ وَلٰكِنْ شَهِدْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ وَأَتَاهُ ضَرِيرٌ, فَشَكَا عَلَيْهِ ذَهَابَ بَصَرِهِ, فَقَالَ: لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ: «أَفَتَصْبِرُ؟», فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ, إِنَّهُ لَيْسَ لِي قَائِدٌ, وَقَدْ شَقَّ عَلَيَّ, فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ: «ائْتِ الْمِيضَأَةَ, فَتَوَضَّأْ, ثُمَّ صَلِّ رَكْعَتَيْنِ, ثُمَّ ادْعُ بِهٰذِهِ الدَّعَوَاتِ» قَالَ عُثْمَانُ بْنُ حُنَيْفٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: فَوَاللَّهِ, مَا تَفَرَّقْنَا وَطَالَ بِنَا الْحَدِيثُ حَتَّى دَخَلَ عَلَيْنَا الرَّجُلُ كَأَنَّهُ لَمْ يَكُنْ بِهِ ضَرٌّ قَطُّ (المعجم الكبير، رقم الحديث ۸۳۱۱، والمعجم الصغير رقم الحديث ۵۰۸).

خلاصه دا چې د يو سړي دعثمان بن عفان رضي الله عنه سره کار وو، لکن حضرت عثمان رضي الله عنه ورته التفات نه کولو او کارئې ورته نه خلاصولو ،نو دې سړي حضرت عثمان بن حنيف رضي الله عنه ته شکايت وکړو ، عثمان بن حنيف رضي الله عنه ورته وفرمايل چې اودس وکړه، بيا په مسجد کې دوه رکعته لمونځ وکړه، بيا داسې دعا وکړه چې يآ الله زه تاته خپل پيغمبر ﷺ نبي الرحمة وسيله کوم او يا محمده ﷺ زه تا الله تعالى وسيله کوم چې زما حاجت پوره کړي، ددې څخه وروسته ورشه کله چې دې سړي همداسې وکړل او دحضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه دربار ته ورغلو، نو حضرت عثمان رضي الله عنه يې ډېر احترام وکړو، کارېې ورته خلاص کړو او ورته وې فرمايل چې په هر وخت کې درته مشکل پېښېدلول نو ماته راځه، کله چې د اسړی بهرته راغلو نو عثمان بن حنيف رضي الله عنه ته يې وفرمايل چې الله تعالى دې درته نيکه بدله درکړي زما مشکل خو حل شو ، حضرت عثمان بن حنيف رضي الله عنه ورته وفرمايل چې ما درته دادعا د ځان څخه نه ده جوړه کړې، بلکې زه يوه ورځ دنبي ﷺ سره ناست وم چې يو ړوند سړی راغلو، نبي ﷺ ته يې شکايت وکړو چې يا رسول الله زه ړوند يم او څوک قائد هم نه لرم نو نبي ﷺ ورته وفرمايل چې اودس وکړه بيا مونځ وکړه او بيا همداسې دعا وکړه چې يا الله تعالى زه ستا پيغمبر تا ته وسيله کوم او يا محمده زه تا

الله تعالى ته وسيله كوم چې زما حاجت پوره كړي كله چې يې داسې وكړل نو قسم په الله تعالىٰ چې مجلس لا ختم شوى نه وو چې هغه سړى روغ او جوړ شو.

## مصححين

(۱) قال الطبراني والحديث صحيح (المعجم الصغير رقم ۵۰۸)

(۲) امام منذري رحمه الله ددې حديث د نقل كولو څخه وروسته ليكي چې: (قال الطبراني بعد ذكر طرقه والحديث صحيح (الترغيب والترهيب ج ۱صـ ۲۷۳ باب الترغيب فى صلوة الحاجة ودعائها.

(۳) امام سبكي رحمه الله ددې حديث د را نقل كولو څخه وروسته فرمايي چې: (والاحتجاج من هذا الاثر بفهم عثمان رضي الله عنه ومن حضره الذين هم اعلم بالله و رسوله وفعلهم (شفاء السقام صـ ۳۷۲).

(۴) مولنا اشرف على تهانوي رحمه الله ددې حديث د را نقل كولو څخه وروسته فرمايي چې ددې حديث څخه توسل بعد الوفات هم ثابت شو او دندا شبه ددو وجو څخه نه وارديږي، ځكه چې په مسجد نبوي كې دا واقعه رامخې ته شوه نو غائب ته ندا رانغله، دوهم دا چې د سلفو صالحينو څخه د سمې عقيدې مطابق د تبليغ الملائكة په نيت باندې ندا ظاهره ده (نشر الطيب صـ ۲۴۱)

(۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَمَّادِ بْنِ زُغْبَةَ رحمهما الله تعالى قَالَ: نا رَوْحُ بْنُ صَلَاحٍ! قَالَ: نا سُفْيَانُ الثَّوْرِيُّ رحمه الله، عَنْ عَاصِمٍ الْأَحْوَلِ رَحِمَهُمُ اللهُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه قَالَ: لَمَّا مَاتَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَسَدِ بْنِ هَاشِمٍ أُمُّ عَلِيٍّ رضي الله عنهما، دَخَلَ عَلَيْهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَلَسَ عِنْدَ رَأْسِهَا، فَقَالَ: «رَحِمَكِ اللهُ يَا أُمِّي، كُنْتِ أُمِّي بَعْدَ أُمِّي، تَجُوعِينَ وَتُشْبِعِينِي، وَتَعْرَيْنَ وَتَكْسُونَنِي، وَتَمْنَعِينَ نَفْسَكِ طَيِّبَ الطَّعَامِ وَتُطْعِمِينِي، تُرِيدِينَ بِذَلِكَ وَجْهَ اللهِ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ». ثُمَّ أَمَرَ أَنْ تُغْسَلَ ثَلَاثًا وَثَلَاثًا، فَلَمَّا بَلَغَ الْمَاءَ الَّذِي فِيهِ الْكَافُورُ، سَكَبَهُ عَلَيْهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ، ثُمَّ خَلَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَمِيصَهُ فَأَلْبَسَهَا إِيَّاهُ، وَكُفِّنَتْ فَوْقَهُ، ثُمَّ دَعَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ رضي الله عنهما، وَأَبَا أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيَّ، وَعُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضي الله عنهم، وَغُلَامًا أَسْوَدَ يَحْفِرُوا، فَحَفَرُوا قَبْرَهَا، فَلَمَّا بَلَغُوا اللَّحْدَ حَفَرَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ، وَأَخْرَجَ تُرَابَهُ بِيَدِهِ. فَلَمَّا فَرَغَ، دَخَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَاضْطَجَعَ فِيهِ، وَقَالَ: «اللهُ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ حَيٌّ لَا يَمُوتُ، اغْفِرْ لِأُمِّي فَاطِمَةَ بِنْتِ أَسَدٍ رضي الله عنها، وَلَقِّنْهَا حُجَّتَهَا، وَوَسِّعْ عَلَيْهَا مُدْخَلَهَا، بِحَقِّ نَبِيِّكَ وَالْأَنْبِيَاءِ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِي، فَإِنَّكَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِينَ». ثُمَّ كَبَّرَ عَلَيْهَا أَرْبَعًا، ثُمَّ أَدْخَلُوهَا الْقَبْرَ، هُوَ وَالْعَبَّاسُ، وَأَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ (المعجم الاوسط، رقم الحديث صـ۱۸۹).

خلاصه دا چې کله چې د حضرت علي رضي الله عنه مور حضرت فاطمة بنت اسد رضي الله عنها وفات شوه نو رسول الله ﷺ ورته ورغلو د سر طرف ته ورته کېناستلو او ورته وې فرمايل چې ای مورې! الله تعالی دې در باندې رحم وکړي، ته زما د مور د وفات څه وروسته زما مور وې، ځان به دې وږې پرېښودلو او زه به دې مړولم، ځان به دې لوڅ پرېښودلو او زه به دې پټولم، ښه ‌ډوډۍ به دې خپله نه خوړله ما ته به دې راکوله، دا هر څه دې د الله تعالی د رضاء لپاره کول او د آخرت د جوړولو لپاره دې کول، بيا يې امر وکړو چې درې درې ځلې يې ووينځئ، په اخر کې رسول الله ﷺ پخپلو لاسونو ورباندې د کافور او به واړولې، بيا ورته د برکت لپاره نبي ﷺ د کفن لاندې خپل قميص ورواغستلو، بيا يې اسامه رضي الله عنه او ابو ايوب الانصاري رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه او يو تور غلام را وغوښتل چې قبر ورته وباسي، کله چې نو رقبر تيار شو، نو رسول الله ﷺ ورته پخپلو لاسونو باندې لحد وکنستلو او پخپلو مبارکو لاسونو يې ترېنه خاورې راوويستلې، بيا په کې (د برکت لپاره) نبي ﷺ څملاستلو او بيا يې داسې دعا وکړه چې ای هغه الله چې ژوندي کول او مړه کول کوی او پخپله ژوندی يې نه مړ کيږي، زما مور فاطمې بنت اسد ته د خپل پيغمبر ﷺ او د مخکېنيو پيغمبرانو په وسيله باندې مغفرت وکړه، د سوالونو ځخه د جواب تلقين ورته وکړه او قبر يې ورته فراخه کړه بېشکه چې ته د ټولو رحم کونکو څخه زيات رحم کونکی يې، بيا يې د ځلورو تکبيرونو سره ورباندې جنازه وکړه او نبي ﷺ حضرت عباس رضي الله عنه او حضرت ابو بکر رضي الله عنه قبر ته کوزه کړه.

(۳) مالک الدار چې د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مطبخ ناظم وو هغه فرمايي چې: يو ځلې د قحط په زمانه کې يو سړی د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبر ته راغلو او عرض يې وکړو چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل أمت ته د باران دعا وکړه، بيا او ده شو په خوب کې ورته نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ورشه او د باران زيری ورکړه او ورته ووايه چې هوښيار أوسه هغه سړي حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته راغلو او ټوله واقعه يې ورته بيان کړه، حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وژړل او عرض يې وکړو چې ای ربه! زه به تقصير نه کووم مگر دا چې عاجز شم (ابن ابی شيبه ج ۷ص ۴۸۰) سنده صحيح، فتح الباری ج ۲ص ۶۳۹)

## صاحب دجواهر القرآن

مولنا غلام الله خان رحمه الله د پنډی او دده په پیروی کښ دنن زماني مماتيان ليکي چې د رسول الله ﷺ روضې مبارکې ته ورغلی کس مجهول الاسم والحال دی او نه دی معلوم چې ثقه دی اوکه غیر ثقه دی ؟ ...الخ

حالانکه په البدايه والنهاية ج ۷ صـ۹۱ همدارنګه په طبري ج ۴ صـ۹۹ کښ صراحةً ذکر شوي وي چې د اکس حضرت بلال مزني رضي الله عنه وو او ټولو صحابه وو رضی الله عنهم د حضرت بلال مزني رضي الله عنه ددې عمل تصديق وکړو، همدارنګه صاحب د جواهر القرآن ليکي چې ددې روايت په سند کښ سيف بن عمرو دی چې د ټولو محدثينو په اتفاق باندې ضعيف او متهم بالزندقة دی، امام ذهبي دده په باره کښ فرمايي چې (هو کالواقدي) امام ابو داود فرمايي چې (ليس بشئ) امام ابو حاتم ورته (متروک) ويلی دی ابن حبان ورته (متهم بالزندقة) ويلی دی ابن عدي ليکي چې (احاديثه مناکير) الخ.

دجواهر القرآن مؤلف چې دکوم راوي د دروغژن ثابتولو لپاره څومره زور لګولی دی، هغه بالکل ددې حديث په سند کښ نه شته، صاحب دجواهر القران دبيهقي او دابن ابي شيبه حواله ورکړې ده، ددې دواړو شريک سند داسې دی چې: (حدثنا ابو معاويه عن ابي صالح عن مالک الدر). (دلائل النبوة بيهقي ج۷ صـ ٤٧، مصنف ابن ابی شيبه ج ۳۲ صـ ۱۱۲، ترياق اکبر بزبان صفدر صـ ٤٠٩ )

(۴) حضرت علی بن احمد الهوري رحمه الله فرمايي چې امام شافعي رحمه الله ته له دې وجې څخه شافعي وايي چې دی رحمه الله أتلس مياشتې د مور په ګېډه کې وو تولد يې نه کيدلو، مور يې چې دامام ابو حنيفه رحمه الله جنازه وليدله نو وې وفرمايل چې ای زمونږ کامله، مجتهده او عالمه زما شفاعت وکړه چې زما حمل وزيږيږي، نو الله تعالی پرې رحم وکړو، نو د امام شافعي رحمه الله ولادت دامام اعظم رحمه الله په وسيله او په شفاعت وشو له دې وجې ورته شافعي ويلی شي، (کتاب نعم الالوان ج اصـ۱۸۷)

(۵) ابوبکر بن خطيب دعلی بن ميمون څخه روايت کوي چې ما دامام شافعي رحمه الله څخه واوريدل چې فرمايل يې چې زه دامام ابو حنيفه رحمه الله په وسيله باندې برکت حاصلووم، هره ورځ

دامام صاحب قبر تـه ورزم او هلتـه د الله تعـالى څخـه خپـل حاجتونـه غـواړم، ددې دعـا څخـه وروستـه سمدستي زما مراد پوره کيږي (تاريخ خطيب ج ١ صـ ١٢٣، رد المحتار ج ١ صـ ٣٩)

(۶) يو بانډه چي د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې په خوا کې داسې دعـا وکړه چې يا الله تعالى تا دغلامانو د ازادولو حکم کړی دی او دا (محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) ستا محبوب دی او زه ستا غلام يم ستا دمحبوب روضې ته راغلی، يم ما (غلام) د اُور څخه اُزاد کړه (يعنې دنبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وسيله راته د اُور څخه نجات راکړه) نو يو غيبي اواز وشو چې ته صرف دخپل زان لپاره اُزادي غواړې د ټولو حاضرينو لپاره يې ولې نه غواړې؟ زه ته مې له اُور څخه اُزاد کړی، (مواهب منقوله از فضايل حج صـ ١٥٣)

(۷) صاحب د قصيدې بردې ابو عبد الله شرف الدين محمد بن سعيد بوصيري رحمه الله فالج وهلی وو، بيا يې دا قصيده وليکله، چې ددې په وسيله د الله تعالى څخه شفاء وغـواړي، د قصيدې د ليکلو څخه وروسته يې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خوب کې وليدلو، ده ورتـه قصيده ولوستله، نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير خوشحاله شو، بيا يې دده په بدن باندې لاس راکاږلو او په انعام کې يې ورته يو څادر ورکړو کله چې دخوب څخه را پاڅيدلو نو بالکل روغ وو او هغه څادر هم ورسره وو، قصيدې ته يې قصيده برده وايي، برده څادر ته وايي. (عطر الورد صـ ٣)

## دشپږم قسم (تبرک بآثار الصالحين) لپاره اجمالي دلائل:

(١) وَعَن أسماءَ بنت أبي بكر رضي الله عنهما: أَنَّهَا أَخْرَجَتْ جُبَّةَ طَيَالِسَةٍ كِسْرَوَانِيَّةٍ لَهَا لِبْنَةُ دِيبَاجٍ وَفُرجَيْهَا مكفوفين بالديباج وَقَالَت: هٰذِهِ جُبَّةُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ عِنْدَ عَائِشَةَ رضي الله عنها فَلَمَّا قُبِضَتْ قَبَضْتُهَا وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُهَا فَنَحْنُ نَغْسِلُهَا للمرضى نستشفي بِهَا. رَوَاهُ مُسلم) مشكوة: كتاب اللباس، الفصل الاول: رقم ١٨).

دحضرت اسـماء بنت ابي بكر رضي الله عنهما څخـه روايـت دی چې دی يـوه ورځ دطيلسـاني رخت چپن را وويستله چې په فارس کې جوړه شوې وه، چې ګريوان يې د وريښمو څخه وو او ويفرمايـل چې دا درسول الله صلى الله عليه وسلم چپن وه مخکې دا دحضرت عائشې رضي الله عنها سره وه کله چې هغه وفات شوه نو ما پخپله قبضه کې راوستله دا چپن به نبي صلى الله عليه وسلم اغوستله او مونږ دا چپن دمريضانو لپاره مينځو نو الله تعالى ددې په برکت باندې ورته شفاء ورکوي.

(۲) وَعَن عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَوْهَبٍ ﷺ قَالَ: أَرْسَلَنِي أَهْلِي إِلَى أُمِّ سَلَمَةَ ﷺ بِقَدَحٍ مِنْ مَاءٍ وَكَانَ إِذَا أَصَابَ الْإِنْسَانَ عَيْنٌ أَوْ شَيْءٌ بَعَثَ إِلَيْهَا مِخْضَبَهُ فَأَخْرَجَتْ مِنْ شَعْرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَتْ تُمْسِكُهُ فِي جُلْجُلٍ مِنْ فِضَّةٍ فَخَضْخَضَتْهُ لَهُ فَشَرِبَ مِنْهُ قَالَ: فَاطَّلَعْتُ فِي الْجُلْجُلِ فَرَأَيْتُ شَعَرَاتٍ حَمْرَاءَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ) (رواه البخاري مشكوة كتاب الطب والرقى الفصل الثالث رقم ۵۳)

حضرت عثمان بن عبدالله بن موهب فرمايي چې زما دکور والاوو ماته يوه پياله راکړه او ام المؤمنين حضرت سلمى ﷺ ته يې ورولېږلم، دحضرت ام سلمى ﷺ سره دسپينو زرو په بوتل کې دنبي ﷺ وېښته وو څوک به چې دنظره شوي وو او يا به په بل مرض باندې اخته وو، نو يوه غټه پيا له به يې ام سلمى ﷺ ته ورليږله هغې ﷺ به ورته دنبي ﷺ وېښته مبارک را ويستلو او په اوبو کې به يې حرکت ورکولو او بيا به هغه اوبه مريض څکلې ما چې په هغه بوتل کې وکتل نو سره وېښتان مې وليدل.

(۳) وَعَن كَبْشَةَ ﷺ قَالَتْ: دَخَلَ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَرِبَ مِنْ فِي قِرْبَةٍ مُعَلَّقَةٍ قَائِمًا فَقُمْتُ إِلَى فِيهَا فَقَطَعْتُهُ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ. (مشكوة: باب الاشربة، رقم ۱۹).

حضرت کبشه ﷺ فرمايي چې نبي ﷺ زما کره راغلو نو په ولاړه باندې يې درا زوړندې مشکيزې څخه اوبه وڅکلې نو زه ورپاڅېدم او دمشکيزې خوله مې (دبرکت لپاره) راغوڅه کړه.

(٤) عَنْ أَبِي جُحَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي قُبَّةٍ حَمْرَاءَ مِنْ أَدَمٍ، وَرَأَيْتُ بِلَالًا ﷺ أَخَذَ وَضُوءَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَأَيْتُ النَّاسَ يَبْتَدِرُونَ ذَاكَ الْوَضُوءَ، فَمَنْ أَصَابَ مِنْهُ شَيْئًا تَمَسَّحَ بِهِ، وَمَنْ لَمْ يُصِبْ مِنْهُ شَيْئًا أَخَذَ مِنْ بَلَلِ يَدِ صَاحِبِهِ، ثُمَّ رَأَيْتُ بِلَالًا ﷺ أَخَذَ عَنَزَةً فَرَكَزَهَا، وَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حُلَّةٍ حَمْرَاءَ مُشَمِّرًا، صَلَّى إِلَى الْعَنَزَةِ بِالنَّاسِ رَكْعَتَيْنِ، وَرَأَيْتُ النَّاسَ وَالدَّوَابَّ يَمُرُّونَ مِنْ بَيْنِ يَدَيِ الْعَنَزَةِ. (بخاري: ۳۷۶)

عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ وَمَرْوَانَ يُصَدِّقُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حَدِيثَ صَاحِبِهِ قَالَا: خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ،... قَالَ: فَوَاللّٰهِ مَا تَنَخَّمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُخَامَةً إِلَّا وَقَعَتْ فِي كَفِّ رَجُلٍ مِنْهُمْ فَدَلَكَ بِهَا وَجْهَهُ وَجِلْدَهُ، وَإِذَا أَمَرَهُمُ ابْتَدَرُوا أَمْرَهُ، وَإِذَا تَوَضَّأَ كَادُوا يَقْتَتِلُونَ عَلَى وَضُوئِهِ، وَإِذَا تَكَلَّمُوا خَفَضُوا أَصْوَاتَهُمْ عِنْدَهُ، وَمَا يُحِدُّونَ إِلَيْهِ النَّظَرَ تَعْظِيمًا لَهُ، فَرَجَعَ عُرْوَةُ إِلَى أَصْحَابِهِ، فَقَالَ: أَيْ قَوْمِ! وَاللّٰهِ لَقَدْ وَفَدْتُ عَلَى الْمُلُوكِ، وَوَفَدْتُ عَلَى قَيْصَرَ وَكِسْرَى وَالنَّجَاشِيِّ، وَاللّٰهِ إِنْ رَأَيْتُ مَلِكًا قَطُّ يُعَظِّمُهُ أَصْحَابُهُ مَا يُعَظِّمُ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ ﷺ مُحَمَّدًا ﷺ، وَاللّٰهِ إِنْ

تَنَخَّمَ نُخَامَةً إِلَّا وَقَعَتْ فِي كَفِّ رَجُلٍ مِنْهُمْ فَدَلَكَ بِهَا وَجْهَهُ وَجِلْدَهُ، وَإِذَا أَمَرَهُمْ ابْتَدَرُوا أَمْرَهُ، وَإِذَا تَوَضَّأَ كَادُوا يَقْتَتِلُونَ عَلَىٰ وَضُوئِهِ. (بخاري: ۲۷۳۱-۲۷۳۲)

صحابه کرامو رضی الله عنهم به دنبي ﷺ لاړې زمکې ته نه پرېښودلې بلکه دبرکت لپاره به يې په ځانونو باندې مګلې، دنبي ﷺ داودس اوبه به يې زمکې ته نه پرېښودلې بلکې په ځانونو باندې به يې دبرکت لپاره مګلې. چا ته به چې ونه رسيدلې نو دبل کس په لوند بدن باندې به يې لاس را کاږلو او په ځان باندې به يې دبرکت لپاره مګلو.

(۵) عن ثابت البناني قال قال انس هذه شعرة من شعر رسول الله صلى الله عليه وسلم فضعها تحت لساني قال فوضعتها تحت لسانه، فدفن وهي تحت لسانه(الاصابة فی تميزالصحابة جلدا ص۷۱).

دحضرت انس رضي الله عنه سره دنبي ﷺ يو وېښته وو، نو دوفات په وخت کې يې وصيت وکړو چې زما دوفات څخه وروسته دا وېښته زما دژبې لاندې کيږدئ.

## (٦) د امام بخاري رحمه الله څخه دتبرک ثبوت:

امام بخاری باب قايم کړی دی په نوم باب شرب البركة والماء المبارك (صحيح البخاری ج۲ ص ۸۴۲ کتاب الاشربة، باب دی په بيان دڅښلو دمتبرکو اوبو کې)

همدارنګه يې باب قايم کړی په نوم (باب الشرب من قدح النبي صلى الله عليه وسلم وآنيته، باب دی په بيان د څښلو کې دپيالې او دلوښي د رسول الله ﷺ کې، دتبرک لپاره) (صحيح البخاری ج۲ ص ۸۴۲ کتاب الاشربة،

همدارنګه يې باب قايم کړی دی په نوم د (بَابُ مَا ذُكِرَ مِنْ دِرْعِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَعَصَاهُ، وَسَيْفِهِ وَقَدَحِهِ، وَخَاتَمِهِ، وَمَا اسْتَعْمَلَ الْخُلَفَاءُ بَعْدَهُ مِنْ ذَلِكَ مِمَّا لَمْ يُذْكَرْ قِسْمَتُهُ، وَمِنْ شَعَرِهِ، وَنَعْلِهِ، وَآنِيَتِهِ مِمَّا يَتَبَرَّكُ أَصْحَابُهُ وَغَيْرُهُمْ بَعْدَ وَفَاتِهِ (ممايتبرك به اصحابه وغيرهم) بعد وفاته. صحيح البخاری ج۱ ص ۴۳۸ کتاب فرض الخمس،)

باب دی په بيان د زغرې، امسا، تورې، پيالې او ګوتمې د رسول الله ﷺ کې او د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته دخلفاوو په زمانه کې غير تقسيم شوي شيان او د رسول

الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وېښته او پښې مبارکې او دهغو لوښو داستعمال بيان چې دهغې څخه صحابه کرامو او نورو حضراتو درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوفات څخه وروسته برکت حاصلولو.

همدارنګه امام بخاري باب قايم کړی په نوم د(باب صاع المدينة ومدالنبي صلى الله عليه وسلم وبركته الخ ، صحيح البخارى ج۲ ص۹۹۳ كتاب كفارات الايمان.

باب دی په بيان د صاع دمديني منورې او مد درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې ، او دهغې دبرکت په بيان کې.

## (۷) دامام نووی رحمه الله څخه دتبرک ثبوت:

په مسلم شريف او رياض الصالحين کې دتبرک بآثار الصالحين لپاره ډېر احاديث دي، چې امام نووي رَحِمَهُ اللهُ ورته مختلف عنوانات لګوي:

باب زيارة اهل الخير ومجالستهم وصحبتهم ومحبتهم وطلب زيارتهم والدعاء منهم وزيارة مواضع الفاضلة رياض الصالحين ج۱ ص ۲۲۰ باب زيارة اهل الخير ومجالستهم.

باب دی په بيان د ملاقات دنيکو خلکو کې اودهغوی مجلس ته په ورتللو کې اودهغوی سره په محبت ساتلو کې اودهغوي څخه ددعاء په غوښتلو کې اوپه بيان د زيارت د متبرکو ځايونو کې.

همدارنګه ديو حديث په تشريح کې فرمايي: ومنها التبرک بالصالحين وآثارهم والصلاة فى المواضع التى حلوا بها وطلب التبريک منهم ،صيح مسلم ج۱ ص۲۳۳ كتاب المساجد باب الرخصة في التخلف عن الجماعة لعذر.

او ددې حديث څخه دنيکانو خلکو په آثارو دبرکت حاصلولو جواز ثابتېږي او همدارنګه کوم ځای ته چې دنېکو اشخاصو دخول شوی وي هلته ترېنه دمونځ جواز او دبرکت غوښتل ثابتېږي.

او ديو حديث په تشريح کې فرمايي: فيه تبرک باهل الصلاح والفضل وفيه استحباب حل الاطفال الى اهل الفضل للتبرک بهم، صحيح مسلم ج۱ ص ۱۳۹ كتاب الطهارة باب حكم بول الطفل الرضيع وكيفة غسله.

له دې حديث څخه ثابتېږي چې په غوره او نېکانو خلکو سره تبرک حاصلول جايز دي، همدارنګه داهم ترېنه ثابتېږي چې دخپلو ماشومانو وړل نېکو خلکو ته دبرکت دحاصلولو لپاره مستحب عمل دی، په يو حديث کې راځي حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايي چې دمديني منورې خلکو به رسول

الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته اوبه لېږلي او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د برکت لپاره پکې لاس وهلو، ددې حديث په تشريح کې امام نووي رَحِمَهُ اللهُ ليکي چې وفيه التبرک بآثار الصالحين، صحيح مسلم ج۲ ص۲۵۶ کتاب الرؤيا باب قربه من الناس وتبرکهم به، په دې حديث کې تبرک بآثار الصالحين ذکر شوی دی،

په يو حديث کې راغلي دي چې امهات المؤمنين به د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چپن مبارک وينځله او ددې اوبه يې د مريضانو لپاره تبرکا ورکولې، ددې حديث په تشريح کې امام نووي فرمايي: وفي هذا الحديث دليل على استحباب التبرک بآثار الصالحين وثيابهم، دا حديث ددې خبرې لپاره دليل دی چې دنيکانو خلکو په آثارو او جامو تبرک حاصلول مستحب عمل دی. مسلم شريف (ج۲ص۱۹۱) کتاب الأدب، باب استحباب تحنيک المولود عند ولادته

ددې باب لاندې د ابو طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ماشوم د تحنيک ذکر شوی دی، ددې په فوايدو کې امام نووی رَحِمَهُ اللهُ ليکي: ومنها التبرک بآثار الصالحين وريقهم وکل شئ منهم.

يو له فوائدو څخه تبرک دی په آثارو او لاړو د صالحينو او همدارنګه د نيکانو خلکو په هر شي باندې د برکت حاصلول.

(۸) عَنْ أَبِي مُوسَى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ دَعَا بِقَدَحٍ فِيهِ مَاءٌ، فَغَسَلَ يَدَيْهِ وَوَجْهَهُ فِيهِ، وَمَجَّ فِيهِ. (بخاری: ۱۹۶)

ترجمه: ابو موسی اشعری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه پياله را وغوښته چې په هغې کې اوبه وې، اول رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغې کې خپل دواړه لاسونه او مخ مبارک ووينځلو او په هغې کې خوله مبارکه هم کنګال کړه. (بيايې حضرت ابو موسی او بلال رضي الله عنهما ته وفرمايل: دا اوبه وڅښئ! او پاتې شونې په خپلو مخونو او سينو باندې واړوئ!)

حافظ ابن حجر ددې حديث لاندې ليکي: والغرض بذلک ايجاد البرکة بريقه المبارکة.

په دې سره مقصد دا وو چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لاړو مبارکو سره په دې اوبو کې برکت پيدا شي. (فتح الباري ج۱ ص ۳۹۱ کتاب الوضوء باب استعمال فضل وضوء الناس)

(۹) وکانت شعراة من شعره صلى الله عليه وسلم فى قلنسوة خالدبن الوليد فلم يشهد بها قتالا الا رزق النصر (الشفاء بتعريف حقوق المصطفى ج۱ ص ۲۸۸ الفصل الثالث والعشرون فى کراماته وبرکاته)

خالد بن وليد رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ سره د پيغمبر عليه السلام يو ويښته وو چې په خپله خولۍ کې يې ګنډلی وو نو کوم جهاد ته به چې خالد بن وليد دغه خولۍ له ځانه سره يوړه الله تعالی به کاميابي ورکړه.

(۱۰) قال عبدالله سألت ابى عن الرجل يمس منبر رسول ل الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ويتبرک بمسه ويقبله قال لا بأس به(وفاء الوفاء ج ٤ ص ٢١٧ الباب الثامن الفصل الرابع) دبرکت لپاره د رسول الله دممبر مسح کول او ښکلول جايز دي.

(۱۱) دابو هريرة رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ څخه روايت دی چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې کله تاسو د چرګانو اذانونه يا آوازونه واورېدل په دغه وخت کې له الله تعالی څخه خپل حاجتونه وغواړئ! ځکه چې چرګانو ملائکې ليدلي دي. صحيح مسلم ج۲ ص۳۵۱ کتاب الذکر والدعاء باب استحباب الدعاء عند صياح الديک.

امام نووي رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې په تشريح کې ليکي: وفيه استحباب الدعاء عند حضور الصالحين والتبرک بهم) په دې حديث کې دليل دی چې دصالحينو او نيکانو خلکو په څنګ کې دالله تعالی څخه دعا غوښتل مستحبه طريقه ده، همدارنګه په نېکانو خلکو سره برکت حاصلول مستحب عمل دی.

فائده: دملائکو دموجودوالي په وخت کې دعا کول مستحب دي او ددعا دقبلېدو اميد دی نو همدارنګه دنېکانو او صالحينو خلکو دموجودوالي په وخت کې هم دعا کول مستحب دي او ددعا دقبلېدو ډېر اميد دی ځکه چې خواص انسانان د خواصو ملائکو څخه بهتر دي.

## دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ په قبر باندې دامام شافعي تبرک حاصلول

(۱۲) اعلم انه لم يزل العلماء وذوو الحاجات يزورون قبره ويتوسلون عنده فى قضاء حوائجهم ويرون نجح ذلک، منهم الامام الشافعى لما كان ببغداد فانه جاء عنه قال اني لاتبرک بابى حنفة واجيئ الى قبره فاذا عرضت لى حاجة صليت ركعتين وجئت الى قبره وسئلت الله عنده فتقضى سريعا(الخيرات الحسان الفصل الخامس والثلاثون)

علماوو او محتاجو خلکو به دامام صاحب دقبر زيارت کولو او په امام ابوحنيفه به يې توسل نيولو، په پوره کولو دحاجتونو خپلو کې، او ددې کاميابي به يې ښکاره ليدله، په دې زيارت کوونکو کې امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ هم شامل دی، په کوم وخت کې چې امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په بغداد کې اوسېدولو، دامام

شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ څخه روايت دی چې زه په امام ابو حنيفه باندې تبرک حاصلوم او د امام صاحب قبر ته ورځم کله چې به ماته حاجت پيښ شو نو دوه رکعته لمونځ به مې وکړو او د امام صاحب قبر ته به لاړم، او د امام صاحب د قبر په خوا کې به مې له الله تعالی څخه سوال وکړو نو زما حاجت به ډېر زر پوره شو (يو د قبر د صاحب نه غوښتنه ده او بل په صاحب د قبر باندې توسل او تبرک دی ، اول ناجايز او دويم جايز دی).

## تبرک بزيارة القبور

زيارة القبور مستحبة على الجملة للتذكر والاعتبار وزيارة قبور الصالحين مستحبة لاجل التبر ک مع الاعتبار(احياء علوم دين جلد ٤ ص ٦٥١ كتاب ذكر الموت ومابعد الباب السادس فى اقاويل العارفين على الجنائز).

ددې مسئلې د اثبات لپاره دومره ډېر دلائل دی چې د ټولو دلائلو دليکلو څخه يو غټ کتاب جوړېږي.

## استفاده من القبور

په فتاوی محموديه جلد ۱۳ صفحه ۴۰۲ کې له مفتي محمود حسن گنگوهي رحمه الله څخه پوښتل شوي دي:

داهل الله له قبورو څخه دصوفيانو په طريقه دفائدې حاصلولو څه طريقه ده؟

مفتي صاحب په ځواب کې ليکي: اول يو مقدار تلاوت وکړه او ثواب يې صاحب القبر ته وبښه، له هغه وروسته سترگې پټې کړه او تصور وکړه چې زما روح ددې ولي له روح سره متصل شو او له هغه ځخه ماته خاص احوال را منتقل کېږي.(بوادرالنوادر ج۱ ص۸۵)

دقبر په خوا کې دمراقبې په باره کې ليکي: دحضرت شاه ولي الله محدث دهلوي ،حضرت شاه عبدالحق محدث دهلوي ،حضرت مجدد الف ثانی ،حضرت حاجي امداد الله مهاجر مکي ،حضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله پخپلو کتابونو کې د اولياوو دقبرونو په خوا کې د مراقبو ذکر کړی دی او طريقه يې په تفصيل سره ددوي په کتابونو کې موجود ده.

همدارنگه وگوره(بوادرالنوارص ۸۸ غريبه در استفاده از اموات وتحقيق سلب نسبت ) .

## دوفات څخه وروسته د اولیاوو سره ملاقات

دمفتي محمود حسن ګنګوهي رحمه الله څخه سوال شوی دی چې ایا دوفات څخه وروسته داولیاؤ سره ملاقات کېږي کنه؟

هغه په جواب کې لیکي: دالله تعالی په اجازت باندې کېږي، همدارنګه په خوب کې هم ددوي سره ملاقات کېږي. (فتاوی محمودیه ج۱۳ص۱۴۳احکام جنازه).

رؤية الموتى فى خير اوشر نوع من الكشف يظهره الله تبشيرا وموعظة او لمصلحة للميت من ايصال خير له او قضاء دين اوغير ذلک ثم هذه الرؤية قدتكون فى النوم وهو الغالب وقد تكون في اليقظة وذلک من كرامات الاولياء واصحاب الاحوال(شرح الصدور ص ٢٢٠ باب زيارة القبور وعلم الموتى بزوارهم ورؤيتهم لهم. كتاب الروح ص ٤٢ المسئلة الثالثة هل تتلاق ارواح الاحياء وارواح الاموات؟.

## دأمت دعلماوو څخه دتوسل ثبوت

(١) امیر المؤمنین ابو جعفر دیو لنډ بحث څخه وروسته امام مالک رحمه الله ته وفرمایل چې يـا ابـا عبد الله استقبل القبلة وادعوا ام استقبل رسول الله ﷺ ؟ فقـال ولـم تصرف وجهـک عنـه وهـو وسيلتک ووسيلة ابيک ادم عليه السلام الى الله يوم القيامة (خلاصة الوفاء ج ١ صـ ٥١ )

یعنې په دعا کې قبلې ته مخ کړم او که دنبي ﷺ قبر ته؟ امام مالک رحمه الله ورته فرمایي چې ولې ترېنه مخ اړوې؟ حالانکه دا ستا او ستا دپلار ادم عليه السلام لپاره دقیامت په ورځ باندې الله تعالی ته وسیله ده.

(٢) امام نووي رحمه الله فرمايي چې: واعلم ان زيارة قبر رسول الله ﷺ من اهم القربات وانجح المساعي... ويتوسل به في حق نفسه ويستشفع به الى ربه سبحانه وتعالى. (المجموع شرح المهـذب ج ٣ صـ ٢٧٤ _ ٢٧٢ )

(٣)امام ابو عبدالله محمدبن محمد بن محمد الفاسي المالكي المعروف بابن الحاج فرمايي چې: يبـدأ بالتوسل الى الله تعالى بالنبي ﷺ اذ هو العمدة في التوسل والاصل في هذا كله (المدخل ج١ صـ ٢٥٥ )

(٤) وفي المستوعب لابي عبدالله السامري الحنبلي ثم يأتي حائط القبر فيقف ناحية ويجعل القبر تلقاء وجهه والقبلة خلف ظهره والمنبر عن يساره وذكـر السـلام والدعاء ومنـه اللّهُمّ انـک قلـت في

كتابک لنبيک عليه السلام ولو انهم اذ ظلموا انفسهم الايه واني اتيت نبيک مستغفرا فأسألک ان توجب لی المغفرة كما اوجبت لمن أتاه في حياته ، اللّٰهُمَّ اني أتوجه اليک بنبيک صلى الله عليه وسلم. (خلاصة الوفاء ج ۱ صـ ۵۱ )

(۵) ويسأل الله تعالى حاجته متوسلا الى الله تعالى بحضرة نبيه ﷺ واعظم المسائل واهمها سؤال حسن الخاتمة والرضوان والمغفرة ثم يسأل النبي ﷺ الشفاعة فيقول يارسول الله ﷺ اسألک الشفاعة يا رسول الله ﷺ اسألک الشفاعة واتوسل بک الى الله في ان اموات مسلما (فتح القدير ج ۳ صـ ۱۸۱ )

(٦) ذكر بعض العارفين ان الادب ان يتوسل بالصالحين الى الرسول ﷺ ثم به الى حضرت الحق (حاشية الطحطاوي ج ۱ صـ ۳٦۰ )

(۷) نسأل اللهَ تعالى ان يرقينا الى مقام يرضاه ويرزقنا رضاه يوم لقاه بحرمة سيد المرسلين (روح المعاني، اختتام سورة صافات).

(۸) اللّٰهُمَّ اجعلنا سعداء الدارين بحرمة سيد الثقلين (روح المعاني، سورة فاتحه اية ۲).

(۹) ان التوسل بجاه غير النبي ﷺ لابأس به ايضا ان كان المتوسل بجاهه مما علم ان له جاها عند الله تعالى كالمقطوع بصلاحه وولايته (روح المعاني، سورة مائده اية ۳۵ )

(۱۰) واني اسأله تعالى متوسلا بنبيه المكرم عليه السلام وباهل طاعته من كل ذي مقام معظم وبقدوتنا الامام الاعظم ان يسهل علي ذلک من الغامه (مقدمه شامي صـ ۱۸ )

(۱۱) ومن اداب الدعاء تقديم الثناء على الله والتوسل بنبي الله تعالى ليستجاب الدعاء (حجة الله البالغة ج ۲ صـ ٦).

(۱۲) ان التوسل بالنبيﷺ جائز في كل حال قبل خلقه وبعد خلقه في مدة حياته وبعد موته في مدة البرزخ (شفاء السقام صـ ۳۵۸ )

(۱۳) مولنا رشيد احمد گنگوهي رحمه الله فرمايي چې داستعانت درې طريقې دي، يوه طريقه يې داده چې داسې دعا وکړی چې يا الله د فلاني په حرمت باندې زما دا کار وکړه دا بالاتفاق جائز ده برابره خبره ده چې د قبر په خواکې وي او که په بل ځای کې وي، په دې کې د هيچا کلام نشته. (فتاوی رشيديه صـ ۱۲۳ )

(۱۴) د ديوبند د علماوو په اجماعي کتاب المهند على المفند کې دريم او څلورم سوال د توسل په باره کې دی (السوال الثالث والرابع) دريم او څلورم سوال (۳) هل للرجل ان يتوسل في دعواته بالنبي

ﷺ بعد الوفات ام لا ؟ ايا د وفات څخه وروسته په دعا کې په نبي ﷺ باندې وسيله نيولې شي او که نه ؟ (۴) ايجوز التوسل عندکم بالسلف الصالحين من الانبياء والصديقين والشهداء واولياء رب العلمين ام لا ؟

ستاسو په نيز په سلفو صالحينو يعنې په انبياوو، صديقينو، شهداوو، او په اولياء الله باندې توسل جائز دی او که نه ؟

الجواب: عندنا وعند مشائخنا يجوز التوسل فى الدعوات بالانبياء والصالحين والشهداء والصديقين في حياتهم وبعد وفاتهم بانْ يقولِ في دعائه اللّٰهُمَّ انيِ اتوسل اليک بفلان ان تجيب دعوتي وتقضي حاجتي الى غير ذلک .(المهند صـ ٣٧ )

زمونږ او زموږ د مشائخو په نيز باندې په دعا کې په انبياوو په صالحينو، په شهيدانو او په صديقينو باندې وسيله نيول جائز دي، په دې ژوند کې هم او د وفات څخه وروسته هم چې داسې دعا وکړي چې يا الله تعالى د فلانکي بزرګ په وسيله باندې زما دعا قبوله کړه او زما حاجات پوره کړه .

(١٥) حضرت مولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله د توسل اقسام بيانوي او فرمايي چې: والثالث دعاء الله ببركة هذ المخلوق المقبول وقد جوزه الجمهور ومنع منه ابن تيميه واتباعه (بوادر النوادر صـ ٧٠٨ )

بحرمة سيد المرسلين خاتم النبيين شفيع المذنبين صلى الله عليه وسلم ابد الابدين ودهر الدهرين (نشر الطيب صـ ٣ )

(١٦) شيخ الاسلام مولنا حسين احمد مدني رحمه الله د ديوبنديانو او د وهابيانو د عقائدو په مابين کې فرق بيانوي او ليکي چې : وهابيان توسل بالانبيآء والاولياء ته بعد الوفات ناجائز وايي او ديوبنديان ورته نه يوازې دا چې جائز وايي بلکه أرجى للاجابة يې ګڼي (نقش حيات صـ ١٦١ )

(١٧) د فقيه الأمة مفتي محمود حسن ګنګوهي رحمه الله څخه سوال شوی دی چې داسې دعا کول څه حکم لري چې يا الله زما فلانکی مشکل د دې بزرګانو په طفيل باندې پوره کړې؟ هغه جواب ورکوي چې دا صحيح ده . (فتاوى محموديه ج ١ صـ ٣٥٩ )

(١٨) مولنا ظفر احمد العثماني رحمه الله فرمايي چې: په اولياوو او انبياوو باندې توسل جايز دی، استعانت نه دی جائز کوم کسان چې توسل ته ناجائز وايي هغه د توسل او د استعانت په منځکې فرق نه دی کړی . (امداد الاحكام ج ١ صـ ١٣۴ )

(۱۹) مفتي عزيز الرحمن رحمه الله فرمايي چې: په پيغمبرانو او په اولياوو باندې توسل مستحب او اقرب الى الاجابة دى (عزيزالفتاوى ج ۱ ص ۱۷۱)

(۲۰) مولنا خير محمد جالندهري رحمه الله فرمايي چې: په انبياوو او اولياوو باندې وسيله نيول جائزه او اقربه الى الاجابة ده. (اثار خير ص ۲۸۲)

همدارنګه فرمايي چې خلاصه دا چې د توسل جواز د ديوبند د علماوو په مابين کې اتفاقي دى په دې کې د هيڅ اختلاف نشته ...د دې تحريراتو څخه د لمر په شان د اخبره ظاهره شوه چې زمونږ په مغربي پاکستان کې چې بعضې خلک ځانونه ديوبند ته منسوبوي او توسل بالذوات ته ناجائز بلکه شرک وايي نو دا خلک هيڅکله ديوبنديان نه دي بلکه د ديوبند بدناموونکي دي (اثار خير ص ۲۹۴)

(۲۱) د مصر علماوو د ديوبند د اکابرو څخه يو څو سوالونه کړي وو په هغوې کې يو سوال د توسل په باره کې وو چې: (ان التوسل به او بأحد من الاولياء الكرام ممنوع؟) ايا په نبي ﷺ او په اولياؤ باندې توسل ممنوع دى؟

**الجواب:** وان التوسل بالنبي ﷺ وبأحد من الاوليآء العظام جائز بان يكون السوال من الله تعالى ويتوسل بنبيه وبوليه) توسل په انبياوو او په اولياوو باندې په داسې طريقه جائز دى چې د نبي ﷺ اويا د ولي په وسيله يې د الله تعالى څخه وغواړئ. (کتبه عزيز الرحمن، الجواب صحيح محمود عفي عنه مدرس اول مدرسه عربيه ديوبند.

الجواب صحيح، محمد احمد مهتمم مدرسه عاليه ديوبند، الجواب صحيح غلام رسول مدرس مدرسه عاليه ديوبند، الجواب صحيح بنده مرتضى حسن مدرس دارالعلوم ديوبند، الجواب صحيح محمد انور مدرس مدرسه اسلاميه ديوبند، هذ هو الحق، حبيب الرحمن مهتمم مدرسه عاليه ديوبند، الاجوبة كلها صواب بلا ارتياب محمد اشرف علي عفى عنه (امداد الفتاوى ج ٦ ص ۳۱۲.۳۱۳)

(۲۲) مجدد الف ثاني رحمه الله فرمايي چې: اللّٰهُمَّ اجعلنا من محبيهم بحرمة سيد المرسلين عليه وعلى اله وعليهم الصلوة والسلام، (مکتوبات ج ۱ ص ۲۳۳ مکتوبه نمر ٥٦).

(۲۳) مولنا ذکريا رحمه الله فرمايي چې يا الله تعالى پخپل لطف او د خپل محبوب په خاطر او د خپل محبوب د پاک کلام په برکت باندې ما ګناه ګار ته هم د اخلاص توفيق راکړه (فضايل تبليغ، اختتام فصل خامس)

(۲۴) مفتي شفيع رحمه الله فرمايي چې: دغير مادي اسبابو په ذريعه باندې د کوم نبي او يا د کوم ولي څخه دعا غوښتل او يا د دوي په وسيله باندې براه راست دعا کول د قرآن او د حديث څخه ثابت دي. (معارف القرآن ج ۱ ص ۹۹۔۱۰۰)

(۲۵) مولنا محمد يوسف لدهيانوي شهيد رحمه الله فرمايي چې: په نبي ﷺ او په اولياوو باندې توسل جائز دی، (اختلاف امت او صراط مستقيم ص ۴۸)

(۲٦) مفتي عبد الشکور ترمذي رحمه الله فرمايي چې: زمونږ او زمونږ د مشايخو په نيز باندې په انبياوو او په اولياوو باندې د وفات څخه مخکې او د وفات څخه وروسته توسل جائز دی. (عقائد علما ديوبند عقيده نمبر ۴)

(۲۷) مولنا سرفراز خان صفدر رحمه الله فرمايي چې: د ديوبند ټول اکابر د توسل په جواز باندې قائل دي په دوي کې هيڅ اختلاف نشته (تسکين الصدور ص ۴۰۵)

(۲۸) علامه الوسي رحمه الله د وسيلې د مسئلې د تحقيق څخه وروسته فرمايي چې: وبعد هذا كله انا لاأرى بأسا فى التوسل الىٰ الله تعالى بجاه النبي ﷺ حياً وميّتاً (روح المعاني تحت قوله تعالى وابتغوا اليه الوسيلة)

(۲۹) علام شامي رحمه الله فرمايي چې: و قد عد من أداب الدعاء التوسل على ما في الحصن، وجاء في رواية اللّٰهمّ اني اسألک بحق السائلين (در مختار مع رد المحتار ج ۵ ص ۲۸۱، عالمگيري ج ۵ ص ۳۱۸)

(۳۰) علامه شامي رحمه الله فرمايي چې: قال السبكي يحسن التوسل بالنبي ﷺ الى ربه ولم ينكره احد من السلف ولا الخلف الا ابن تيميه فابتدع ما لم يقله عالم قبله (رد المحتار ج ۵ ص ۵۸۱)

توسل بالنبي ﷺ مستحب دی د دې څخه په امت کې هېڅوک هم نه وو منکر، تر دې چې ابن تيميه رحمه الله راپيدا شو او داسې مبتدع قول يې وکړو چې د ده څخه مخکې هيڅ عالم هم نه وو کړی.

(۳۱) مولانا حسين على رحمه الله په احاديثو کې د مولانا رشيد احمد گنگوهي شاگرد دی او د حضرت خواجه سراج الدين مريد دی، مولانا حسين على رحمه الله فرمايي چې ماته زما شيخ حکم وکړو چې د پنځو لمونځونو څخه وروسته دا شجره لوله او د اولياوو په وسيله باندې دعا کوه (فوايد عثماني) په بل ځای کې

ليکي چې: د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وفات څخه وروسته په دعـا کې وسيله نيول د صحابه وو، تابعينو، امام احمد، وغيره څخه منقول دي، (البيان في تفسير القرآن ص ۶۸، بلغة الحيران ص ۳۵۴)

## صاحب دجواهر القرآن

تاسـو د روح المعـاني عبـارات ولوسـتل، مولنـا غـلام الله خـان رحمه الله د روح المعـاني نـا مکمـل عبـارت رانقلوي او خلکو تـه دا ښـايي چې صـاحب د روح المعـاني د وسـيلې څخـه منکـر وو، حالانکه صاحب د روح المعاني په وسيله باندې تقريبا څلور صفحې بحث کړی دی، صاحب دجواهر القرآن د روح المعاني په ص ۱۲۵ باندې حواله ورکړې ده، حالانکه هغه ديوسړي سوال دی، چې دوسيلې څخه منکر دی، علامـه الوسي رحمه الله ورتـه مکمـل جـواب ورکـړی دی، هلتـه دا بحـث د (ص ۱۲۴ څخـه تـر ص ۱۲۸ پورې دی، ترياق اکبر بزبان صفدر ص ۴۰۸)

**اعتراض:** صاحب د هدايې څرنګه فرمايي چې: (ويکره ان يقول الرجل في دعائه بحق فلان، او بحق انبيائک ورسلک لانه لاحق للمخلوق علی الخالق؟ (هدايه ج ٤ ص ٤٧٨ کتاب الکراهية).

**جواب:**

**۱-** ددې عبارت معنی دا نه ده چې توسل مطلقا نا جائز دی بلکه دلته يې صرف د (حق) د لفظ استعمال ته مکروه ويلي دي او ددې وجه دا ده چې معتزله په الله تعالی باندې د مطيع لپاره ثواب ته واجب وايي، اهل سنت په الله باندې د وجوب علقي او د وجوب شرعي څخه منکر دي، البته وجوب تفضلي مني، نو کله چې د حق په لفظ کې د معتزله وو د معنی احتمال وو نو فقهاوو دې مُوهِم لفظ ته مکروه وويلې، لکه څرنګه چې دهمدې عبارت لاندې شارحين ليکي چې: (لانه لاحق للخلق علی الخالق)

۲- جواب: ملا علي قاري فرمايي چې: قيل ويحرم ان يقول في دعائه بحق فلان نبيا کان او وليا او بحق البيت او المشعر الحرام لانه لاحق للمخلوق علی الخالق لکن قد يقال انه لاحق لهم وجوبا من اصله لکن الله جعل لهم حقا من فضله (فتح باب العنايه ج ۳ ص ۳۰)

۳- جواب: مولنا اشرف علی تهانوي رحمه الله فرمايي چې د حق لفظ د حقيقي معنی په اعتبار سره نا جائز دی او د مجازي معنی په اعتبار سره يعنې د توسل په معنی سره جائز دی (امداد الاحکام ج ۴ ص ۳۶)

۴- جواب: دمولنا حسين احمد مدني رحمه الله څخه پوښتنه وشوه چې مودودي صاحب دهدايې دا عبارت پيش کوي چې لاحق للمخلوق على الخالق او وايي چې ددې څخه معلوميږي چې داسې دعا کول نا روا ده چې يا الله تعالى دنبي ﷺ په حرمت او يا دفلانکي په حق باندې زما دا مشکل حل کړه، مولنا مدني رحمه الله ورته په ډېر تفصيل سره جواب ورکوي، دجواب خلاصه يې په لاندې ټکو کې رانقلوو.

(۱) مودودي خو دفقهې دکتابونو توهين کوي نو په دې مسئلې کې ولې دصاحب دهدايې تقليد کوي؟

(۲) صاحب دهدائې خو صرف مکروه ويلې دي حالانکې دتوسل څخه منکرين توسل ته حرام (بدعت) اوشرک وايي.

(۳) په احاديثو کې دمخلوق حق په خالق باندې ثابت دی، رسول الله ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته فرمايي چې: «هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهِ؟» قُلْتُ: اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: «حَقُّ اللّٰهِ عَلٰى عِبَادِهِ أَنْ يَعْبُدُوْهُ وَلَا يُشْرِكُوْا بِهِ شَيْئًا».) (بخاری، باب اسم الفرس والحمار)

(۴) دحق لفظ د ډېرو معنا ګانو لپاره استعماليږي، لکه واجب عقلي، واجب شرعي، مستحق او ثابت، جدير او لائق، مشابه بالواجب، موجود صوري، احترام، مهتم بالشان، لکه حـق الله على كل مسلم ان يغتسل في سبعة ايام رواه مسـلم، باب الطيب الخ په دې معنى ګانو کې په اوله معنى کې اختلاف دی، د معتزله وو په نيز باندې په الله باندې عدل واجب دی عقلا او د اهل سنت والجماعة په نيز باندې په الله تعالى باندې هيڅ شی نه دی واجب، نو په کوم وخت کې چې دمعتزله وو شور ډېرو وو نو فقهاو وسدًا للذرايع دی لفظ ته مکروه وويلې ددې لپاره چې څوک ترېنه دمعتزله وو معنى مراد نه کړي او زمونږ په زمانه کې معتزله نشته لهذا اوس داسې دعـا کول جائز او مستحب ده (مکتوبات شيخ الاسلام ج ۴ ص۱۴۶ فتاوی شيخ الاسلام ص۸٦)

## وضاحت

۱-حضرت مولانا رشيد احمد ګنګوهي رحمه الله فرمايي چې داستعانت يعنې دمدد دغوښتلو درې طريقې دي.

اول: چې داسې دعا وکړي چې يا الله تعالى دفلان په واسطه او په حرمت زما دا مراد پوره کړه، دا بالاتفاق جايز ده، برابره خبره ده چې دقبر په خواکې وي او که په بل ځای کې وي.

دوهم: چې دقبر والاته ووايي چې ای دقبر والا! زما مراد پوره کړه، يا اولاد وغيره راکړه، نوکه عقيده دې دا وه چې دا دقبر والا مشکل کشا او حاجت روا دی نو دا بيا شرک دی، برابره خبره ده چې دقبر په خواکې وي او که په بل ځای کې وي.

دريم: چې دقبر والاته ووايي چې ای فلانه! ماته دعا وکړه چې الله تعالی زما فلانکی کار وکړي، نو په دې کې اختلاف دی ، لکن دانبياوو په سماع کې دهيچا اختلاف نشته، لهذا ټولو فقهاوو انبياء مستثنی کړي دي او ټولو فقهاوو ليکلي دي چې د روضې مبارکې دزيارت په وخت کې به استشفاع کوي، چې دا دجواز لپاره پوره دليل دی (فتاوی رشيديه ج ۱ ص ۶۹)

(۲) داستعانت يعنې دمخلوق څخه دمدد غوښتلو پنځه صورتونه دي په دوه صورتونو کې کفر اوشرک دی په دوه صروتونو کې حرام دی او په يو صورت کې جايز او مباح دی.

دکفر او شرک دوه صورتونه:

اول صورت: يو مخلوق مستقل او قادر بالذات ګڼل او بيا ترينه مدد غوښتل کفر اوشرک دی.

دوهم صورت: يومخلوق مستقل بالعرض ګڼل او بيا ترينه مدد غوښتل هم کفر اوشرک دی يعنې دا عقيده لرل چې الله تعالی په خپل مخلوق کې يو نبي او يا ولي ته دا اختيار ورکړی دی چې په هغه کارونو کې چې دانسان دطاقت څخه بهر دی دخپلې خوښې مطابق تصرف وکړي، د الله تعالی دقدرت د ورکولو څخه وروسته دا مخلوق په دې کارونو کې مستقل او مختار الکل دی، نو دا عقيده هم کفر او شرک دی.

**دحرمت دوه صورتونه :**

اول صورت: يو مخلوق نه مستقل بالذات ګڼې او نه مستقل بالعرض، لکن معامله ورسره داسې کوئ لکه څرنګه چې دمستقل بالذات او يا دمستقل بالعرض سره کيږي، يعنې د اولو دوو صورتونو سره په عقيده کې موافقت نه وي، لکن په عمل کې ورسره موافقت وي لکه کوم نبي او يا ولي ته سجده کول دهغه په نوم باندې نذر او نياز وغيره، نو دا صورت حرام دی.

دوهم صورت: چې يو مخلوق نه مستقل بالذات ګڼې او نه مستقل بالعرض، لکن داسې معامله کوي چې په هغې کې ددې مخلوق دمستقل ګڼلو ايهام وي، لکه دأرواحو څخه مدد غوښتل، نو اوس اګر چې دا مستقل بالذات ونه ګڼې، لکن چونکې مشرکانو ارواح متسقل ګڼل او مددو نه يې ترينه غوښتل، يعنې ديونبی او يا ديو ولي د روح څخه داسې مدد غوښتل چې نور خلک دا وهم وکړي چې

دايې مستقل وګڼلو ، لکه د روح څخه مدد غوښتل ، يا د ملايکو څخه مدد غوښتل، يا د داسې شي څخه مدد غوښتل چې په عام طور سره په نظر نه راځي، نو دلته اګر چې د استقلال عقيد نه شته ، لکن دا عمل د مشرکينو د عمل سره مشابه دی، نو دا صورت هم حرام ، بلکې اقرب الی الکفر دی .

**دجواز صورت:**

کوم شيان چې د انسانانو په طاقت کې داخل دي، يعنې ماتحت الاسباب، نو په دې کې استمداد من المخلوق مباح دی ، لکه د طعام په مدد سره د ولږې ختمول، د اوبو په مدد سره د تندې ختمول، د علاج او يا د دم او د تعويذ په مدد سره د مريضی ختمول، په دې شرط چې دا شيان د اسبابو په مرتبه کې وګڼې (خير الاثار ص ۳۰۰)

توسل او استشفاع د دې صورتونو څخه ماسوی ده ، نو توسل او استشفاع په استعانت باندې تياسول جهالت او ضلالت ، غباوت او غوايت دی .

بسم الله الرحمن الرحيم

# حکم التعويذ

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده.

امابعد :

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا أَنْزَلَ اللهُ دَآءً إِلَّا أنزل لَهُ دَوَآء». رَوَاهُ الْبُخَارِيّ) مشكوة: كتاب الطب والرقى، حديث اول).

رسول الله ﷺ فرمايي چې: الله تعالى د هر مرض لپاره دوا رالېږلې ده، نو د هر مرض علاج موجود دی، لکن دبعضو مرضونو علاج دموجود والي سره سره معلوم هم دی او دبعضو مرضونو علاج لاتر اوسه پورې معلوم نه دی.

دبحث څخه مخکې درې خبرې تمهيداً واورئ:

**اوله تمهيدي خبره:** أسباب په درې قسمه دي (۱) أسباب قطعيه (۲) أسباب ظنّيه (۳) أسباب وهميه.

**اسباب قطعيه :** يعنې هغه أسباب چې په عادت کې په هغوي باندې د مسبباتو ترتب يقيني وي، لکه په اور باندې سوزيدل، په ډوډۍ باندې مړېدل، په اوبو باندې دتندې ماتيدل،

**اسباب ظنيه:** يعنې هغه اسباب چې په عادت کې په هغوي باندې د مسبباتو ترتب اکثري او د ظن غالب په مرتبه کې وي، اکثر دوايانې او علاجونه او بعضې عمليات په دې قسم کې داخل دي، همدارنګې په احاديثو او په اثارو کې راغلی دمونه او تعويذونه هم په دې قسم کې داخل دي او دې منصوصي عملياتو ته مو اسباب ظني ځکه وويل چې دا أکثر په اخبارو احادو کې راغلي دي.

**اسباب وهميه :** يعنې هغه أسباب چې په عادت کې په هغوي باندې د مسبباتو ترتب يقيني هم نه وي او د ظن غالب په مرتبه کې هم نه وي بلکه کله کله وړباندې ثمره مرتبيږي او اکثر معلومات نه کيږي چې ثمره وړباندې مرتبه شوه او که نه؟ اکثر دمونه او تعويذونه په دې قسم کې داخل دي او بعضې په دوهم قسم کې داخل وو کما مرّ.

**داسبابو قطعيه وو حکم:** ددې اسبابو استعمال واجب دی، مثلاً يو سړی وږی دی او په عادت کې دا خبره يقيني ده چې ولږه د ډوډۍ په وجه ختميږي، لکن که دا سړی بيا هم ډوډۍ ونه خوري او مړ شي نو دا ګناهګار دی ځکه چې واجب يې پرېښودلو.

**داسبابو ظنيه ووحکم:** ددې اسبابو استعمال په عامو حالاتو کې اولی دی، البته واجب نه دی، خلاصه دا چې د اسبابو ظنيه وو استعمال جايز دی، دکمال توکل سره هم منافي نه دی او دنفس توکل سره هم منافي نه دی ځکه توکل دېته وايي چې يو سړی اسباب استعمال کړي، لکن موثر حقيقي يې ونه ګڼي، بلکه دا عقيده وساتي چې په دې اسبابو کې که دالله تعالی اراده وشي اثر اچوي او که الله تعالی اراده د نه اچولو وکړي نو اثر په کې نه اچوي.

خپله رسول الله ﷺ هم خپل علاج کړی دی او امت ته يې هم ددې تعليم ورکړی دی، په يو حديث کې راځي چې (فتداووا عباد الله)

البته که چا دا اسباب استعمال نه کړل نو ګناهګار يږي نه، په بعضې مؤمنانو باندې دتوکل يوه خاصه غلبه وي، چې دا قسم اسباب نه استعمالوي، لکه يوه بي بي رضی الله عنها چې نبي ﷺ ته راغله او دمرګيو شکايت ئې ورته وکړو، نبي ﷺ ورته وفرمايل چې ستا خوښه، که غواړې نو ستا لپاره به دشفاء دعا وکړم او که خوښه دې وي نو صبر وکړه الله تعالی به په بدله کې جنت درکړي هغې بي بي وفرمايل چې يا رسول الله ﷺ صبر به وکړم، خو دعا راته وکړه چې الله تعالی مې عورت نه ښکاره کوي نبي ﷺ ورته دعا وکړه (بخاري، کتاب المرضی، فصل من يصرع من الريح)

**داسباب وهميه ووحکم :** داسبابو وهميه وو استعمال جايز دی، دنفس توکل سره مخالف نه دی، البته دکمال توکل سره منافي دی.

په دې ټولو اسبابو کې دجواز لپاره شرط دا دی چې دشريعت سره به منافي نه وي، په اسبابو قطعيه ووکې دحرام خوراک استعمال حرام دی، په اسبابو ظنيه ووکې دحرامې دوائي استعمال حرام دی، او په اسبابو وهميه ووکې دشريعت څخه مخالف الفاظ لوستل اوليکل حرام دي.

**داسباب وهميه وو لپاره يوڅو مثالو نه :** په عربانو کې په عمومي طريقه باندې دطب رواج نه وو، اکثر اعتماد به يې په وهمي علاجونو او دسيلانيانو په خبرو باندې وو، دجاهليت دزمانې څخه چې

په عربانو کې دکومو علاجونو رواج وو په هغوي کې دبعضو ذکر په احاديثو کې راغلی دی، په هغو وهمي علاجونو کې يو ته (کيّ) وايي، يعنې وسپنه به يې په اور باندې گرمه کړه او په جسم باندې به يې لګوله، همدارنګه يو بل علاج ته (استرقاء) وايي، يعنې ددم طلبول، په عربانو کې دمختلف قسم دمونو رواج وو بعضې به په شرکي الفاظو باندې مشتمل وو نبي ﷺ ددې قسم دم څخه منعه وکړه او بعضې نور چې په شرکي الفاظو باندې مشتمل نه وو نو دهغې اجازت يې ورکړو او وېفرمايل چې (من استطاع منكم أن ينفع أخاه فلينفعه (رواه مسلم، مشكوة، كتاب الطب نمبر۱۷)

دچا چې په تاسو کې وس رسيږي چې خپل وررور ته نفع ورسوي نو نفعه دی ورته ورسوي، نبي ﷺ دجاهليت دزمانې هغو دمونه ته اجازت ورکړو چې هغه په شرکي الفاظو باندې مشتمل نه وو، حالانکه دهغوي مضمون په قران او په حديث کې نه وو راغلی، نو ددې څخه دا واضحه شوه چې په دمونو او په تعويذونو کې دا لازمه نه ده چې ددې مضمون به په قران او يا په حديث کې ذکر شوی وي.

**الحاصل:** داسبابو وهميه وو استعمال جايز دی، دنفس توکل سره منافي نه دی، البته دکمال توکل سره منافي دی، رسول الله ﷺ په يو ځای کې فرمايي چې: (من استرق او اكتوى فقد برئ من التوكل) چا چې دمونه او يا داغونه ولګول نو دتوکل څخه بيزاره شو، همدارنګه په بل حديث کې راځي چې زما په امت کې به اويازره کسانو ته دا اعزاز ميلاويږي چې بې حسابه به جنت ته ځي (هم الذين لا يكتوون ولا يسترقون ولا يتطيرون وعلى ربهم يتوكلون) دا هغه خلک دي چې داغونه نه لګوي، ددمونو پسې نه ګرزي او بدپالي نه کوي او پخپل رب باندې توکل کوي، حالانکه نبي ﷺ پخپله داغونه لګولي دي او خلکو ته يې ددمونو امرهم کړي دی، نو معلوميږي دا چې دمونه او داغونه دنفس توکل سره منافات نه لري، بلکه دکامل توکل سره منافي دی، دکوم په وجه چې انسان ته دا خصوصي اعزار ورکول کيږي چې بې حسابه به جنت ته ځي او داهم معلومه شوه چې دکمال توکل سره بعضې دمونه منافي دی او بعضې نه دي، يعنې کوم دمونه چې داسباب وهميه وو لاندې راځي دا قسم دمونه ورسره منافي دي، او کوم چې داسبابو ظنيه وو لاندې راځي هغه ورسره نه دي منافي.

نو دا يادلرئ چې مونږ چې دا ويلي دي چې دمونه او تعويذونه په اسبابو وهميه وو کې داخل دي نو دا مو داکثريت په اعتبار سره ويلي دي، دبعضو خلکو په دمونو او په تعويذونو باندې چې اکثر ثمره

مرتبیږي نو هغه په اسبابو ظنیه وو کې داخل دي، همدارنګه کوم دمونه او تعویذونه چې په احادیثو او په اٰثارو کې راغلي دي هغه هم په اسبابو کې ظنیه وو کې داخل دي او اسباب یقینیه ځکه نه دي چې دا اکثر په أخبار احادو کې راغلي دي.

**دوهمه تمهیدي خبره:** هغه دمونه او تعویذونه چې په اسبابو وهمیه وو کې داخل دي داولې دکامل توکل سره منافي دي؟

(۱) دا ځکه چې دأسبابو قطعیه وو او دأسبابو ظنیه وو نتیجه نسبتاً واضحه وي، یا انسان ته نتیجه په لاس ورځي او یا مایوسه کیږي، همدارنګه ډاکټر ورته کله اطمنان ورکوي او کله ورته رخصت ورکوي او داسبابو وهمیه وو نتیجه واضحه نه وي بلکه انسان په کې د(لاالی هـؤلاء ولا الی هـؤلاء) مصداق وي نه وربانديې زر نتیجه مرتبیږي او نه ترینه انسان مایوسه کیږي، لدې وجې کله یو تعویذګر او دمګري ته ورځي او کله بله ته، رسول الله ﷺ ځکه فرمایي چې (من تعلق شیئا وُکّل الیه)

(۲) همدارنګه داسبابو قطعیه وو او داسبابو ظنیه وو په استعمال کې اکثرا داسې وي چې عقید؛ دتأثیر په کې ځوک نه ساتي بلکه عام خلک په کې مؤثر الله تعالی ګڼي، دوائي او ډاکټر ته ځوک مؤثر نه وایي، له دې وجې ډاکټر ته خلک دیو مزدور په نظر باندې ګوري او دومره احترام یې نه کوي لکه ځومره چې ددمګري او دتعویذګر کوي ،او داسبابو وهمیه وو په استعمال کې داکثرو خلکو دحالاتو ځخه داسې معلومیږي لکه دمګري او تعویذګر ته چې مؤثر وایي، له دې وجې یې پښې او لاسونه ښکلوي، چې تعویذ ورته وکړي او اثر ونه کړي نو بیا ورته نور عجز او نیاز شروع کړي ، حالانکه دلاسونو او دپښو ښکلول اګر چې ددین له وجې جایز دي لکن دلته خو دده معامله ددنیا ده، ځکه چې دونیوي علاج ترینه کوي له دې وجې اکثر دمونه او تعویذونه په اسبابو وهمیه وو کې داخل کړی شوي دي .

**دریمه تمهیـدي خـبره :** دمونه او تعویذونه په دوه قسمه دي یو قسم هغه دي چې صراحةً په احادیثو او په اثارو کې راغلي دي ، دا قسم دمونه او تعویذونه ددین دتعلیماتو یوه حصه ده .

دوهم قسم هغه دمونه او تعویذونه دي، چې صراحةً په أحادیثو او په أثارو کې نه وي راغلي، هغه ددین مسئله نه ده او نه دنبوي ﷺ تعلیماتو حصه ده اګر چې قرأني الفاظ په کې تلاوت کولی او یا لیکلی شي، بلکه دا قسم دمونه او تعویذونه دعامو علاجونو په شان دخلکو تجربې دي، چې کله صحیح وي او کله

غلطې ثابتې شي، بعضې خلک په دې غلط فهمی کې مبتلی دي چې دا دویم قسم دمونه او تعویذونه ددین مستقله حصه ګڼي او دا ګمان کوي چې څوک په دین باندې پوهیږي او عالم وي هغه به په دې عملیاتو باندې هم پوهیږي، حالانکه دا غلطه خبره ده، ځکه چې ډېر داسې دمونه وو چې صحابه وو کرامو ته به یاد وو او نبي ﷺ ته به نه وو یاد، بلکې هغوي به چې کله نبي ﷺ ته تیرول نو نبي ﷺ به د بعضو اجازت ورکولو او دبعضو څخه به یې منعه کوله، حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې نبي ﷺ ددم څخه منع وکړه، نو دعمرو بن حزم دخاندان خلک نبي ﷺ ته راغلل او عرض یې وکړه چې (یار سول الله انه کانت عندنا رقیة نرقی بهـا مـن العقرب وانت نهیت عن الـرقی) زمونږ سره دلړم یو دم دی څوک به چې لړم چیچلی وو مونږ به وربانديې دمولو او تا ترېنه منع کړی ده نبي ﷺ ورته وفرمایل چې ماته خپل دم تیر کړئ (فعرضـوها علیـه فقـال مـا أری به بأسا من استطاع منکم ان ینفع اخاه فلینفع) هغوئ چې خپل دم نبي ﷺ ته تیر کړو نو نبي ﷺ ورته وفرمایل چې ستا سو په دې دم کې څو څه نقصان نشته د چاچې وس رسیږي چې خپل ورور ته نفع ورسوی نو ورته دې ورسوي (رواه مسلم، مشکوة کتاب الطب ۱۷ حدیث)

همدارنګه حضرت شفاء بنت عبد الله رضي الله عنها تـه رسول الله ﷺ وفرمایـل چې لکه څرنګه چې تـه حضرت حفصې رضي الله عنها ته لیک او لوست ورزده کوی نو همدارنګه دنملې دم هم ورته ورزده کړه، (مشکوة کتاب الطب نمبر ۴۸) معلومیږي دا چې دنملې دم حضرت شفاء بنت عبد الله ته یاد وو او نبي ﷺ تـه نـه وو معلوم کنه نو نبي ﷺ به پخپله حضرت حفصې رضي الله عنها ته خودلی وو.

همدارنګه بعضې خلک دمونه او تعویذونه دتصوف او دسلوک یوه حصه ګڼي، حالانکه دعملیاتو دتصوف او دسلوک سره هم هیڅ تعلق نشته، ځکه چې دتصوف مقصد دا دی چې دانسان ظاهر او باطن دشریعت سره مطابق شي، خصوصاً چې دباطني امراضو څخه پاک شي، لکه خراب اخلاق، کبر، او حسد، وغیره او اخلاق حمیده یې په زړه کې پیدا شي لکه محبت، توکل، تواضع وغیره اګر چې یو دم او تعویذ یې هم نه وي یاد، خلاصه دا چې صوفیان کاملان وي او دمګري او تعویذ ګران عاملان وي، او هر کامل عامل نه وي همدارنګه هر عامل کامل نه وي، بلکه بعضې وي او بعضې نه وي.

## دعملیاتو احکام

دعملیاتو یعنې ددمونو او دتعویذونو په باره کې ظاهراً درې قسمه احادیث په نظر راځي.

**اول قسم احاديث:** اول قسم هغه احاديث دي په هغې کې ددمونو او دتعويذونو څخه منعه راغلي ده، مثلا لاندې احاديث وګوره.

(۱) وَعَنْ زَيْنَبَ رضي الله عنها امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رضي الله عنه أَنَّ عَبْدَ اللهِ رضي الله عنه رَأَى فِي عُنُقِي خَيْطًا فَقَالَ: مَا هٰذَا؟ فَقُلْتُ: خَيْطٌ رُقِيَ لِي فِيهِ قَالَتْ: فَأَخَذَهُ فَقَطَعَهُ ثُمَّ قَالَ: أَنْتُمْ آلَ عَبْدِ اللهِ لَأَغْنِيَاءُ عَنِ الشِّرْكِ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «إِنَّ الرُّقَى وَالتَّمَائِمَ وَالتِّوَلَةَ شِرْكٌ» فَقُلْتُ: لِمَ تَقُولُ هٰكَذَا؟ لَقَدْ كَانَتْ عَيْنِي تَقْذِفُ وَكُنْتُ أَخْتَلِفُ إِلَى فُلَانٍ الْيَهُودِيِّ فَإِذَا رَقَاهَا سَكَنَتْ فَقَالَ عَبْدُ اللهِ رضي الله عنه: إِنَّمَا ذٰلِكِ عَمَلُ الشَّيْطَانِ كَانَ يَنْخُسُهَا بِيَدِهِ فَإِذَا رُقِيَ كَفَّ عَنْهَا إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيكِ أَنْ تَقُولِي كَمَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «أَذْهِبِ الْبَأْسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ أَنْتَ الشَّافِي لَا شِفَاءَ إِلَّا شِفَاؤُكَ شِفَاءً لَا يُغَادِرُ سَقَمًا». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (مشكوة:كتاب الطب والرقى، حديث: ۳۹)

دعبد الله بن مسعود رضي الله عنه بي بي حضرت زينب رضي الله عنها فرمايي چې يوه ورځ حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه زما په غاړه کې يو بند وليدلو ، نو راته يې وفرمايل چې دا څه شی دی ؟ ما ورته وويل چې دا بند دی او دم راته په کې اچولی شوی دی، نو عبد الله بن مسعود رضي الله عنه راته وشکولو او راته وېفرمايل چې ای دعبد الله بن مسعود رضي الله عنه خاندانه! تاسوته دشرک ضرورت نشته، ما دنبي ﷺ څخه اورېدلي دي، چې دمونه، تعويذونه او دمحبت تعويذ شرک دی ، ما ورته وويل چې ته څرنګه دا خبره کوي؟ حال دا چې زما سترګو به چخښې کولی نو زه فلانکي يهودي ته ورتلم هغه به چې دم کړم نو روغه به شوم ، عبد الله بن مسعود رضي الله عنه راته وفرمايل: چې: دا دشيطان کار وو ، هغه به ستا سترګې چوخولې کله به چې يهودي دم کړې نو شيطان به د چوخولو څخه ځان بند کړو ستا لپاره دا بس وو چې داسې دی ويلی وي، لکه څرنګه به چې نبي ﷺ ويل چې اذهب الباس ، الحديث.

(۲) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: «مَا أُبَالِي مَا أَتَيْتُ إِنْ أَنَا شَرِبْتُ تِرْيَاقًا أَوْ تَعَلَّقْتُ تَمِيمَةً أَوْ قُلْتُ الشِّعْرَ مِنْ قِبَلِ نَفْسِي». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد. (مشكوة،كتاب الطب والرقى؛حديث: ۴۱

حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دی چې نبي ﷺ وفرمايل: چې ددې دريو (بدو) کارونو په کولو کې ما ته فرق نشته، چې ترياق وخورم او يا تعويذ په غاړه کې واچوم او يا دخپل طرف څخه شعر ووايم .

(۳) وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنِ اكْتَوَى أَوِ اسْتَرْقَى فَقَدْ بَرِئَ مِنَ التَّوَكُّلِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه. (مشكوة،كتاب الطب والرقى، حديث ۴۲)

رسول الله ﷺ فرمايي چاچې د داغ په ذريعه علاج وکړو او يا يې طلب ددم وکړو نو په تحقيق سره دتوکل څخه بېزاره شو .

(٤) وَعَنْ عِيسَى بْنِ حَمْزَةَ رحمهما الله تعالى قَالَ: دَخَلْتُ عَلَى عبدِ الله بن عُكيم رضي الله عنه وَبِهِ حُمْرَةٌ، فَقُلْتُ: أَلَا تُعَلِّقُ تَمِيمَةً؟ فَقَالَ: نَعُوذُ بِاللهِ مِنْ ذٰلِكَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ تَعَلَّقَ شَيْئًا وُكِلَ إِلَيهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد. (مشكوة: كتاب الطب والرقى، حديث: ۴۳)

عيسى بن حمزة رحمه الله فرمايي چې زه عبدالله بن عكيم رضي الله عنه ته ورغلم په داسې حال کې چې دده بدن سور شوی وو، نو ما ورته وويل چې تعويذ ولې نه اچوئ؟ هغه راته وويل چې الله تعالى ته پناه نسيم، رسول الله ﷺ فرمايي چې چاچې کوم شی (تعويذ) په غاړه کې واچولو نو همدې ته به ورحواله کړی شي.

**دوهم قسم احاديث:** دوهم قسم هغه احاديث دي چې دهغوي څخه د دمونو او دتعويذونو جواز رامعلوميږي.

## ددمونو په باره کې يو څو احاديث:

(١) وَعَن أنسٍ رضي الله عنه قَالَ: رَخَّصَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الرُّقْيَةِ مِنَ الْعَيْنِ وَالْحُمَةِ وَالنَّمْلَةِ.، رواه مسلم مشكوة كتاب الطب، حديث نمبر۳)

رسول الله ﷺ دنظرَ، دکوم زهريله شي دچيچلو او د نَمِلي يعني دشري لپاره ددم اجازت ورکړی دی، دا درې يې دحصر لپاره نه دي ذکر کړي، بلکه ددې له وجې يې ذکر کړي دي، چې ددې درېو بيماريانو لپاره په هغه وخت کې کوم طبي او طبعي علاج نه وو، دنورو مرضونو لپاره هم ددمونو ذکر راغلی دی، په را روانو حديثونو کې يې وګوره.

(٢) وَعَن عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ: أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَرْقِيَ مِنَ الْعَيْنِ (مُتَّفق عَلَيْهِ)، مشكوة، كتاب الطب حديث نمبر۴)

حضرت عائشة رضي الله عنها فرمايي چې نبي ﷺ مونږ ته امر وکړو چې دنظر لپاره دم وکړو.

(٣) وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رضي الله عنها أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى فِي بَيْتِهَا جَارِيَةً فِي وجهها سفعة يَعْنِي صُفْرَةً فَقَالَ: «اسْتَرْقُوا لَهَا فَإِنَّ بِهَا النَّظْرَةَ» (مُتَّفق عَلَيْهِ)، مشكوة كتاب الطب والرقى، حديث نمبر۵)

حضرت ام سلمة رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ دام سلمې رضي الله عنها په کور کې يوه وينځه وليدله چې دمخ رنګ يې دمريضۍ له وجې متغير شوی وو، نو روسول الله ﷺ وفرمايل چې دا دم کړئ دا نظره شوې ده.

(٤) وَعَنْ جَابِرٍ رضي الله عنه قَالَ: نَهٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الرُّقٰى فَجَاءَ آلُ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّهُ كَانَتْ عِنْدَنَا رُقْيَةٌ نَرْقِي بِهَا مِنَ الْعَقْرَبِ وَأَنْتَ نَهَيْتَ عَنِ الرُّقٰى فَعَرَضُوهَا عَلَيْهِ فَقَالَ: «مَا أَرٰى بِهَا بَأْسًا مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ أَنْ يَنْفَعَ أَخَاهُ فَلْيَنْفَعْهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ (مشكوة، كتاب الطب والرقى، ۱۷)

حضرت جابر رضي الله عنه فرمايي چې نبي ﷺ ددمونو څخه منعه وکړه نو دعمرو بن حزم دخاندان خلک راغلل او عرض يې وکړو چې يارسول الله ﷺ زمونږ سره يو دم وو مونږ به دلړم څخه ورباندې خلک دمول او تاسې ددم څخه منعه کړې ده، بيا يې ورته خپل دمونه تيرکړل، نبي ﷺ ورته وفرمايل چې ستاسو په دمونو کې څه حرج نشته، په تاسو کې چې دچا وس رسيږي چې خپل وروړته نفعه ورسوي نو ودې يې رسوي.

(٥) وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُد. (مشكوة، كتاب الطب، رقم: ۴۴)

رسول الله ﷺ وفرمايل چې: صرف ددې دوو مرضونو لپاره دمونه دي، يو دنظر لپاره او بل دزهريله شي دچيچلو لپاره.

(٦) وَعَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا رُقْيَةَ إِلَّا مِنْ عَيْنٍ أَوْ حُمَةٍ أَوْ دَمٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد (رواه ابوداود، مشكوة: كتاب الطب: ۴۶)

رسول الله ﷺ فرمايي چې: صرف ددې دريو مرضونو لپاره دمونه دي، يو دنظر لپاره، دوهم دزهريله شي دچيچلو لپاره، دريم دوينې يعنې ددانو وغيره لپاره.

(٧) وَعَنِ الشِّفَاءِ بِنْتِ عبد الله رضي الله عنها قَالَتْ: دَخَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا عِنْدَ حَفْصَةَ رضي الله عنها فَقَالَ: «أَلَا تُعَلِّمِينَ هٰذِهِ رُقْيَةَ النَّمْلَةِ كَمَا عَلَّمْتِيهَا الْكِتَابَةَ؟». رَوَاهُ أَبُو دَاوُد. (مشكوة: كتاب الطب والرقى، حديث: ۴۸)

حضرت شفاء بنت عبد الله فرمايي چې: زه دام المؤمنين حضرت حفصې رضي الله عنها سره وم چې نبي ﷺ راغلو نو ويې فرمايل چې: ته حضرت حفصې رضي الله عنها ته دنملې (شري) دم ولې نه ورښايې لکه څرنګه دې چې ليکل ورښودلي دي؟ په يو روايت کې راځي چې حضرت شفاء رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وفرمايل چې: (انى كنت أرقى برقى الجاهلية) لكن بيا هم ىبى كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اجازت ورکړو، ددمونو په باره کې دومره ډېر احاديث راغلي دي چې د ټولو د راجمعه کولو څخه يو غټ کتاب جوړيږي.

## دتعویذونو په باره کې یو څو احادیث او اثار

(۱) دحضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما څخه روایت دی چې هغوی دنبي ﷺ دا ارشاد را نقل کړو چې څوک چې په خوب کې داریږي نو دا دعا دې ووايي چې:

أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ غَضَبِهِ وَعِقَابِهِ وَشَرِّ عِبَادِهِ وَمِنْ هَمَزَاتِ الشَّيَاطِينِ وَأَنْ يَحْضُرُونَ.

راوي فرمايي چې عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما دخپل کورپوهو خلکوته دا دعا په يادو وربښودلې وه او ورو بچيانو ته يې ليکلې وه او په غاړه کې يې ورته اچولې وه (سنن ابي داود حديث نمبر ۳۸۹۳ باب کيف الرقى ، جامع الترمذي حديث نمبر ۳۵۲۸ ، مشکوة، باب الاستعاذة، الفصل الثاني)

دامام بخاري استاذ ابن ابي شيبه په خپل مصنف کې باب لګولی دی په نوم د(من رخص في تعليق التعاويذ) ددې باب لاندې يې ډېر اثار رانقل کړي دي يو څو يې لاندې ولولئ.

۲- حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ خَالِدٍ رحمه الله، عَنْ شُعْبَةَ رحمه الله، عَنْ أَبِي عِصْمَةَ رحمه الله، قَالَ: سَأَلْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيِّبِ رحمه الله عَنِ التَّعْوِيذِ، فَقَالَ: «لَا بَأْسَ إِذَا كَانَ فِي أَدِيمٍ» رقم الحديث: (۲۴۰۰۹).

ترجمه: سعيد ابن مسيب رحمه الله فرمايي چې تعويذ چې په څرمنه کې وي نو پروا نه کوي.

۳- حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ رحمه الله، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ رحمه الله، عَنْ عَطَاءٍ رحمه الله، فِي الْحَائِضِ يَكُونُ عَلَيْهَا التَّعْوِيذُ، قَالَ: «إِنْ كَانَ فِي أَدِيمٍ فَلْتَنْزِعْهُ، وَإِنْ كَانَ فِي قَصَبَةٍ فِضَّةٍ فَإِنْ شَاءَتْ وَضَعَتْهُ وَإِنْ شَاءَتْ لَمْ تَضَعْهُ» رقم الحديث (۲۴۰۱۰).

ترجمه: حضرت عطاء بن رباح رحمه الله فرمايي چې که تعويذ په څرمنه کې بند وو نو حائضه ښځه به يې لرې کوي او که دسپينو زرو په ډبي کې وي نو بيا يې خوښه ده چې لرې کوي يې او که نه يې لرې کوي. (قال شيخنا الاعظمى رحمه الله القصبة كل عظم أجوف فيه مخ، والمراد هنا: ما صنع من الفضة مثل ذلک العظم ، ويجعل فيه التعويذ مكان المخ فى العظم)

٤- حَدَّثَنَا وَكِيعٌ رحمه الله، عَنْ إِسْرَائِيلَ رحمه الله، عَنْ ثُوَيْرٍ رحمه الله، قَالَ: «كَانَ مُجَاهِدٌ رحمه الله يَكْتُبُ لِلنَّاسِ التَّعْوِيذَ فَيُعَلِّقُهُ عَلَيْهِمْ» رقم الحديث (۲۴۰۱۱).

ترجمه: اما مجاهد رحمه الله به خلکو ته تعويذ ليکلو او غاړو ته به يې ور اچولو.

٥- حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللّٰهِ رحمة الله عليه، عَنْ حَسَنٍ رحمة الله عليه، عَنْ جَعْفَرٍ رحمة الله عليه، عَنْ أَبِيهِ رحمة الله عليه، «أَنَّهُ كَانَ لَا يَرٰى بَأْسًا أَنْ يَكْتُبَ الْقُرْآنَ فِي أَدِيمٍ ثُمَّ يُعَلِّقُهُ»، رقم الحديث (۲۴۰۱۲).

ترجمه: حضرت جعفر رحمه الله د خپل پلار څخه روایت کوي چې په دې کې باک نشته چې قرآن ولیکې او په څرمنه کې یې بند کړئ او په غاړه کې یې واچوې.

٦- حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ سُلَيْمَانَ رحمة الله عليه، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ مُسْلِمٍ رحمة الله عليه، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ رحمة الله عليه: «أَنَّهُ كَانَ لَا يَرٰى بَأْسًا بِالشَّيْءِ مِنَ الْقُرْآنِ» (یعنی بتعلیقه) رقم الحديث (۲۴۰۱۴).

ترجمه: ابن سیرین رحمه الله فرمايي چې د قرآن کریم د څه حصې په غاړه کې اچولو کې باک نشته.

۷- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ رحمة الله عليه، قَالَ: حَدَّثَنَا حَسَنٌ رحمة الله عليه، عَنْ لَيْثٍ رحمة الله عليه، عَنْ عَطَاءٍ رحمة الله عليه، قَالَ: «لَا بَأْسَ أَنْ يُعَلِّقَ الْقُرْآنَ» رقم الحديث (۲۴۰۱۵).

ترجمه: حضرت عطاء ابن ابی رباح رحمه الله فرمايي چې د قرآن کریم لیکل او په غاړه کې اچول پروا نه لري.

۸- حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ رحمهما الله تعالى، عَنْ أَبَانَ بْنِ تَغْلِبَ رحمهما الله تعالى، عَنْ يُونُسَ بْنِ خَبَّابٍ رحمهما الله تعالى، قَالَ: سَأَلْتُ أَبَا جَعْفَرٍ رحمة الله عليه عَنِ التَّعْوِيذِ يُعَلَّقُ عَلَى الصِّبْيَانِ، «فَرَخَّصَ فِيهِ»، رقم الحديث (۲۴۰۱۶).

ترجمه: حضرت ابو جعفر رحمه الله فرمايي چې تعویذ لیکل او ماشوم ته یې په غاړه کې اچول جایز دي.

۹- حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ الْأَزْرَقُ رحمة الله عليه، عَنْ جُوَيْبِرٍ رحمة الله عليه، عَنِ الضَّحَّاكِ رحمة الله عليه: «لَمْ يَكُنْ يَرٰى بَأْسًا أَنْ يُعَلِّقَ الرَّجُلُ الشَّيْءَ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ إِذَا وَضَعَهُ عِنْدَ الْغُسْلِ وَعِنْدَ الْغَائِطِ» رقم الحديث (۲۴۰۱۷).

ترجمه: حضرت امام ضحاک رحمه الله فرمايي چې د قرآن کریم لیکل او په غاړه کې اچول گناه نه لري کله یې چې د اودس ماتي او د غسل په وخت لرې کوي.

**دریم قسم احادیث:** دریم قسم هغه احادیث دي چې دهغوي په وجه په مخکېنو دواړه قسمه احادیثو کې تطبیق راځي.

(۱) وَعَنْ عوفِ بن مَالك الْأَشْجَعِيّ رحمة الله عليه قَالَ: كُنَّا نَرْقِي فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! كَيْفَ تَرٰى فِي ذٰلِكَ؟ فَقَالَ: «اعْرِضُوا عَلَيَّ رُقَاكُمْ لَا بَأْسَ بِالرُّقٰى مَا لم يكن فِيهِ شرك». رَوَاهُ مُسلم (مشكوة: كتاب الطب،

حضرت عوف بن مالک رضی الله عنه فرمايي چې مونږ به د جاهليت په زمانه کې دمونه کول، بيا مو د نبي ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې تاسو د دې په باره کې څه وايي؟ نبي ﷺ وفرمايل چې ماته خپل دمونه بيان کړئ، په دمونو کې حرج نشته تر څو چې په کې شرک نه وي.

(٢) په صحيح ابن حبان کې باب لګيدلی دی په نوم د: ذِكْرُ الْخَبَرِ الدَّالِّ عَلَى أَنَّ الرُّقَى الْمَنْهِيَّ عَنْهَا إِنَّمَا هِيَ الرُّقَى الَّتِي يُخَالِطُهَا الشِّرْكُ بِاللهِ جَلَّ وَعَلَا دُونَ الرُّقَى الَّتِي لَا يَشُوبُهَا شِرْكٌ، (ج ١٣ صـ ١٥٨)

باب دې په ذکر د هغه خبر کې چې هغه په دې باندې دلالت کوي چې ممنوع هغه دمونه دي چې شرک په کې ورګډ شوی وي، هغه دمونه نه دي ممنوع چې شرک په کې نوي ورګډ شوی.

د دې باب لاندې يې د حضرت ابن حثمه رضی الله عنه حديث ذکر کړی دی چې د ده والد رضی الله عنه په د جاهليت په زمانه کې دمونه کول بيا يې د رسول الله څخه د دې په باره کې پوښتنه وکړه، نبي ﷺ ورته وفرمايل چې: (ارقى مالم يكن فيه شرك)

يعنې د شرک څخه بغير نور دمونه کوه، په عملياتو کې شرک په دوو طريقو راځي، يو دا چې د دم او د تعويذ مضمون په شرک باندې مشتمل وي، دوهم دا چې دم او يا تعويذ مؤثر لذاته وګڼئ، ځکه چې مؤثر حقيقي د الله تعالی ذات دی، محدث ابن حبان په کتاب الرقى والتمايم کې فرمايي چې:

العلة في الزجر عن الاِكْتِوَاءِ وَالاِسْتِرْقَاءِ هِيَ أَنَّ أَهْلَ الْجَاهِلِيَّةِ كَانُوا يستعملونها، وَيَرَوْنَ الْبُرْءَ مِنْهُمَا مِنْ غَيْرِ صُنْعِ الْبَارِي جَلَّ وَعَلَا فِيهِ، فَإِذَا كَانَتْ هٰذِهِ الْعِلَّةُ مَوْجُودَةً، كَانَ الزَّجْرُ عَنْهُمَا قَائِمًا، وَإِذَا اسْتَعْمَلَهُمَا الْمَرْءُ، وَجَعَلَهُمَا سَبَبَيْنِ لِلْبُرْءِ الَّذِي يَكُونُ مِنْ قَضَاءِ اللهِ دُونَ أَنْ يَرَى ذٰلِكَ مِنْهُمَا، كَانَ ذٰلك جائزًا. (صحيح ابن حبان: ج١٣ صـ٤٥٤)

**الحاصل:** (١) که دمونه او تعويذونه په شرکي مضمون باندې مشتمل نه وو او مؤثر حقيقي دې ونه ګڼل بلکه دعا مو علاجونو په شان دې د سبب په مرتبه کې وګڼل نو بيا داسې دمونه او تعويذونه جايز دي.

(٢) په کومو احاديثو کې چې د خاصو خاصو مرضونو لپاره د دم ذکر راغلی دی، هلته مراد حصر حقيقي نه دی بلکه حصر اضافي او يا اهتمام وغيره مراد دي، ځکه چې د جواز او د عدم جواز لپاره علت د مرضونو خصوصيتونه نه دي، بلکې علت ورته عدم اشتمال په شرک او اشتمال په شرک باندې دی، که حصر حقيقي مراد شي نو بيا به پخپله د احاديثو په مابين کې تعارض راشي، مثلاً د عمران بن حصين رضی الله عنه په حديث کې صرف د دوو مرضونو ذکر دی، د حضرت انس رضی الله عنه په حديث کې د دريو مرضونو ذکر دی، د حضرت جابر رضی الله عنه په حديث کې د لړم د دم ذکر دی او د حضرت شفاء بنت عبد الله رضی الله عنها په حديث کې بيا د نملې لپاره د دم ذکر دی وهكذا.

(۴) په دمونو او په تعويذونو کې دا شرط نه دی چې مضمون به يې صراحةً په قرآن او يا په حديث کې ذکر شوی وي، بلکه صرف دومره خبره کافي ده چې شرک به په کې نه وي، لکه تاسو چې په تيرو احاديثو کې وليدل چې نبي ﷺ دجاهليت د زمانې دمونو ته هم په دې شرط باندې اجازه ورکړه چې شرک په کې نه وي، دمشکوۃ په کتاب الطب والرقى کې دحضرت شفاء رضى الله عنها حديث دی چې رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې حضرت حفصې رضى الله عنها ته دخط سره دشري دم هم ورښايه، حافظ ابن حجر په الاصابه کې او ابن عبد البر په استيعاب کې دحضرت شفاء په حالاتو کې دهغې دم الفاظ رانقل کړي دي، لکن دبعضې الفاظو په صحيح تلفظ او معنی باندې زه پوه نه شوم الفاظ دادي «بسم الله صلو صلب جبر، تعوّذا من افواهها فلا تضر احدا، اللّٰهُمَّ اكشف البأس رب الناس» دکُرکُم (يعنی زعفران) په لرګي باندې به يې دا کلمات او ه ځلې ولوستل او دم به يې کړلو، بيا به يې دا لرګي په يوه تيګه باندې کيښودلو دشرابو سرکه به يې په دې لرګي باندې واچوله بيا به يې هغه لرګی په مريض باندې مړلو.

## په تعويذونو کې ديا بدوح ليکل

بدوح په عبرانی ژبه کې دالله تعالى نوم دی او په تعويذاتو کې داسماء الله ليکل جايز دی، لهذا په تعويذاتو کې ديا بدوح ليکل جايز دی، لما قال العلامه مفتي محمد شفيع رحمه الله: ما دخپل استاذ علامه محمد انور شاه الکشميري رحمه الله څخه اوريدلي دي چې دبدوح لفظ ددال له تشديد پرته په عبرانی ژبه کې دالله تعالى نوم دی، (عزيز الفتاوی المعروف به، فتاوی دارالعلوم ديوبند ج ۱ص۱۴۹) وامداد المفتيين المعروف به فتاوی دارالعلوم ديوبند ج ۲ص۲۳۸) کتاب الکراهية فتاوی حقانيه ج ۲ص۱۹۸، باب التداوي)

## په غير مسلم باندې ځان دمول او يا ترېنه تعويذ غوښتل

دامام مالک رحمه الله څخه منقول دي چې هغه په اهل کتابو باندې دځان دمولو ته مکروه ويلي دي، لکن دامام مالک رحمه الله يو شاګرد ابن وهب رحمه الله او امام شافعي رحمه الله ورته جائز ويلي دي، معرفة السنن والاثار للبيهقي ج ۱۴ص۱۲۰) دوي دحضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه ديو اثر څخه استدلال کړی دی، کوم چې امام مالک په خپل موطأ رقم ۳۴۷۲ کې او د امام بخاري استاذ ابن ابي شيبه په خپل مصنف کې ج ۵ص۴۷) کې ذکر کړي دي چې يوه ورځ حضرت عائشه رضي الله عنها مريضه وه او يوې يهودي ښځې دموله حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه دې يهودي ته وفرمايل چې دالله تعالى په کتاب باندې يې دموه، عام شارحين فرمايي چې دحضرت ابوبکر رضي الله عنه مراد دکتاب الله څخه تورات وو، ځکه چې يهودو عموماً په تورات باندې خلک

دمول لکن محدث ابن حبان رحمه الله يې دا معنی بيانوي چې د ابو بکر صديق رضي الله عنه مطلب دا وو چې په داسې الفاظو باندې يې دموه چې دکتاب الله يعنې دقرآن له نظره مباح وي (ابن حبان ج ١٣ص ٤٦٤)

نو په غير مسلمو باندې ددمولو په باره کې دوه قوله شو، يو قول دکراهت او بل دجواز، لکن ددې دواړو په مابين کې تعارض نشته، ځکه چې ابن عبد البر رحمه الله په الاستذکار ج ٨ص ٤١١) کې فرمايي چې امام مالک رحمه الله دکراهيت قول لدې وجې څخه کړی دی، چې دغير مسلم معلومات نه کيږي چې دا په څرنګه الفاظو باندې دمول کوي؟ ددې څخه معلومه شوه چې کومو حضراتو چې په غير مسلمو باندې دځان دمولو ته جائز ويلي دي نو دا په هغه وخت کې دي، چې کله سړی مطمئن وي چې دمونکي را باندې شرکي دم نه اچوي او کومو حضراتو چې ورته مکروه ويلي دي نو دا په هغه وخت کې دي چې کله اطمينان نه وي.

**الحاصل:** ددمګري په باره کې چې کله يقين او يا غالب ګمان داوي چې په شرکي او ناجائز مضمون باندې دمول نه کوي نو بيا جايز دی، او کله چې يقين او يا ظن غالب او يا تردد ددې خبرې وي چې په شرکي او يا په ناجائز مضمون باندې دمول کوي نو بيا ناجائز دی همدارنګه دناجايز مقصد لپاره دم او تعويذ کول هم ناجايز دي، لکه ددوو کسانو په مابين کې دتفريط او ددشمنی دجوړولو لپاره، دناجايز تسخير وغيره لپاره، حضرت تهانوي رحمه الله فرمايي چې دناجايز تسخير لپاره ځکه ناجايز دی چې په تعويذاتو کې معنوي فشار واردول وي، نو په کوم ځای کې چې ظاهري فشار واردول ناروا دي، نو همدارنګه معنوي فشار واردول هم ناروا دي.

**فائده:** بعضې وهابيان دقرآن او دحديث دليل دومره نه مني لکه څومره چې د ابن تيميه رحمه الله او دابن القيم رحمه الله خبره مني، لدې وجې به ددې دواړو يو يو عبارت رانقل کړو.

(١) حافظ ابن تيميه رحمه الله فرمايي چې: وَيَجُوزُ أَنْ يَكْتُبَ لِلْمُصَابِ وَغَيْرِهِ مِنَ الْمَرْضَى شَيْئًا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ وَذِكْرِهِ بِالْمِدَادِ الْمُبَاحِ وَيُغْسَلُ وَيُسْقَى كَمَا نَصَّ عَلَى ذَلِكَ أَحْمَدُ رحمه الله وَغَيْرُهُ (مجموع الفتاوی، لشيخ الاسلام ج ١٩ص ٦٤)

يعنې جائزه ده چې دقرآن او يا دذکر الله څخه کوم شی په مباحه سياهي باندې وليکي او بيا يې ووينځي او بيا يې په مريض باندې وڅښي، امام احمد وغيره په دې باندې تصريح کړې ده، ددې څخه وروسته ابن تيميه رحمه الله دحضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما يو اثر رانقل کړی دی چې که ښځې ته دولادت په وخت کې مشکل وو، نو دا الفاظ ورته وليکي.

بِسْمِ اللَّهِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ الْحَلِيمُ الْكَرِيمُ سُبْحَانَ اللَّهِ رَبِّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ {كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَهَا لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا عَشِيَّةً أَوْ ضُحَاهَا} {كَأَنَّهُمْ يَوْمَ يَرَوْنَ مَا يُوعَدُونَ لَمْ يَلْبَثُوا إِلَّا سَاعَةً مِنْ نَهَارٍ بَلَاغٌ فَهَلْ يُهْلَكُ إِلَّا الْقَوْمُ الْفَاسِقُونَ}.

په يو روايت کې راځي چې دا الفاظ ووينځه اوبيا دا اوبه دنوم ځخه لاندې وشينده، او په بل روايت کې راځي چې دا وليکه او دمځ پورې يې وتړه او دولادت ځخه وروسته يې سمدستي لرې کړه، يو راوي فرمايي چې ماپيا بيا ددې تجربه کړې ده، نو ددې ځخه مې بهتر بل شی نه دی موندلی . (فتاوی ابن تيميه ج ١٩ص ٦٤)

(٢) ابن القيم رحمه الله په زاد المعاد ج ۴ ص ٣٢٦ ) کې بعضې تعويذات رانقل کړي دي، يو تعويذ يې د امام احمد بن حنبل رحمه الله ځخه رانقل کړی دی .

**ايا په دم او په تعويذ کې فرق شته اوکنه ؟:** نن سبا بعضې خلک وايي چې دمذکورو شرطونو موافق دمونه جائز دي لکن تعويذونه نه دي جايز او په دليل کې دحضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روايت پيش کوي چې (ان الرقى والتمايم والتِّوَلَة شرک)

لکن ددوي استدلال نه دی صحيح، ځکه چې (١) تامخکې واورېدل چې دمنعې لپاره اصل علت شرکي الفاظ دي هغه په دم کې وي او که په تعويذ کې وي (٢) دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه په حديث کې دتمايم لفظ دی اوتمايم تعويذونو ته نه وايي بلکه دا يو خاص قسم مرې وی چې دجاهليت په زمانه کې به خلکو ماشومانو ته په دې گمان باندې په غاړه کې وراچولې چې دا دسترګو ځخه مصيبتونه لرې کوي او دانسان په عمر کې زيادت راولي، ابن قتيبه رحمه الله په تاويل مختلف الحديث کې ليکي چې: وَالتَّمَائِمُ خَرَزٌ رُقِطٍ، كَانَتِ الْجَاهِلِيَّةُ تَجْعَلُهَا فِي الْعُنُقِ وَالْعَضُدِ، تَسْتَرِقِي بِهَا، وَتَظُنُّ أَنَّهَا تَدْفَعُ عَنِ الْمَرْءِ الْعَاهَاتِ، وَتَمُدُّ فِي الْعُمُرِ، قَالَ الشَّاعِرُ:

إِذَا مَاتَ لَمْ تُفْلِحْ مُزَيْنَةُ بَعْدَهُ    فَنُوطِي عَلَيْهِ يَا مُزَيْنُ التَّمَائِمَا

يَقُولُ: عَلِّقِي عَلَيْهِ هَذَا الخرز، لتقيه المنية. (ص ٤٦٦) قال الامام البغوي ابو الفتح ناصر الدين المطرازي رحمه الله قال: القتيبي وبعضهم يتوهم ان المعاذات هي التمايم وليس كذلك، انما التميمة الخرزة، ولا بأس بالمعاذات اذا كتب فيها القرآن واسماء الله تعالى، المغرب في ترتيب المغرب ج ١ ص ١٠٧ ) وهكذا في رد المحتار، كتاب الحظر والاباحة، فصل في اللبس، ومثله في نيل الأطار، باب ما جاء في الأجرة على الضرب.

امام طحاوي رحمه الله دحضرت عائشې رضي الله عنها قول رانقلوي چې کوم تعويذ چې دمريضی ځخه وروسته په غاړه کې واچول شي هغه تميمه نه ده (شرح معاني الاثار، کتاب الكراهة، باب الكى هو مكروه ام لا؟)

(٣) په دې حديث کې خو يواځې دتمايمو ذکر نه دی، بلکه د رقی يعنې ددم ذکر هم په کې راغلی دی او درقی په باره کې په دې خبره اتفاق دی چې ددې ځخه منعه مطلقا نه ده، بلکه په هغه صورت کې ده چې شرکي دمونه وي نو همدا تفصيل په تمائمو کې هم دی .

## په عملياتو کې دشيخ د اجازې حکم

د اورادو او دوظايفو په لوستلو کې دڅا داجازې ضرورت نشته ، البته که چيرته دشيخ اجازه وي نو نيض او برکات نور هم پکې زياتيږي، (لما قال العلامه السيوطى ، الاجـازة مـن الشـيخ غـير شرط فى جواز التصدى، للاقراء والأفاداة، فمن علم من نفسه الأهلية جاز له ذلک وان لم يجزه احـد الـخ ) الاتقان فى علوم القرآن ، الفصل الثالث فى كيفية الأخذ بافراد القراءة، وكذا قـال العلامـه جـلال ابادى الاجازة من الشيخ غير شرط فى جواز التصدى للافادة والاقراء ، فمن علم من نفسه الأهلية جاز له ذلک ، وان لم يجزه احد الخ ، قطب الارشاد صـ٦٤٣، الخاتمة فى ذكر الاجازة ،ومثله فى امداد الفتاوى ج ٥صـ ٥٥٣) كتاب السلوک ، فتاوى حقانيه ج ٢صـ ٨٤)

❋ ❋ ❋

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والصلوة والسلام على من لانبي بعده

امابعد :

دمودوديت دفتنې مؤسس سيد ابو الاعلى مودودي دى، سيد ابوالأعلى مودودي درجب په دوهم تاريخ په ۱۳۲۱ هـ کې چې د ۱۹۰۳ ع ۲۵ دسمبر سره سمون خوري دهندوستان په حيدر آباد کې د اورنګ آباد به علاقه کې پيدا شو، بيادوالدينو سره ډهلي ته لاړو، د (۱۱) کالو په عمر کې اتم صنف کې په سکول کې داخل شو د (۱۷) کالو په عمر کې يې په صحافيت کې قدم کېښودلو په ۱۹۲۳ هـ کې يې دترجمان القرآن په نوم باندې روزنامه جاري کړه، په ۱۹۴۱ هـ کې يې دجماعت اسلامي په نوم باندې دتنظيم بنياد کېښودلو، په ۱۳۹۹ هـ کې دشوال په مياشت کې وفات شو .

مودودي صاحب په ابتداء کې ددين داقامت او الهي حکومت غوړي نعرې وهلې، لدې وجې ورسره ډېر اهل حق علماء هم يوځاى شو، لکه مولنا منظور نعماني رحمه الله، مولنا مناظر احسن ګيلاني رحمه الله مولنا عبد الماجد دريا ابادي رحمه الله وغيره، کله چې دوي په دې خبره باندې پوه شول چې په دې تنظيم کې داسلام نوم استعماليږي لکن دپردې ترشا يو ډېر غټ سازش دى نو بيا ترېنه جدا شول.

مودودي صاحب يو طرف ته دجماعت اسلامي رهبري کوله او بل طرفته په تصنيفاتو باندې مصروف وو او ډېر کتابونه يې وليکل، دټولو ځخه خطرناک کتابونه يې خلافت او ملوکيت، تفهيمات، او جاهليت وغيره دي، په قرآن کې دتحريف لپاره يې تفهيم القرآن وليکلو، دده دقلم دګذار اصلي نښې دانبياوو عليهم السلام ذوات، دصحابه وو رضوان الله عليهم ذوات او دامت داسلافو ذوات دي، دده په خلاف اهل حقو علماوو، ډېر کتابونه وليکل مثلاً :

(۱) فتنه مودوديت (شيخ الحديث مولنا زکريا رحمه الله )

(۲) مودوديت دستور اور عقائد (مولانا حسين احمد المدني رحمه الله )

(۳) الاستاد المودودي. (علامه محمد يوسف بنوري رحمه الله )

(۴) کشف حقيقت.(مولنا سعيد احمد رحمه الله )

(۵) مودودي صاحب کا ايک غلط فتوی (مولنا سرفراز خان صفدر رحمه الله )

(٦) تنقيد اور حق تنقيد (مولنا محمد يوسف لدهيانوي رحمه الله )

(۷) مودودي مذهب (مولنا قاضي مظهر حسين رحمه الله )

(۸) مودودي صاحب کا نصب العين (مولنا لال حسين اختر رحمه الله)

(۹) ائينه تحريک مودوديت (مولنا مفتي مهدي حسن رحمه الله )

(۱۰) حق پرست علما کي مودوديت سي ناراضگي (مولنا احمد علي لاهوري رحمه الله)

(۱۱) مکتوبات بسلسله مودوديت جماعت (مولنا حسين احمد المدني رحمه الله )

(۱۲) جماعت اسلامي سي مشاورت تک (مولنا منظور نعماني رحمه الله )

(۱۳) اظهار حقيقت بجواب خلافت وملوکيت (مولنا محمد اسحاق صديقي رحمه الله)

(۱۴) تقصيرات تفهيم (مولنا مفتي عزيز الرحمن رحمه الله ).

(۱۵) حضرت معاويه رضي الله عنه اور تاريخي حقائق (مفتي تقي عثماني رحمه الله)

(۱٦) تحريک مودوديت کي ايکسري رپورټ (مولنا عبد القدوس رومي رحمه الله)

(۱۷) مودوديت بي نقاب (مولانا عبد القدوس رمي رحمه الله )

(۱۸) عادلانه دفاع (مولنا سيد نور الحسن بخاري رحمه الله )

(۱۹) مودوديت کي غلط نظريات (جناب کريم الدين رحمه الله).

(۲۰) مقام صحابه کتاب وسنت کي روشني مين اور مولنا مودودي (ابو بکر غازي پوري رحمه الله وغيره.

ډير کتابونه دي، ددې ټولو کتابونو ديو ځو مضمونونو خلاصه به مونږ په پنځو عنوانو کې را ونغاړو.

**اول:** مودودي او دانبياو وتوهين، **دوهم**: دانبياو وعصمت **دريم** مودودي او دصحابه ووتوهين:

**څلورم**: دصحابه وو عدالت: **پنځم:** مودودي دعلماوو په نظر کې.

# مودودي او دانبیاوو علیهم السلام توهین

## د انبیاوو توهین:

رسول الله ﷺ د دجال په باره کې ډېر تفصیلي بیان کړی دی، یوازې په بخاري او په مسلم کې ۲۵ ځلې داحدیث راغلی دی.

(۱) مودودي د دجال په باره کې لیکي چې: دا د دجال وغیره خبرې أفسانې دي چې هیڅ شرعي حیثیت نه لري ترجمان القرآن ص ۱۸٦ رسایل ومسایل ص ۵۳ حصه اول طبع دویم.

(۲) مودودي لیکي چې: رسول الله ﷺ ته دا وېره وه چې دجال به یا د ده په زمانه کې را ظاهر شي او یا به په کومه نږدې زمانه کې را ظاهر شي، لکن ایا دې دیارلس نیم سوه کلونو دا خبره ثابته نه کړه چې دنبي ﷺ دا اندېښنه صحیح نه ده؟ (ترجمان القرآن ص ۳۱ ربیع الاول سنه ۱۳٦۵ هـ)

(۳) مودودي لیکي چې: الله تعالی د هرنبي څخه بالاراده په یو وخت کې خپل حفاظت لرې کوي او یو دوه لغزشه ترېنه صادرېږي. (تفهیمات ص ۵۰ حصه دوم طبع نمبر ٦ ص ۵۷ حصه دوم طبع ۱۷)

(۴) انبیاو په خپلو رأیو غلطې فیصلې هم کولې، مریضېدل به هم، امتحانونه به هم ورباندې راتلل، حتی چې تقصیرات ترېنه هم کېدل، او په هغې باندې سزاګانې هم ورکول کېدلې (ترجمان القرآن ص ۱۵۸ مئ ۱۹۵۵ ع)

(۵) رسول الله ﷺ نه فوق البشر دی او نه دبشري کمزوریو څخه بالاتر دی. (ترجمان القرآن اپریل ۱۹۷٦ خطباب ص ۸)

(٦) لکن په وعظ او په تلقین کې دناکامۍ څخه وروسته د اسلام داعي په لاس کې توره راواخستله. (الجهاد فی الاسلام ص ۱۷۴)

## دحضرت داود عليه السلام توهين :

(۷) دحضرت داود عليه السلام په فعل کې دنفساني خواهش مداخله وه، داود عليه السلام ددې سره هم تعلق لرلو چې حاکمانه اقتدار بې ځايه استعمال کړي او دا داسې کار دی چې په حقه باندې حکومت کونکی يې نه خوښوي. (تعليم القرآن صـ۳۲۷ ج ۴ طبع اول)

(۸) ددې نفسي شرير د رهزنۍ خطرې ډېر کرتې پيغمبرانو ته هم پېښې شوي دي، لکه څرنګه چې جليل القدر پيغمبر داود عليه السلام ته ورباندې په يو ځای کې تنبيه ورکړل شوه. (تفهيمات صـ۱۶۱ حصه اول طبع پنجم)

(۹) حضرت داود عليه السلام دخپلې زمانې داسرائيلي سوسايټۍ څخه متاثره شوی وو د أوريا څخه يې دطلاق غوښتنه وکړه. (تفهيمات صـ۴۲ حصه دوم طبع دوم)

. حلانکه پيغمبر ﷺ دمعاشرې داصلاح لپاره راليږل شوی وي، څوک چې دخپلې سوسيايټي په ذهني غلامۍ کې مبتلا کيږي هغه پيغمبر نه شي کيدلی.

## دحضرت أدم عليه السلام توهين:

(۱۰) بس يوې ناڅاپي جذبې ورباندې شيطاني اثار غالب کړل، نفس يې دکنټرول څخه ووتلو، دطاعت دبلندۍ څخه دمعصيت په کنده کې وغورزيدلو (تفهيم القرآن ج ۳ صـ ۱۳۳)

## دحضرت نوح عليه السلام توهين :

(۱۱) په نازکه نفسياتي موقع باندې دپيغمبر په شان، أعلی او أشرف انسان هم دلږ وخت لپاره دخپلې بشري کمزورې څخه مغلوبيږي.. لکن چې کله ورته الله تعالی تنبيه ورکړي چې کوم ځوی چې حق يې پريښې وي او دباطل سره يو ځای شوي وي، نو صرف ددې له وجې ورته ځوی ويل چې ستا دصلب څخه پيدا شوی دی محض يوه جاهلي جذبه ده، ته دهغه څخه خپل زړه بې پروا کړه، دهغې طرز فکر ته راشه کوم چې داسلام مقتضی ده (تفهيم القرآن ج ۲ صـ ۲۴۴ طبع سوم)

**دحضرت یوسف ؑ توهین:**

(۱۲) دحضرت یوسف ؑ دديٍ ارشاد په باره کې چې (اجعلني علی خزائن الارض) مودودي صاحب ليکي چې: دا صرف دما ليې وزارت مطالبه نه ده، لکه څرنګه چې دبعضو خلکو خيال دی، بلکه دا دډکټيټر شپ مطالبه ده او دددې په نتيجه کې يوسف ؑ ته تقريبا هغه پوزيشن حاصل شو کوم پوزيشن چې نن سبا په إټلی کې مسؤلیني ته حاصل دی (تفهيمات صـ۱۲۲ حصه دوهم طبع پنځم ۱۹۷۰).

**دحضرت یونس ؑ توهين :**

(۱۳) ديونس ؑ څخه درسالت دتبليغ په ادا کولو کې کوتاهي وشوه، غالبا دوي دبې صبری له وجې دوخت څخه مخکې خپل ځای پرېښودلو (تفهيم القرآن ج ۲ صـ ۳۱۳.۳۱۲)

**دحضرت موسی ؑ توهين :**

(۱۴) دحضرت موسی ؑ مثال دهغه أوتر فاتح دی چې دخپل قدرت دمظبوطو لو څخه بغير مارچ کوي او بيا شاته ځنګل کې ورپسې داو وربه شان بغاوت راپورته شي (ترجمان القرآن صـ ۵ سپتمبر ۱۹۴٦م)

(۱۵) بيا دغه اسرائيلي شپونکي ته ګوره چې مقدسې وادي طوی ته راوغوښتلی شو، خبرې ورسره وشوې هغه هم دعامو شپونکيو په شان نه (رسايل ومسائل صـ ۳۱ حصه اول طبع دوم)

(۱٦) دپيغمبری څخه مخکې دموسی ؑ څخه هم غټه ګناه وشوه، يو انسان يې ووژلو (ايضاصـ۳۱ حصه اول)

**نوټ:** دا قتل عمدا نه وو او بيا هغه مقتول حربي کافر وو چې په هر صورت باندې يې قتل جايز وو.

**مودودي اود تحريف عقيده:**

(۱۷) مودودي ليکي چې دقرآن بنيادي اصطلاحګانې څلوردي، دقران دنزول په وخت کې چې ددوي کومې اصلي معناګانې وی هغه رورو بدليدلی، تردې چې دقران په اصل مطلب باندې پوهيدل مشکل شو نو

اوس حقیقت دادی چې د قرآن په دې بنیادي اصطلاحګانو باندې د پردې د پریوتلو په وجه د قرآن حقیقي روح په ځلورو کې درې برخې د سترګو څخه پټ دی. (قرآن کې بنیادي اصطلاحین ص۴. ص۶).

## مسئلة عصمت الأنبياء

**معنى العصمت:** عصمت د مادو د معصیت څخه پاکۍ ته وایي ، مادې د معصیت دوه دي، نفس او شیطان، نو معصوم هغه چاته وایي چې ظاهراً او باطنًا د نفس او د شیطان د مداخلې څخه پاک وي یعنې معصوم هغه چاته وایي چې په اعتقاداتو، اراداتو، أخلاقو، عباداتو، معاملاتو، عاداتو، اقوالو، افعالو، او احوالو کې د نفس او د شیطان د مداخلې څخه محفوظ وي.

**معنى المعصيت:** معصیت هغه مخالفت ته وایي چې عمداً وي او انبیاء عمداً د الله د حکم مخالفت نه کوي، لهذا انبیاوو ته معصیت نه منسوبیږي، په کوم ځای کې چې د ذنب او یا د معصیت نسبت غیر نبي ته وشي نو هلته ترینه حقیقي معنی مراده وي او په کوم ځای کې چې د ذنب او یا د معصیت نسبت انبیاوو ته شوی وی نو هلته حقیقي معنی نوي مراد، د مضاف الیه په اعتبار سره د مضاف معنی بدلیږي، لکه محبت: چې مضاف الیه یې زوجه شي نو بیائی یو مفهوم وي او چې مضاف الیه یې اولاد شي نو بیائی بل مفهوم وي، همداسې د ذنب نسبت چې نبي ته وشي نو د دې څخه :

۱- کله مراد د افضل پرېښودل او د فاضل اختیارول وي.

۲- او کله ترینه اجتهادي خطائی مراد وي

۳- او کله ترینه د قرب حق ښکته مرتبه مراد وي، د الله جل جلاله د قرب ډیر مراتب او مدارج دي، پیغمبر په هره لمحه کې دیوی مرتبې څخه بلې مرتبې ته ترقي کوي، نو چې کله مخکې مرتبې ته ورسیږي نو په وروستنۍ مرتبه کې ورته قصور په نظر ورشي او په ذنب سره ترینه تعبیر وکړي.

ادم علیه السلام ته چې د معصیت نسبت شوی دی لکه: (وَعَصَىٰٓ ءَادَمُ رَبَّهُۥ فَغَوَىٰ) نو دلته د معصیت حقیقتي معنی نده مراد، ځکه چې أدم علیه السلام عمداً د الله جل جلاله د حکم مخالفت نه وو کړی، بلکې:

۱- یا یې نسیاناً د ممنوع بوټي څخه خوراک کړی وو، الله جل جلاله فرمایي چې: (فَنَسِيَ وَلَمْ نَجِدْ لَهُۥ عَزْمًا).

۲-یایې محبتاً کړی وو دقرب خداوندي دخلود لپاره یې دممنوع بوټي څخه خوراک وکړو لکه فرمایي شیطان ورته ویلی چې (وَقَالَ مَا نَهٰكُمَا رَبُّكُمَا عَنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَا مَلَكَيْنِ اَوْ تَكُوْنَا مِنَ الْخٰلِدِيْنَ)

۳-یایې عظمتاً کړی وو، الله جل جلاله فرمایي چې شیطان ورته قسم وکړو (وَقَاسَمَهُمَآ اِنِّيْ لَكُمَا لَمِنَ النّٰصِحِيْنَ) دحضرت أدم علیه السلام په تصور کې هم دانه راتله چې څوک به دالله جل جلاله نوم اخلي او دروغ به وایي.

۴-یا اراده یې دطاعت اوقرب خداوندی وه لکن شیطان دوکه کړو الله جل جلاله فرمایي چې: (فَدَلّٰىهُمَا بِغُرُوْرٍ) خلاصه دا چې دممنوع بوټي څخه خوراک (۱) یا نسیانًا وو (۲) یا خطأً وو (۳) یا محبتاً وو (۴) یا تعظیماً وو.

فانقیل: چې بیا أنبیاو و استغفار ولې کولو ؟

قلنا: استغفار دګناه له وجې نه وو بلکې ذوق الطاعت یې ډیر اوچت وو، نو استغفار دذوق دطاعت دبلندی له وجې وو، لکه یو سړی ټوله شپه اوده یې او سهار ورته استغفار هم نه وي یاد ، داځکه چې دطاعت ذوق یې ښکته وي اویو بل سړی ټوله شپه تهجد وکړي لکن بیا هم ویریږي چې دا عبادات مې دګناهونو په فهرست کې ونه شمیرل شي نو سهار استغفار کوی الله جل جلاله فرمایي چې:(كَانُوْا قَلِيْلًا مِّنَ الَّيْلِ مَا يَهْجَعُوْنَ وَبِالْاَسْحَارِ هُمْ يَسْتَغْفِرُوْنَ) نو همدارنګه أنبیاو و هم کله دزیات فضیلت والا عمل پرېښې وي او د کم فضیلت عمل یې مختاره کړی وي، یایې اجتهادي خطایې کړي وي، یا دقرب حق د اوچتې مرتبې په نسبت یې ښکته مرتبې ته کتلی وي او دایې خپل تقصیر ګڼلی وي، نو دا دعدم عصمت دلیل نه وي، بلکې دا دانبیاو و دطاعت دذوق د بلندی دلیل دی.

فانقیل: چې دأنبیاو و استغفار په ګناه نه دی بناء نو پکار دی چې الله جل جلاله ورته فرمایلی وي چې تاسو خو ګناه نه ده کړی نو دمعافی څه ضرورت دی ؟ حالانکې الله جل جلاله ورته داسې نه وایي بلکې همیشه دانبیاو و دتوبې ذکر کوي.

قلنا: الله جل جلاله دمزاجونو خالق دی، هغه جل جلاله ته دانبیاو و مزاج معلوم دی چې په داسې ویلو سره دانبیاو و تشفي نه کیږي، لهذا ورته یې وفرمایل چې زه! بالفرض که ومنو چې تاسو ګناه کړی ده نو بیا هم ما معاف کړی یې.

## متعلقات العصمت

امام رازي رحمه الله فرمايي چې: دعصمت تعلق دڅلورو شيانو سره دی، اول: عقايد، دوهم: تبليغ الأحكام، دريم: اجتهاديات، څلورم افعال.

**اول قسم، عقايد:** انبياء قبل النبوت او بعد النبوت په عقائدو کې معصوم دي، انبياء قبل النبوت دولايت په أوچته مرتبه کې دي، لهذا قبل النبوت يې هم شرک او کفر نه دی کړی، نه عمداً اونه خطاً. الله جل جلاله فرمايي چې: (وَلَقَدْ اٰتَيْنَآ اِبْرٰهِيْمَ رُشْدَهٗ مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا بِهٖ عٰلِمِيْنَ ۝).

**دوهم قسم، تبليغ الأحكام:** انبياء په تبليغ دااحکامو کې هم معصوم دي، داحکامو په تبليغ کې يې نه قصداً کومه غلطي کړې ده اونه سهواً، کنه بيابه په وحې الهي باندې اعتماد ختم شي، همداوجه ده چې دوحې الهي دنزول په وخت کې به د ملايکو پيره وه، لپاره د دې چې الهي وحې دشيطان دمداخلې څخه محفوظه شي، الله جل جلاله فرمايي چې: (عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا ۝).

**دريم قسم، اجتهاديات:** کله به دانتظار دوحې څخه وروسته نبي صلى الله عليه وسلم په أمورو غير منصوصه وو کې اجتهاد کولو.. کله که به په اجتهاد کې خطايئ راغله نو سمدستي به دالله جل جلاله طرفه ورته اطلاع کيدله، دانا ممکنه ده چې دانبياوو څخه دې اجتهادي خطايي شوي وي او دالله جل جلاله طرفه دې ورته اطلاع نه وي ميلاو شوې.

**خلورم قسم، أفعال:** نو داهل سنت والجماعت مسلک دا دی چې أنبياء دکبائرو څخه بالکليه پاک او معصوم دي، البته سهواً او نسياناً ترينه دداسې أمورو صادريدل ممکن دي چې صورةً صغائر ښکاري، لکن په حقيقت کې هغه صغيره هم نه وي بلکې اصل مقصود دکوم حکم تشريح وي، نو صورةً معصيت وي خو په حقيقت کې نعمت او رحمت وی، لکه أدم عليه السلام چې دممنوع بوټي څخه خوراک وکړو، نو صورةً معصيت وو، لکن په حقيقت کې يو نعمت وو ځکه چې أصل مقصود گناهګارانو ته دتوبې او داستغفار دطريقې خودل وو، چې اوس دټولو تائبينو او مستغفرينو په ثواب کې شريک دی، العارف الرباني عبدالوهاب الشعراني فرمايي چې دالله جل جلاله په علم کې سعادت او شقاوت دواړه مقدر وو، دالله جل جلاله دحکمت تقاضی داوه چې د سعادت افتتاح هم وشي او دشقاوت افتتاح هم وشي، نو دسعادت افتتاح يې دأدم عليه السلام په لاس وکړه، اود شقاوت افتتاح يې دابليس لعين په لاس وکړه، په حديث کې راځي چې چاچې يو سنت حسنه جاري کړو نو څو مره اجراو ثواب چې پړدې

سنت باندې عمل کونکي ته ورکول کيږي ،همدومره اجر او ثواب ، ددې سنت جاری کونکی ته ورکول کيږي نو آدم علیه السلام امام المتضرعين والمستغفرين دی ځکه چې دتوبی ، استغفار او تضرع سنت يې جاري کړل، نو ترقیامته پورې دتائبينو او مستغفرينو په ثواب کې شریک دی او ابلیس امام المستکبرین دی نو ترقیامته پورې دمستکبرينو په گناه کې شريک دی.

## دانبياء وو دعصمت او داولياء وو دحفاظت په مابين کې فرق

۱-انبياء هر وخت دالله جل جلاله په دربار کې مقیم وي، دالله جلّ جلاله، جلال او عظمت هر وخت ددوی په نظرونو کې وي او اولياء دالله جل جلاله دربار ته ځي راځي لکن مقيم نه دي، لهذا انبياء معصوم دي او اولياء محفوظ دي. ۲-ولايت دتقوی او طهارت يو سند دی او نبوت عهده او منصب دی. ۳-اولياء اکثر دمباحاتو او جايزو أمورو ارتکاب کوي، لکن منشاء ورته طبعي ميلان او خواهش وي او انبياء چې دکوم مباح او جایز کار ارتکاب کوي نو منشأ ورته طبعي ميلان او خواهش نه وي، بلکی مقصود تعليم وي، مباح او جايز کار ددې لپاره کوي چې خلک پوه شي چې دا مباح دی، او دا تعليم فرض دی لهذا نبي صلی الله علیه وسلم ته دمباح کار په کولو هم دفرضو ثواب ورکول کيږي.

## دأنبياوو دعصمت دلائل

**اول دليل:** قال الله تعالى ۱- ﴿مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ﴾ ۲- همدارنګه: ﴿اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَ رُسُلِهٖ وَ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّفَرِّقُوْا بَيْنَ اللّٰهِ وَ رُسُلِهٖ وَ يَقُوْلُوْنَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَّ نَكْفُرُ بِبَعْضٍ وَّ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَّخِذُوْا بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا﴾ ۳- همدارنګه ﴿وَ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَ الرَّسُوْلَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ﴾ په اول آيت کې يې درسول الله صلی الله عليه وسلم اطاعت ته دالله جل جلاله اطاعت ويلی دی او په دوهم آیت کې يې دالله اودرسول صلی الله عليه وسلم په مابين کې دتفريق څخه منعه کړې ده، او داخبره ظاهره ده چې دغير معصوم اطاعت عين اطاعت خداوندی نه شي کيدلی، همدارنګه درسول الله صلی الله علیه وسلم او دالله جل جلاله داطاعت په مابين کې عينيت هلته ممکن دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم دالله جل جلاله دمعصيت څخه بالکل پاک وی او دمعصيت څخه پاکی ته معصوميت وايي اوپه دريم آيت کې يې على الاطلاق درسول الله صلی الله عليه وسلم داطاعت حکم کری دی او په دې يې درحمت وعده فرمايلی ده ، اوعلى الاطلاق دغير معصوم داطاعت حکم نه ورکول کيږي . ګوره! خليفه غير معصوم وي نو داطاعت حکم يې شته خو

على الاطلاق نه دى بلكې يو معياريې ورته مقرر كړى دى چې: السَّمْعُ وَالطَّاعَةُ حَقٌّ مَا لَمْ يُؤْمَرْ بِالْمَعْصِيَةِ، فَإِذَا أُمِرَ بِمَعْصِيَةٍ، فَلَا سَمْعَ وَلَا طَاعَةَ). (صحيح البخارى).

اود نبي صلى الله عليه وسلم د اطاعت لپاره يې دا قيد نه دى لګولى چې مالم يؤمر بمعصية، ددې څخه معلوميږي چې دنبي صلى الله عليه وسلم فعل معصيت نه شي كيدلى.

**دوهم دليل:** عاصى فاسق وي، او فاسق مردود الشهادة وي، الله جل جلاله فرمايي چې: ﴿إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا﴾ اونبي صلى الله عليه وسلم به دقيامت په ورځ شاهد وي الله جل جلاله فرمايي چې: ﴿فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا﴾ نو چې نبي صلى الله عليه وسلم مقبول الشهادة وي نو عاصي به نه وي بلكې معصوم به وي.

**دريم دليل:** عاصي مستحق دعذاب او دلعنت وي الله جل جلاله فرمايي چې (وَمَنْ يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَيَتَعَدَّ حُدُودَهُ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيهَا وَلَهُ عَذَابٌ مُهِينٌ ۞ همدارنګه الله جل جلاله فرمايي چې: (أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ ۞) او دعذاب اودلعنت مستحق ولى نه شي كيدلى نو نبي صلى الله عليه وسلم خو په طريق اولى نه شي كيدلى.

**څلورم دليل:** نبي صلى الله عليه وسلم بل چاته داطاعت حكم كوى نو كه خپله مطيع نه شي بلكې عاصي شي نو ددې آيت مصداق به شي چې (أَتَأْمُرُونَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ أَنْفُسَكُمْ وَأَنْتُمْ تَتْلُونَ الْكِتَابَ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ۞) همدارنګه (لِمَ تَقُولُونَ مَا لَا تَفْعَلُونَ ۞) حالانكې ددې آيت مصداق ولي نه شي كيدلى نبي خو په طريق أولى نه شي كيدلى.

**پنځم دليل:** عاصي ته تنبيه ،زجر، او توبيخ وركول جايز دي او نبي صلى الله عليه وسلم ته نه دي جايز، نو نتيجه داشوه چې نبي صلى الله عليه وسلم عاصي نه دى او چې عاصي نه شو نو معصوم شو، نبى صلى الله عليه وسلم ته زجر، او توبيخ وركول ځكه نه دى جايز چې الله جل جلاله فرمايي چې: (إِنَّ الَّذِينَ يُؤْذُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ لَعَنَهُمُ اللَّهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ) همدارنګه فرمايي چې : (وَالَّذِينَ يُؤْذُونَ رَسُولَ اللَّهِ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ۞).

**شپږم دليل:** عاصي مستحق دغضب او عتاب وي او چې څومره مرتبه اوچتيږي نو همدومره استحقاق دغضب او عتاب زياتيږي الله جل جلاله دنبي صلى الله عليه وسلم بيبيانو ته فرمايي چې (يٰنِسَآءَ النَّبِيِّ مَنْ يَّاْتِ مِنْكُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ يُّضٰعَفْ لَهَا الْعَذَابُ ضِعْفَيْنِ).

نوبالفرض که نبي عاصي شي نو دزيات غضب او عتاب مستحق به شي اود نفس غضب او عتاب مستحق نبي نه شي کيدلی نو دزيات غضب او عتاب مستحق خو په طريق أولی نه شي کيدلی لهذا نبي عاصي نه شي کيدلی او څوک چې عاصي نه شي کيدلی هغه معصوم وي.

**اووم دليل:** معصيت هميشه داتباع دشيطان له وجې صادريږي، الله جل جلاله فرمايي چې (وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ اِبْلِيْسُ ظَنَّهٗ فَاتَّبَعُوْهُ اِلَّا فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ) نو که نبي غير معصوم شي نو متبِع دشيطان به شي (معاذالله).

**اتم دليل:** الله جل جلاله دشيطان داتباع څخه يوډله دمؤمنانو مستثنی کړې ده، الله جل جلاله فرمايي چې (وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ اِبْلِيْسُ ظَنَّهٗ فَاتَّبَعُوْهُ اِلَّا فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ) نو يو ډله دمؤمنانو دشيطان متبعه نه ده اوکه نبي صلى الله عليه وسلم غير معصوم شي نو متبع دشيطان به شي او غير متبع دشيطان دمتبع دشيطان څخه افضل وي، الله جل جلاله فرمايي چې (اِنَّ اَكْرَمَكُمْ عِنْدَ اللّٰهِ اَتْقٰكُمْ) نو که نبي غير معصوم شي نو دمؤمنانو يو ډله به دنبي صلى الله عليه وسلم څخه افضله شي.

**نهم دليل:** بندګان په دوه قسمه دي ۱-حزب الشيطان، الله جل جلاله فرمايي چې (اُولٰٓئِكَ حِزْبُ الشَّيْطٰنِ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ) ۲-حزب الله، الله جل جلاله فرمايي (اُولٰٓئِكَ حِزْبُ اللّٰهِ اَلَآ اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ)، نو که دنبي صلى الله عليه وسلم څخه معاصي صادر شي نو معاذالله دحزب الله اود مفلحينو په ځای به په حزب الشيطان اوخاسرينو کې داخل شي.

**لسم دليل:** انبياء من کل الوجوه دمخلصينو مصداق دی، الله جل جلاله ديوسف عليه وسلم په باره کې فرمايي چې: (اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُخْلَصِيْنَ) همدارنګه دابراهيم عليه وسلم، اسحق عليه وسلم او يعقوب عليه وسلم په باره کې فرمايي چې (اِنَّآ اَخْلَصْنٰهُمْ بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى الدَّارِ) او مخلصين دشيطان داغواء څخه محفوظ وي، الله جل جلاله

دشیطان حکایت کوی چې (قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۙ اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ) نو انبياء مخلصين دي او مخلصين دشيطاني اثراتو څخه محفوظ وي او دشيطاني أثراتو څخه محفوظ معصوم وي لهذا انبياء معصوم دي.

**يوولسم دليل:** أنبياء من كل الوجوه دمصطفينو مصداق دي، الله جل جلاله فرمايي چې : (وَاِنَّهُمْ عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْاَخْيَارِ ۞) او من كل الوجوه مصطفى او مجبتى والى دمعاصيو سره منافي او مباين دى.

**دولسم دليل:** الله جل جلاله دانبياوو په باره کې فرمايي چې يسارعون فى الخيرات، په الخيرات کې الف لام داستغراق لپاره دى نو دانبياء وو څخه د خير محض څخه بغير بل شى نه صادر يږي.

**ديارلسم دليل:** عاصي شرعًا أو عرفًا ظالم دى او ظالم نبى اورسول نه شى کيدلى، الله جل جلاله فرمايي چې : (لَا يَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ ۞) نو که د عهد څخه نبوت مراد شي بياخو ظاهر ده چې ظالم نبي او رسول نه شى کيدلى او که دعهد څخه ولايت مراد شي نو بياخو په طريق اولى سره نبي صلى الله عليه وسلم ظالم نه شى کيدلى، ځکه چې ولي چې ظالم نه شي کيدلى نو دنبوت مرتبه خو دنفس ولايت څخه اوچته ده نو نبي په طريقې أولى ظالم نه شي کيدلى.

**څوارلسم دليل:** دنبي صلى الله عليه وسلم په وظايفو کې يوه وظيفه تزکيه ده، الله جل جلاله فرمايي چې: (هُوَ الَّذِيْ بَعَثَ فِي الْاُمِّيّٖنَ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۗ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ۙ).

اوس که نبي خپله دمعصيت څخه پاک نه وي (معاذالله) نو دبل چا لپاره به څرنګه مزکي او مطهّر شي؟

**پنځلسم دليل:** نبي صلى الله عليه وسلم دمخلوق لپاره دالله داطاعت او د اخلاقو مقتدى او اسوة حسنه وي الله جل جلاله فرمايي چې: (لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِيْ رَسُوْلِ اللّٰهِ اُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَنْ كَانَ يَرْجُوا اللّٰهَ وَالْيَوْمَ الْاٰخِرَ وَذَكَرَ اللّٰهَ كَثِيْرًا ۙ) او د اطاعت او د اخلاقو مقتدى او اسوة حسنة هغه شخص وي چې پخپله دمعاصيو څخه پاک وي.

**شپاړسم دليل:** دنبي صلى الله عليه وسلم تقرير حجت دى او تقرير ديته وايي چې دنبي صلى الله عليه وسلم په مخکى يو کار وشي او نبي صلى الله عليه وسلم ورباندې سکوت وکړي، نو چې دنبي صلى الله عليه وسلم سکوت يو عمل دمعصيت څخه خارجوي نو دا به څرنګه ممکنه شي چې دنبي صلى الله عليه وسلم کوم فعل معصيت شي؟

**اولسم دليل:** دنبي صلی الله علیه وسلم اتباع دالله جل جلاله دمحبت لپاره معيار دی، الله جل جلاله فرمايي چې: (قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ يُحْبِبْكُمُ اللّٰهُ) او دنبي صلی الله علیه وسلم اتباع به هلته دالله جل جلاله دمحبت لپاره معيار شي او هلته به دمغفرت سبب شي چې نبي صلی الله علیه وسلم معصوم شي ځکه چې دعاصي اتباع خو دالله جل جلاله دمحبت سبب نه شي کيدلی او نه دالله جل جلاله دمغفرت سبب کيدلی شي.

**اتلسم دليل:** رسول الله ﷺ په خپله وينا او په خپل عمل کې د وحې پابند دی، الله تعالی فرمايي چې (وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى) همدارنګه فرمايي چې (اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰى اِلَيَّ) او څوک چې په خپله وينا او پخپل عمل کې د وحې پابند وي دهغه څخه به څرنګه دګنا تصور وشي؟ وحی خو ګناه نه شي کيدلی.

**نولسم دليل:** نبي ﷺ به په پخپل امت بلکه په ټولو انسانانو باندې شاهد وي، الله تعالی فرمايي چې: (وَ جِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰؤُلَآءِ شَهِيْدًا) او شاهد عادل وي، نو اوس که پيغمبر ﷺ معصوم نه شي نو بيا خو به معاذ الله فاسق او مردود الشهادة شي.

**شلم دليل:** حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي چې ما به چې دنبي ﷺ څخه هر څه واوريدل نو هغه به مې ليکل نو خلکو ماته وويل چې ته هر څه ليکې؟ حال دا چې کله نبي ﷺ دخوشحالی او کله دغم په حالت کې وي نو ماليکل پريښودل او نبي ﷺ ته مې دا واقعه تيره کړه، نبي ﷺ وفرمايل چې (اُكْتُبْ فَوَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ مَا يَخْرُجُ مِنْهُ اِلَّا حَقٌّ) ابو داود ج ۲ص ۵۱۴ مسند احمد رقم ۶۵۱۰) ليکه په هغه الله تعالی مې دی قسم وي چې زما روح دهغه په قبضه کې دی، نه را ووزي زما دخولې څخه مګر حق را وزي، نو د ټولو څخه زيات ه ګناه دژبې څخه را وزي او دچا ژبه چې دالله تعالی په حفاظت کې وي دهغې ژبې څخه به دګناه تصور څرنګه وکړی شي؟

**يويشتم دليل:** امام قرطبي ليکي چې: أَنَّ جَمِيعَ الْأَنْبِيَاءِ صَلَوَاتُ اللّٰهِ عَلَيْهِمْ مَعْصُومُونَ عَنِ الْخَطَأِ وَالْغَلَطِ فِي اجْتِهَادِهِمْ (تفسير قرطبی ج:۲).

**دوه ويشتم دليل:** قَالَ الإمام ابوحنيفة رحمه الله والأنبياء عليهم الصلاة والسلام كلهم منزهون عن الصغائر والكبائر والكفر والقبائح (الفقه الاكبر: ص:۲، والعقيدة الحنيفة: ص:۲۰۳).

**درويشتم دليل:** قال القاضي عياض ذهب طائفة من محققي الفقهاء والمتكلمين الى العصمة عن الصغائر كالعصمة في الكبائر (نبراس صـ۲۸۳)

## مودودي او دصحابه وو رضى الله عنهم توهين

(۱) مودودي ليکي چې که ديو انسان احترام دا وي چې دده په هيڅ اړخ باندې به اعتراض نه کيږي نو مونږ دېته احترام نه وايو بلکه دېته مونږ بت پرستي وايو او دبت پرستي ختمول دجماعت اسلامي په اهمو منشورونو کې دی (ترجمان القرآن بحواله مکتوبات شيخ الاسلام ج ۳صـ ۳۹۴)

(۲) د رسول الله څخه بغير بل هيڅ انسان هم دحق لپاره معيار نه دی او نه څوک دتنقيد څخه خلاص دی (دستور جماعت اسلامي صـ۱۴)

(۳) دخلفاء راشدينو فيصلې هم په اسلام کې دقانون حيثيت نه لري، کومې چې هغوي دقاضي په حيث کړی دی. (ترجمان القرآن جنوري ۱۹۸۵م) حالانکه دا نظر د(عليکم بسنتي وسنة الخلفاء) څخه مخالف دی.

(۴) دمديني انصار صحابه رضى الله عنهم ديهودو داخلاقو څخه متأثره وه او ددې تأثر دا نتيجه وه چې بعضې انصارو دخپلو مهاجروورنو لپاره خپلې بيبيانې طلاقې کړې او هغوي ته يې ورکړي (تفهيمات صـ۳۵) حصه دوهم) يعنې په صحابه وو باندې د يهودو اخلاق غالب وو دنبي ﷺ اخلاق ورباندې نه وو غالب.

(۵) دا حد په ميدان کې دمسلمانانو دشکست سبب دا وو چې په دوي کې صبر کم وو او دبعضو څخه بعضې داسې غلطيانې هم شوې وې چې دالله تعالى د وېرې څخه خلاف وې (تفهيم القرآن ج اص۲۸۷طبع ۱۱)

(٦) ايا دا کمې او زياتې نه دی چې دصحابه وو غلطيانې صرف دصحابيت دلحاظ له وجې په اجتهادي خطائي باندې ورحمل کړو؟ (خلافت وملوکيت صـ ۱۴۳)

**دحضرت عثمان رضي الله عنه توهين:**

(۷) په حضرت عثمان رضي الله عنه باندې چې دا دخلافت غټ بوج واچولی شو نو دا دهغو خصوصياتو حامل نه وو دکومو چې دده څخه مخکينو ته ورکړل شوی وو (تجديد واحياء دين صـ ۲۳)

(۸) حضرت عثمان ﷺ پخپل خلافت کې خپلوي پالله، خپلو خپلوانو ته يې غټې غټې چوکۍ ورکړې او ددوي سره يې خصوصي رعايت کولو، چې دعامو خلکو سره يې هغسې نه کول، له دې وجې دعامو خلکو داعتراض هدف شو. (خلافت وملوکيت ص ۱۰۶ طبع دوم)

**نوټ:** دحضرت عثمان ﷺ دخلافت لاندې (۴۴) لکه مربع ميله زمکه وه، په دې کې په سلګونو واليان وو، دحضرت عثمان ﷺ خپلوان په کې صرف پنځه کسان وو او هغه هم دده دخلافت ځنځه مخکښې واليان وو، حضرت عثمان ﷺ صرف عبدالله بن عامر ﷺ دبصرې والي مقرر کړی وو.

(۹) دمثال په طور باندې حضرت عثمان ﷺ دا فريقې دغنيمت ځنځه پنځه لکه دينا ره مروان ته ورکړل (خلافت وملوکيت ص ۱۰۶)

نوټ مودودي حواله په ابن خلدون ورکړې ده، حالانکه ابن خلدون دا واقعه دوه ځايه ليکلې ده او سخت رد يې ورباندې کړی دی، هغه فرمايي چې: (وبعض الناس يقول اعطاه اياه ولايصح) حضرت عثمان ﷺ چې څه ورکول نو دخپل مال څخه يې ورکول، دمسلمانانو مال يې نه دځان لپاره جائز ګڼلو او نه دبل چا لپاره (تاريخ طبري ج ۵ ص ۱۰۳)

(۱۰) دحضرت عثمان ﷺ دپاليسۍ دا اړخ يقيني چې غلط وو او غلط کار په هر صورت غلط وي هغه که هر چا کړی وي، دصحابي غلطۍ ته غلطي نه ويل او محملو نه ورته لټول نه دعقل تقاضی ده او نه ددين تقاضا ده (خلافت وملوکيت ص ۱۶)

## دحضرت معاويه ﷺ توهين

(۱۱) حضرت معاويه دا سنت بدل کړل، سنت دا وو چې دمعاهد ديت به دمسلمان برابر وي او حضرت معاويه ﷺ دا نيم کړو او پاتې نيم ديت يې دخپل ځان لپاره اخستل شروع کړل، خلافت وملوکيت ص ۱۷۳)

نوټ: مودودي ابن کثير ته دروغژن روايت منسوب کړی دی، دا ټول روايت دحديثو او دفقې په کتابونو کې شته، دهغې ځنځه صفا معلوميږي چې حضرت معاويه ﷺ پاتې نيم ديت دخپل ذاتي استعمال لپاره نه اخستلو، بلکه بيت المال ته يې حواله کولو. (بداية المجتهد ج ۲ ص ۴۱۴)

(۱۲) دحضرت معاويـه ﷺ پـه زمانـه کې يـو ډېر خراب بدعت دا شروع شو چې خپلـه ده او دده واليانو به دمنبر په سر باندې دحضرت علي ﷺ پسې کنځلې کولی، حتی چې په مسجد نبوي کې به هم د رسـول الله ﷺ دمنبر پـه سر بانـدې دا کنځلې کيدلې، دحضرت علي ﷺ اولادونـو او خپلوانـو بـه اورېدلې، کنځلې کـول شريعت خـولا پـه ځـای پرېږده دانساني اخلاقـو څخه هم مخالفې دي. (خلافت وملوکيت صـ ۱۷۳ طبع ۲۳

نوټ: مودودي دلته په پنځو کتابونو باندې حواله ورکړې ده، حالانکه پـه هغـه پنځـه واړه کتابونو کې دا خبره بالکل نشته.

(۱۳) دغنيمت دتقسيم پـه معامله کې هم حضرت معاويـه دکتـاب او دسنت دصريحو احکامو څخه مخالفت کولو ... حضرت معاويه ﷺ حکم کړی وو چې دغنيمت دمال څخه دی سپين زر او سره زر دده لپاره جدا شي او باقي مال دې دشريعت دقاعدې مطابق تقسيم شي (خلافت وملوکيت صـ ۱۷۳ طبع ۲۳)

**نوټ:** دتاريخ پـه يـو کمزوري کتاب کې هم دا خبره نشته چې حضرت معاويـه ﷺ دی ددې حکم کړی وي.

### دحضرت عائشې ﷺ اود حضرت حفصې ﷺ توهين:

دواړه پـه نبي ﷺ بانـدې زوروې وی اونبي ﷺ سره بـه يې زبـان درازي کولـه (هفت روزه ايشيا لاهور ۱۹ جنوري ۱۹۶۷م بحواله دوه بهائي صـ ۵۸)

**متعه جائزه ده:** دمجبورۍ په حالت کې متعه جائزه ده (ترجمان القرآن اګست صـ ۵۵)

## دصحابه وو کرامو عدالت

دجرحې او دتعديل امامان دهر راوي په باره کې دجرحې اود تعديل بحث کوي، لکن دصحابه ووکرامو په باره کې د ټولو اتفاقي فيصله داده چې (الصحابة کلهم عدول) ځکه چې دصحابه وو تعديل الله تعالی او رسول الله ﷺ پخپله کړی دی، اوس چې څوک صحابه کرام دعامو انسانانو په شان ګڼي او صرف دانسان په صفت يې پېژني نو دا دصحابه کرامو توهين کوي، علامه خطيب بغدادي په الکفاية

في علم الروايت کې دامام ابو زرعه رحمه الله مقوله رانقلوي چې: (اذا رأيت الرجل ينتقص احـدا مـن اصحاب رسول الله ﷺ فاعلم انه زنديق ) ص٤١).

الله تعالى دصحابه و و ايمـان دعـامو انسـانانو دايمان لپاره معيـار گرزولى دى، الله تعـالى فرمـايي چې: (امنوا كما امن الناس/ البقره ١٣)

الله تعالى چې په دنيا کې ديو پوره جماعت څخه دخپلې رضا اعلان كړى دى هغه يو اځې دصحابه وجماعت دى الله تعـالى فرمـايي: (رضـى الله عـنهم ورضوا عنـه) او الله تعـالى دصحابه و و دعـدالت شاهدي ورکوي، الله تعالى فرمايي: اولئک کتب في قلوبهم الايمان وأيّدهم بروح منه. (المجادله اية ٢٢)

همدارنگه په بل ځاى کې فرمـايي چې: اولئک الذين امتحن الله قلوبهم للتقـوى لهـم مغفـرة واجـر كبير) (الحجرات اية ٣).

رسول الله ﷺ په ډېرو احاديثو کې دصحابه و وكرامو تعديل كوي او د حق لپاره يې معيار گرزوي.

(١) عليكم بسنتي وسنة الخلفاء ، الحديث ترمذي رقم ٢٦٧٦ )

(٢) أصحابي كالنجوم بايهم اقتديتم اهتديتم (جامع الاصول في احاديث الرسول ٦٣٦٩)

(٣) لاتمس النار مسلما رأني او رأى من رأني (ترمذي رقم ٣٨٥٨ )

(٤) اقتدوا بالذين من بعدي أبي بكر وعمر ، (طبراني رقم ٤٥٠٨ )

(٥) الله الله في اصحابي لاتتخذوهم من بعدي غرضـا فمـن أحـبهم فبحـبي أحـبهم ومـن أبغضهم فببغضي أبغضهم ومن اذاهم فقد أذاني ومن أذاني فقد أذى الله و مـن أذى الله فيوشـك أن يأخذه (ترمذي رقم ٣٨٦٢).

(٦) ان الله اختارني وأختارلي اصحابا وانصارا وانـه سـيخرج في أخـر الزمـان قـوم ينتقصـونهم فلاتؤاكلوهم ولاتشاربوهم ولاتجالسوهم ولاتصلوا عليهم ولاتصلوا معهم (جامع الاحاديث رقم ٦٦٢٣).

(٧) من سب اصحابي فعليه لعنة الله والملائكة والناس اجمعين (طبراني رقم ١٢٧٠٩)

## په صحابه وو کرامو باندې داعتراض کونکو حکم

(۱) امام ابو زرعه فرمايي چې څوک چې په صحابه وو، باندې تنقيد کوي هغه زنديق دی (الکفاية للخطيب ص۴۱).

(۲) امام مالک رحمه الله فرمايي چې څوک چې په صحابه وو باندې دکفر اود فسق الزام لګوي هغه قتل کړئ او که ددې څخه علاوه بله کنځل ورته کوي نو هغه ته سخته سزا ورکړئ (مکتوبات امام رباني، دفتر اول، مکتوب نمبر ۲۵۱).

(۳) امام نووي رحمه الله فرمايي چې زمونږ او د جمهورو مذهب دا دی چې څوک چې دصحابه کرامو بدي بيانوي هغه ته سزا ورکړئ (شرح مسلم ج ۲ ص ۳۱۰).

(۴) امام اعظم رحمه الله فرمايي چې: يا دصحابه وو ښه ذکر کوئ ايا ژبې بندې کړئ (الصارم المسلول ۱۷۷).

### مودودي داکابرو علماوو په نظر کې:

(۱) مولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمايي چې: زما زړه دا تحريک نه قبلوي. (روزنامه احسان لاهور ۱۱ستمبر ۱۹۴۸).

(۲) مولنا حسين احمد المدني رحمه الله فرمايي چې: تراوسه پورې مونږ دمودودي او دده دنام نهاد جماعت اسلامي د اصولي غلطيانو ذکر وکړو کوم چې انتهائي درجه ګمراه کونکي وو، اوس به زه دقرآن او دسنت څخه دده ښکاره مخالفتونه ذکر کړم دهغې څخه به دا ښکاره شي چې مودودي نه قرآن مني او نه سنت مني بلکې هغه دسلفو صالحينو په خلاف يو نوی مذهب جوړوي او په هغې باندې خلک روانوي او دوزخ ته يې رسوي. (مکتوبات بسلسله مودودي جماعت، اشرف السوانح ۴/ ۲۴).

(۳) مولنا احمد علي لاهوري رحمه الله فرمايي چې: داسلام وروڼو ! دمودودي تحريک ته دغور په نظر باندې وګورئ، دده دکتابونو څخه چې کوم شی ثابتيږي هغه دادی چې مودودي صاحب مسلمانانو ته يو نوی اسلام پيش کوي او معاذ الله نوی اسلام به خلک هغه وخت قبول کړي چې کله دزوړ اسلام ديوالونه راونړوي او په دې خبره يې يقين راشي چې ديارلس سوه کلن زوړ اسلام دعمل کولو قابل نه دی. (حق پرست علماء کے مودودی سے ناراضگی کے اسباب ص۔ ۴)

(۴) ددیوبند ځلوېښت کلن مهتمم قاري محمد طیب رحمه الله فرمایي چې: مودودي دخپل جماعت په دستور کې لیکي چې د رسول الله ﷺ څخه بغیر بل هیڅوک دحق لپاره معیار نه دی او نه دتنقید څخه بالاتر دی، چې په دې کې صحابه کرام هم شامل دي، او بیا یې په صحابه کرامو باندې عملاً تنقید و نه کړې دي، بلکه تر یو حده پورې یې خپل ځان ته دحق معیار ویلی دی (مودودی دستور اور عقائد کا حقیقت ص ۱۸)

(۵) مولنا شمس الحق افغاني رحمه الله فرمایي چې: دمودودي په تحریراتو باندې مې نظر واچولو زه دمودودي دنوي اسلام څخه مطمئن نه یم.

(۶) مولنا غورغشتو رحمه الله فرمایي چې: مودودي ضال او مضل دی.

(۷) مولانا عبد الحق اکوړه خټک فرمایي چې: دمودودي عقائد داهل سنت والجماعة څخه خلاف او ګمراه کن دي، مسلمانان دې ددې فتنې څخه دځان دساتلو کوشش وکړي.

❋ ❋ ❋

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده. امابعد! :

محترموا مسلمانانو ! کله کله دیوسړي ځوی غټ شي لکن حرامي او نافرمان وي، خپل پلار ته په سپک نظر باندې ګوري او ازار وي يې، همدارنګه نن سبا د اولياوو بعضې روحاني اولادونه هم همغه د حراميانو بچيانو په شان خپلو روحاني پلرونو ته په سپک نظر باندې ګوري.

د تصوف دشمنان يا لامذهبه اهلحديث دي، يا مودوديان دي او يا د اشاعة التوحيد والسنة بعضې مماتيان دي ،او يا د ډاکټر عثماني ډله عثمانيان دي ، او دا ټلور واړه ډلې دهند و پاک د پنجاب پيداوار دی ،او پنجاب ديو نامور صوفي او ولي حضرت علي هجويري رحمه الله په لاس باندې مسلمان شوی دی چې د داتا ګنج بخش لاهوري المتوفي ۴۶۵ ھ په نوم باندې ياديږي .

عجيبه دا ده چې د چا په لاس باندې چې ته مسلمان شوی؟ هغه کافر او مشرک او بدعتي شو او ته صفا ستره مسلمان شوی، چې هغوي مشرکان او بدعتيان وونو تا ته په دې ټوارلسمه صدی کې چا صحيح اسلام دروښودلو ؟ ايا ملائک درته راغلل او که نوی وحی دباندې نازله شوه ؟

د مشهورو اولياوو په تاريخ باندې چې نظر واچوو نو لاندې اولياء په نظر راځي:

**اوله صدئ:** دصحابه وو او دتابعينو وه .

**دوهمه صدئ:** حضرت ابراهيم ابن ادهم رحمه الله (۱٦۲ ھ) حضرت رابعة البصري رحمه الله (۱۸۵ م) وغيرهما.

**دريمه صدی:** حضرت معروف کرخي رحمه الله (۲۰٦ م)حضرت ذوالنون البصري رحمه الله(۲۴۵ م) حضرت سرسقطي رحمه الله(۳۵۹ م) حضرت بايزيد بسطامي رحمه الله(۲٦۱ م)حضرت عبدالله ترمذي رحمه الله (۲۸۵ م) حضرت جنيد بغدادي رحمه الله(۲۹۸ م)

**څلوره صدی:** حضرت ابو بکر شبلي رحمه الله (۳۳۴ م)

**پنځمه صدی :** حضرت علي هجويري رحمه الله المعروف بداتا ګنج بخش المتوفي (۴٦۵ ھ) حضرت ابو اسماعيل هروي رحمه الله(۴۸۱ م)

**شپږمه صدي:** حضرت خواجه معين الدين چشتي اجميري رحمه الله (٦٣٣ م) خواجه بختيار كاكي رحمه الله (٦٣٤ م) محمد بن عربي رحمه الله (٦٣٨ ه) خواجه فريد الدين رحمه الله ګنج شكر رحمه الله (٦٧٠ م) مولنا جلال الدين رومي رحمه الله (٦٧٣ م)

**اومه صدي:** خواجه نظام الدين اولياء رحمه الله (٧٦٥ م) جواد حسن دهلوي رحمه الله (٦٧٣ م)

**اتمه صدي:** شاه مدار رحمه الله (٨٥٠ م) شاسينا لكنوي رحمه الله (٨٠٠ م)

**نهمه صدي:** خواجه باقي بالله رحمه الله (١٠١٢ م)

**لسمه صدي:** حضرت عبد الحق محدث الدهلوي رحمه الله (١٠٥٢ م)

**يوولسمه صدي** شاه عبد لرحيم رحمه الله (١٣٣١ م) شاه ابو الرضاء رحمه الله (١١٠٠ هـ) شاه ولى الله رحمه الله (١١٧٦ هـ)

**دولسمه صدي:** شاه عبد العزيز رحمه الله (١٢٣٩ هـ) شاه اسماعيل رحمه الله (٢٤٦ هـ) سيد احمد شهيد رحمه الله (١٢٤٩ م) وغيره.

**ځوارلسمه صدي:** د ولي الله د خاندان خادمان.

دا خلک د اسلام علمبرداران وو او ددوي په بركت باندې دلته اسلام پاتې دی، نو ايا ددوي سره اصل دين نه وو؟ بلكه په تاسو باندې په پنجاب كې نوې وحی راغله.

## دتصوف متعلق يو څو مسائل

١- دتصوف څخه په قرآن او په حديث كې په احسان او په تزكيه باندې تعبير شوی دی، نو دتصوف معنى احسان او تزكيه ده او احسان او تزكيه په قران او په حديث كې ډېره زياته راغلې ده، لكه دتوحيد معنى چې په قران كې ډېره راغلې ده لكن خپله دتوحيد لفظ په قران كې نشته.

د احسان د مرتبې حصول په هر مسلمان باندې ضروري دی، رسول الله رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي: (أن تعبد الله كأنک تراه) اوس دا مرتبه په ذكر الهی سره پيدا كيږي، نو ځينو مشايخو چې كوم اذكار د احسان د مرتبې د حصول لپاره مقرر كړي دي هغه محض آلات دي چې د احسان مرتبه پرې حاصليږي او په الاتو او معالجاتو كې دا ضروري نه ده چې د شارع څخه دې منقول وي، يوازې دا ضروري ده چې د شريعت مطهره سره ټكر نه وي.

وقال الشاه ولی الله محدث الدهلوی رَحِمَهُ اللّٰهُ : واستفاض عن رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان الناس كانوا يبايعونه تارةً على الهجرة والجهاد وتارةً على اقامة اركان الاسلام الخ (شفاء العليل ترجمة القول الجميل ، صـ ١٥، الفصل الأول)

په بل ځای کې فرمايي چې: فاعلم أن البيعة سنة وليس بواجبة (شفاء العليل ترجمة القول الجميل صـ ٢١، الفصل الثانی)

قال العلامه فقير الله الحنفی رَحِمَهُ اللّٰهُ : وهی سنة ليست بواجبة لان الناس بايعوا النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وتقربوا بها الى الله تعالى وما وجدنا الدليل على تأثم تاركها ولم ينكر أحد من الائمة المهديين من الصحابة والتابيعن على تاركها فكان الاجماع السكوتی على انها ليست بواجبة آه (قطب الارشاد صـ ٥٤٣، بحث تكرار البيعة ماثورة)

٢-وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ ﷺ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِنْ أَصْحَابِهِ: "بَايِعُوْنِي عَلٰى أَنْ لَا تُشْرِكُوْا بِاللّٰهِ شَيْئًا وَلَا تَسْرِقُوْ...(الحديث، متفق عليه، (مشكوة: كتاب الايمان: ١٧ حديث)

دلته رسول الله ﷺ د صحابه وو څخه بيعت على الاعمال اخلي ا و دا بيعت على الاسلام نه وو ځکه چې هغه مخکې اخستل شوی وو (٢) بيعت على الجهاد هم نه وو کما في الحديبيه (٣) بيعت الخلافت هم نه وو (۴) دا بيعت الطريقة وو، د بيعت الطريقة معنى دا ده چې يو کامل شيخ او پير ته لاس په لاس کې ورکړي او د معاصي وو د ترک او د طاعاتو د التزام عقد ورسره وکړي او ورته ووايي چې زه به ستا په راهنمائي کې خپل ظاهر او باطن د شريعت سره مطابق کووم.

## د شيخ د تصور حکم

د تصوف په سلسله کې د شيخ تصور جائز دی او که نه؟ بهتره دا ده چې د علاج او دوا په توګه استعمال شي، نه د ثواب په توګه، ځکه چې په دې سره د ذاکر زړه او فکر مجتمع کيږي او د شيخ د تصور په نتيجه کې د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عظمت په زړه کې کښيني، کوم چې د تعلق مع الله له بنيادي عواملو څخه دی.

لما قال شاه ولی الله رَحِمَهُ اللَّهُ : قالوا والركن الاعظم ربطه القلب بالشيخ على وصف المحبة والتعظيم وملاحقة صورته (شفاء العليل ترجمة القران الجميل صـ ۸۰، الفصل الخامس) وقال العلامه شكار پوری رَحِمَهُ اللَّهُ:واذا غاب الشيخ عنه يخيل صورته فى خياله بوصف المحبة والتعظيم فانه يفيد فائدة صحبة (قطب الارشاد صـ ۵۵۸، الشغل العاشر، ومثله فى الكتاب البهجة السنية فى آداب الطريقة العالية النقشبندية صـ ٤٢)

## دكرامت تعريف

هغه خارق العادة او عجيب شی چې داسبابو د دائرې لاندې نه وي او ديو ولي څخه صادر شي يعنې دداسې شخص څخه صادر شي چې هغه دسنتو پوره باند او كامل التقوى وي .

## خوارق

دعادة څخه مخالف كارونه دلاندې خلكو څخه صادرېدلی شي .

(۱) بعضې كافران چې دعوه دخدائي يې كړې وي، لكه دجال، دې خوارقو ته استدراج وايي.

(۲) بعضې كافران چې دعوه دپيغمبری يې كړی وي لكه مسيلمة الكذاب، دې خوارقو ته اهانت وايي ، لكن دا په ياد لرئ چې دمدعي دالوهيت خوارق دده ددعوې سره مطابق كېدلی شي، لكه ددجال خوارق به همغسې وي لكه څرنګه چې دده دعوه وي او دا ځكه چې دجال انسان دی، دانسان په شان خوراك اوڅښاك او بول او براز كوي، نو كه دده خوارق دده دعوې سره مطابق شي بيا يې هم دالله تعالى سره التباس نه راځي ، لكن د دروغژن كافر مدعي دنبوت خوارق دده ددعوې سره مطابق نه شي كېدلی، ځكه چې بيا يې درشتيني پيغمبر سره التباس راځي ، لكه دمسيلمة الكذاب خوارق چې دده ددعوې سره مخالف وويو سړی په يوه سترګه ړوند وو چې ده ورته دعاء وكړه نو هغه بله سترګه يې هم ړنده شوه.

(۳) دريښتني پيغمبر دپيغمبری دزمانې څخه مخكې خوارقو ته ارهاصات وايي.

(۴) دريښتني پيغمبر دپيغمبری څخه وروسته خوارقو ته معجزات وايي .

(۵) دنفس مؤمن څخه صادر شوو خوارقو ته معونت وايي .

(٦) دكامل مؤمن څخه صادر شوو خوارقو ته چې ظاهراً او باطناً دسنتو او دشريعت پابند وي

نو دفاسقانو، چرسیانو، بې نمازانو څخه که خوارق صادر شو نو هغه کرامت نه دی، بلکې استدراج او جادو دی، مثلا یو سړی مونځ نه کوي او یا چرس او بله نشه کوي او په هوا باندې واولوتلو او یا یې بل عجیب کار وکړو نو هغه جادوګر دي ولې نه دی، الله تعالی داولیاوو تعریف داسې کوي چې: (ان اولیاءه الا المتقون).

## دکرامت یوڅو مسائل

(۱) کرامت په دوه قسمه دی، اول: حسي دوهم: معنوي، عوام حسي کرامت پېژني او همدې ته کمال وایي، لکه دیو چا په پټو خبرو باندې خبرېدل، د اوبو په سرباندې تېرېدل، په هوا کې اولوتل وغیره، لکن دخواصو په نیز کمال کرامت معنوي دی، یعنې په شریعت باندې استقامت، مکارم الاخلاق، التزام الطاعات، تخلی عن الرزائل، او تحلي بالفضائل، دحسد، کینې، بغض، دروغو، او نمامت څخه پرهیز کول او هیڅ وخت دالله تعالی څخه په غفلت کې نه تېرول او دا ځکه کمال دی چې په کرامت حسي کې داستدراج احتمال شته لکن په کرامت معنوي کې نشته، همدارنګه کرامت حسي ډېر کرتې دعجب او دتکبر لپاره سبب جوړېږي او په کرامت معنوي کې داشی نه وي، لـه دې وجې کاملین اکثر دا تمنا کوي چې په دنیا کې دې ددوي څخه کرامت حسي صادر نه شي.

(۲) په کرامت باندې دمخکې څخه نه دولي علم ضروري دي او نه قصد، بلکه کله نه علم وي او نه قصد او کله وي، دعلم او دقصد په اعتبار سره کرامت په درې قسمه دی، اول: چې په کرامت باندې د ولي علم هم وي او قصد یې هم ورته کړی وي، لکه دحضرت عمر ﷺ په فرمان باندې د دریائې نیل روانېدل، دوهم دا چې علم وي لکن قصد نه وي، لکه بي بي مریمې ته بې موسمه مېوې راتلل، دریم: دا چې نه علم او نه قصد وي لکه ابوبکر صدیق ﷺ چې دمیلمنو سره ډوډۍ خوړله او ډوډۍ ددوچندۍ څخه څو چنده زیاتېدله ابو بکر صدیق ﷺ حیران وو، نه یې مخکې علم وو او نه یې قصد وو، اول قسم ته تصرف او همت وایي

(۳) بعضې علماء فرمایي چې: دکرامت لپاره یو خاص حد شته دی او کوم کارونه چې ډېر غټ دي نو دهغوي صدور دکرامت په طریقه باندې ممتنع دی، لکه بغیر د والدینو څخه د اولاد پیدا کېدل، یاً دملائکو سره خبرې کول او یا دیوې ډلې څخه حیوانات جوړېدل، لکن محققین علماء فرمایي چې

دکرامت لپاره حد نشته دی ځکه چې کرامت دالله تعالی فعل دی او د ولي دعزت لپاره یې د ولي په لاس باندې صرف ظهور راغلی دی او دالله تعالی دقدرت لپاره حد نشته او که ته وایي چې بیا یې دمعجزې سره فرق رانغلو، نو جواب دا دی چې کله دکرامت خاوند وایي چې زه دنبي ﷺ غلام یم او دا هرڅه چې ظاهر شوي دي دنبي ﷺ داتباع له وجې دي، نو بیا هیڅ التباس نشته، البته دومره ضروري ده چې په کرامت باندې د محال شرعي صادرېدل محال دي، لکه دقرآن دمثل راوړل.

(۴) په ولي باندې دخپل کرامت پټول واجب دي، لکن چې کله یې ښکاره کولو ته ضرورت وي نو بیا یې ښکاره کول جایز دي، مثلا دغیب څخه اجازت، یاغلبة الحال، یادکوم مرید دیقین تقویت، وغیره

(۵) بعضې کامل اولیاء دعبودیت او درضا په مقام کې وي، نو دهغوي حسي کرامتونه چاته نه ښکاري او بعضو ته الله تعالی دتصرف قوت ورکړی وي، نو دهغوي کرامتونه خلکو ته ښکاري، لهذا د ولایت لپاره دحسي کرامت وجود او یا ظهور نه دی ضروري.

(٦) دبعضو اولیاوو څخه د وفات څخه وروسته هم تصرفات او کرامتونه صادر شوي دي، لکه دقبر دخاورو څخه خوشبوي تلل، په قبر باندې انوار راورېدل، خبرې کول، وغیره، داسې واقعات دتواتر مرتبې ته رسیدلی دي، لکه داصحاب کهف کرامتونه، دا د الله تعالی فعل دی او په دې کې هیڅ خفاء نشته.

(۷) کرامت هغه خارق او عجیب کار ته وایي چې دطبعي اسبابو سره یې هیڅ تعلق نه وي برابره خبره ده چې هغه سبب جلي وي او که خفي، بعضې خلک هر عجیب کار ته کرامت وایي او دعامل په کمال باندې عقیده ساتي نن سبا داسې ډېر عجائب دي چې د اسبابو خفیه وو سره تعلق لري، نو هغه کرامت نشي کېدلی، مثلا : حاضرات، عملیات، نقوش، شعبدات، تاثیرات، عجیبه ادویات، چشم بندي، سحر، طلسمات، وغیره، په دوي کې دبعضو اثار خیالي وي او د بعضو واقعي هم وي، لکن دا ټول داسبابو طبعیه وو خفیه وو سره تعلق لري، دحق طالب په قوي نظر سره دا معلوموي چې دا کار دقوة طبعیه په وجه دی او که دقوة قدسیه په وجه دی او که محض کاین عن الغیب دی، نو صرف دا دریم قسم کرامت دی.

(۸) د ولي لپاره دا شرط نه دی چې هیڅ ګناه به یې نه وي کړي، بلکه هغه هم ولي دي چې که احیانا ترېنه ګناه وشي او چې کله متوجه شي او یا متنبه شي نو فوراً تو به أوباسي.

## دکشف او دکرامت په منيځ کې فرق

(۱) دکشف حاصل دا دی چې کوم واقعات چې په عالم المثال کې کيږي او دعامو نظرونو څخه پناه وي هغه دچا نظر ته راشي او ويې ګوري او غالبا چې سړی ځان دما دياتو او تعلقاتو څخه فارغ کړي، نو بيا ددې ليدل هيڅ بعيد نه دي، له دې وجې دا د ولي څخه هم کېدلی شي او دغير ولي څخه هم، بلکې د ليوني څخه هم کېدلی شي، حتی چې دکافر څخه هم کېدلی شي، لکن کرامت فقط د ولي څخه صادرېږي، ځکه چې کرامت خداوندي اعزاز دی چې هغه صرف ولي ته ورکول کيږي.

البته دا خبره په ياد لرئ چې همدغه کشف يو ولي ته کله په طريقې دکرامت باندې هم کيږي، نو دېته بيا کشف بطريق الکرامت وايي او ددې کشف بطريق الکرامة لپاره علامه داده چې ددې سره تواضع، عاجزي، او انکساري وي، دکوم کشف سره چې دا نه وي بلکې په نفس کې دفخر احساس ورسره راشي نو دا بيا کشف بطريق الکرامة نه دی بلکې استدراج دی، چې پناه غوښتل ترېنه پکار دی.

(۲) دکشف لپاره اصل دا قول د رسول الله دی چې: (ان تعبد الله کانک تراه) داسې عبادة وکړه لکه الله تعالی چې درته ښکاري، په دې کې دالله تعالی دتجلياتو دمشاهدې ذکر شته دی، لکن دهرې هرې جزئي مشاهدې ذکر په قرآن او يا په حديث کې نه دي ضروري، لکه مطلق خوب چې په قرآن او په حديث کې راغلی دی لکن دهر هر جزئي خوب ذکر په قرآن او په حديث کې نه دی ضروري، اوس دخوب په باره کې حکم دا دی چې خپل خوب به شريعت ته پېش کړی که د احکامو شريعه وو سره موافق وو، نو قبول به يې کړی او که مخالف وو، نو رد به يې کړی او که شريعت ترېنه ساکت وو، نو هغه به صرف د خوب په مرتبه کې منی نه به ترينه عقيده ثابتوی او نه کوم حکم شرعي، همدا حال دکشف هم دی چې شريعت ته به يې پيش کړی که ورسره موافق وو قبول به يې کړی که ترېنه مخالف وو، رد به يې کړی او که شريعت ترېنه ساکت وو نو صرف دکشف په مرتبه کې به يې منی نه به وربانديې عقيده ثابتوی او نه کوم حکم شرعي لدې وجې موږ د اوليا وکشفونه صرف دکشفو نو په مرتبه کې منو ددې تعلق نه دعقائدو سره شته او نه د احکامو وشرعيه وو سره بلکه دا د احوالو سره تعلق لري.

## قطب

دقطب لپاره دوه اقسام دي (۱) قطب التکوین (۲) قطب الارشاد .

قطب التکوین په تکویناتو کې کار کوي او قطب الارشاد هغه وي کوم ته دشریعت په معامله کې ټول رجوع کوي او کوم سړي ته چې الله تعالی دتکوینیت او دشریعت په مابین کې جامعیت په نصیب کړي وي هغه ته غوث ویلی شي ، دغوث الاعظم دلفظ استعمال شرک نه دی، الله تعالی باران ته غیث ویلي دی، الله تعالی فرمايي: ﴿وَهُوَ الَّذِي يُنَزِّلُ الْغَيْثَ مِنْ بَعْدِ مَا قَنَطُوا﴾(سورة شوری)

نو باران ته له دې وجې غیث ویلی شوی دی چې دا دالله تعالی درحمت سبب دی، نو همدارنګه اؤلیاء هم درحمت دښورولو ذریعه ده له دې وجې ورته غوث ویلی شي.

## حلول

عثمانیان صوفیه کرامو ته درې عقیدې منسوبوي، کومو ته چې اتحاد ثلاثه وايي ، (۱) حلول (۲) وحدة الوجود (۳) وحدة الشهود .

**حلول:** عثماني چې صوفیا کرامو ته کومه عقیده دحلول منسوبوي دا بالکل دروغ دي، کامل ولي حضرت سید علي هجویري ګنج بخش رحمه الله په کشف المحجوب کې دحلول لپاره مستقل باب لګولی دی ، په نوم د (حلولي فرقې بیان)

او فرمايي چې ددې فرقې والا کافر دي، شیخ اکبر په الفتوحات المکیه کې فرمايي چې : (واما لقول بالحول فهو من مقالات اهل الكفر والجهول.

اصل خبره دا ده چې صوفیا کرام دالله تعالی دصفاتو دظهور قائل دي، دظهور او دحلول په مابین کې دومره فرق دی لکه څومره فرق چې دزمکې او داسمان په مابین کې دی او لکه څومره چې دکفر او داسلام په مابین کې دی .

**عام الفهم مثال:**

(۱) ګوره چې په اوبو کې واچوی نو دګوړې نوم ختم شي او د اوبو نوم هم ختم شي او د مجموعي نوم شربت شی، دېته حلول وايي، مثلا د الله تعالى ذات او صفات په کوم مخلوق کې ننوزي چې خپل وجود او نوم يې ختم شي نو دا د کفر عقيده ده.

(۲) په يو جام کې چې اوبه واچوې او لمر ته يې کېدی، نو په دې اوبو کې لمر په نظر راځي، نو دا د لمر ظهور دی او ددې له وجې لمر په اوبو کې حل شوی نه دی او نه د لمر په وجود او په نوم کې څه فرق راغلی دی.

نو دا دنيا عالم الاسباب دی، له دې وجې خلک د هر شي نسبت د ظاهري اسبابو طرف ته کوي، مثلا يو سړی چې د ټرک لاندې شي او مړ شي نو خلک دده د مرګ لپاره سبب ټرک ياد وي، يا يو سړی اوږي وي او ډوډی او خوري او موړ شي نو خلک ډوډی ته د مړېدلو سبب وايي، همدا رنګه اوبو ته د تندې د ماتېدلو سبب وايي او يا روپو وغيره ته د عزت سبب وايي، لکن دا شيان خو حقيقي اسباب نه دي، بلکې ددې ظاهري اسبابو شاته د الله يو صفت دی، صوفيا کرامو ته هغه حقيقي صفت منکشف وي او فرمايي چې سړی د ټرک لاندې مړ شو لکن په حقيقت کې دلته د الله تعالى د يو صفت تجلی ده چې المميت ورته وايي، د ډوډی دخوراک څخه وروسته سړی موړ شو په ظاهر کې دا اثر په ډوډی باندې مرتب شو.

لکن په حقيقت کې دلته د الله تعالى د يو صفت تجلی وشوه چې الرزاق او المحي ورته وايي، په مومن کې د الله تعالى د الهادي صفت تجلی کوي او په کافر کې د المضل، يعنې د هر مخلوق شاته د الله تعالى د يو صفت تجلی ده چې دې عقېدې ته د ظهور عقيده وايي.

## وحدة الوجود

دا يو حقيقت دی چې هر کثرت د يو وحدت طرف ته راجع وي، مثلا په دنيا کې ډېر انسانان دي لکن ددې ټولو انسانانو د کثرة رجعه انسانٌ ته ده، چې دېته وحدت انسانيت وايي، ددې وحدت انسانيت څخه هيڅوک هم انکار نه کوي او ددې څخه هيڅوک دا معنی نه اخلي چې ددې انساني وحدت په وجه د مسلمان او د کافر په مابين کې فرق نشته.

ښځه او خاوند دوحدت انسانيت په وجه يو دي، لكن بيا هم ددوي احكام جدا جدا دي، همدارنګه په حيواناتو كې كثرت دى، لكن بيا هم ددې ټول كثرت رجعه يو وحدت ته ده چې حيوانيت دى.

همدارنګه په افغانانو كې كثرة دى لكن ددې كثرة رجعه يو وحدت ته ده چې افغانيت دى، خلك وايي چې ټول يو افغان يو، لامذهبان، عثمانيان، مماتيان او خنزيران د اكثرة دى او رجعه يې يو وحدت ته ده چې حيوانيت دى، لكن بيآ هم ددوي په منځ كې فرق شته، هېڅوک هم داسې نه وايي چې لامذهبيان او مماتيان عين خنزيران دي، ددې ټخه وروسته وحدت دجسم مطلق دى، چې په دې كې دونو او دتيګو سره وحدت دى لكن هېڅوک هم ددې ټخه عينيت نه اخلي او هيڅ لامذهبه او مماتي دا نه وايي چې زه عين ونه او تيګه يم ددې ټخه پوزته غټ وحدت دوحدة الوجود دى ، لكه ټرنګه د الله تعالى لپاره وجود دى نو همدارنګه دمخلوق لپاره هم وجود دى، نو دوجود لاندې دواړه راغلل ، اګر چې يو وجود حقيقي او بالذات دى او بل بالعرض دى خو بيا هم دواړه موجود وي، لكن دا وحدت اتحاد او عينيت لره نه دى مستلزم، خالق خالق دى او مخلوق مخلوق دى ، لامذهبيان او مماتيان او عثمانيان وايي چې دوحدت الوجود معنى داده چې خالق مخلوق شو او مخلوق خالق شو (معاذ الله) نو لامذهبيان وحدة په معنى داتحاد سره وايي ، شيخ اكبر رحمه الله په الفتوحات المكيه كې فرمايي چې:( اما لقول بالاتحاد فهو من مقالات اهل الكفر والالحاد ) عجيبه خبره دا ده چې صوفيا كرام چې كومې خبرې ته كفر او الحاد وايي همغه عقيده خلک دوي ته منسوبوي، علاوه لا دا چې دا خو نه دعقيدې مسئله ده او نه د احكامو بلكه دا خو داحوالو مسئله ده (ترياق اكبر، بر زبان صدفر) .

د وحدت الوجوديوه توجيه دا هم ده چې د وحدة الوجود معنى ده لا موجود الا الله، د الله تعالى وجود حقيقي او بالذات دى او د مخلوق وجود عارضي او بالعطاء دى، يعنې د الله تعالى وجود كامل دى او د مخلوق وجود ناقص دى، او ناقص كالمعدوم وي، لكه: (لا فتى الا عليّ ولا سيف الا ذوالفقار) او چې د مخلوق وجود كالعدم شو نو يوازې د الله تعالى وجود پاتې شو.

## دتوحيد اقسام

يو توحيد ايماني دى چې (لامعبود الا الله) دالله تعالى څخه ماسوا بل معبود نشته، ددې څخه بغير انسان مؤمن نشي پاتې کېدلى، دوهم توحيد دخواصو دى، چې کله په صوفيا کرامو باندې دحال غلبه راشي نو لکه څرنګه چې په حديث کې ريا ته شرک ويلي شوى دى، نو دوي وايي چې (لامقصود الا الله) نو په چا کې چې دامرتبه دتوحيد وي فبها او که نه وي نونفى دايمان ترېنه نه راځي، دريم توحيد شهودي دى، چې کله کوم ولي دالله تعالى دتجلياتو په مشاهده کې مستغرق شي، نو بيا ده ته هيڅ شى په نظر نه ورځي، نو بيا وايي چې (لاموجود الاالله) نو دا دايمانياتو مسئله نه شوه، بلکه د احوالو سره يې تعلق پيدا کړو، نو د(لامعبود الا الله) په نفى باندې کفر راځي او د (لامقصود الا الله) په نفى باندې کفر نه راځي بلکې نفى داخلاص راځي او د (لاموجود الا الله) په نفى باندې نه کفر راځي او نه نفى داخلاص، بلکې داسې سړى د مشاهدې څخه محروم وي.

## وحدة الشهود

بعضې صوفيا کرامو دوحدة الوجود تعبير دعوامو لپاره مشکل وګڼلو، له دې وجې هغوي دعوامو دپوهولو لپاره په وحدة الشهود باندې تعبير وکړو.

لکه څرنګه چې دشپې په وخت کې ستوري پرکيږي، نو همدارنګه دا ستوري د ورځې هم په اسمان کې موجود وي، لکن د لمر په مقابله کې په نظر نه راځي، نو اګر چې ددوي وجود په اسمان کې شته، لکن دلمر په مقابل کې يې شهود نشته، نو همدارنګه دخالق او مخلوق حال هم دى دا دوحدة الشهود لپاره مثال دى.

تمت

واخر دعوانا ان الحمد لله رب العلمين

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لانبي بعده.
امابعد! :

# احمدرضاخان پيژندنه

احمدرضاخان دخالي د ورځې په ماسپښين کې په سنـــه (۱۲۷۲) هق لسم دشوال مطابق سنـــه ۱۸۵٦) م دهندوستان په يو ، پي صوبه کې دبريلي په ښار کې زيږيدلی دی (ملفوظات أعلى حضرت ج ١ صـ١٢)

داحمد رضا خان دخليفه ظفرالدين بهاري المتوفى ۱۳۸۲ هق دوينا مطابق داحمد رضاخان دنسب سلسله داسې ده.

عبدالمصطفى احمد رضاخان، ابن حضرت مولانا نقي علي خان ، ابن مولنا رضا علي خان ، ابن مولنا حافظ محمد کاظم علي خان ، ابن مولنا شاه محمد اعظم خان ، ابن حضرت محمد سعادت يار خان، ابن حضرت محمد سعيد الله خان .

دده اباء او اجداد دقندهار بړهيچ پښتانه وه ، (حيات أعلى حضرت ج ١ صـ٢) کله چې سرسخت رافضي نادرشاه ايراني أفشاري المتوفى (۱۱٦٠) هـق داسلامي حکومتونو دختمولو په اراده په (۱۱۴۲) هـق کې دفارس سني بادشاه اشرف ختم کړو ، او دهغه په ځای يې طهما سپ صفوي رافضي مقرر کړو نو تعصب يې ختم نشو ، بلکې کوشش يې وکړو چې دشيعه ګانو څخه بغير نور قومونه دايران څخه وباسي ، کابل اوقندهار ته هم ورسيدلو ، په (۱۱۵۰)هق) کال کې يې په لاهور باندې هم حمله وکړه او دديرش کرورو مالي غنيمت سره بيرته ايران ته واپس شو ، په دغه وخت کې دهندوستان حاکم دمغلو دخاندان يو کس وو په نو د روشن اختر (عرف محمد شاه المتوفى (۱۱٦۱)هق) نادرشاه اراده وکړه چې په هندوستان کې هم مسلمانان وژني نو دوه لکه فوج او پنځه زره توپونه يې دځان سره واخستل او په هندوستان باندې يې حمله وکړه .

داحمد رضاخان بريلوي خاندان هم په دې رافضي فوج کې شامل وو ، مشهور بريلوي مؤلف ابو المنصور حافظ محمد انور قادري ايم -أی ليکي چې داحمد رضا خان پنځم نيکه محمد سعيد الله خان په (۱۷۳۹)ع کې دنادرشاه په فوج کې هندوستان ته راغلو ، په ابتداء کې دلاهور په شيش محل کې او

سیدلو، وروسته ډهلي ته لاړو (اعلی حضرت مولانا احمد رضا خان ص۱۲) ظفر الدین بریلوي هم لیکي چې: سعید الله خان دنادر شاه په فوج کې ډهلي ته راغلو (حیات اعلی ج ا ص۱۳) نادرشاه په ډهلي کې قتل عام وکړو، وروسته د یوې معاهدې له مخې بیرته واپس شو او سعید الله خان ترینه په هندوستان کې پاتې شو او دمحمد شاه په خاصو معتمدینو کې کې شامل شو (حیات اعلی حضرت ج ا ص۱۳)

نو کیدی شي چې: نادرشاه ورته امر کړی وي چې دا په خپلو خاصو معتمدینو کې حساب کړه ترڅو چې نادرشاه ته دا ایجنټي کار وکړي، ورسته دسعید الله خان زوی سعادت یار خان دمحمد شاه وزیر شو او ډیرې زمکې یې لاس ته راوړې (حیات اعلی حضرت ج ا ص۱۳)

داحمد رضاخان ذریم نیکه کاظم علي خان دأصف الدوله وزیر وو اصف الدوله سرسخته رافضي شیعه وو، دډیرو بارګاهونو بنیاد یې ایښی وو، لکه امام بارګاه أصفیه، امام بارګاه حسین ابادي، درګاه حضرت امام حسین، درګاه حضرت عباس علم بردار وغیر، (هفت روزه شیعه لاهور مجله نمبر ۶۰ یکم مارچ ۱۹۸۲) نمبر ۱۷، ۱۸ ص۴)

اصف الدوله د(أودهٔ) په نوابانو کې وو د(اودهـ) دشیعه نوابانو په أهل سنت والجماعت باندې دظلمونو ډیر اوږد داستان دی، دداسې ظالمو روافضوا سره دمحمد کاظم غلی خان خواږه تعلقات وو تر دې چې وزیر یې وؤ.

دکاظم علی خان درې لورګانې وې او درې یې ځامن وو، حکیم نقي علی خان، رضاخان، جعفر علی خان، درضاخان بیا درې لورګانې او یو ځوی وو په نوم دنقي علي خان او دنقي علی خان دوه لورګانې وې او درې یې ځامن وو، محمد رضاخان، احمد رضاخان، حسن رضا خان. داحمد رضاخان اصل نوم محمد وو، بیا دکورنۍ په مشوره ورته نوم بدل کړی شو او احمد رضاخان انتخاب شو، لکن احمد رضاخان به دخپل نوم سره عبد المصطفی لیکلو (اعلی حضرت بریلوي ص۲۵)

## داحمد رضاخان استاذان

احمد رضاخان په کومه مدرسه کې مستقل درس ندی ویلی، بلکې اکثره دیني تعلیم یې په خپل کور کې کړی دی، دده اولنی استاذ مرزا غلام قادري وو، وروسته یې دخپل پلار مولوي نقي علي خان څخه علوم حاصل کړل، مولوي نقي علي خان هم دکومې مدرسې څخه نه وو فارغ شوی، هغه هم پخپل

کور کې سبقونه ویلي وو ، لکن ددې سره سره یې احمد رضاخان ته ددیارلسو کالو په عمر کې دستاربندي وکړه (المیزان امام احمد رضاصـ۳۳۷)

په تصوف کې یې هم دمارهره شریف څخه خلافت صرف په یوه ورځ کې حاصل کړې وو، (ملفوظات حصہ اول صـ۱۰۵) ددې تعلیم څخه وروسته یې علم هیئت او نجوم دمولانا عبدالعلي رامپوري څخه ولوستل او علم جفر یې دخپل مرشد مولانا ابوالحسین نوري څخه ولوستل (المیزان صـ۳۳۲)

احمد رضاخان وایي چې نسبت او اسناد په دوه قسمه دی، حقیقي: چې مسند الیه حقیقة متصف وي او مجازی : چې دغیر متصف طرفته دیوې علاقې له وجې نسبت وشی، لکه نهر ته جاري ویل یا جالس دسفینې ته متحرک ویل ، بیا حقیقی هم په دوه قسمه دی ،

ذاتی : چې دغیر په وجه موصوف شوی نه وي .

عطایي : چې بل چا (واسطې) موصوف کړی وي ، بیا کله هغه بل (واسطه) هم پدې وصف باندې موصوفه وي لکه واسطه فی الثبوت او کله نه وي موصوفه لکه واسطه فی الاثبات (الأمن والعلی صـ۱۵)

دلته احمد رضاخان دواسطې فی الاثبات غلط تعریف وکړو، په واسطه فی الاثبات کې واسطه او ذوالواسطه دواړه په صفت باندې متصف وي، لکه العالم حادث لانه متغیر، نو العالم ذوالواسطه ده او متغیر واسطه ده او حدوث صفت دی. چې واسطې (متغیر) ته بالذات او ذوالواسطې (العالم) ته بالواسطه ثابت دی.

**داحمد رضا خان اخلاقي ژبه:**

دمولنا رشید احمد گنگوهي رحمه الله او مولنا اشرف علی تهانوي رحمه الله په باره کې لیکي چې: *شریفہ ظریفہ رشیدہ رمیدہ نے اپنی اقبال وسیع سے ان کی ادبار پر ضیق کو فراخی حوصلہ کے لے سکھائی کہ چاہیں تو ایک منٹ میں اپنے مضمون کی (ایک ایک کتاب ) کاجواب لکھ دیں (خالص الاعتقاد ص- ۱۰)*

د (شریفه ظریفه) څخه یې مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله مراد دی او د (رشیده رمیده) څخه یې مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله مراد دی ، رمیده رنډې ښځې ته وایي د اقبال وسیع څخه عام قبولیت مراد دی او (ادبار) ددبر جمع ده وروستني اندام مخصوصه ته وایي ، (ضیق) تنګې لارې ته وایي او (فراخي حوصله) څخه یې مراد کولایدل دي.

دلکهنو دندوة العلماء په باره کې لیکي چې:

اسپ سنت ماده خر از بدعت اورده بهم
استر ندوه بدست ارند و مفخر می کند

حدائق بخشش حصه سوم (صـ ۳۲)

چې دسنتو اسپ دبدعت په خر باندې وخیژي، نو دندوه قچر ترینه پیدا شي، پدې باندې دندوه والا فخر کوي.

احمد رضاخان پدې ځای کې یوازې دندوې توهین نه دی کړی، بلکې دسنت توهین یې هم وکړو.

په یو ځای کې لیکي چې: دسید احمد، خلیل احمد او داشرف علی په کفر کې چې څوک شک کوي هغه هم کافر دی، (احکام شریعت)

څوک چې دنانوتوي او د دیوبندیانو په کفر کې شک کوي هغه هم کافر دی (عرفان شریعت ج ا صـ ۲۴)

## بریلویان دانګریزانو په خدمت کې

(۱) کله چې په هندوستان باندې دانګریزانو حکومت راغلو، نو شاه عبد العزیز رحمه الله دهندوستان په باره کې یوه فتوی جاری کړه چې: اوس هندوستان دارالحرب دی، ددې فتوی مطلب واضح وو چې هغه دانګریزانو په خلاف باندې دخلکو راپارول وو، ددې فتوی په رڼا کې مسلمانانو عملي جهاد شروع کړو، چې دشاه اسماعیل شهید رحمه الله او دسید احمد شهید رحمه الله دجهاد تحریکونه دهمدې فتوی نتیجه وه او همدا رنګه په هندوستان کې (۱۸۵۷)ع کال دازادۍ جنګ هم دهمدې فتوې نتیجه وه.

نو دشاه عبد العزیز رحمه الله ددې فتوې له وجې انګریزان هم په حرکت راغلل او داسې خلک یې راپیدا کړل چې دانګریزانو په خلاف جهاد ته یې حرام وویلې، په دوي کې بعضو جهاد ته منسوخ وویلې لکه قادیاني لعین او بعضې دانګریزانو په خلاف د اقدامي جهاد څخه منکر شول او دا کوشش یې وکړو چې دشاه عبد العزیز رحمه الله فتوی بی أثره شي، په دوي کې یو هم احمد رضاخان بریلي وو، احمد رضاخان دشاه عبد العزیز رحمه الله دجهاد دفتوی په خلاف او دانګریزانو په حمایت کې یو کتاب ولیکلو به نوم د (ألاعلام الاعلام بأنّ هندوستان دارالاسلام)

(۲) مسعود بریلوي لیکي چې: کله چې انګریزانو بې دریغه دمسلمانانو د وینو تویول شروع کړل، نو سرسید احمد خان دجهاد په خلاف یوه رساله ولیکله او دانګریزانو غوصه یې یو څه سړه کړه، په دغه

وخت کې سیاسي تقاضی هم همدا وه چې عوام او علماء من حیث القوم انګریزانو ته د خپلې وفادارۍ ثبوت پیش کړي.

شیعه ګانو هم د جهاد په خلاف رساله ولیکله او بریلویانو هم د انګریزانو په حمایت کې فتوی شایع کړه، په هغه وخت کې دوه ډلې علماوو یوې ډلې هندوستان ته دار الحرب ویلو او بلې ډلې ورته دار الاسلام ویلو (فاضل بریلوي او ترک موالات ص ۳۵)

(۳) ډاکټر مسعود بریلوي په بل ځای کې لیکي چې بریلوي علماوو د انګریزانو سره دوفادارۍ اعلان وکړو (یادګار دربار ۱۹۱۱ ع، حصه اول ص ۵۶۹)

(۴) مفتي انتظام الله شهابي اکبر ابادي بریلوي لیکي چې: د انګریزانو غټ خواهش دا وو چې څرنګه به مخور او خانداني علماء په انګریزي حکومت کې د افتاء منصب قبول کړي؟ ترڅو چې په شمالي هند کې انګریزي حکومت د خلکو په مابین کې مقبول شي، په هندوستانیانو کې د غټو څخه غټه عهده د صدر الصدور د عدالت وه، له دې وجې یې دا عهده اکابرو او افاضلو ته پیش کړه، ډهلي چونکې پخوانی دار السلطنت وو له دې وجې یې د دې ډیر اهتمام کولو او د دې عهدې ته یې د مولانا فضل حق والد فضل امام مقرر کړو، د هغه د وفات څخه وروسته یې دا عهده د ده شاګرد صدر الدین خان ازرده ته حواله کړه، په آخر کې مولانا فضل حق هم په لکهنو کې د انګریزي حکومت لخوا څخه صدر الصدور مقرر شو. (حیات علامه فضل حق خیرآبادي ص ۱۷)

(۵) کله چې شاه اسماعیل شهید رحمه الله او سید احمد شهید رحمه الله د الله تعالی د دین د دفاع په خاطر د جهاد میدان ته راوتلي وو، نو انګریزانو د دې لپاره چې خلکو ته وښایي چې زمونږ حکومت د اسلام په خلاف نه دی نو کوشش یې وکړو چې په حکومت کې علماء داخل کړي چې د غیر مقلدینو تر څنګ یې بریلیانو ته هم په حکومت کې ښه پراخه برخه ورکړه.

په ډهلي کې دبیر الدولة فرید الدین (۱۲۴۴)هق

منشی زین الدین (۱۲۷۳)

مفتی صدر الدین آزروده (۱۲۷۵)هق

مولوي فضل امام خیرابادي (۱۲۴۴)هـق

په بد ایو آن کې مولوي فضل رسول (۱۲۸۹) هـق

په مراد اباد کې مولوي عبدالقادر چیف رام پوري (۱۲۶۵)هـق

په آله آباد کې مفتی اسد الله ((۱۳۰۰) هـق

په کلکته کې قاضی نجم الدین خان کاکوري (۱۲۲۹)هـق

او دده ځامن قاضي سعید الدین (۱۲۶۲)هـق

مولوي حکیم الدین (۱۲۶۹) هـق

قاضي علم الدین (۱۲۵۷)هـق

په مدارس کې قاضي ارتضاء علی ګوپاموي (۱۲۷۰)هـق

داهغه بریلوي علماء دي چې دافتاء او دصدر الصدور په عهد و سره یې انګریزي حکومت ته تقویت ورکړی وو. (جنګ ازادی ۱۸۵۷ع ص ۵۵)

(۶) په کال (۱۹۱۹) ع کې انګریزانو په ترکانو باندې دظلم بازار ګرم کړی وو، ددې ظلمونو په خلاف په ټول هندوستان کې د (تحریک خلافت) او د (تحریک ترک موالات) بنیاد کیخودل شو، علماوو او عوامو حکومتي وظیفې پریښودلې، حتی چې دکالجونو او سرکاري خطابتونو سره هم مقاطعه وشوه، لکن مولوي احمد رضاخان ددې دواړو تحریکونو سره خپل سخت مخالفت اعلان کړو، فتوی یې شائع کړې (فاضل بریلوی اور ترک موالات ص 27، دوام العیش فی الائمة من قریش ص 23)

(۷) احمد رضاخان بریلوي فتوی ورکړه چې دانګریزانو څخه دمدرسو لپاره دچندو اخستل جایز دي. (المحجة الموتمنة فی أیة الممتحنة ص ۶۲)

یو انګریزي مؤرخ (فرانسس رابن سن) احمد رضاخان بریلوي ته دانګریزانو وفادار ویلي دی (سپرټزم امنګ انډیم مسلمز ص 422)(Sepratism Among Indian Muslims)

(۹) مولوي فضل رسول بدایواني دانګریزانو سخت خیر خواه او دانګریزانو تنخوا خور ملازم وو (تذکره علماء هند ص ۳۸۱)

(۱۰) محمد فاروق قریشي لیکي چې د اعلی حضرت احمد رضاخان شاګردانو او مریدانو دخپل استاذ او مرشد په أمر باندې عمل وکړو او په اجتماعي طریقه یې دأزادۍ دتحریک سره سخت مخالفت وکړو او دانګریزانو سره یې کومک وکړو (ولی خان اور قرارداد پاکستان صـ۳۰۹)

بعضې بریلیان مولوي فضل حق خیرابادي ته د (۱۸۵۷) ع کال دازادۍ دجنګ هیرو وایي، لکن دا دروغ دي فضل حق خیرآبادي دازدای په جنګ کې هیڅ شمولیت نه دی، کړی سلمه سیهول بریلوي لیکي چې دتحقیق څخه دا ثابته ده چې علامه جنګیدونکی صاحب سیف مجاهد نه وو (علامه فضل حق خیرابادي صـ ۳۵۶)

او نه یې دجهاد دفتوی ورکړې ده (علامه فضل حق خیرابادی صـ۳۲۸)

## دبریلویانو عقیدوي شرکیات او بدعات

۱-عقیده دعلم غیب.

۲-عقیده د حاضر او ناظر.

۳-عقیده دمختار الکل.

۴-عقیده دنور او دبشر.

۵-په مافوق الاسباب کې عقیدة الاستمداد من غیر الله تعالی.

٦- دالله تعالی په باره کې خطرناک عقاید.

۷-دانبیاوو په باره کې ګستاخانه عقاید.

۸-دصحابه کرامو په باره کې ګستاخانه عقاید.

﴿وَعِندَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ﴾

# علم الغیب دالله تعالی خاص صفت دی



## مسئله علم الغيب

الحمدلله وحده والصلوة والسلام على من لا نبى بعده.

اما بعد!

د اهل سنت والجماعت عقيده: (۱)علم غيب په اصطلاح کې ذاتي او کلي وي، لهذا علم غيب صرف دالله تعالى صفت دى، عالم الغيب صرف الله تعالى دى، څوک چې په اصطلاحي معنى باندې علم الغيب بل چاته ثابتوي او يا په اصطلاحي معنى باندې بل چا ته عالم الغيب وايي هغه کافر دى.

۲- انباء الغيب او اخبار بالغيب چې ددې څخه وروسته علم راځي دا غير الله ته ثابت دى، او په دې کې دنبي کريم صلى الله عليه وسلم برخه د نورو څخه زياته ده، نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته د ډيرو غيبو خبر ورکړل شوى دى، ددې څخه منکر هم ملحد او زنديق دى.

خلاصه دا چې علم الغيب اصطلاحي او شرعي ما فوق الاسباب او محيط يعنې ذاتي او کلي وي او علم الغيب لغوي، ماتحت الاسباب وي، علم الغيب اصطلاحي دالله تعالى خاص صفت دى.

مفتي محمد فريد رحمه الله ليکي چې: دعلم الغيب دوه معنى دي،يو علم ما فوق الاسباب، يعنې بغير د اسبابو نه علم لرل، او دا شرعي او اصطلاحي معنى ده، دويم: دا چې علم په هغه شيانو چې دحواسو او عقل نه او چت وي او دېته غيب لغوي وايي، علم غيب په اولنى معنى سره د الله تعالى سره مختص دى، ځکه چې د ممکن د ټولو کارونو ذات او صفات د الله تعالى ورکړه ده، ﴿وَمَا بِكُم مِّن نِّعْمَةٍ فَمِنَ اللَّهِ﴾، او دويم قسم انبياء عليهم السلام ته ورکړې شوى خو په قدر د ضرورت، نه دا چې ټول په ټوله الخ.(فتاوى فريديه ج۱ص۸۶)

۳- څوک چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته عالم الغيب وايي او معنى لغوي مراد وي چې د وحي الهام او کشف په ذريعه وي، يعنې اظهار الغيب مراد وي نو دا ګناهګار شو، ځکه چې موهِم لفظ يې استعمال کړو، د علم الغيب د لفظ څخه متبادر علم غيب اصطلاحي دى، د شريعت په اصطلاح کې همدې اصطلاحي ته علم الغيب وايي او په همدې اصطلاحي علم الغيب باندې د احکامو مدار دى، لکه د صلوة، زکوة، حج وغيره څخه چې اصطلاحي معنى ګانې مرادې دي او په همدې اصطلاحي معناګانو باندې يې احکام مرتب دي.

۴- دلته درې شيان دي، يو د نبي صلى الله عليه وسلم علم، دوهم غيب او دريم علم الغيب دی، اختلاف په دې دريم کې دی يعنې په علم الغيب کې، نو هغو دلايلو ته اعتبار دی چې په هغې کې علم الغيب راغلی وي د علم په دلايلو علم الغيب نه ثابتيږي لکه: ﴿وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا﴾ د علم دليل دی، د علم الغيب دليل ندی، همدارنگه (أوتيت علم الأولين والاخرين) دا د علم دليل دی خو د علم الغيب دليل نه دی.

۵- علم الغيب په شريعت کې هغه دی چې ذاتي وي او کلي وي د اسبابو د علم په وجه به نه وي، اساب د علم درې دي حواس، خبر صادق او عقل، د دې اسبابو د علم په وجه چې کوم علم راغلی وي هغه علم غيب شرعي او اصطلاحي ندی، يو څو حوالې وګوره:

۱- علامه الوسي رحمه الله فرمايي: فاالعلم به لكونه بواسطة الاسباب لايكون من علم الغيب (روح المعانى ج ۲۰، صـ۲۹۹)

۲- مايدرک بالدليل لا يكون غيباً (تفسير نسفي ج ۲صـ ۷۲۳)

۳- هو مالم يقم عليه دليل ولا اطلع عليه مخلوق (تفسير نسفي ج ۲صـ ۶۱۷)

۴- ماغاب عن المشاهد ولم يقم عليه دليل (تفسير مظهري ج ۷ص- ۱۲۷)

۵- والتحقيق ان الغيب ما غاب عن الحواس والعلم الضروري والعلم الاستدلالي وقد نطق القرآن بنفى علمه عمن سواه تعالى فمن ادعى انه يعلمه كفر ومن صدق المدعى كفر واما ما علم بحاسة او ضرورة او دليل فليس بغيب (نبراس صـ ۳۴۳)

۶- وما اعلم الله لخيار عباده بالوحى اوالالهام الحق لم يبق بعد الاعلام غيبا (بزازيه ج ٤صـ ۱۱۹)

۷- ان علم الانبياء والاولياء هو باعلام من الله تعالى لهم وعلمنا بذلك هوباعلامهم لنا وهذا غير علم الله الذي تفرد به وهو صفة من صفاته القديمة الازلية الدايمة... فلايعلم الغيب احد الا هو وما سواه ان علموا جزئيات منه فهو باعلامه واطلاعه لهم وحينئذ لا يطلق انهم يعلمون الغيب اذ لا صفة لهم يقتدرون بها على الاستقلال بعلمه (رسائل ابن عابدين ج ۲صـ ۴۵۹)

۸- فان لبعض الغيوب اسبابا قد استدل بها عليه لكنه ليس بحقيقى (فتح البارى صـ ۴۹۱)

د دې څخه معلومه شوه چې علم الغيب په شريعت او اصطلاح کې ذاتي او کلي وي، نو د علم الغيب تقسيم ذاتي او عطائي ته غلط دی، ځکه چې تقسيم يې ذاتي ته الى نفسه دی او عطائي ته الى غيره

دى، همدارنګه چې علم الغيب شرعي او اصطلاحي د الله تعالى خاص صفت شو، نو غير الله ته بالكل نه دى ثابت، نه كلي او نه جزئي، څوک چې دالله تعالى خاص صفت غير الله ته كلي ثابت كړي، هغه كلي مشرک دى او څوک يې چې جزئي ثابت كړي هغه جزئي مشرک دى.

فائده: (۱) جديد بريلويان (چې په افغانستان، كوزه پښتونخوا او بلوجستان كې په ښكاره ځان ته بريلويان نه وايي، بلكې وايي چې نه ديوبنديان يو او نه بريلويان يو، په حقيقت كې (۹۸) فيصد بريلويان دي) دوي وايي چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ ته علم الغيب جزئي عطائي ثابت دى، نو دوي شپږ غلطيانې كوي، اول: تقسيم دعلم الغيب كوي ذاتي او عطائي ته، حالانكې علم الغيب په اصلاح كې فقط ذاتي دى، دوهم: تقسيم دعلم الغيب كوي كلي او جزئي ته، حالانكې علم الغيب په اصطلاح كې فقط كلي وي، دريم: داچې ديو فن عالم هغه چاته وايي چې ددې فن اصول، كليات او قواعد ورته معلوم وي او دغيبو قواعد يوازې الله تعالى ته معلوم دي، نو عالم الغيب يوازې الله تعالى دى (وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ) دمفاتحو څخه همدا قواعد مراد دي، مثلا ډاكټر هغه چاته وايي چې دطب اصول، كليات، قواعد او فارمولې ورته معلومې وي، دجزئياتو دعلم په وجه چاته ډاكټر نه شي ويلى، مثلا مونږ ته دا جزئي معلوم دى چې ډيسپرين ګولۍ د سر درد علاج دى، نو ددې جزئي او همداسې دسلو او زرو جزئي نسخو دعلم په وجه چاته ډاكټر نه شي ويل كيدلى، تر څو چې دطب قواعد زده نكړي، نو دغيبو دجزئياتو دعلم په وجه چاته عالم الغيب نه شي ويلى، تر څو چې دغيبو قواعد ورته معلوم نه وي او دغيبو قواعد صرف الله تعالى ته معلوم دي، څلورم: پكار دى چې د دوي په نيز هر مسلمان او كافر عالم الغيب شي، ځكه چې علم الغيب عطائي كه ثابت شي، نو بيا الله تعالى نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ ته اعطاء كړې ده او نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ نورو انسانانو ته اطلاع كړې ده، نو ټولو ته علم الغيب ثابت شو، فرق صرف په مطلع كې شو، چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ ته الله تعالى او جبرئيل عليه السلام اطلاع وركړه او نورو انسانانو ته نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ اطلاع وركړه، همدارنګه فرق په قلت او كثرة كې شو، پنځم: دعلم الغيب تقسيم جزئي او عطائي ته يوه بدعتي اصطلاح ده، دعقائدو په هيڅ كتاب كې نه ده راغلې، شپږم: دمخلوق علم ملكي ته وايي، نو په

مخلوق کې به عالم الغيب هغه چا ته وايي چې ملکه او قوت دغيب داني. ولري او په ملکه دغيب داني کې کلي او جزئي ،ذاتي او عطائي ته تقسيم غلط دی.

(۲) قديم بريلويان(چې اقراري بريلويان دي) وايي چې دنبي کريم ﷺ سره علم الغيب کلي عطائي وو، نو دوي درې غلطی کوي:۱- چې تقسيم دعلم الغيب کوي ذاتي او عطائي ته، حالانکې علم الغيب فقط ذاتي وي ۲- دنبي کريم ﷺ په ذريعه ټولو انسانانو ته اطلاع شوې ده ، نو بيا پکار دی چې هر انسان عالم الغيب شي،(۳) دمخلوق علم ملکې ته وايي ،نو په مخلوق کې به عالم الغيب هغه چا ته وايي چې ملکه او قوت دغيب داني. ولري او په ملکه دغيب داني کې کلي او جزئي ،ذاتي او عطائي ته تقسيم غلط دی..

دغيب او علم الغيب په مابين کې فرق داشو چې: غيب په دوه قسمه دی،ماتحت الاسباب، يعنې ما يدرک بالخبر الصادق او العقل او مافوق الاسباب يعنې ما لايدرک بالاسـباب ،لکه د قيامت د ورځې علم، قاضي بيضاوي فرمايي چې: وهو (اي الغيب) قسمان ۱- قسم لا دليل عليه .۲- وقسم نُصب عليه دليل، نو اول مافوق الاسباب دی او دوهم ماتحت الاسباب دی او علم الغيب اصطلاحي فقط مافوق الاسباب دی.

خلاصه دا چې أهل سنت والجماعت فرمايي چې علم غيب اصطلاحي يعنې علم ذاتي، محيط، تفصيلي چې بلا استثناء په ټولو معلوماتو باندې حاوي وي، دالله تعالى دخواصو څخه دی، پدې کې ورسره نه رسول شريک دی او نه غيررسول، بيا چې الله تعالى چاته وغواړي ، نو دوحې يا دالهام اويا دعقل استدلالي په ذريعه باندې ډير غيوب ورته ښکاره کوي، د يته علم الغيب لغوي وايي چې د انباء او اخبار په ذريعې سره وي، چې په دې کې دملايکو او انبياوو برخه دنور مخلوق څخه ډيره ده او دمحمد ﷺ برخه دهر چا په نسبت ډيره ده.

په علم غيب اصطلاحی کې ذاتي او عطائي همدارنګه کلي او جزئي ته تقسيم نشته ،ځکه چې علم غيب اصطلاحی فقط ذاتي او کلي وي او دا دالله تعالى خاص صفت دی، دبعضې اکابرو په کلام کې چې دعلم الغيب تقسيم کلي او جزئي ته راغلی دی ،نو هغه علم الغيب لغوي دی چې انباء بالغيب او اطلاع على الغيب هم ورته وايي، علم الغيب لغوي کلي هم دمخلوق سره نشته.

تنبيه: علم الغيب لغوي ماتحت الاسباب وي سبب ورته كله عقل وي او كله خبر صادق چې د وحې يا د كشف يا دالهام وغيره په ذريعه اطلاع حاصله شي ، لكن بعد الاطلاع بيا دا غيب مشاهَد ګرځي مثلا: زيد د ديوال شاته چې تاته معلوم نه وي غيب دى، لكن كه څوک اطلاع دركړي چې د ديوال شاته زيد دى، نو بعده الاطلاع همدا زيد مشاهد شو او بعد الاطلاع ورباندې علم، علم الغيب نه شو ، بلكې علم الشهادة شو، نو دا په حقيقت كې علم الغيب ندى،صاحب د فتاوى بزازيه فرمايي چې : لم يبق بعدالاعلام غيباً (ج ٤ص ١١٩) نو قبل الاطلاع غيب وو او بعد الاطلاع مشاهد شو، نو د اطلاع څخه وروسته علم الغيب نه راځي ، بلكې علم الشهادة راځي ،نو بعضې خلک چې وايي چې دانباء څخه وروسته علم الغيب راځي،نو دا مغالطه ده، ځكه چې دانباء څخه وروسته علم المشهود زاځي، ځكه چې بعدالاطلاع دامعلوم غيب ندى كما قال ضاحب الفتاوى البزازيه وما اعلم الله لخيار عباده بالوحى او الالهام الحق لم يبق بعدالاعلام غيباً(ج ٤ص ١١٩)

## دأهل سنت والجماعت دعقيدې وضاحت

يو غيب دى او بل علم الغيب دى، دغيب تعريف علماء داسې كوي چې (ما لايدركه الحواس ولاتقتضيه بداهة العقل) ددې تعريف تشريح دا ده چې اسباب دعلم درې دي، حواس سليمه ، عقل، خبر صادق، چې وحى هم پدې قسم كې داخله ده ، بيا په عقل باندې كله بداهةً علم مرتبيږي او كله استدلالاً، نو (١) غيب ديته وايي چې په حواسو باندې به يې ادراک نه كيږي ، دكوم شي ادراک چې دحواسو په ذريعه باندې كيږي هغه غيب نه دى او پدې مَدرک باندې علم هم علم غيب نه دى.

(٢) همدارنګه مدرَک بالعقل بداهةً هم غيب نه دى او په دې مدرَک باندې علم هم علم غيب نه دى ، فبعد هذا نقول: چې غيب په درې قسمه دى، دوه په اسبابو دعلم باندې مرتب وي، يو دا چې: مدرَک بالعقل وي استدلالاً لكه دالله تعالى وجود ا ودوهم دا چې: مدرَک بالخبر الصادق وي لكه حالات دبرزخ، دقيامت او دجنت او دجهنم وغيره دماتحت الاسباب.

(٣)داچې په دې اسبابو سره يې ادراک نه كيږي ، نه په حواسو ، نه په عقل او نه په خبر صادق ، لكه دسبا د ورځې دكارونو علم ، دمرګ د ورځې علم ،دقيامت دورځې علم داما فوق الاسباب دي، نو دغيب د اول او ددوهم قسم علم او ادراک ذاتي نه دى، بلكې دذرايعو او داسبابو په وجه دى ،لهذا

ماتحت الاسباب ورته وايو او ددريم قسم علم او ادراک ذاتي دى داسبابو او دزرايعو په وجه نه دى، لهذا مافوق الاسباب ورته وايو، د اول او ددوهم قسم غيبو علم مخلوق ته ثابتيدلى شي خو دالغوى علم الغيب دى او ددريم قسم غيبو علم دالله تعالى خاصه ده، مخلوق ته نه شي ثابتيدلى او دېته اصطلاحي علم الغيب وايي، لغوي علم الغيب ماتحت الاسباب وي او اصطلاحي علم الغيب ما فوق الاسباب وي، په قرآن او په سنت کې دغيبو اطلاق په درې واړو قسمونو باندې کيږي، لکن چې کله دغيب سره دايمان او د اظهار لفظ راشي نو هلته اول او دوهم قسم غيب مراد وي، ځکه چې ايمان فرع دعلم ده او علم په اولو دواړو قسمونو باندې راتللى شي.

او کله چې دغيب سره دعلم لفظ راشي، نو هلته دريم قسم غيب مراد وي او چونکې دهر انسان بلکې دهر مخلوق علم دزرايعو او داسبابو په وجه دى، له دې وجې دمخلوق لپاره لفظ د ايمان بالغيب اظهار على الغيب، اطلاع على الغيب او انباء على الغيب استعماليږي، او دالله تعالى علم بغير داسبابو ځخه دى، نو دالله تعالى په جانب کې لفظ د(علم الغيب) او د(عالم الغيب) مستعمليږي په قرآن او په حديث کې دمخلوق لپاره لفظ دعالم الغيب نه دى مستعمل شوى، ﴿وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ﴾الانعام ۵۹) ﴿عَالِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلَى غَيْبِهِ أَحَدًا﴾ الجن.

نو اوس که يو ځوک غير الله ته عالم الغيب وايي په دريمه معنى باندې يعنې چې دعلم لپاره يې هيڅ سبب او ذريعه نه وي، هغه مشرک دى ځکه چې دا دالله تعالى صفت او خاصه ده، او که ذکر دعالم الغيب کوي او مراد يې ترينه اظهار على الغيب او اطلاع الغيب وي، نو دا اګر چې شرک نه دى لکن بيا هم غلطه وينا ده، ځکه چې دقرآن او دحديث په اصطلاح کې اظهار على الغيب او اطلاع الغيب ته علم الغيب نه دى ويلى شوى، دا داسې ده لکه چې يو سړى ووايي چې ان الله لايعلم الغيب او مطلب يې دا وي چې د الله تعالى ځخه هيڅ شى غايب نه دى او يا لکه يو سړى چې دحق ځخه مرګ، دفتنې ځخه اولاد، او رحمت ځخه باران مراد وي او وايي چې: انى اکره الحق واحب الفتنة وأفر من الرحمة)

## حکم

څوک چې په اصطلاحي معنی سره غير الله عالم الغيب ګڼي هغه کافر دی.

تفصيل: که څوک غير الله ته عالم الغيب وايي، نو دا ظاهراً مشرک دی، بيا يې که خپله عقيده بيان کړه چې زما مراد علم الغيب اصطلاحي او شرعي دی، نو دا په حقيقت کې هم مشرک دی او که خپله عقيده يې داسې بيان کړه چې زما مراد اظهار الغيب او علم الغيب لغوي دی، نو بيا مشرک ندی، لکن داسې ويل ندي پکار، ځکه چې دا لفظ موهِم دشرک دی لکه يو سړی چې ووايي چې زه صلوة نه منم، نو ظاهراً دا کافر دی، بيا يې که خپله عقيده داسې بيان کړه چې زه صلوة اصطلاحي يعنې ارکان مخصوصه نه منم، نو دا په حقيقت کې هم کافر دی او که خپله عقيده يې داسې بيان کړه چې زه صلوة لغوي يعنې تحريک الصلوين نه منم، نو بيا کافر ندی، لکن دا وينا يې صحيح نده، ځکه چې موهِمه دکفر ده.

(١) په فتاوی حقانيه ج ١ص ١٤١) کې ديو سوال په جواب کې داسې فرمايي چې علم غيب کلي او علم محيط دالله خاصه ده له الله تعالى څخه پرته له هيچا سره علم غيب کلي او علم محيط نه شته، همدارنګه نبي کريم ﷺ هم علم غيب کلي نه درلود، بلکې دځينو مغيباتو علم ورته الله تعالى دوحې په ذريعه ورکړی وو، يعنې دنبي کريم ﷺ سره علم الغيب شرعي او اصطلاحي نشته او علم الغيب لغوي ورسره شته، بيا وروسته ليکي چې څوک چې دحضور ﷺ په اړه دا عقيده لري چې هغه دجميع ما کان ومايکون علم لري هغه دقطعي نص څخه مخالف دی، نو دداسې عقيدې لرونکی سړی کافر دی او بايد چې خپل ايمان نوی کړي او که وادہ يې وي نو دنکاح تجديد هم پرې ضروري دی.

(٢) ملا علی القاري رحمه الله فرمايي چې: فالعلم بالغيب أمر تفرد به سبحانه تعالى ولا سبيل للعباد اليه الا با علام منه والهام بطريق المعجزة او الكرامة اوالارشاد بالامارات فيما يمكن فيه ذلک، ولهذا ذكر فى الفتاوى ان قول القايل عند رؤية هالة القمر اى دايرته (يكون مطرٌ) مدعيا علم الغيب لابعلامة كفر، شرح الفقه الاكبر صـ ١٥١) تصديق الكاهن فيما يخبر.

(٣) علامه ابن عابدين رحمه الله فرمايي چې: قلت وحاصله ان دعوى علم الغيب معارضة لنص القران فيكفر بها (رد المحتار، باب المرتد، مطلب فى دعوى علم الغيب.

(٤)رجل تزوج بشهادة الله ورسوله كان باطلا لقوله عليه السلام لانكاح الا بشهود وكل نكاح يكون بشهادة الله ورسوله معظهم جعلوا ذلک كفرا لانه يعتقدان الرسول صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب وهو كفر، قاضي خان على هامش الهنديه ، باب مايكون اسلاما من الكافر وما لايكون ج ١صـ ٣٣٤)

(٥) په خلاصة الفتاوى ج ٢صـ ١٥) كې راځي چې :رجل تزوج امرأة ولم يحضره شهود فقال: خدا ورسول يا فرشتگان را گواه كردم ، بطل النكاح وكفر الناكح، لاعتقاد أن الرسول ﷺ والملايكة تعلم الغيب)

(٦)**لَوْ تَزَوَّجَ بِشَهَادَةِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ صلى الله عليه وسلم لَا يَنْعَقِدُ وَيَكْفُرُ لِاعْتِقَادِهِ أَنَّ النَّبِيَّ يَعْلَمُ الْغَيْبَ (البحرالرائق ج٣صـ١٥٥)**

٧- **تَزَوَّجَهَا بِشَهَادَةِ اللّٰهِ وَالرَّسُوْلِ صلى الله عليه وسلم لَا يَنْعَقِدُ وَيَخَافُ عَلَيْهِ الْكُفْرَ لِأَنَّهُ يُوْهِمُ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ يَعْلَمُ الْغَيْبَ**).(بزازيه:ج:۴،صـ:۱۱۹).

٨-اگر كسى بدون شهود گفت كه خدا و رسول راگواه كردم يا فرشته راگواه كردم كافر شود (ما لابد منه صـ ١٢٩)

(٩) ذكر الحنفية فى فروعهم بالتكفير باعتقاد ان النبى صلى الله عليه وسلم يعلم الغيب لمعارضة قوله تعالى قل لايعلم من فى السموات والارض الغيب الا الله (المسامره صـ ١٥٨)

(١٠) زوج امرأة بشهادة الله و رسوله هل يكفر؟ ففيه الفاظ كفر (خلاصة الفتاوى ج ٢صـ١٥)

(١١) مفتي محمد فريد رحمه الله ليكي چې: دعلم الغيب دوه معنى دي،يو علم ما فوق الاسباب، يعنې بغير د اسبابو نه علم لرل، او دا شرعي او اصطلاحي معنى ده، دويم: دا چې علم په هغه شيانو چې دحواسو او عقل نه او چت وي او دېته غيب لغوي وايي ، علم غيب په اولنۍ معنى سره د الله تعالى سره مختص دى، ځكه چې د ممكن د ټولو كارونو ذات او صفات د الله تعالى وركړه ده، ومابكم من نعمة فمن الله، او دويم قسم انبياء عليهم السلام ته وركړى شوى خو په قدر د ضرورت، نه دا چې ټول په ټوله الخ.(فتاوى فريديه ج١صـ ٨۶)

## داهل بدعتو (بريلويانو) عقيده

**قديم بريلويـان:** احمد رضاخان بريلوي ليکي چې: دعالم دپيدايش څخه شروع تر محشر او تر دخول دجنت او دجهنم پورې دټولو جزئي او کلي، ديني او دونيوي، تفصيلي او محيط علم نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورکړل شوى وو، انباء المصطفى صـ ٣ والكلمة العليا صـ ٢٣) بيا دا علم محيط نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دكوم وخت څخه ورکړل شوى وو؟ نو په دې کې بريلويان مختلفې عقيدې لري:

بعضې وايي چې کله چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دمور په ګيډه کې وو نو په هغه وخت کې ورته دماکان او دمايکون علم ورکړل شو (انوار افتاب صداقت از قاضی فضل احمد لدهيانوی صـ ١٣٧)

بعضې وايي چې دمعراج په شپه باندې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته علم دماکان او دمايکون ورکړل شو (حواله سابقه)

احمد رضاخان وايي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته علم دماکان او دمايکون دټول قرآن دنزول څخه وروسته ورکړل شو (انباء المصطفى صـ ٤) دا دقديمو بريلويانو عقيده ده، چې علم الغيب کلي عطائي غير الله ته ثابتوي او د افغانستان، کوزې پښتونخوا او بلوجستان جديد بريلويان، علم الغيب جزئي عطائي غير الله ته ثابتوي.

## داهل بدعتو بريلويانو دلايل

**فائده:** دعقيدې د اثبات لپاره داسې دليل پکار دى چې قطعي الثبوت او قطعي الدلالة وي بريلويان هم دا اصل مني احمد رضا خان په رسايل علم غيب صـ (١٤٥) کې ليکي چې: اعتقاديات ميں قطعيات کا اعتبار ہوتا ہے نہ ظنيات صحاحاکا.

**قرآني دلايل:**

الله تعالى فرمايي چې ﴿وَنَزَّلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ تِبْيَانًا لِّكُلِّ شَيْءٍ﴾ نحل ايت ٨٩)، مَا كَانَ حَدِيْثًا يُّفْتَرٰى وَلٰكِنْ تَصْدِيْقَ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَتَفْصِيْلَ كُلِّ شَيْءٍ (يوسف ايت ١١١)، مافرطنا فى الكتب من شیء (انعام ايت ٣٨)

احمد رضاخان ليکي چې: نکره په سياق دنفی کې عموم راولي او په کلمې دکل کې داسې تعميم دى چې کله هم تخصيص نه قبلوي او بغير ددليل شرعي څخه نصوص هميشه په خپل ظاهر باندې حمليږي (انباء المصطفى صـ ٤)

درسول الله ﷺ علم دشرق څخه ترغربه پورې، د أزل څخه تر أبده پورې دى، دهر صغير كبير، دهر رطب او يابس علم نبي ﷺ ته حاصل دى او يو اځې اجمالاً نه بلكې تفصيلا ورته حاصل دى (جاء الحق ص ۵۲ مقياس حنفيت ص ۲۹۴)

اول جواب: دا درې واړه ايتونه مكي دي او احمد رضاخان وايي چې نبي كريم ﷺ ته علم دماكان ومايكون دټول قرآن دنزول څخه وروسته وركړل شو (انباء المصطفى ص ۴)

دوهم جواب: مفسرين فرمايي چې په دريم ايت كې د الكتب څخه لوح محفوظ مراد دى (بغوي، معالم التنزيل، تفسير كبير)

دريم جواب: كه ددې مكي ايتونو څخه نبي كريم ﷺ ته دهرې ذرې علم ثابت شي او عالم الغيب شي، نو بيا ددې ايتونو څخه وروسته دوحي نزول ته څه ضرورت وو؟ ځكه چې د را روانو ايتونو علم به هم له همدې ځاى څخه نبي كريم ﷺ ته حاصل شوى وي، نو ايا ددې ايت دنزول څخه وروستني ايتونه او را روان احكام په ماكان وما يكون كې نه دي داخل؟ .

څلورم جواب: چې نكره په سياق دنفى كې دعموم لپاره ده او كل هم داستغراق حقيقي لپاره دى، نو په قرآن كې دهر شي بيان راغلو او بيا يو اځې بيان نه دى بلكې مفصل بيان دى، نو بيا سوال دادى چې په قرآن كې دمانځه د ركعتونو تفصيلات او د زكوة د نصاب تفصيلات كوم دي؟

پنځم جواب: خپله احمد رضاخان صاحب په يو ځاى كې وايي چې كله د كل څخه اكثر مراد وي (فتاوى رضويه ج ۱ص ۷۳۷)

جمهور مفسرين ليكي چې دلته كل دعموم او داستغراق لپاره نه دى او د (كل شىء) څخه امور ددين مراد دي، بغوي روح المعاني تحت هذه الايه.

۲- الله تعالى فرمايي چې: ﴿ وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ كُلَّهَا ﴾ البقرة ايت ۳۳۱)

الله تعالى حضرت ادم عليه السلام ته دهر شي نوم وروښودلو او دا حقيقت دى چې دنبي كريم ﷺ مرتبه دټولو پيغمبرانو څخه أوچته ده، نو نبي كريم ﷺ ته به په طريق أولى باندې دټولو شيانو نومونه او علم حاصل وي.

اول جواب: دا خو قياس شو او دعقايدو په باب کې داسې دليل پکار دی چې قطعي الثبوت او قطعي الدلالت وي.

دوهم جواب: ددې ايت څخه استدلال هم دکل په عموم باندې بناء دی او مخکې ذکر شو چې کلمه دکل په عموم کې نص قطعي نه دی.

دريم جواب: که دتعليم الاسماء څخه دآدم عليه السلام عالم الغيب کيدل لازم شي نو بيا شيطان ورته څرنګه د دروغو قسمونه خوړل؟

څلورم جواب: دلته ټول مفسرين ليکي چې ادم عليه السلام ته دهغو شيانو نومونه او خواص وښودل شول کوموته چې دادم عليه السلام ضرورت وو.

۳-الله تعالى فرمايي چې: ﴿عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖٓ اَحَدًا ۝ اِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَاِنَّهٗ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا ۝﴾ الجن ايت ۲۶)

بريليان وايي چې الله تعالى نبي کريم ﷺ ته خاص علم غيب حتى چې دقيامت علم هم ورکړو ، نو اوس کم شی دی چې دنبی کريم ﷺ دعلم څخه پاتې دی. (جاء الحق صـ ۵۵ خالص الاعتقاد صـ ۲۴)

اول جواب: دا ايت مکي دی، ددې څخه وروسته هم دقرآن ډيره حصه نازله شوه، نو که ددې ايت څخه دعلم الغيب لپاره استدلال صحيح شي نو بيا سوال دادی چې ايا دقران باقي حصه په علم الغيب او په علم دماکان او مايکون کې داخله ده او که نه؟ که داخله وي نو دهغې نزول ته بيا څه ضرورت دی؟

دوهم جواب: دا استثناء څخه علم الغيب کلي مراد دی او که جزئي؟ که جزئي مراد وي نو ستاسو مدعى نه ثابتيږي او که کلي مراد وي نو بيا يې د راروان ايت سره تعارض راځي چې (قُلْ اِنْ اَدْرِيْٓ اَقَرِيْبٌ مَّا تُوْعَدُوْنَ اَمْ يَجْعَلُ لَهٗ رَبِّيْٓ اَمَدًا) الجن ايت ۲۵) ځکه چې په دې ايت کې دعلم غيب کلي نفی ده.

دريم جواب: ددې ايت څخه ټول مفسرين دبعضې غيوبو اظهار مراد وي (روح المعانى تحت هذه الايت)

۴-الله تعالى فرمايي چې: (وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِيْنٍ ۝) (التکوير صـ ۵۳)

خان صاحب بريلوي ليكي چې: زما محبوب په غيبو باندې بخيل نه دى او بخل وجود د مال غواړي ، نو چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره علم الغيب نه شته نو بيا خو يې بخل نه دى متصور، نو نفى د بخل څرنګه صحيح شوه؟

اول جواب دا د سورت تكوير ايت دى او دا په نزول كې شپږم سورت دى، نو كه ددې ايت څخه ټول علم غيب او علم د ماكان و مايكون مراد وي نو بيا ددې ايت څخه وروسته يو سل او أته (١٠٨) سورتونه ولې نازل شول؟ ايا هغه په ماكان و ما يكون كې نه وو داخل؟

دوهم جواب: په ﴿وَمَا هُوَ عَلَى الْغَيْبِ بِضَنِينٍ﴾ كې اكثر مفسرين د هو ضمير نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راجع كوي ، لكن بعضې مفسرين يې قرآن ته راجع كوي لهذا ددې ايت څخه په قطعي طريقه باندې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د علم الغيب ثابتول ممكن نه دي.

دريم جواب: د الغيب څخه څه شى مراد دى ؟ پدې كې د مفسرينو اختلاف دى، البته دومره خبره يقيني ده چې د الغيب څخه هغه امور مراد دي چې د منصب د نبوت سره تعلق لري (بغوي ، جلالين، ابن كثير تحت هذه الايت)

څلورم جواب: پدې ايت كې دوه قراته متواتر دي، په يو قراءت كې بضنين راغلى دى په معنى د بخيل سره ، لكن په بل قراءت كې بظنين راغلى دى په معنى د متهم سره، يعنې تاسو په وړو وړو خبرو كې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دروغو باندې نه متهموئ، نو په دومره غټه معامله كې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څرنګه متهم شو؟ افسوس چې أهل بدعت د دوهم قراءت نوم هم نه أخلي.

٥- الله تعالى فرمايي چې: (وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلَكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِن رُّسُلِهِ مَن يَشَاءُ) (ال عمرن ايت ٦٠)

په دې ايت كې راغله چې الله تعالى چې چاته وغواړي نو هغه ته د غيبو علم وركوي.

اول جواب: دا ايت د سورت آل عمران ايت دى او د غزوې د أحد په وخت كې نازل شو ، ددې څخه وروسته د قرآن شپاړس سورتونه نازل شو ، نو كه ددې ايت له وجې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د ما كان وما يكون علم حاصل وي نو بيا خو پكار وه چې دا شپاړس سورتونه نه وى نازل شوى.

دوهم جواب: ټول مفسرين د دې ايت څخه بعض غيب مراد وي.

۶- وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ (نساء ايت ۱۱۳)

کلمه دما دعموم لپاره ده، نو ددې څخه معلوميږي چې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دټولو تيرو شوو او د درا روانو واقعاتو خبر ورکړل شوی وو (جاء الحق ص۴۹)

اول جواب: دا دسورت نساء ايت دی، چې په څلورم کال دهجرت باندې نازل شوی دی، ددې ايت څخه وروسته ډير سورتونه نازل شو، چې سورت توبه پکې په خاصه طريقه باندې دذکر کولو قابله ده، نو که ددې ايت څخه دټولو غيوبو علم مراد وی نو بيا خو ددې ايت دنزول څخه وروسته دهيڅ سورت نزول ته ضرورت نه وو.

دوهم جواب: دا استدلال په دې باندې بنا دی چې کلمه دِما دعموم او داستغراق لپاره ده، حالانکې په ډيرو ځايونو کې دعموم او داستغراق معنى غلطه وي لکه (ويعلمکم ما لم تکونوا تعلمون) البقره ۱۵۱) وعلمتم مالم تعلموا انتم ولا اباءکم (انعام ۹۲)نو بيا خو ددې ايتونو له وجې هر اُمتي ته علم الغيب ثابت شو.

دريم جواب: مفسرينو په دې ايت کې د ما مصداق احکام او امور ددين ښودلي دي وګوره بغوي تحت هذه الاية، بعضو مفسرينو چې دلته خفيات الامور ذکر کړي دي نو دهغوي ترجمه هم بالکل صحيح ده ځکه چې نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته الله تعالى د ډيرو امورو غيبيه وو اطلاع ورکړې وه.

## داحاديثو څخه استدلالات

۱- عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: «قَامَ فِينَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَامًا، مَا تَرَكَ شَيْئًا يَكُونُ فِي مَقَامِهِ ذٰلِكَ إِلٰى قِيَامِ السَّاعَةِ، إِلَّا حَدَّثَ بِهِ»، حَفِظَهُ مَنْ حَفِظَهُ وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ. (صحيح مسلم، كتاب الفتن واشراط الساعة ج۲ ص۳۹۰)

جواب: دحضرت حذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ټول روايات چې مخې ته کيښنودل شي نو نتيجه ترينه دا راوزي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کوم شی بيان کړی دی، دهغې تعلق دفتنو او دعلاماتو دقيامت سره دی ټول اشياء نه دي، لکه څرنګه چې خپله حضرت حذيفه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې: «وَاللّٰهِ مَا تَرَكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قَائِدِ فِتْنَةٍ، إِلٰى أَنْ تَنْقَضِيَ الدُّنْيَا، يَبْلُغُ مَنْ مَعَهُ ثَلَاثَ مِائَةٍ فَصَاعِدًا، إِلَّا قَدْ سَمَّاهُ لَنَا بِاسْمِهِ، وَاسْمِ أَبِيهِ، وَاسْمِ قَبِيلَتِهِ». (ابوداؤد: كتاب الفتن: ج ۲ ص ۴۲)

(ابوداؤد كتاب الفتن ج ۲ ص ۴۲) همدارنګه فرمايي چې: وَاللّٰهِ إِنِّي لَأَعْلَمُ النَّاسِ بِكُلِّ فِتْنَةٍ هِيَ كَائِنَةٌ، فِيمَا بَيْنِي وَبَيْنَ السَّاعَةِ. (مسلم: ج ۲ ص ۳۹۰)

۲- حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې: قَامَ فِينَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَامًا، فَأَخْبَرَنَا عَنْ بَدْءِ الْخَلْقِ، حَتّٰى دَخَلَ أَهْلُ الْجَنَّةِ مَنَازِلَهُمْ، وَأَهْلُ النَّارِ مَنَازِلَهُمْ، حَفِظَ ذٰلِكَ مَنْ حَفِظَهُ، وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ.(صحيح بخاري: كتاب بدء الخلق: ج ۱ صـ ۴۵۳)

جواب: د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د حديث تعلق هم د علم غيب كلي سره نه دي، ځكه چې خپله حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې: أن رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قبض ولم يفسـرها لنا (ابن ماجه كتاب التجارات صـ ۱۶۴)

حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شو خو مونږ ته يې د سود تفصيلات ونکړل.

همدارنګه فرمايي چې: "ثَلَاثٌ لَأَنْ يَكُونَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيَّنَهُمْ لَنَا أَحَبُّ إِلَيَّ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا: الْخِلَافَةُ، وَالْكَلَالَةُ وَالرِّبَا.(المستدرك: كتاب التفسير: ج ۲ صـ ۳۰۴)

۳- د حضرت عمرو بن اخطب انصاری رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث دى چې: «صَلّٰى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْفَجْرَ، وَصَعِدَ الْمِنْبَرَ فَخَطَبَنَا حَتّٰى حَضَرَتِ الظُّهْرُ، فَنَزَلَ فَصَلّٰى، ثُمَّ صَعِدَ الْمِنْبَرَ، فَخَطَبَنَا حَتّٰى حَضَرَتِ الْعَصْرُ، ثُمَّ نَزَلَ فَصَلّٰى، ثُمَّ صَعِدَ الْمِنْبَرَ، فَخَطَبَنَا حَتّٰى غَرَبَتِ الشَّمْسُ، فَأَخْبَرَنَا بِمَا كَانَ وَبِمَا هُوَ كَائِنٌ» فَأَعْلَمُنَا أَحْفَظُنَا.(مسلم: كتاب الفتن و اشراط الساعة: ج ۲ صـ ۳۹۰)

همدارنګه د ابو سعيد خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث دى چې: صَلّٰى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا صَلَاةَ الْعَصْرِ بِنَهَارٍ ثُمَّ قَامَ خَطِيبًا فَلَمْ يَدَعْ شَيْئًا يَكُونُ إِلٰى قِيَامِ السَّاعَةِ إِلَّا أَخْبَرَنَا بِهِ، حَفِظَهُ مَنْ حَفِظَهُ، وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ.(جامع الترمذی:ج۲صـ۴۲)

جواب: دد ې دواړو حديثونو تعلق هم د فتنو سره دى، علامه ابن خلدون رحمه الله د داسې قسم احاديثو در انقلولو څخه وروسته ليکي چې: وهذه الأحاديث كلها محمولة على ما ثبت فى الصحيحين من احاديث الفتن والاشراط لاغير لانه المعهود من الشارع صلوات الله وسلامه عليه فى أمثال هذه العمومات (مقدمة ابن خلدون، الفصل الثالث والخمسون فى ابتداء الدول صـ ۳۳۳)

۴- د حضرت معاذ بن جبل رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په يو روايت کې راځي چې: فَإِذَا أَنَا بِرَبِّي تَبَارَكَ وَتَعَالٰى فِي أَحْسَنِ صُورَةٍ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ! قُلْتُ: لَبَّيْكَ رَبِّ! قَالَ: فِيمَ يَخْتَصِمُ الْمَلَأُ الْأَعْلٰى؟ قُلْتُ: لَا أَدْرِي رَبِّ، قَالَهَا ثَلَاثًا قَالَ: فَرَأَيْتُهُ وَضَعَ كَفَّهُ بَيْنَ كَتِفَيَّ حَتّٰى وَجَدْتُ بَرْدَ أَنَامِلِهِ بَيْنَ ثَدْيَيَّ، فَتَجَلّٰى لِي كُلُّ شَيْءٍ وَعَرَفْتُ...(ترمذی: كتاب التفسير: ج ۲ صـ ۱۹۹ سورة ص)

اول جواب: امام بيهقى رحمه الله ددې حديث په باره كې فرمايي چې: **قدروى من طرق كلها ضعاف، وفى ثبوته نظر (تهذيب الكمال تحت ترجمة عبدالرحمن بن عايش الخضرمى)**

امام بخارى رحمه الله په يو ځاى كې ددې حديث تصحيح كوي، لكن په بل ځاى كې ددې حديث ديو راوي عبدالرحمن بن عايش الخضرمي په باره كې فرمايي چې (له حديث واحد، الا أنهم يضطربون فيه) تهذيب الكمال تحت ترجمة عبدالرحمن بن عايش) او مضطرب حديث د محدثينو په نيز باندې ضعيف دى.

دوهم جواب: كه دا حديث صحيح هم شي، نو بيا هم ترينه د ماكان او د مايكون د علم ثابتول محال دي، ځكه د حديث په دې طريقه كې (فتجلى لى كل شئ) ذكر شوى دى عبد الله بن عباس رضي الله عنه په يوه طريقه كې پكې فعلمت ما فى السموات وما فى الارض ذكر شوى دى او په يو روايت كې (فعلمت ما بين المشرق والمغرب) راغلي دي او مخكې تير شو چې د (كل) او د (ما) الفاظ په استغراق حقيقى كې قطعي نه دي، لكه څرنګه چې شاه ولى الله الدهلوي رحمه الله فرمايي چې: ان استدل بقوله عليه السلام (فتجلى لى كل شئ) قلنا هو بمنزلة قوله تعالى فى التورات، تفصيلا لكل شئ، والأصل فى العمومات التخصيص بما يناسب المقام (التفهيمات الالهية ج ١ صـ ٦٤، صـ ٢٥)

٥- دابو ذر غفارى رضي الله عنه حديث دى چې: **لَقَدْ تَرَكْنَا رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَمَا يُحَرِّكُ طَائِرٌ جَنَاحَيْهِ فِي السَّمَاءِ إِلَّا ذَكَّرَنَا مِنْهُ عِلْمًا»، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالطَّبَرَانِيُّ. (مجمع الزوايد: كتاب علامات النبوة باب فى ما أوتى من العلم)** همدا حديث دابو الدرداء رضي الله عنه څخه هم مروي دى.

جواب: په دې روايت كې اجمال دى، تفصيلي روايت په معجم طبراني كې دى: **فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا بَقِيَ شَيْءٌ يُقَرِّبُ مِنَ الْجَنَّةِ وَيُبَاعِدُ مِنَ النَّارِ إِلَّا وَقَدْ بُيِّنَ لَكُمْ».** (مجمع الزوايد: ج ٨ صـ ٢٦٣).

نو د مرغانو د حركاتو د بيانولو څخه مطلق علم يعنى بجميع جزئيات احوال الطير نه دى مراد، بلكې ددې څخه د مرغانو هغه حالات مراد دي چې په هغې باندې عمل كول د حصول د جنت لپاره سبب ګرزي او دهغې په وجه د جهنم څخه لرې والى راځي، مثلا د حلالو او حرامو بيان، لكه څرنګه چې علامه ابن االأثير جزرى رحمه الله ددې په تشريح كې ليكي چې: يعنې **أَنَّهُ اسْتَوْفَى بَيَانَ الشَّرِيعَة وَمَا يُحْتَاجُ إِلَيْهِ فِي الدِّينِ، حَتَّى لَمْ يَبْقَ مُشْكِل. فضرب ذٰلِكَ مَثَلًا. وَقِيلَ: أَرَادَ أَنَّهُ لَمْ يَتْرُك شَيْئًا إِلَّا بَيَّنَه حَتَّى بَيَّنَ لَهُمْ أَحْكَام الطَّيْر وَمَا**

يَحِلُّ مِنْهُ وَمَا يَحْرُمُ، وكيفَ يُذْبَحُ، وَمَا الَّذِى يُفْدِى مِنْهُ المُحْرِمُ إِذَا أَصَابَه، وأشباه ذٰلِكَ، وَلَمْ يُرِدْ أَنَّ فِى الطَّيْرِ علماً سِوٰى ذٰلِكَ علّمهم إِيَّاه، أَوْرَخَّص لَهُمْ أَنْ يَتَعَاطَوْا زَجْرَ الطَّيْرِ كَمَا كَانَ يَفْعَلُه أَهْلُ الجَاهِلِيَّةِ.. (النهاية في غريب الحديث: لابن الأثير، مادة (الطير) ج ٣ ص ١٥٠)

ددې څخه ماسوى بعضې نور دلايل هم پيش كوي لكن حقيقت دادى چې ددوي سره يو صحيح دليل هم نشته چې ددوي په دعوى باندې منطبق شي.

## دأهل سنت والجماعت دلايل

**قرآني دلايل:**

١- وَعِنْدَهُ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَا إِلَّا هُوَ (انعام ص ٥٩)

٢- فَقُلْ إِنَّمَا الْغَيْبُ لِلّٰهِ (يونس / ٢٠)

٣- وَلَآ أَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِىْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ أَعْلَمُ الْغَيْبَ (هود / ٣١)

٤- وَلِلّٰهِ غَيْبُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ (هود / ١٢٣)

٥- قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِى السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ الْغَيْبَ إِلَّا اللّٰهُ (نمل / ٦٥)

٦- إِنَّ اللّٰهَ عٰلِمُ غَيْبِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ (فاطر / ٣٨)

٧- عٰلِمُ الْغَيْبِ فَلَا يُظْهِرُ عَلٰى غَيْبِهٖ أَحَدًا إِلَّا مَنِ ارْتَضٰى مِنْ رَّسُوْلٍ فَإِنَّهُ يَسْلُكُ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهٖ رَصَدًا (الجن / ٣٠)

٨- وَلَوْ كُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِىَ السُّوْٓءُ (اعراف / ١٨٨)

٩- يَسْئَلُكَ النَّاسُ عَنِ السَّاعَةِ قُلْ إِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللّٰهِ (احزاب / ٦٣)

١٠- وَيَقُوْلُوْنَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ قُلْ إِنَّمَا الْعِلْمُ عِنْدَ اللّٰهِ (ملک / ٢٦)

١١- إِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهٗ عِلْمُ السَّاعَةِ.

مفتى احمد يار خان دې ټولو ايتونو ته دخپل ځان څخه توجيهات كوي، لكن ددې توجيهاتو حواله نه په كوم صحابي باندې وركوي او نه په كوم تابعي او دده دعوى داده چې (نبى عليه السلام ته علم الغيب د ولادت څخه مخكې وركړل شوى وو) جاء الحق احمد يار خان ص ١١٨)

بعضې بريليان وايي چې پدې ايتونو كې دعلم غيب ذاتي نفى ده او نبى صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته چې علم دماكان وما يكون حاصل دى هغه عطائي دى، دهغې نفى په دې ايتونو كې نشته.

قلنا ١-دا تاويل غلط دى ځکه چې: انباء الغيب، او انباء بالغيب ته علم الغيب نه وايي، علم الغيب په قران او حديث کې ديته وايي چې ذاتي او کلي وي: مالايقع تحت الحواس ولاتقتضيه بداهة العقل، ولم ينصب عليه دليل،نو مافوق الاسباب به وي.

٢-الله تعالى فرمايي چې: وَلَوْكُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْءُ

په دې ايت کې: وَلَوْكُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ) مقدم دى او(لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْءُ.

تالي دى او تالي لازم وي د مقدم سره، دلته تالي (استكثار الخير او عدم مس السوء) د مطلق علم الغيب دلوازمو څخه دى، ذاتي وي او که عطائي وي، يوائې د علم الغيب ذاتي دلوازمو څخه نه دى، ځکه چې بيا به معنى دا شي چې که راتلونکي واقعات راته پخپله منکشف شوى وئ، نو ماته به تکليف نه رسيدو او که الله تعالى راته منکشف کړى وئ، نو بيا راته تکليف رسيدلو، همدارنګه په حديث کې راځي: (انک لاتدري ما أحدثوا بعدک، مشکوة صـ۴۸۸) دلته هم ترجمه داده چې ته نه يې خبر نه بالذات او نه بالعطاء، يوائې دبالذات نفي نه ده، که نه نو نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به نه فرمايل چې: دا زما امت دى.

٣-همدارنګه مونږ وايو چې نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې ﴿وَلَآ أَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللهِ وَلَآ أَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ نو بريلويان چې وايي چې: علم غيب يو ذاتي دى او بل عطائي دى او دلته د ذاتي نفي دى، نو بيا خو وجود هم په دوه قسمه دى يو ذاتي دى او بل عطائي دى، نو أيا ﴿وَلَآ أَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ په شان نبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چيرته فرمايلي دي چې (لست بموجود؟) چې مراد يې دنفي څخه وجود بالذات شي ،همدارنګه دنبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رسالت هم عطائي دى ذاتي نه دى، نو أيا نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ﴿وَلَآ أَعْلَمُ الْغَيْبَ﴾ په شان چيرته فرمايل دي چې (لست برسول؟) چې مراد يې دنفي څخه رسالت ذاتي وي.

**داحاديثو څخه دلايل**

١-د جبريل عليه السلام په حديث کې راځي چې (ماالمسؤل عنها بأعلم من السائل) همدارنګه پکې راځي چې: (فى خمس لا يعلمهن الا الله)

دا په دې خبره کې صريح دى چې د قيامت علم دالله تعالى څخه ماسوى هيچا ته هم نه دى حاصل حتى چې جبريل او نبى کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته هم ندى حاصل.

٢-دحضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دى چې: سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ قَبْلَ أَنْ يَمُوتَ بِشَهْرٍ: «تَسْأَلُونِي عَنِ السَّاعَةِ؟ وَإِنَّمَا عِلْمُهَا عِنْدَ اللهِ» (صحيح مسلم: كتاب الفضايل: ج ٢ص ٣١٠)

٣-دحضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دى چې: سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ السَّاعَةِ فَقَالَ: «عِلْمُهَا عِنْدَ رَبِّي لَا يُجَلِّيهَا لِوَقْتِهَا إِلَّا هُوَ». (مسند احمد: ج ٥ ص ٢٩٨)

همداسې مفهوم دابو موسى اشعرى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په روايت کې هم دى (حاكم كتاب الفتن ج ٤ص٤٨٨)

٤-حضرت عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه دمعراج واقعه رانقلوي په دې حديث کې داسې جمله هم شته چې (اما وجبتها فلايعلمها أحد الاالله) مستدرک الحاكم كتاب الفتن والملاحم ج ٤ص ٤٨٨)

٥-دحنين په غزوه کې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دصحابه وو رضى الله عنهم څخه دهوازن دبنديانو دخوشې كولو مطالبه وکړه ، ټولو صحابه وو رضى الله عنهم وويل چې زمونږ خوښه ده لكن نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې: «إِنِّي لَا أَدْرِي مَنْ أَذِنَ مِنْكُمْ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ، فَارْجِعُوا حَتَّى يَرْفَعَ إِلَيْنَا عُرَفَاؤُكُمْ أَمْرَكُمْ» صحيح البخارى، كتاب الجهاد، باب اذا بعث الامام رسولاً فى حاجة، ١/ ٣٤٢)

ددې څخه صفا معلوميږي چې دنبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره علم غيب كلي نه وو ځكه خو دهريو صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه فردا فردا دپوښتنې ضرورت راغلو.

٦-دحضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه دحجة الوداع واقعه رانقل شوې ده په هغې کې دنبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا قول هم ذکر شوى دى چې: «لِتَأْخُذْ أُمَّتِي مَنْسَكَهَا، فَإِنِّي لَا أَدْرِي لَعَلِّي لَا أَلْقَاهُمْ بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا» (مسند احمد ج ٣ ص ٣٣٢)

٧-د غزوې دخندق څخه وروسته نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسلحه ايښى وه او غسل يې كولو، حضرت جبريل عليه السلام ورته راغلو او ورته وې فرمايل چې: تاسو اسلحه كيښوده او ملايكو نه ده ايښى (فَاخْرُجْ إِلَيْهِمْ قَالَ: فَإِلَى أَيْنَ؟ قَالَ: هَاهُنَا، وَأَشَارَ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ. (صحيح البخارى، كتاب المغازى: ج ٢ ص ٥٩)

كه درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره علم غيب كلي وى نو ضرور به ورته دا معلومات هم وو چې دغزوې دخندق څخه وروسته دبنى قريظه وو ته تلل دي.

۸-دبنی قریظه وو په باره کې چې کله دا فیصله وشوه چې بالغان دې ټول قتل شي ، نو دقریظه وو په بندیانو کې عطیة القرظی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم وو ، دده په باره کې دا شک شو چې دا به بالغ وي او که نه؟ نو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حکم وکړو چې دده دنوم څخه لاندې ویښتان دې وکتل شي او بیا دې دده دبلوغ او یا دعدم بلوغ فیصله وشي، چې بیا دلیدلو څخه وروسته ثابته شوه چې نابالغ دی ،(مستدرک، کتاب الجهاد ج ۱صـ ۱۲۳) که دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره علم الغیب وي ، نو بیا یې دنوم څخه دلاندې ویښتانو دکتلو حکم ولې کولو ؟

۹-دخیبر په غزوه کې یوې یهودنې نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دوزې (چیلی) په غوښه کې زهر اچولي وو نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په اوله لقمه کې معلومات وشو. (ابوداؤد کتاب الدیات ج۲صـ ۲۶۴)

که دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دماکان اودمایکون علم وی نو بیا یې زهر ولې خوړل؟

۱۰-په یوه غزوه کې دحضرت عایشې رضی الله عنها هار ورک شو ، نوصحابه کرامو او خپله نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډیر ولټولو ،کله چې مایوسه شو او نورېې حرکت کولو نو چې سورلۍ یې اوچته کړې دیوې سورلۍ لاندې راپیدا شو (صحیح البخاری، کتاب التیمم ج ۱صـ ۴۸)

نو که دنبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره دما کان او دمایکون علم وی نو بیا دهار دومره لټولو ته څه ضرورت وو؟

۱۱- که څوک دا لفظ دقبر په خواکې ووایي نو نبي ﷺ یې بالذات اوري او څوک یې چې دلرې څخه دمحبت او دعقیدت په نیت باندې وایي او یا یې په دې نیت باندې وایي چې ملائکې زما دا الفاظ نبي ﷺ ته ورسوي نو دا بالکل صحیح دی، حضرت مولنا شاه محمد اسحاق رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې:

سوال بست وچهارم، اگر اهل مشرق بگویند یا رسول الله یا اولیاء الله واگر اهل مغرب بگویند یا رسول الله، برینها شرع چه حکم فرمائد مشرک یا کافر یا گناه صغیره یا کبیره یا مکروه یا حرام ؟ جواب در نداغائب میان نبي ﷺ وغیرنبي ﷺ فرق است اگر نبي راندا خواهد نمود برای ایصال صلوة وسلام ظاهراً جواز است بدو جهت، یکي: انکه درحدیث شریف وارد است که ملائکه از طرف حق تعالی مقرر اند هر که بر نبي ﷺ صلوة یا سلام مي فرستد ملائکه نزد پیغمبر ﷺ مي رسانند، دوم: انکه در التحیات خطاب برای رسانیدن سلام وارد شده، پس بنا برین اگر کسي یا رسول الله بگوید برای رسانیدن درود یا سلام جائز است، ودر حق دیگر اشخاص ...این قسم وارد نه شده پس ندا درحق غیر نبي ﷺ ممنوع است ومحظور خواهد بود، بدلیل عموم ایات نصوص

قرآني كه تلاوت نموده خواهد شد واگر غير خدا را باين اعتقاد ميگويد كه هـر وقـت كـه مـن نـدا مي كنم او ميشنود، ويا قدرت درانجام حاجات مي دارد يا درعالم متصرف است يـا شركـت تـدبير دركاخانجات الهى ميدارد پس درين صورت شريـك گردانيـدن است بخـدا بـراى دفـع ايـن امر پيغمبر خدا ﷺ مبعوث شده هـيچكس را درعلـم غيـب وقـدرت مطلقـه وتصرف در امـور عـالم شريک باخداى تعالى نبايد ساخت پس اين قسم ندا كردن غـير خـدا را موجـب شرک وكفراسـت چنانچه ايات قرآني واحاديث رسول الله ﷺ وروايات فقهيـه براينهـا دال انـد.(مأة مسـائل ص ٣٨-٣٩، سماع الموتى سرفراز خان صفدر رحمه الله ص ١٠٩).

ترجمه: څلورويشتم سوال: كه دمشرق خلک ووايي چې يا رسول الله! يا اولياء الله! همدارنګه اهل مغرب يا رسول الله ووايي، نو په شريعت كې دده څه حكم دى ؟ جواب په غائبانه اواز كې د نبي ﷺ او دغير نبي فرق دى، كه يو سړى نبي ﷺ ته ندا وكړي په دې نيت باندې چې صلوة او سلام ورسولى شي نو ظاهراً جايزه ده او ددوو وجو څخه جائزه ده اول: دا چې دالله تعالى دطرفـه فرشتې مقررې دي چې دامتيـانو صلوة اوسلام وررسوي او دوهمه: لـه دې وجې څخه چې پـه التحيات كې خطاب (السـلام عليک ايهاالنبي) دسلام درسولو لپاره راغلې دى، نو كه څوک يې په دې نيت باندې ووايي چې نبي ﷺ ته وررسولى شي نو جائز دى او دغير نبي په باره كې داسې نه دي راغلي ، لـه دې وجې دنبي څخه غير بل چاته ندا جائزه نه ده، دقرآن عمومي اياتونه او نصوص كوم چې تلاوت كولى شي ددې لپاره دليل دى ، اوكه يو سړى دالله تعالى څخه ماسوا بل چاته په دې نيت باندې ندا وكړي چې هغـه يې هر وخت اوري او يا زما حاجتونه پوره كولى شي او يا په دنيا كې متصرف دى او دالله تعالى دتدبير پـه كارخانـه كې شريک دى، نو دا سړى دالله تعالى سره شريک جوړه وي او ددې كار دختمولو لپاره پيغمبر ﷺ رالېږل شوى وو چې دالله تعالى سره په علم غيب په قدرت مطلقه او ددنيا په كارونو كې بل څوک شريک مه جوړ وئ لهذا غير الله ته داسې ندا كول كفر اوشرک دى.

١٢- مولانا اشرف على تهانوي رحمه الله فرمايي چې: دصحيح عقيدې مطابق دتبليغ الملايكه په نيت باندې ندا ظاهره ده، (نشر الطيب ص(٢۴١)

١٣- دمفتي كفايت الله رحمه الله څخه سوال شوى دى چې دميلاد په محفل كې په دې نيت باندې چې د نبى كريم ﷺ روح راغلى دى يارسول الله ﷺ او الصلوة والسلام عليک يا رسول الله ﷺ ويل جايز دي او كه نه ؟ هغه جواب وركوي چې يارسول الله او يا حبيب الله اوازونه پ. ي نيت باندې چې دا اوازونه نبى كريم ﷺ ته د فرشتو په ذريعه وررسيږي جايز او

صحيح دى او پدې نيت باندې چې دنبى كريم ﷺ روح محفل ميلاد ته راغلى دى باطل دى .(كفاية المفتى ج١صـ١٦٩)

١۴-دقيامت په ورځ به بعضې خلک دجهنم طرف ته روان کړلی شي، نبى كريم ﷺ به عرض وکړي چې يا الله تعالى دا خوزما أمتيان دي، الله تعالى به ورته وفرمايي چې: (لاعلـم لـک بمـا أحدثوا بعد ک )صحيح البخاری، کتاب الحوض ج ٢صـ٩٧۴)

١۵-دحضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه مرفوعا روايت دى چې: «إِنِّي وَجَدْتُ تَمْرَةً سَاقِطَةً فَأَكَلْتُهَا، ثُمَّ تَذَكَّرْتُ تَمْرًا، كَانَ عِنْدَنَا مِنْ تَمْرِ الصَّدَقَةِ، فَلَا أَدْرِي أَمِنْ ذٰلِكَ كَانَتِ التَّمْرَةُ، أَوْ مِنْ تَمْرِ أَهْلِي فَذٰلِكَ أَسْهَرَنِي».(المستدرك، كتاب البيوع: ج٢صـ١۴)

ددې احاديثو څخه ماسوى نورهم ډير احاديث دي چې په هغوي کې دنبى كريم ﷺ څخه دماکان او دمايکون دعلم نفى راغلې ده.

دزيات تفصيل لپاره دامام أهل سنت علامه سرفراز خان صفدر رحمه الله كتاب وګورئ په نوم د(ازالة الريب عن عقيدة علم الغيب)

**عام الفهم دليل:**

د غيب تعريف داسې دى چې: ملا يدركه الحواس، ولا تقتضيه بداهةُ العقل.

يعنې غيب دېته وايي چې په حواسو به يې ادراک نه کيږي او دانبياوو اواولياوو علم دحواسو په ذريعه دى، يا دحواسو ظاهره وو په ذريعه دى او دکشف او الهام او وحى په صورت کې دحواسو باطنه وو په ذريعه دى.

٢-غير الله ته د علم الغيب عقيده د منافقانو وه، علم الغيب د الله تعالى خاص صفت دى په مسلمانانو کې چا غير الله ته د علم الغيب عقيده نه لرله، البته پټو کافرانو يعنې منافقانو به انبياوو ته علم الغيب ثابتولو ،په صحيح البخاري، كتاب التوحيد کې دحضرت عايشې رضى الله عنها حديث دى:

من حدثک أنه يعلم الغيب فقدکذب ،بيا علامه عيني رحمه الله اعتراض نقل کړی دی چې حضرت عايشه رضى الله عنها په چا رد کوي؟ په هغه وخت کې خو هيڅ مسلمان نبي كريم ﷺ ته علم

الغيب نه ثابتولو، د اعتراض عبارت يې داسې دى چې: واما علم الغيب فما احدٌ يـدعى لرسـول الله ... يعلم منه الا ما علّم.

يعنې په صحابو کرامو کې هيڅا هم نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته د علم الغيب دعوه نه لرله. الا ما علم. يعنې اعلام بالغيب په هغه وخت کې خلقو منلو چې علم الغيب لغوي ورته هم ويلى شي، علم الغيب يې نه منلو. نو بيا شارحينو جواب ورکړى دى، چې منافقانو به د پيغمبر صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په باره کې کې د علم الغيب نفيه لرله نو حضرت عايشة رضى الله عنها په منافقانو رد کوي، بيا يې يوه واقعه ليکلې ده چې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوښه ورکه شوې وه، نو يو منافق زيد بن اللصيت ويلې چې: يَزْعُمُ مُحَمَّدٌ أَنَّهُ نَبِيٌّ وَيُخْبِرُكُمْ عَنْ خَبَرِ السَّمَاءِ وَهُوَ لَا يَدْرِي أَيْنَ نَاقَتُهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ رَجُلًا يَقُولُ كَذَا وَكَذَا وَإِنِّي وَاللَّهِ لَا أَعْلَمُ إِلَّا مَا عَلَّمَنِي اللَّهُ وَقَدْ دَلَّنِي اللَّهُ عَلَيْهَا وَهِيَ فِي شِعْبِ كَذَا قَدْ حَبَسَتْهَا شَجَرَةٌ فَذَهَبُوا فَجَاءُوهُ بِهَا.

بيا يې تبصره کړې ده چې: فَأَعْلَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ لَا يَعْلَمُ مِنَ الْغَيْبِ إِلَّا مَا عَلَّمَهُ اللَّهُ، يعنې الله تعالى نبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بعضو غيبو خبر کړى دى او په بعضو يې نه دى خبر کړى، په کومو يې چې خبر کړى دى هغې ته اخبار بالغيب او علم الغيب لغوي وايي، علم الغيب شرعي او اصطلاحي ورته نه وايي ځکه چې: مخکې دفتح الباري عبارت ذکر شو چې: فَإِنَّ لِبَعْضِ الْغُيُوبِ أَسْبَابًا قَدْ يُسْتَدَلُّ بِهَا عَلَيْهَا لَكِنْ لَيْسَ ذَلِكَ حَقِيقِيًّا)(فتح البارى:صـ: ۴۹۱).

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد واله واصحابه اجمعين.

تمت بالخير

﴿وَهُوَ مَعَكُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ﴾

# حاضر او ناظر صرف الله تعالى دى

مؤلف: الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني النتجرهاري

## مسئله دحاظر او ناظر

په دې باب کې بريلوي د مدعي حيثيت لري او أهل سنت والجماعت د مدعى عليه حيثيت لري.

## دبريلويانو دعوه

بريلوي حضرات وايي چې نبي عليه السلام په هر وخت او په هر ځای کې حاضر او ناظر دی، څوک چې ددې څخه انکار کوي هغه کافر او د دائرې داسلام څخه خارج دی ، دبريليانو حکيم الأمت مفتی احمد يار خان نعيمي په خپل کتاب جاء الحق ص ۱۵۷، کې ليکي چې: (حضور علیہ السلام کے نگاہ ' ہر وخت عالم کی زرہ زرہ پر ہی اور نماز وتلاوت قرآن ' محفل میلاد شریف ' اور نعت خوانی کی مجالس میں اسی طرح صالحین کی نماز جنازہ میں خاص طور پر اپنی جسم پاک سے تشریف فرماہوتی ہے (جاء الحق ص- ۱۵۷) همداسې په ص ۶۳) کې ليکي چې: (خدا کو ہر جگھ مین ماننابی دینی ہی ہر جگہ میں ہونا تو رسول خدا کی ہے شان ہو سکتی ہے )او په ص ۱۶۲ باندې ليکي چې: ( حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کی خدام مین ہر جگھ رھنی کاطاقت ہی تو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مین بدرجہ اولی یہ صفت ہی.) يو بل بريلوي عالم، احمد سعيد کاظمي ملتاني ليکي چې: (کوئی مقام اور کوئی وقت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سی خالی نہین ہی (تسکین الخواطر فی مسئلۃ الحاضر والناظر ص- ۸۵)

همدارنګې عبدالسميع رامپوري بريلوي په خپل کتاب (انوار ساطعه ۵۲ ) کې ليکي چې شيطان او ملک الموت په هر ځای کې حاضر او ناظر دی، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په طريق اولی سره حاضر او ناظر وي.

لطيفه: ددې استدلال څخه معلومه شوه چې په هر ځای کې حاضر او ناظر کيدل د کمالاتو د نبوت څخه نه دی، ځکه چې د بريلويانو په عقيده کې شيطان هم حاضر او ناظر دی.

## دبريلويانو په دعوه باندې تنقيحات

۱-نبي عليه السلام په اعتبار د روح سره په هر ځای کې حاضر او ناظر دی ؟.

۲-او که په اعتبار د جسم سره ؟

۳-او که په اعتبار د مجموعې سره ؟

۴- د جسم څخه کوم يو جسم مراد دی؟ جسد عنصري او که مثالی؟

۵-که نبي عليه السلام صرف په اعتبار د روح اقدس سره يا په اعتبار د روح او د جسد دواړو سره په هر وخت او په هر ځای کې حاضر وي نو د کوم وخت څخه حاضر او ناظر دی؟

۶-دکائناتو دابتداء څخه؟ او که دنبی علیه السلام دپیدائش څخه وروسته؟ او که دنبوت څخه وروسته؟ او که دوفات څخه وروسته؟.

۷-تر کله پورې حاضر او ناظر دی؟ تر وفاته پورې؟ او که تر قیامته پورې؟

۸-صرف نبي علیه السلام حاضر او ناظر دی؟ او که ټول انبیاء حاضر او ناظر دي؟

**اعتراض:** بریلویان وايي چې تاسو چې زمونږ څخه دنبی علیه السلام دحاضر او دناظر کیدلو په باره کې دکیفیت پوښتنې کوئ نو مونږ هم ستاسو څخه دالله تعالٰی دحاضر اودناظر کیدلو دکیفیت پوښتنې کوو، تاسو خو الله تعالٰی ته حاضر او ناظر وایئ نو تاسو یې دکیفیت تعین وکړئ.

**جواب:** (القیاس لایجری فی العقائد)

عقاید خو منصوص علیها بنصٍ قطعي وي او قیاس په غیر منصوص علیها مسایلو کې کیږی، دقیاس دپاره ضروري ده چې په مقیس او مقیس علیه کې به څه علت مشترکه وي، دنبي علیه السلام د نورو صفاتو قیاس دالله تعالٰی په صفاتو باندې صحیح نه دی، نو دحاضر او دناظر په صفت کې دنبي علیه السلام صفت ولې دالله تعالٰی په صفت باندې قیاس سوئ.

**دوهم جواب:** الله تعالٰی دجسمیت څخه پاک دی، لدې وجې دالله تعالٰی دحاضر او دناظر کیدلو د کیفیت په باره کې به پوښتنه نه کیږي او نبي علیه السلام چې کله په دنیا کې موجود وو، نو دهغوي جسم مبارک وو خلکو لیدلو، په نظر راتللو اوس چې یې ددې دنیاء څخه تشریف ویوړو نو تاسو څرنګه وایي چې دکیفیت په باره کې به یې پوښتنه نه کیږي؟

## داهل سنت والجماعت او د أهل بدعت بریلوي مختصره مکالمه

أهل بدعت: ایا تاسو نبي کریم ﷺ ته حاضر اوناظر وایئ؟

أهل سنت: زه خو تا هم حاضر او ناظر ګڼم، ځکه چې ته چې دلته موجود یې نو حاضر شوې او کتل هم کوئ نو ناظر شوې.

اهل بدعت: زه خو په هر ځای کې حاضر او ناظر نه يم، رسول الله ﷺ خو په هر ځای کې حاضر اوناظر دی ،نو تاسو دنبي کريم ﷺ په هر ځايکې حاضر اوناظر والې منئ او که نه ؟

اهل سنت: رسول الله ﷺ چې په عالم الدنيا کې وو نو پخپلو مجالسو کې حاضر اوناظر وو، ځکه چې په مجالسو کې به موجود هم وو او خلکو ته به يې کتل هم ،لکن په عالم الدنيا کې هم په هر ځای کې حاضر اوناظر نه وو، او س په عالم البرزخ کې هم نبي کريم ﷺ يو اځې په روضه مبارکه کې بالذات حاضر دی او دحاضرينو صلوة اوسلام أورې.

اهل بدعت: دکلمې شريفې ترجمه څه ده ؟

أهل سنت: الله تعالی يو دی او دالله تعالی څخه ماسوا بل هيڅوک دعبادت لايق نشته او محمد ﷺ د الله تعالی رسول دی.

اهل بدعت: محمد ﷺ دالله تعالی رسول وو، او که دالله تعالی رسول دی ؟

اهل سنت: دالله تعالی رسول دی.

اهل بدعت: چې دالله تعالی رسول دی نو خو په هرځای کې حاضر او ناظر شو ، کنه نو بيا داسې ويل پکار دي چې رسول الله ﷺ دالله تعالی رسول وو ؟

اهل سنت: دمحمد ﷺ رسالت دهرځای لپاره دی، ځکه خو مونږ وايو چې رسول دی، لکن محمد ﷺ پخپله په يو ځای کې دی ،لکه لمر چې په يو ځآی کې وي او رڼايې په ډيرو ځايونو کې وي.

اهل سنت: تاسو دنبي کريم ﷺ روح ته حاضر اوناظر وايئ؟ او که جسد اطهر ته ؟ او که مجموعي ته ؟

اهل بدعت: بس صرف دومره عقيده کافي ده چې محمد ﷺ حاضر اوناظر دی ، دتفصيلاتو څخه يې بحث کول مناسب نه دي، لکه الله تعالی چې په هرځای کې حاضر اوناظر دی او نور تفصيل يې نشته چې څرنګه حاضر اوناظر دی؟

اهل سنت: دهمدې ځای څخه ستاسو دشرک ابتداء ده ،تاسو بحث په مخلوق کې کوئ، او په مثال کې خالق ذکر کوئ. الله تعالی خو بې مثله ذات دی ، دالله دکنهې ادراک ممتنع دی . په خلاف دانبياو وعليهم السلام څخه انبياء خو ټول انسانان دي ، اجسام لري، خلکو يې اجسام ليدلي دي، نکاح

ګاڼې يې کړي دي او لادونه لري، نو انبياء غير مدرک بالکنه نه دی ، دمخلوق په مثال کې دخالق ذکر کول شرک دی .

اهل بدعت: زما دا عقيده ده چې دنبي کريم ﷺ روح په هرځای کې حاضر اوناظر دی او جسم مبارک يې صرف په روضه مبارکه کې دی .

اهل سنت: روح مبارک دکوم وخت څخه حاضر او ناظر دی؟ دوفات څخه مخکې ؟ اوکه دوفات څخه وروسته؟

اهل بدعت زما په خيال دوفات څخه وروسته حاضر ا وناظر دی ،ځکه چې دوفات څخه مخکې خو دنبي کريم ﷺ روح دنبي کريم ﷺ په جسد مبارک کې وو.

اهل سنت: ښه اوس دا ووايه چې دا عقيده چا دروښودله چې دنبي کريم ﷺ روح دوفات څخه وروسته حاضر اوناظر دی؟ دين اوعقايد خو همغه وو چې نبي کريم ﷺ بيان کړي وو، او په (اليوم اکملت لکم دينکم ) باندې يې دتکميل اعلان شوی وو اوس دنبي کريم ﷺ دوفات څخه وروسته دا دحاضراوناظر دعقيدې موجد څوک دی ؟

اهل بدعت: دا عقيده زمونږ علماء بيانوي .

اهل سنت: علماء بيانول کوي، لکن جوړول نه شي کولی، زه وايم چې دا عقيده چا جوړه کړه ؟

اهل بدعت: دنبي کريم ﷺ روح په عالم الدنيا کې هم په هرځای کې حاضر اوناظر وو او دوفات څخه وروسته هم په هرځای کې حاضر اوناظر دی؟

اهل سنت: ددې سره خو دا لازمه ده چې په دنيا کې دی بل هيڅ شی هم موجودنه وي، ځکه چې په هرځای کې نبي کريم ﷺ دی، نو بل شی به څرنګه ورسره ځای شي؟ په يو ځای کې خو دوه شيان نه ځايږي.

اهل بدعت: الله تعالى هم په هرځای کې موجود دی، نو ايا ددې څخه دنورو تمامو مخلوقات نفی راځي ؟

اهل سنت: مادرته مخکې وويل چې دمخلوق لپاره په مثال کې دخالق ذکر کول شرک دی.

## جواب دعوی

په هر وخت او په هر ځای کې حاضر او ناظر کيدل دالله تعالى صفت دی، دالله تعالى څخه علاوه هيڅ څوک هم په هر وخت او په هر ځای کې حاضر او ناظر نه دی، نه دجسم په اعتبار سره او نه د روح په اعتبار سره .

## حکم

ددې دعوې څخه منکر د دائرې داسلام څخه خارج او قطعي کافر دی.

## وضاحت دجواب دعوی

نبي علیه السلام چې کله په دې دنیا کې وو نو بې شکه چې په هغه ځای کې چې نبي علیه السلام به پکې وؤ هلته حاضر او ناظر وو، نبي علیه السلام به په خپلو مجالسو کې موجود هم وو او حاضرینو ته به یې کتل هم، لیکن په هغه وخت کې هم نبي علیه السلام په هر وخت کې او په هرځای کې موجود نه وو یعنې چې په مکه مکرمه کې به وو، نو په مدینه منوره کې به نه وو او که په مدینه منوره کې به وو نو په مکه مکرمه کې به نه وو او دمعراج په شپه چې اسمانونو ته لاړو نو په زمکه باندې موجود نه وو اوس هم نبي علیه السلام په خپله روضه مبارکه کې بالذات موجود دی او عند القبر درود او سلام بالذات اوري او دلرې څخه یې ورته ملایکې وررسوي.

## دبریلویانو مغالطات

**۱-مغالطه:** دحاضر معنی ده په ښارونو او په کلو کې اوسیدونکی او دناظر معنی ده دمخ په سترګو سره کتونکی (منجد او مصباح اللغات)

**استدلال:** اوس دا صفات خود الله تعالی نه شي کیدلی، نو ثابته شوه چې دا دنبي علیه السلام صفات دي، ځکه چې نبی علیه السلام په ښارونو او په کلو کې اوسیدلو او په جسماني سترګو سره یې لیدل او کتل کول او الله تعالی دجسمیت څخه پاک او منزه دی.

**اول جواب:** مصباح اللغات یا منجد والا چې کومه معنی نقل کړې ده، هغه یې دمخلوق دحال سره مناسبه نقل کړې ده، یعنې دمخلوق دحاضر او دناظر معنی یې ذکر کړې ده، کله چې دحاضر اطلاق په الله تعالی باندې وشي بیا به یې دنورو صفاتو په شان هغه معنی وي کومه چې دالله تعالی دجلالت شان سره لائقه او مناسبه وي

**دوهم جواب:** په منجد او په مصباح اللغات کې یې دشهید معنی حاضر (موجود) او دبصیر معنی یې بینا (ناظر) کړې ده، حالانکې دا دواړه خو هم دالله تعالی صفات دي.

نوټ: مخلوق په وجود کې مکان او جهة ته محتاج دی او الله تعالی په وجود کې مکان او جهت ته نه دی محتاج، بلکه مکان او جهة الله تعالی ته محتاج دي همداسې مخلوق په کتلو کې سترګو ته محتاجه دی

، سترګې په ليدلو کې الله تعالی ته محتاجې دي، خو الله تعالی په ليدلو او کتلو کې سترګو ته قطعاً نه دی محتاج، نو دا قسم قياسو نه کول باطل دي .

**دريم جواب:** که بالفرض دغه ومنلی شي چې ناظر هغه چاته وايي چې د جسم په سترګو سره کتل کوي، نو بيا به ددې نصوصو څه معنی شي چې ﴿عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّهْلِكَ عَدُوَّكُمْ وَيَسْتَخْلِفَكُمْ فِى الْاَرْضِ فَيَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ﴾ نو که د ناظر اطلاق په الله تعالی ناجائز وی نو موسی عليه السلام به ولې ددې صفت اطلاق کولو ؟ يا الله تعالی ولې ددې صفت د اطلاق څخه نه منع کولو ؟ ولې يې ورته نه ويل چې ای موسی عليه السلامه ناظر خو هغه چاته وايي چې د جسم په سترګو سره ليدل کوي او زه هو د جسميت څخه پاک يم ؟ همدا رنګه الله تعالی فرمايي چې : ﴿ثُمَّ جَعَلْنٰكُمْ خَلٰٓئِفَ فِى الْاَرْضِ مِنْۢ بَعْدِهِمْ لِنَنْظُرَ كَيْفَ تَعْمَلُوْنَ﴾ نو ايا الله تعالی ته علم نه وو ؟ چې ناظر هغه چا ته وايي چې د جسم په سترګو سره ليدل کوي او زه ددې څخه پاک يم ؟ ددې صفت اطلاق يې ولې کولو ؟

۳- دا رنګې په حديث کې راځي چې : (ان الله نظر الى الارض ،مسلم شريف) بيشکه چې الله تعالی نظر وکړو زمکې ته، نو په دې حديث کې هم صفت د نظر راغلو .

۴- په بل حديث کې راځي چې : ان الله مستخلفکم فی الارض فناظرٌ کيف تعملون (ترمذي شريف) اُوس که د ناظر اطلاق په الله تعالی باندې ناجائز وی نو بيا نبي عليه السلام ولې په الله تعالی باندې ددې صفت اطلاق کولو ؟ .

۵- دا رنګې الله تعالی فرمايي چې وما کنّا غائبين ) غائب نه دی نو ضرور حاضر دی .

**دوهمه مغالطه:**

۱- اِنَّاۤ اَرْسَلْنٰكَ شَاهِدًا وَّمُبَشِّرًا وَّنَذِيْرًا .

۲- اِنَّاۤ اَرْسَلْنَاۤ اِلَيْكُمْ رَسُوْلًا شَاهِدًا عَلَيْكُمْ كَمَاۤ اَرْسَلْنَاۤ اِلٰى فِرْعَوْنَ رَسُوْلًا .

۳- وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا .

۴- فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍۭ بِشَهِيْدٍ وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰۤؤُلَآءِ شَهِيْدًا .

۵- لِيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ شَهِيْدًا عَلَيْكُمْ)

په دې قسم ايتونو کې دبريليانو استدلال دلفظ دشاهد او دشهيد څخه دی، دوي وايي چې دقيامت په ورځ به نبي عليه السلام په مخکينو امتونو او په خپل امت باندې ګواهي کوي دشاهد معنی ګواه هم کيدی شي او حاضر او ناظر هم کيدی شي ګواه ته شاهد ددې وجې څخه ويلې کيږي چې هغه په دغه موقعه باندې حاضر وي.

**جواب:** که دشاهد معنی په هر وخت او په هر ځای کې حاضر او ناظر وي، نو بيا خو امت محمديه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هم په هر وخت او په هر ځای کې حاضر او ناظر کيدل پکار دي ،ځکه چې ددوي په باره کې هم الله فرمايي چې : ﴿وَكَذَٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا﴾

٢- لِيَكُونَ الرَّسُولُ شَهِيدًا عَلَيْكُمْ وَتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ (سورة الحج)

**دوهم جواب:** دشاهد هغه معنی چې په خپله نبي عليه السلام بيان کړی ده هغه دا ده چې دقيامت په ورځ به ټول انبياء او دهغوي امتونه راوبللی شي، الله تعالى به دهغوي څخه پوښتنې وکړي چې ايا تاسو خپل قوم ته تبليغ کړی وو؟ په هغوي کې به هريو ووايي چې هو يا الله ما دوي ته تبليغ کړی وو، بيا به دقوم څخه پوښتنه وشي نو قوم به يې دروغ ووايي چې يا الله مونږ ته يې تبليغ نه دی کړی.

نو اوس هر پيغمبر مدعي شو او قوم مدعی عليه (منکر) شو، نو الله به دهر پيغمبر څخه پوښتنه وکړي چې ايا ستاسره شاهدان شته؟ نو پيغمبر به وفرمايي چې هو يا الله! أمت محمديه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زما شاهد دی، الله تعالى به أمت محمدي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ راوغواړي، أمت محمد يه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به ګواهي ورکړي چې يا الله تعالى دې پيغمبر عليه السلام خپل قوم ته تبليغ کړی وو خو قوم نه وو منلی قوم به اعتراض وکړي چې يا الله تعالى دوي خو مونږ ليدلي هم نه يو دوي خو زمونږ څخه ډيره زمانه وروسته راغلې دي، دوي څنګه ګواهي کوي؟امت محمد يه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به جواب ورکړي چې يا الله تعالى ستا په کتاب (قرآن) کې دا خبره ذکر شوې ده، مونږ هلته ليدلې ده ، الله تعالى به دنبي عليه السلام څخه تپوس وکړي چې ايا ستا أمت رشتيا وايي ؟ نبي عليه السلام به ګواهي ورکړی چې هو رشتيا وايئ په احاديثو کې همدا مطلب د : ﴿جِئْنَا بِكَ عَلَىٰ هَٰؤُلَاءِ شَهِيدًا﴾ ذکر شوی دی، بخاري ص ١٢٨) کتاب التفسير)

عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الخُدْرِيِّ رضي الله عنه، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يُدْعَى نُوحٌ يَوْمَ القِيَامَةِ، فَيَقُولُ: لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ يَا رَبِّ! فَيَقُولُ: هَلْ بَلَّغْتَ؟ فَيَقُولُ: نَعَمْ، فَيُقَالُ لِأُمَّتِهِ: هَلْ بَلَّغَكُمْ؟ فَيَقُولُونَ: مَا أَتَانَا مِنْ نَذِيرٍ، فَيَقُولُ: مَنْ يَشْهَدُ لَكَ؟ فَيَقُولُ: مُحَمَّدٌ صلى الله عليه وسلم وَأُمَّتُهُ، فَتَشْهَدُونَ أَنَّهُ قَدْ بَلَّغَ: {وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا}

[البقرة: ۱۴۳] فَذٰلِكَ قَوْلُهُ جَلَّ ذِكْرُهُ: {وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطًا لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا} [البقرة: ۱۴۳]" (بخاري: صـ ۱۲۸، كتاب التفسير قديمه؛ صـ ۶۴۵)

علامه قرطبي رحمه الله دا حديث نقل كوي او ددې څخه وروسته ليكي چې: وَذَكَرَ هٰذَا الْحَدِيثَ مُطَوَّلًا ابن المبارك رحمه الله بمعناه، وَفِيهِ: (فَتَقُولُ تِلْكَ الْأُمَمُ كَيْفَ يَشْهَدُ عَلَيْنَا مَنْ لَمْ يُدْرِكْنَا فَيَقُولُ لَهُمُ الرَّبُّ سُبْحَانَهُ كَيْفَ تَشْهَدُونَ عَلٰى مَنْ لَمْ تُدْرِكُوا؟ فَيَقُولُونَ رَبَّنَا بَعَثْتَ إِلَيْنَا رَسُولًا وَأَنْزَلْتَ إِلَيْنَا عَهْدَكَ وَكِتَابَكَ وَقَصَصْتَ عَلَيْنَا أَنَّهُمْ قَدْ بَلَّغُوا فَشَهِدْنَا بِمَا عَهِدْتَ إِلَيْنَا فَيَقُولُ الرَّبُّ صَدَقُوا فَذٰلِكَ قَوْلُهُ عَزَّ وَجَلَّ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَاكُمْ أُمَّةً وَسَطاً- ...الخ(تفسير القرطبي:ج ۲صـ ۱۵۰ مكتبة دار الكتاب)

**دريم جواب:** نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به بعضې خلكويني چې جهنم ته به روان وي نو نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دالله تعالى په دربار كې ددوي په حق كې سفارش وكړي ،نو دالله تعالى دطرف څخه به جواب وشي چې (انک لا تدري ما أحدثوا بعدک ، بخاري ج ۲صـ ۹۷۴ رحمانيه)

**استدلال:** نوكه نبى عليه السلام په هر وخت كې او په هر ځاى كې حاضر اوناظر وي او عالم الغيب وي ، نو بيا يې ولې دبدعتيانو او دمرتدينو سفارش كولو؟ لكه دمسلم شريف صـ ۳۸۴، باندې روايت دى چې (انهم لم يزالو مرتدين على اعقابهم مذ فارقتهم ).

**څلورم جواب:** دهر شهادت دپاره دا ضروري نه ده چې ګواه او شاهد دى پخپلو ستركو اصل واقعه ليدلې وي، بلكه د يو ثقه او معتبر كس په ښودلو باندې او په معقولې ذريعې سره دعلم په راتلو باندې شهادت او په دې باندې دشهادت اطلاق هم جائز دى مثلا: (لِتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ) په قيامت كې به امت ګواهي وركوي، ددې وجه څخه نه چې دوي حاضر او ناظر دي بلكه ددې وجه څخه چې دوي ته په معتبرې ذريعې سره خبر رارسيدلى دى چې قرآن دى ، مونږ په اذان كې پنځه وخته وايو چې اشهد أن محمدا رسول الله مونږ ګواهي وركوو چې محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دالله تعالى رسول دى حالانكه الله تعالى او رسول الله مونږ نه دي ليدلي بلكې په (معتبرې ذريعې سره رارسيدلى دى).

وَشَهِدَ شَاهِدٌ مِنْ أَهْلِهَا (سورة يوسف) او ګواهي وركړه يو هلک دزليخې دأهل څخه، نو دلته هم ګواه په خپلو ستركو باندې اصل واقعه نه وه ليدلې او قرآنورباندې دګواهى اطلاق كړى دى، په حديث كې راځي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ديو اعرابي څخه أس واخستو، بيعه وشوه، نبى عليه السلام كورته لاړو چې

پيسې راوړې، په دې درميان کې نور خريداران را غله هغوي ته دا معلومات نه وو چې نبي عليه السلام دا أس اخيستى دى اعرابي نبي عليه السلام ته اواز وکړو چې که ته يې أخلې نو واخله که نه زه يې خرڅوم، نبي عليه السلام ورته وفرمايل ما خو اخيستى دى، اعرابي انکار وکړو، نو نبى عليه السلام وفرمايل:

«بَلٰى! قَدِ ابْتَعْتُهُ مِنْكَ» فَطَفِقَ الْأَعْرَابِيُّ، يَقُولُ هَلُمَّ شَهِيدًا، فَقَالَ خُزَيْمَةُ بْنُ ثَابِتٍ ﵁: أَنَا أَشْهَدُ أَنَّكَ قَدْ بَايَعْتَهُ، فَأَقْبَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى خُزَيْمَةَ فَقَالَ: «بِمَ تَشْهَدُ؟» فَقَالَ: بِتَصْدِيقِكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَجَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهَادَةَ خُزَيْمَةَ بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ... (ابوداؤد: ١٥٢/٢، حقانيه) بَابٌ إِذَا عَلِمَ الْحَاكِمُ صِدْقَ الشَّاهِدِ الْوَاحِدِ يَجُوزُ لَهُ أَنْ يَحْكُمَ بِهِ (کتاب القضاء)

استدلال: په دې ځاى کې خذيمة ﵁ نه وو او ګواهي ورکوي او د ګواه اطلاق هم پرې شوې دى، لهذا دا خبره غلطه ده چې د هرې ګواهي دپاره بچشم خود اصل واقعه ليدل او د هغې معائنه کول ضروري دي، امام قدوري رحمه الله ليکي: لا يجوز للشاهد أن يشهد بشيء لم يعاينه الاالنسب والموت والنكاح والدخول وولاية القاضي فانه يسعه أن يشهدبهذه الاشياء اذا أخبره بها من يثق به (مختصر القدورى صـ ٢٦٩، کتاب الشهادة، صبح النورى صـ ٥٩٣، دارنګې هدايه ج٣ص١٦٥، رحمانيه)

فايده: تقريباً، لس، ايتونه داسې دي چې په هغې کې دنبي عليه السلام دپاره لفظ دشاهد يا دشهيد راغلى دى، بريلويان دهغو ټولو څخه په مسئله دحاضر او ناظر کې استدلال کوي، نو زمونږ دا جواب دهغه لسو واړو استدلالاتو څخه شو.

**دريمه مغالطه:**

الف: وَمَآ اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ (الأية)

ب: وَرَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ

**الاستدلال:** دوي وايي چې نبي عليه السلام ددواړو جهانونو لپاره رحمت دى او رحمت په دواړه جهانونو باندې محيط وي، نو رسول الله ﷺ په دواړه جهانونو کې حاضر او ناظر شو.

**اول جواب:** په قرآن مجيد کې په ډيرو شيانو باندې د رحمت اطلاق شوى دى او په کوم ځاى کې چې دلفظ د رحمت اطلاق په انبياء کرامو عليهم السلام باندې شوى دى نو هلته ترينه مراد نبوت دى، مثلا نوح عليه السلام فرمايي چې: ﴿قَالَ يٰقَوْمِ اَرَءَيْتُمْ اِنْ كُنْتُ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَاٰتٰىنِيْ رَحْمَةً مِّنْ عِنْدِهٖ﴾

علامه جلال الدين سيوطي رَحِمَهُ اللهُ په جلالين صـ ۱۸۲، قديمي کتب خانه) کې فرمايي چې ددې ځخه مراد نبوت دى.

**دوهم جواب:** وَاللّٰهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَاءُ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ(سورة بقره)

دلته هم درحمت ځخه مراد نبوت دى (جلالين بقره)

وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِدْرِيْسَ وَذَا الْكِفْلِ كُلٌّ مِّنَ الصّٰبِرِيْنَ وَاَدْخَلْنٰهُمْ فِيْ رَحْمَتِنَا اِنَّهُمْ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ (سورة انبياء)

دلته هم درحمت ځخه مراد نبوت دى (جلالين صـ ۲۷۶، دغه شان په وما ارسلنک الخ کې هم درحمت ځخه مراد نبوت دى، نو په دې کې دنبي عليه السلام دنبوت مسئله بيان کړې شوې ده چې مونږ ته دپوره مخلوقاتو دپاره نبي جوړ کړی يې.

**دوهم جواب:** که درحمت ځخه مراد دنبی عليه السلام ذات شي، نو بيا هم ددې ځخه دا نه ثابتيږي چې نبی عليه السلام په هر ځای کې او په هر وخت کې حاضر او ناظر دى، ځکه چې په بل ځای الله تعالى فرمايي چې: اِنَّ رَحْمَتَ اللّٰهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِيْنَ(سورة الاعراف)

نوبيا خوددې ځخه معلومه شوه چې نبی عليه السلام صرف دمحسنينو لپاره حاضر او ناظر دى، جمادات، نباتات، حيوانات، فضاء خلاء ستوري، وغيره خو يو طرفته کړه، هغه علاقې چې هلته ځوک نه اوسيږي، هغه هم خارجې شوې، په کومو ځايونو کې چې کافران اوسيږي هغه علاقې هم خارجې شوې او په کومو ځايونو کې چې ګناه ګار خلق اوسيږي هغه هم خارج شو، ځکه چې دمحسن مفهوم خو خاص دى.

**۳- دريم جواب:** په باران باندې هم درحمت اطلاق شوی دى، ﴿بُشْرًا بَيْنَ يَدَيْ رَحْمَتِهٖ﴾(سورة نمل)

۴- په سکون او په اطمنان باندې هم د رحمت اطلاق شوی دى ﴿ثُمَّ اِذَآ اَذَاقَهُمْ مِّنْهُ رَحْمَةً﴾

۵- دښځې او دخاوند په منځ کې په الفت او په محبت باندې هم د رحمت اطلاق شوی دى، ﴿وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَّوَدَّةً وَّرَحْمَةً﴾(سورة روم) نو ايا دا ټول شيان هم په هر ځای کې او په هر وخت کې حاضر او ناظر دي؟

**خلورمه مغالطه:**

وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ(سورة توبه)

بريلويان وايي چې ددې ځخه ثابته شوه چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دامت دتمام اعمالو معاينه کوي او وينې يې، نو ددې ځخه ثابته شوه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هر ځای کې په هر وخت کې حاضر او ناظر دى.

**جواب:** دا استدلال باطل او مردود دی، ځکه چې که ددې ایت شان نزول ته او کتلی شي نو دغه استدلال فاسد ګرځي، دغزوې دتبوک په موقعه باندې بعضې منافقانو ددرغو عذرونه او بهانې وکړې او دنبي علیه السلام څخه یې دپاتې کیدلو اجازت وغوښتلو، نبی علیه السلام دوي معذور وګڼل او دپاتې کیدو اجازت یې ورکړو، الله تعالی ارشاد وفرمایلو چې: عَفَا اللّٰهُ عَنْكَ لِمَ اَذِنْتَ لَهُمْ حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا وَتَعْلَمَ الْكٰذِبِيْنَ (سورة توبه)

یعنې که تا اجازت نه وی ورکړی نو په خپله به ددوي منافقت ظاهر شوی وو او ددوي د اعمالو څخه به تا ددوي دروغ معلوم کړی وی، نبی علیه السلام چې کله دصحابه وو دلښکر سره په فاتحانه انداز باندې را روان وو او منافقینو ته ددې اطلاع ورسیدله، نو هغوي پریشان شو او دغلطو او باطلو حیلو منصوبه بندي یې وکړه، نو الله دا ایتونه نازل کړل چې: يَعْتَذِرُوْنَ اِلَيْكُمْ اِذَا رَجَعْتُمْ اِلَيْهِمْ قُلْ لَّا تَعْتَذِرُوْا لَنْ نُّؤْمِنَ لَكُمْ قَدْ نَبَّاَنَا اللّٰهُ مِنْ اَخْبَارِكُمْ وَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ

یعنې اوس سابقه قصې پریږدئ اینده به ستاسو طرز العمل ته کتلی شی، چې تاسو تر کومه پورې وعدې پوره کوئ نو ددې څخه دا خبره واضحه شوه چې په دې ایت کې دهغو باطلو عذرونو دپیش کونکو منافقینو دظاهري کار روایۍ او دطرز العمل لیدل مراد دي، په باطني رازونو او عملونو باندې خبر دارکیدل او دامت تمام اعمال لیدل دا صرف دعلیم بذات الصدور خاصه ده، لکه څرنګه چې په دې ایت کې په خپله تصریح موجوده ده.

دوهم جواب: که په دې ایت کې د رؤیت څخه رؤیت بصري مراد شي او هغه هم دتمام امت دپاره، نو لازم به شي چې ټول مؤمنان هم په هر ځای کې او په هر وخت کې حاضر او ناظر دي او دتمام امت دظاهر اودباطن څخه خبردار دي، ځکه چې په دې ایت نمبر (١٠٥) کې الله تعالی فرمایي چې: وَقُلِ اعْمَلُوْا فَسَيَرَى اللّٰهُ عَمَلَكُمْ وَرَسُوْلُهٗ وَالْمُؤْمِنُوْنَ (الایه)

**پنځمه مغالطه:**

لَقَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ اَنْفُسِكُمْ (الایه)

په جاء کم کې تر قیامته پورې راتلونکو مسلمانانو ته خطاب دی، نو ددې څخه معلومه شوه چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دهر مسلمان خوا ته دی او مسلمانان ددې دنیا په هرځای کې شته نو لهذا نبي علیه السلام هم په هر ځای کې حاضر شو.

اول جواب: دا استدلال قطعاً بی بنیاده دی، ځکه چې دجاء نسبت صرف نبي علیه السلام ته نه دی شوی بلکه دقرآن مجید طرفته هم شوی دی، الله تعالی فرمايي چې: قَدْ جَآءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّكِتٰبٌ مُّبِيْنٌ (الایه)

نو اوس هغه استدلال دلته هم جاري کړه، چې په جاء کم کې خطاب ترقیامته پورې مسلمانانو ته دی او مسلمانان ددنیا په هرځای کې موجود دي، نو معلومه شوه چې قرآن هم په هرځای کې حاضر او ناظر دی، نو بیا تاسو قرآن ته ولې په هرځای کې حاضر او ناظر نه وایي.

**شپږمه مغالطه:**

اَلنَّبِيُّ اَوْلٰى بِالْمُؤْمِنِيْنَ مِنْ اَنْفُسِهِمْ (سورة احزاب)

ددې ایت څخه معلومیږي چې نبي علیه السلام مسلمانانو ته ددوي دنفسونو څخه هم زیات نزدې دی، نو په ایت کریمه کې اولی په معنی داقرب سره دی، نو معلومه شوه چې نبي علیه السلام په هر ځای او په هر وخت کې حاضر او ناظر دی ځکه چې مسلمانان خو ددنیا په هر ځای کې موجود دي.

**جواب:** داولی معنی مفسرینو په أحق سره کړې ده، تفسیر مظهري ج ۹ صـ ۲۰۱، جلالین صـ ۳۱۵، حاشیه ۲۰، قرطبی ج ۱۴ صـ ۱۱۱) که اولی په معنی د أقرب سره شي نو بیا هم د بریلیانو دعوی نه ثابتیږي ځکه چې دې ایت کې یو خو دمؤمنانو تخصیص راغلی دی، نو په دې سره هغه مقامات خارج شو په کومو کې چې کافران اوسیږي او هغه مکانات هم خارج شو په کومو کې چې څوک نه اوسیږي دغه رنګې سمندرونه او دریابونه هم خارج شول، ځکه چې هلته خو انسانان نه اوسیږي، حاصل دا چې دبریلیانو دعوی تر پښه نه ثابتیږي.

**اوومه مغالطه:**

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ يَرُدُّوْكُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ كٰفِرِيْنَ وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ وَاَنْتُمْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ اٰيٰتُ اللّٰهِ وَفِيْكُمْ رَسُوْلُه (الایه)

په بل ایت کې دي چې: يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِنْ جَآءَكُمْ فَاسِقٌۢ بِنَبَاٍ فَتَبَيَّنُوْۤا اَنْ تُصِيْبُوْا قَوْمًاۢ بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوْا عَلٰى مَا فَعَلْتُمْ نٰدِمِيْنَ وَاعْلَمُوْۤا اَنَّ فِيْكُمْ رَسُوْلَ اللّٰهِ لَوْ يُطِيْعُكُمْ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنَ الْاَمْرِ لَعَنِتُّمْ (سورة الحجرات)

بريلويان وايي چې په دې دواړو ايتونو کې د (وفيکم) لفظ تر قيامته پورې راتلو نکو ټولو مؤمنانو ته خطاب دى، نو معلومه شوه چې نبي عليه السلام په هرځاى کې په هر وخت کې حاضر او ناظر دى ځکه چې مؤمنان خو په ټوله دنياء کې په هرځاى کې موجود دي.

**جواب:** په اولني ايت کې په (وفيکم) کې خطاب ټولو مؤمنانو ته نه دى، بلکه د أوس او دخزرج بعضو صحابه وو ته دى، مفسرينو ددې ايتونو شان نزول په تفصيل سره ذکر کړى دى، حاصل يې دا دى چې دأوس او دخزرج دمشرکينو دوه غټې قبيلې وى، ددير وخت څخه ددوي په منځ کې دشمنى را رواني وې، نبي عليه السلام چې مدينې منورې ته هجرت وکړو نو دا دواړه قبيلې په اسلام کې داخلې شوې او هغه دشمنيانې يې په دوستى او رورولى باندې بدلې شوې، نو يهودو به دانه شوه برداشت کولى، نو هميشه به يې ددوي په منځ کې دجنګ دګرمولو کوشش کولو، په يو موقع يې داسې اشعار شروع کړه چې ددوي په منځ کې يې هغه زړې دشمنى راوپارولې او يو دبل پسې يې تورې راويستلې، نبى عليه السلام خبر شو نو فورا راورسيدلو او دوي يې په خپل منځ کې بيا غاړه په غاړه کړه، نو په دغه وخت کې دا ايتونه نازل شو، ددويم ايت شان نزول مفسرينو په تفصيل سره ذکر کړى دى، حاصل يې دا دى چې عقبه ابن الوليد نبى عليه السلام دزکوة عامل جوړ کړى وو او دبنى المصطلق قبيلې طرفته يې ليږلي وو دده دهغوي سره زړه دشمنيو ته په لاره کې ده ته يو شيطان يا منافق خبر ورکړو چې دبنى المصطلق خلکو ستا دقتل پروګرام جوړ کړى دى، که لاړې نو قتل کوي دې، دى چې کله ورسيدو، نو چونکه دبني المصطلق دقبيلې خلک دباندو وو نو دوي به چې دچا استقبال کولو داسلحو سره به راووتل، لکه نن صبا هم په بعضې ځايونو کې رواج دى، نو ده چې دا وليدل خيال يې وکړو چې واقعي دا خلق زما په قتل پسې راوتلي دي، يو خوېې ددوي سره زړه دشمني تيره شوې وه، دويم په لاره کې ورته هم خبر ورکړى شوى وو دريم دوي داسلحو سره ولاړ وو لهذا واپس شو او نبى عليه السلام ته يې وويل چې هغوي زما په قتل پسې راوتلي وو نو زه واپس شوم، نبي عليه السلام دتحقيق دپاره صحابه او ليږل، نو دتحقيق څخه وروسته معلومه شوه چې د دده خيال وو حقيقت کې داسې نه وه، نو په دغه وخت کې دا ايتونه نازل شو چې: (يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ جَاءَكُمْ فَاسِقٌ الخ)

نوټ: په دې ایت کې فاسق هغه چاته ویلی شوی دی، کوم چې عقبه ابن الولید رضی الله عنه ته په لاره کې خبر ورکړی وو عقبه ابن الولید ته فاسق نه دي ویلي شوي ، نو معلومه شوه چې په دواړه ایتونو کې خطاب ټولو مؤمنانو ته نه دی، لهذا دبریلیانو استدلال باطل دی.

اعتراض: **العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص المورد.**

الجواب: دا ایجاب کلي عرفي دی، حقیقي نه دی، ځکه چې په بعض وختونو کې خصوص د سبب ته اعتباروي عام لفظ ته اعتبار نه وي له دې وجې دا خطاب د اوس او دخزرج قبیلو ته دی او که عموم اللفظ واخلو نو بیا هم په هر ځای کې حاضر او ناظر کیدل نه ثابتیږي، ځکه چې په نورو ایتونو کې لکه : **وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يُلْقُونَ أَقْلَامَهُمْ أَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يَخْتَصِمُونَ**، کې ددې نفی موجوده ده .

۲-جواب: که (وفیکم) عام ومنلی شي نو بیا هم هغه ځایونه خارج شو په کومو کې چې مؤمنان نشته، یا هغه ځایونه په کومو کې چې کفار دي، یا سمندورنه، دریابونه، فضاء صحراگاني وغیره خارج شول.

**اتمه مغالطه:**

**ماكنت تقول في حق هذا الرجل لمحمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (الحديث)**

بریلویان وایي چې په لفظ دهذا سره اشاره قریب ته کیږي، نو ددې څخه معلومه شوه چې نبی علیه السلام په قبر کې دهر میت خواته حاضر او ناظر دی او بالفرض که په زمکه کې په یو ځل لس لکه انسانان په یو ځای وفات شي، نو دحدیث مطابق به دی ټولو ته نبي علیه السلام وربنکاره کولی شي او دټولو څخه به دهذا الرجل پوښتنه کیږي ، نو نبي علیه السلام په دې ټولو ځایونو کې حاضر او ناظر شو .

جواب: هذا اسم اشاره لکه څرنګه چې دحاضر في نفس الامر دپاره راځي، نو همدارنګه په بعضې مقاماتو کې دغائب دپاره هم راځي، صاحب دمطول لیکي چې **ویجوز علی قلة لفظ الحاضر نو قاتل هذا الرجل وان کان غائبا (مطول صـ ۱۷۰)** او په حدیثو کې هم ددې ډیر مثالونه شته دی: هر قل بادشاه چې کله ابو سفیان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راوغوښتلو نو پوښتنه یې ترې وکړه چې: **(أیکم أقرب نسبا بهذا الرجل)** بخاری صـ ۵۹ ، رحمانیه) حالانکه هغه بادشاه په شام کې وو.

۲-دابو ذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په باره کې راځي چې دده خپل ورور دتحقیق د پاره مکې مکرمې ته ولیږلو او ورته یې وویل چې لاړشه الی هذا الوادیّ او ماته دهغه سړي خبر راوړه (بخاری ج ۱ صـ ۱۴۴، قدیمی)

۳-محدثین او شراح هم لیکي چې نبي علیه السلام په قبر کې میت ته نشي حاضرولی ، بلکه دشهرت په بناء باندې به پوښتنه کیږي، امام سیوطي رحمه الله لیکلي دي چې: وسئل (حافظ ابن حجر) هل يكشف له (ای للميت) حتی یری النبی علیه السلام فاجاب أنه لم يروا هذا فی حديث وانما ادعاه بعض من لا يحتج به...لان الاشارة الى الحاضر فى الذهن (شرح الصدور صـ ٦٠، مجموعه الفتاوی ج ٢صـ ٢٧)

نو ددې څخه معلومه شوه چې دلفظ دهذا څخه په حاضر او په ناظر باندې استدلال کونکي هغه خلک دي چې دهغوي خبره دسره حجت نه دی او دهذا اشاره معهود فی الذهن دپاره ده او هم دغه وجه ده چې مړی په جواب کې وايي چې: هغه دخدای رسول دی، که چیرته نبی علیه السلام دمیت مخې ته حاضروی نو په جواب کې داسې ویل پکار وؤ چې: دا دخدای تعالی رسول دی.

۴- عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: أَنَّ أَسْوَدَ رَجُلًا - أَوِ امْرَأَةً - كَانَ يَكُونُ فِي الْمَسْجِدِ يَقُمُّ الْمَسْجِدَ، فَمَاتَ وَلَمْ يَعْلَمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَوْتِهِ، فَذَكَرَهُ ذَاتَ يَوْمٍ فَقَالَ: «مَا فَعَلَ ذٰلِكَ الإِنْسَانُ؟» قَالُوا: مَاتَ يَا رَسُولَ اللهِ، [ﷺ] قَالَ: «أَفَلَا آذَنْتُمُونِي؟» فَقَالُوا: إِنَّهُ كَانَ كَذَا وَكَذَا - قِصَّتُهُ - قَالَ: فَحَقَرُوا شَأْنَهُ، قَالَ: «فَدُلُّونِي عَلَى قَبْرِهِ» فَأَتَى قَبْرَهُ فَصَلَّى عَلَيْهِ. (بخاری:۲۵۸) وکذا فی المشکوة:۱۴۵)

نو که نبي علیه السلام بذات خود په قبر کې حاضریدلی نو بیا ددې خادم او یا خادمې معلومات ورته ولې نه وو؟ او ولې یې پوښتنه کوله؟

۵-جواب: که نبی علیه السلام په هرځای کې او په هر وخت کې حاضر او ناظر وی نو بیا په قبرونو کې عذاب ولې دی؟ ځکه چې الله تعالی خو فرمایي چې: ﴿وَمَا كَانَ اللهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنتَ فِيهِمْ﴾ پس که په تمامو قبرونو کې نبي علیه السلام موجود وی، نو بیا خو پکار وه چې په هیڅ یو قبر کې عذاب نه وی حالانکې دا باطله ده.

۶- جواب: ذدې څخه هم دأهل بدعتو دعوه نه ثابتیږي ځکه چې ددوي دعوی داده چې نبي علیه السلام په هر ځای کې په هر وخت کې حاضر او ناظر دی او دلیل دادی چې په قبرونو کې حاضریږي نو ددې څخه خو هغه مکانونه خارج شول په کومو کې چې ژوندي اوسیږي او هغه هم خارج شول چیرته چې انسانان نشته او دغه رنګې سمندرونه ، دریابونه ، فضاګانې ، وغیره هغه هم خارج شو او دعوه دا ده چې نبي علیه السلام په هرځای کې حاضر او ناظر دی.

**نهمه مغالطه :**

اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ.

بریلویان وایي چې که نبی علیه السلام په هر وخت او په هر ځای کې حاضر او ناظر نه وی نو بیا تاسو په ایها النبی سره ورته خطاب ولی کوئ؟

جواب: ددې مثال د خط په شان دی، یو پلار خپل ځوی ته خط لیږي، پلار په کابل کې او سیږي ځوی یې په پېښور کې دی او د خط په سر کې ورته لیکي چې: اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ.

نو ددې دا مطلب نه دی چې هغه ځوی یې په هرځای کې حاضر او ناظر دی، همداسې چې کله ملایکې نبی علیه السلام ته السلام علیکم ایها النبی وروړسوی نو دا به نبی علیه السلام ته خطاب شي.

ددې بل مثال د نبي علیه السلام هغه خطوط دي، چې نبي علیه السلام کافرو بادشاهانو ته لیږلي وو نبي علیه السلام د روم بادشاه ته خط کې لیکلی وو چې: **(ادعوك بدعاية الاسلام)** نو ددې څخه خو دا نه لازمیږي چې هغه بادشاه په هر ځای کې حاضر او ناظر وو.

دابن مسعود رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په حدیث کې راځي چې: قالُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان لله ملائکة سیاحین فی الارض یبلّغونی من أمتی السلام (نسائی صــ ١٤٣، مشکوة صــ ٨٦ ،قدیمی)

**لسمه مغالطه :**

اَلَمْ تَرَ كَيْفَ فَعَلَ رَبُّكَ بِاَصْحٰبِ الْفِيْلِ (الايه)

په داسې ایتونو کې په (الم تر) سره نبی علیه السلام ته خطاب دی، نو معلومه شوه چې نبي علیه السلام په هر ځای کې په هر وخت کې حاضر او ناظر دی.

**جواب:** دا استدلال مردود او باطل دی، ځکه چې د رؤیت معنی لکه څرنګه چې سترګو باندې کتل راځي، نو همداسې دکوم شي په پیژندلو او معلومولو باندې یې هم اطلاق کیږي (تری) درؤیت څه ما خوذ دی او د رؤیت معنی ده دیدن بچشم ودانستن (صراحة)

**دوهم جواب:** مفسرین فرمایي الم تری، الم تعلم، یا محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (جلالین صـ ۴۹۸ قدیمی کتب خانه) ابن عباس رضی الله عنهما فرمایي چې:الم تر، ای الم تخبر فی القرآن یا محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (تفسیر ابن عباس صــ ٦٥٩ قدیمي کتب خانه)

دارنګې دابن عباس رضي الله عنه څخه بل روايت دى چې:الم تر اى الم تسمع ، والخطاب للنبى صلى الله عليه وسلم ولكنه عام اى الم تروا مافعلت (قرطبى ج ٢٠صـ ١٧٤)

**دريم جواب:** که د(الم ترى) څخه دا رامعلومه شي چې نبى عليه السلام په هر ځاى کې په هر وخت کې حاضر اوناظر دى، نو بيا خو دپوره دنيا انسانان هم په هر ځاى کې په هر وخت کې حاضر اوناظر کيدل پکار دي ، ځکه چې په بل ځاى کې الله تعالى فرمايي : ﴿اَلَمْ تَرَوْا كَيْفَ خَلَقَ اللّٰهُ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ طِبَاقًا﴾(سورة نوح)

همدارنګه د کافرانو هم په هر ځاى کې حاضر اوناظر کيدل پکار دي ځکه چې الله تعالى فرمايي چې: (اَلَمْ يَرَوْا كَمْ اَهْلَكْنَا مِنْ قَبْلِهِمْ مِّنْ قَرْنٍ)، سورة انعام)

**څلورم جواب:** که نبي عليه السلام په هغه وخت کې موجود وى نو په قوم ثمود وغيره باندې عذاب ولې راتلو؟ ځکه چې نص موجود دى :وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَاَنْتَ فِيْهِمْ.

**يوولسمه مغالطه:**

حضرت ثوبان رضي الله عنه فرمايي چې نبى عليه السلام الله تعالى فرمايي چې : الله ج زمادپاره زمکه راغونډه کړه تر دې پورې چې ما مشارق او مغارب وليدل : ان الله ذوى لى الارض حتى رأيت مشارقها ومغاربها (مسلم شريف )

**جواب:** په دې صورت کې خو نبى عليه السلام حاضر نه شو بلکه صرف ناظر شو.

**دوهم جواب:** په حديث کې الفاظ د زواء او رأيت راغلي دي او دا دواړو د ماضي صيغې دي، چې مطلب يې دادى چې د معراج په شپه يا په بل وخت کې الله تعالى زما لپاره زمکه راغونډه کړې وه او نبى عليه السلام مشاهده کړې وه، نو ددې څخه دا څرنګه ثابتيږي چې نبي عليه السلام په هر ځاى کې او په هر وخت کې حاضر او ناظر دى؟.

**دولسمه مغالطه:**

وَدَاعِيًا اِلَى اللّٰهِ بِاِذْنِهٖ وَسِرَاجًا مُّنِيْرًا.

بريلويان وايي چې په دې ايت کې الله تعالى دنبى عليه السلام تشبيه دلمر سره ورکړې ده او لمر دکائناتو په زره زره کې موجود دى پس نبي عليه السلام هم حاضر او ناظر شو.

**جواب:** لمر هم په هر ځای کې موجو د نه دی، بلکه لمر صرف په یو ځای کې وي او د هغې رڼا او حرارت په هرځای، کې وي، همدارنګې نبي علیه السلام صرف په خپله روضه مبارکه کې دی او د هغه دین او شریعت او کوم هدایت یې چې رواړی دی دهغې رڼا په ټولو کائناتو کې خوره ده.

**دوهم جواب:** لمر د ورځې وي دشپې نه وي، نو بیا (دهروخت) والا قید هم ختم شو (لهذا دعوی ثابته نه شوه)

**دیارلسمه مغالطه:**

ابلیس هم په هر ځای کې حاضر او ناظر دی، پس هر کله چې په بد ترین مخلوق کې دا طاقت شته چې په هرځای کې موجود شي نو دټولو څخه اعلی هستي چې محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم دی ولې به په هر ځای کې په هر وخت کې حاضر او ناظر نه وي؟.

**جواب:** القیاس لایجری فی العقائد.

دوهم جواب: دا قیاس هم قیاس مع الفارق دی، ځکه چې د یو مخلوق په بل باندې قیاس کول جایز نه دي لکه یو څوک چې داسې قیاس وکړي چې تپوس خو الوتی شي نو احمد رضاخان خو دتپوس څخه بهتر دی، اشرف المخلوقات دی نو دا خو به په طریق اولی سره الوتی شي، نو داسې قسمه قیاسات کول غلط دي

**دریم جواب:** قیاس په هغه ځای کې کیږي په کوم ځای کې مقیس علیه دفریقینو په نیز متفق علیه وي او دلته مقیس علیه متفق علیه نه دی، لهذا قیاس پرې هم صحیح نه دی، ځکه چې ابلیس به دبریلیانو په نیز حاضر او ناظر وي خو زمونږ (اهل السنت والجماعة) په نیز نه دی، دنبي علیه السلام سینه مبارکه یو مکان دی دابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوعمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سینې هم امکنه دي دغسې دنبي علیه السلام روضه مبارکه هم یو مکان دی، همدارنګه دخلفاء راشدینو قبرونه هم امکنه دي، لکن دا ټول دشیطان څخه خالي دي، همدارنګه په حدیث کې راځي چې نبی علیه السلام عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته فرمایي چې ای عمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په کومه لار چې ته ځې دهغه څخه شیطان تختي، همدارنګه په حدیث کې راځي چې اذان ویلي کیږي نو د هغه ځای څخه شیطان تختي، نو په هر ځای کې دحاضر او دناظر خبره ختمه شوه، پس هر کله چې موجبه کلیه په سالبه جزئیه سره ماته شوه نو دا قیاس په خپله باطل شو.

**۴جواب:** شيطان په هر ځاى کې حاضر اوناظر نه وي، بلکه دهغه قبيله او اولاد په دنيا کې خواره شوي وي هغوي انسانانو ته وسوسې اچوي ځکه چې په قرآن کې تصريح ده چې : اِنَّه يَرٰىكُمْ هُوَ وَقَبِيْلُه مِنْ حَيْثُ لَا تَرَوْنَهُمْ (سورة اعراف)

**پنځم جواب:** بالفرض که شيطان په هر ځاى کې موجود ومنلى شي، نوبيا خو شيطان په ناپاکه ځاينو کې هم حاضر وي نو ايا تاسو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ هم په دغه ځايونو کې حاضر او ناظر منئ؟ دا عشق شو که گستاخي شوه؟

**څوارلسمه مغالطه:** ملک الموت فرشته هم په هر ځاى کې حاضره اوناظر ده، ځکه چې په يو وخت کې که لس لاکه (۱۰۰۰۰۰۰) انسانان مري دې ټولو ته ځان رسوي او روحونه ترې وباسي، نو هرکله چې ملائکې ته الله تعالى دومره طاقت ورکړى دى چې په يو وقت کې په ټولو مقاماتو کې حاضريدى شي، نو نبي عليه السلام خو ددې ځخه عظيمه هستي ده نو هغه ته به يې خامخا دومره طاقت ورکړى وي.

**اول جواب:** القياس لايجرى فى العقائد.

**دوهم جواب:** دا قياس هم قياس مع الفارق دى ځکه چې ديوې نوعې دمخلوق په بله باندې قياس کول صحيح نه دي.

**دريم جواب:** دلته هم مقيس عليه متفق عليه نه دى، ځکه چې ملک الموت په هر ځاى کې حاضر اوناظر نه دى، بلکه دده ماتحت بې شماره فرشتې دي او هغه په مقرر وخت کې دانسانانو د روحونو په قبض کولو باندې مامورې دي، په قرآن کريم کې تصريح ده په صيغې د جمع سره چې: ﴿تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُوْنَ﴾ الايه او په کوم ځاى کې چې دروح دقبض کولو نسبت ملک الموت ته شوى دى نو دا نسبت مجازي دى ځکه چې نورې ماتحت ملائکې دده په حکم سره کار کوي.

**پنځلسمه مغالطه:** که نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ حاضر اوناظر نه وي، نو امت نبي عليه السلام ته په يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره خطاب ولې کوي؟

**جواب:** يارسول الله د تبليغ الملايکه په نيت باندې ويل کيږي.

**دویم جواب:** جمهور نحات فرمايي چې حرف ياء د نداء قريب او بعيد دواړو دپاره يو شان استعماليږي (کافيه صـ ۱۲۰، شرح جامي صـ ۳۶۱، شرح مائة عامل صـ ۳۴) ؛ياء؛ وهي تستعمل لنداء القريب والبعيد ) لهذا ددې ځخه په حاضر او ناظر باندې استدلال حماقت او جهالت دی.

## دأهل سنت والجماعت دلائل .

**اول دليل:** ذٰلِكَ مِنْ اَنْبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ (سورة ال عمران)

ددې ځخه معلومه شوه چې نبي عليه السلام په هر ځای کې په هر وخت کې حاضر او ناظر نه دی، ځکه چې که نبي عليه السلام په دغه ځای کې په روحاني طور سره هم حاضر او ناظر وی نو الله به دغې نفی نه کوله.

**دوهم دليل:** وَمَا كُنْتَ بِجَانِبِ الْغَرْبِيِّ اِذْ قَضَيْنَآ اِلٰى مُوْسَى الْاَمْرَ وَمَا كُنْتَ مِنَ الشّٰهِدِيْنَ (سورة القصص)

ددې ايت ترجمه احمد رضاخان په خپل کتاب کنز الايمان صـ ۴۶۹) کې کوي: اور اس وقت تم حاضر نہ تھی.

**دريم دليل:** وَمَا كُنْتَ ثَاوِيًا فِيْٓ اَهْلِ مَدْيَنَ تَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِنَا وَلٰكِنَّا كُنَّا مُرْسِلِيْنَ سورة القصص ايت ۴۵ )

دې کې هم تصريح موجوده ده چې موسی عليه السلام چې کله په مدين کې وو نو د مدين په خلکو کې نبي عليه السلام نه د جسم په اعتبار سره حاضر او ناظر وو او نه د روح په اعتبار سره .

**خلورم دليل:** ذٰلِكَ مِنْ اَنْبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ اَجْمَعُوْٓا اَمْرَهُمْ وَهُمْ يَمْكُرُوْنَ

استدلال: په دې ايت کې تصريح ده چې کله د يوسف عليه السلام ورونو د يوسف عليه السلام د يعقوب ځخه د جدا کولو کوشش کولو نو ای پيغبره ته هلته حاضر نه وی، چونکه د يوسف واقعه په تفصيل سره قرآن بيان کړې ده نو چاته دا شبه راتلی شوه چې شايد د نبي عليه السلام روح به هلته موجود وو او د تولې واقعې مشاهده به يې کړې وي ، نو الله وفرمايل چې: (وماكنت لديهم الخ) نو دغه شبهه يې ختمه کړه، يعنې نبي عليه السلام حاضر او ناظر نه وو بلکه مونږ په ذريعه د وحی ددې ټولو حالاتو خبر نبي عليه السلام ته ورکړې دی او حاضر او ناظر ته د خبر ورکولو هيڅ ضرورت نه وي .

**پنځم دليل:** وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يَخْتَصِمُوْنَ.

استدلال: په دې ايت کې دبي بي مريم دکفالت ذکر دى، چې ددې په کفالت کې دبيت المقدس دخادمانو اختلاف وو، چې څوک به يې کفالت کوي؟ نو الله تعالى واضحه کړه چې اى پيغمبره! په دغه وخت کې ته موجود نه وې بلکه دا واقعه درته مونږ د وحې په ذريعه ښايو.

**شپږم دليل:** وَمَآ اَنَا عَلَيْكُمْ بِحَفِيْظٍ.

نګهباني هغه څوک کولى شي چې هغه هر وخت حاضر هم وي او ناظر هم وي، نو الله تعالى دنبي عليه السلام څخه ددې صفت نفى کوي، چې نبى عليه السلام نه په جسماني طور سره په هرځاى کې حاضر او ناظر دى او نه په روحاني طور باندې.

**اووم دليل:** تِلْكَ مِنْ اَنْبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهَآ اِلَيْكَ مَا كُنْتَ تَعْلَمُهَآ اَنْتَ وَلَا قَوْمُكَ مِنْ قَبْلِ هٰذَا (سورة الهود)

دا دنوح عليه السلام دقوم واقعه ده او ددې څخه معلوميږي چې نبي عليه السلام په دغه وخت کې حاضر وناظر نه وؤ او نه نبي عليه السلام عالم الغيب دى، دمخکې څخه نبي عليه السلام ته ددې واقعاتو علم نه وو، الله تعالى نبي عليه السلام ته دوحې په ذريعې سره خبر ورکړو، نو ددې څخه معلومه شوه چې نبي عليه السلام په هر وخت کې او په هرځاى کې حاضر او ناظر نه دى.

**اتم دليل:** يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَرْفَعُوْٓا اَصْوَاتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ اَنْ تَحْبَطَ اَعْمَالُكُمْ (سورة حجرات)

په دې ايت کې مؤمنانو ته حکم دى، چې دنبي عليه السلام په موجودګۍ کې تاسو په زوره خبرې مه کوئ او که نه اعمال به مو خراب شي، نو ددې څخه ثابته شوه چې نبي عليه السلام په هرځاى کې او په هروخت کې حاضر او ناظر نه دى، که په هر ځاى کې او په هر وخت کې حاضر او ناظر وى نو دمؤمنانو دپاره به په هر ځاى کې او په هر وخت کې په زوره زوره خبرې کول، يا چيغې وهل، يا په زوره تقريرونه کول داعمالو دبربادۍ سبب ګرځيدلى، نو بريليانو ته پکار دي چې يا خو دحاضر او دناظر عقيده پريږدي او يا په بيانونو او په ميلادونو کې قواليانې او دالسلام عليک يارسول الله چيغې وهل پريږدي، ځکه چې ددې ايت په مقتضى باندې دنبي عليه السلام په موجودګۍ کې چيغې وهل يا په زوره زوره د خبرو دکولو اجازت قطعاً نشته دى، بلکه ددې سره اعمال بربادېږي او دبريليانو دعقيدې مطابق نبي

عليه السلام په هرځای کې او په هر وخت کې موجود دی ، نو لهذا په هر ځای کې د بریلیانو د پاره په زوره خبرې کول چیغې وهل یا تقریرونه کول ټول ناجائز دي .

**نهم دليل:** وَإِذْ أَسَرَّ النَّبِيُّ إِلَى بَعْضِ أَزْوَاجِهِ حَدِيثًا فَلَمَّا نَبَّأَتْ بِهِ وَأَظْهَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ عَرَّفَ بَعْضَهُ وَأَعْرَضَ عَنْ بَعْضٍ فَلَمَّا نَبَّأَهَا بِهِ قَالَتْ مَنْ أَنْبَأَكَ هَذَا

د دې ایت څخه معلومه شوه چې نبی علیه السلام په هر و خت کې او په هر ځای کې حاضر او ناظر نه دی او د دې څخه دا هم معلومه شوه چې د ازواج مطهرات هم دا عقیده نه وه چې نبی علیه السلام په هر ځای کې او په هر وخت کې حاضر او ناظر دی .

**لسم دليل:** إِذَا جَاءَكَ الْمُنَافِقُونَ قَالُوا نَشْهَدُ إِنَّكَ لَرَسُولُ اللَّهِ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّكَ لَرَسُولُهُ وَاللَّهُ يَشْهَدُ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَكَاذِبُونَ (سورة منافقون)

حضرت زید بن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې مونږ د غزوې د تبوک څخه واپس را روان وو په لاره کې عبد الله ابن ابی منافق دا خبره وکړه چې : لَئِن رَّجَعْنَا إِلَى الْمَدِينَةِ لَيُخْرِجَنَّ الْأَعَزُّ مِنْهَا الْأَذَلَّ

زید بن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې دا خبره ما خپل تره ته وکړه، هغه نبي علیه السلام ته وکړه، زه نبی کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ را وغوښتم، ما ورته د منافق خبره وکړه، بیا نبي علیه السلام منافق را وغوښتو هغه انکار وکړو او قسمونه یې وخوړل ، نو زید بن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمايي چې: **فَكَذَّبَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَدَّقَهُ، فَأَصَابَنِي هَمٌّ لَمْ يُصِبْنِي مِثْلُهُ قَطُّ، فَجَلَسْتُ فِي البَيْتِ، فَقَالَ لِي عَمِّي: مَا أَرَدْتَ إِلَى أَنْ كَذَّبَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَقَتَكَ؟ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: {إِذَا جَاءَكَ المُنَافِقُونَ...} [المنافقون: ١] فَبَعَثَ إِلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَرَأَ فَقَالَ: «إِنَّ اللَّهَ قَدْ صَدَّقَكَ يَا زَيْدُ»!**

د دې ایت څخه معلومه شوه چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هر ځای کې په هر و خت کې حاضر او ناظر نه دی ،که وی نو دې منافق ته به یې ویلي وی چې منافقه! ته دروغ وایې زما صحابي رښتیا وايي ځکه چې کله چې تا دا خبرې کولې نو زه هلته موجود وم او د نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د صحابي حضرت زید رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ هم دا عقیده نه وه چې نبي علیه السلام په هر ځای کې موجود دی، کنه نو نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به یې خبر نه ورکولو ، ځکه چې حاضر او ناظر ته د خبر د ورکولو څه ضرورت دی ؟ همدارنګه کله چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د زید بن أرقم رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ تکذیب وکړو، نو ده به ورته ویلي

وى چې داالله تعالى رسوله! تاسو خو هلته موجود وې، که صحابي دحاضر اودناظر عقيده لرلى نو بيا پرشيانه کيدلو ولې؟ همدارنګه د(فأصابنى الخ )جمله يې ولې ويله ؟ نو ددې ټولو خبرو څخه دا معلوميږي چې نبي عليه السلام په هر ځاى کې په هر وخت کې حاضر او ناظر نه دى.

اعتراض: بريلويان وايي چې دشريعت اصول دادي چې دمدعى څخه دګواهانو مطالبه کيږي او کله چې مدعي سره ګواهان نه وي نو بيا دمدعي عليه څخه دقسم مطالبه کيږي ، دلته حضرت زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مدعى دى او ګواهان ورسره نه وو او مدعى عليه قسم وخوړو ، نبى عليه السلام دهغه په حق کې فيصله وکړه.

**جواب:** دا جواب باطل هم دى او ګستاخي هم ده، چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قصدا سره دعلم څخه رشتونى دروغجن او دروغجن رشتونى وګرځولو ، بيا دغه اصول چې په مدعي باندې ګواهان دي دا په خپل ځاى کې صحيح دي لکن قاضي او فيصل ته شرعا دا حق نشته چې دعلم با وجود دروغجن رشتونى او رشتونى دروغجن کړي او بيا د رشتوني څخه ناراضه هم شي، ددې څخه هم معلومه شوه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هر ځاى کې او په هر وخت کې حاضر اوناظر نه دى .

**يوولسم دليل:** وَالَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا مَسْجِدًا ضِرَارًا وَّكُفْرًا وَّتَفْرِيْقًا بَيْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَاِرْصَادًا لِّمَنْ حَارَبَ اللهَ وَرَسُوْلَهٗ مِنْ قَبْلُ وَلَيَحْلِفُنَّ اِنْ اَرَدْنَآ اِلَّا الْحُسْنٰى وَاللهُ يَشْهَدُ اِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ لَا تَقُمْ فِيْهِ اَبَدًا (سورة توبه)

استدلال:منافقينو او يهوديانو دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دقتل منصوبه جوړه کړې وه، دمسجد په نوم باندې يې يو ځاى جوړ کړى وو، چې په حقيقت کې دمنافقانو مرکز وو، نو دوي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلل چې تاسو راشئ دبرکت لپاره په کې لمونځ وکړئ، نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددوي دمشر څخه پوښتنه وکړه چې ددې مسجد دجوړولو څخه مو څه مقصد دى ؟ هغه جواب ورکړو چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : ما أردت الا الحسنى وهو كاذبٌ فصدقوه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ (تفسير در منثور تحت هذه الاية)

نبى کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چونکې په سفر باندې روان وو نو دوي ته يې وفرمايل چې زه په سفر روان يم چې واپس راشم در به شم : لو قدمنا ان شاء الله أتينكم فصلّينا لكم فيه، ابن كثير ج ٢ص ٥١١، دارالسلام رياض چاپ)

حافظ ابن كثير ليكي چې : (فلما قفل عليه السلام راجعا الى المدينة من تبوک ولم يبق بينه وبينها الا يوما او بعض يوم نزل عليه جبرئيل بخبر مسجد ضرار الخ (ابن كثير ايضا) دا ايتونه نازل شو، نو نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه وليږل او هغه مسجد يې وران كړو، نو ددې څخه معلومه شوه چې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هرځاى كې په هر وخت كې حاضر اوناظر نه دى، دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دمنافقينو دسازش څخه بې خبر كيدل او منافقينو لره رشتوني ګڼل او دهغوي سره وعده كول او بيا دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوحې په ذريعې سره خبريدل ددې خبرې دليل دى چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هرځاى كې په هر وخت كې حاضر اوناظر نه دى ، ځكه چې كه چيرې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هرځاى كې په هر وخت كې حاضر اوناظروى نو دوحې څخه مخكې ولې ورته دمنافقينو ددې ناپاكه منصوبې علم نه وؤ؟

**دولسم دليل:** ﴿وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ فِيٓ ءَايَٰتِنَا فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِۦ وَإِمَّا يُنسِيَنَّكَ الشَّيْطَٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرَىٰ مَعَ الْقَوْمِ الظَّٰلِمِينَ﴾

ددې څخه هم معلومه شوه چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هر ځاى كې او په هر وخت كې حاضر اوناظر نه دى ځكه چې په دې ايت كې الله تعالى نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لره په غير اسلامي او غير شرعي مجالسو او محافلو كې دكيناستلو څخه منع كړې ده اوس كه نبي عليه السلام په هر ځاى كې په هر وخت كې حاضر اوناظر شي نو بيا به نبي عليه السلام په غير شرعي مجالسو او محفلونو كې هم حاضر يعنې موجود شي، دبريلي مشركانو څخه زمونږ پوښتنه داده چې ايا ستاسو عشق دا تقاضى كوي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لره دې په بې دينه مجالسو كې او دبې حيايۍ فحاشۍ او عريانۍ مجالسو كې حاضر اوناظر ومنلى شي، دا عشق شو كه ګستاخي شوه ؟

**ديارلسم دليل:** ﴿سُبْحَٰنَ الَّذِيٓ أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِۦ لَيْلًا مِّنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَا الَّذِي بَٰرَكْنَا حَوْلَهُۥ لِنُرِيَهُۥ مِنْ ءَايَٰتِنَآ﴾

په دې ايت كې الله رب العزت دمعراج واقعه ذكر كړې ده، او په دې كې الله رب العزت دوه لفظونه ذكر كړي دي او په هغوي سره يې دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هرځاى او په هر وخت كې دحاضر اوناظر كيدلو نفى فرمايلې ده ،( اسرى، لنريه ) ځكه چې په سير كې نقل مكاني وي يعنې يو ځاى پريخودل او بل ځاى ته پكې تلل، لكه لوط عليه السلام ته چې حكم شوى وؤ چې (فأسر باهلک الخ )او د رؤيت انعام دداسې شيانو په ورښودلو سره كيږي چې مخكې يې نوي ليدلي، پس الله تعالى د اسرى په جملې

سره په هر ځاى کې دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دحاضر کيدلو نفى وفرمايله او په (لنريه) سره يې په هرځاى کې دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دناظر کيدلو نفى وفرمايله او په (انه هو السميع البصير) سره يې دا خبره واضحه کړه چې په هرځاى کې او په هروخت حاضر اوناظر کيدل دالله تعالى صفت دى.

**څوارلسم دليل: وَمَا كَانَ اللهُ لِيُعَذِّبَهُمْ وَأَنْتَ فِيهِمْ (سورة انفال)**

يعنې په کوم ځاى کې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ موجود وي هلته به عذاب الهى نه راځي، نو معلومه شوه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هر ځاى کې په هروخت کې حاضر اوناظر نه دى، که نه نو نن صبا چې کوم عذابونه دي دا به نه وو.

**پنځلسم دليل: لَقَدْ رَضِيَ اللهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ (سورة فتح)**

نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تقريبا دڅوارلس سوه صحابه وو سره احرام تړلى وو او مکې مکرمې ته روان وو دحديبې په مقام باندې دا قافله حصاره کړى شوه، نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره دمذاکراتو دپاره مکې مکرمې ته وليږلو څه وخت وروسته خبر راغلو چې عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مشرکينو شهيد کړو، نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرام راجمع کړل او دا بيعت يې ترينه واخستلو چې ترڅو پورې چې مو دعثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بدل نه وي اخيستى، نو ترهغه وخته پورې به نه واپس کيږو، حالانکې دا خبر غلط وو.

علامه قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايي چې دا بيعت دعثمان غني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دبدلې داخيستلو دپاره وو (تفسير مظهري تحت هذه الايت)

ددې څخه هم معلومه شوه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هرځاى کې او په هر وخت کې حاضر اوناظر نه دى که وى نو بيا ددې غلط خبر سره ولې خفه شو؟ او دعثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دبدل داخستلو لپاره يې صحابه ولې راجمع کړل؟ او دهغوي څخه يې بيعت ولې واخستلو؟ که نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هرځاى کې په هروخت کې حاضر اوناظر وى نو فرمايلي به يې وو چې دا خبر غلط دى ځکه چې زه په مکه کې يم او هر څه وينم.

**شپاړلسم دليل: وَلَقَدْ جَاءَتْ رُسُلُنَا إِبْرَاهِيمَ بِالْبُشْرَى قَالُوا سَلَامًا قَالَ سَلَامٌ فَمَا لَبِثَ أَنْ جَاءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ فَلَمَّا رَأَى أَيْدِيَهُمْ لَا تَصِلُ إِلَيْهِ نَكِرَهُمْ وَأَوْجَسَ مِنْهُمْ خِيفَةً قَالُوا لَا تَخَفْ إِنَّا أُرْسِلْنَا إِلَى قَوْمِ لُوطٍ**

ددې واقعې څخه لاندې خبرې معلومې شوې : ١-ابراهيم عليه السلام فرشتې ونه پيژندلې (نکرهم) ٢- ابراهيم عليه السلام فرشتو لره انسانان وګڼل (أَنْ جَاءَ بِعِجْلٍ حَنِيذٍ) ٣- دفرشتو دپاره يې دخوراک

انتظام وکړو. ۴- فرشتو دخوراک طرفته لاسونه نه مخکې کول (لاتصل اليه) ۵- ابراهيم عليه السلام چې دا حالات وليدل نو خيال يې وکړو چې دا شمنان دي. ۶- ابراهيم عليه السلام پريشان شو .۷- دپريشانۍ اثار چې فرشتو وليدل نو خپل تعارف يې وکړو چې مونږ ځکه خوراک نه کوؤ چې فرشتې يو.
۸-فرشتو په لاتخف سره تسلي ورکړه. ۹- دځوی بشارت يې ورکړو . ۱۰- خبر يې ورکړو چې مونږ دلوط عليه السلام دقوم طرفته ليږلي شوي يو چې عذاب ورکړو.

ددې څخه معلومه شوه چې جليل القدر پيغمبر ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ هم په هرځای کې حاضر اوناظر نه وو، که ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ حاضر او ناظر وی نو ددوي لپاره يې دخوراک انتظام ولې وکړو؟ دا يې دشمنان ولې ګڼل؟ په زړه کې يې ويره ولې راغله؟ فرشتو تسلي ولې ورکړه؟ دانا ارسلنا الى قوم لوط وضاحت ته څه ضرورت وو؟.

دابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ واقعه تفصيلاً په صحيح بخاري ج ا ص ۴۷۵ کې ذکر ده.

**اوولسم دليل:** واقعه د لوط عليه السلام: وَلَمَّا جَاءَتْ رُسُلُنَا لُوطًا سِيءَ بِهِمْ وَضَاقَ بِهِمْ ذَرْعًا (سورة هود)

ددې واقعې څخه معلومه شوه چې لوط عليه السلام دا ملائکې ونه پيژندلې بلکې په دوي يې دانسانانو خيال کړی وو ۲- دا هغه فرشتې وې کومې چې ابراهيم عليه السلام ته راغلی وی. ۳- دقوم خلک چې په کومې ارادې سره راغلي وو نو لوط عليه السلام په هغې سره پريشانه شوی وو چې هسې نه چې زما ميلمنو ته تکليف ورنه کړي. ۴- قوم ته يې وعظ او نصيحت وکړو چې دا زما ميلمانه دي دخپلې غلطې ارادې څخه قلار شئ ما مه شرموئ، ۵- قوم ونه منله، دوي عليه السلام د طاقت په فقدان باندې دافسوس اظهار وکړو ۶-فرشتو چې وليدلو چې لوط عليه السلام تر اوسه پورې مونږ ونه پيژندلو نو تسلي يې ورکړه، چې مونږ انسانان نه يو بلکه فرشتې يو . ۷- فرشتو ورته وويل چې دوي مونږ ته نشی رارسيدلی مونږ ددوي دتباه کولو دپاره راليږلي شوي يو ۸- لوط عليه السلام ته ددې خبرې علم هم نه وو چې دا دالله په حکم سره دقوم دتباه کولو راغلي دي.

نو کچيرته لوط عليه السلام په هر وخت کې او په هر ځای کې حاضر اوناظر وی نو ده ته به علم وی چې دا انسانان نه دي، فرشتې دي اودا داسمان څخه په فلانکی فلانکی لاره باندې راغلي دي وغيره.

**اتلسم دليل:** واقعه ديعقوب عليه السلام او يوسف عليه السلام ددې واقعې څخه دا أمور معلوميږي. ١- ديوسف عليه السلام ورنو مشوره وکړه . ٢- ددې مشاورت علم يعقوب عليه السلام ته ونشو. ٣- په مشوره کې دحضرت يوسف عليه السلام په کوهي کې داچولو فيصله وشوه او يعقوب عليه السلام ددې څخه بې خبره وو . ٤- ځامنو يې ديعقوب عليه السلام څخه دسير او دسياحت په بهانه باندې ديوسف عليه السلام دبوتللو اجازت طلب کړو . ٥- يعقوب عليه السلام ددوي په خبروباندې يقين وکړو او ورسره يې پرېښودو . ٦- ورونو يې يوسف عليه السلام په کوهي کې وغورزولو او پلار يې خبر نه شو. ٧- دقافلې والا د کوهي څخه راوويستو او مصرته يې بوتلو . ٨- قافلې والاپه بازار کې خرڅ کړو . ٩- ديوسف عليه السلام په جدائي کې يعقوب عليه السلام څلويښت کاله په ژړا تير کړل. ١٠- او دسترګو بينايي يې ختمه شوه. نو دا ټول ددې دلايل دي چې يعقوب عليه السلام حاضر او ناظر نه وو او نه ورسره علم الغيب وو.

**نوولسم دليل:** واقعه دموسى عليه السلام او دخضر عليه السلام : وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِفَتَاهُ لَا أَبْرَحُ حَتَّىٰ أَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ أَوْ أَمْضِيَ حُقُبًا

دموسى عليه السلام د واقعې تفصيل په صحيح البخاري ج ١ص٦٠٢، کې ذکر دی.

ددې واقعې څخه معلومه شوه چې (١) موسى عليه السلام خضر عليه السلام نه پيژندلو، (٢) مخکې يې ورسره ملاقات نه وو شوى. ٣- موسى عليه السلام ته دخضر عليه السلام داوسيدو ځاى نه وو معلوم. ٤- موسى عليه السلام علامه طلب کړه نو دماهي علامه مقرره شو . ٥- موسى عليه السلام دملاقات دپاره روان شو . ٦- موسى عليه السلام دمنزل مقصود څخه مخکې لاړو . ٧- بيا دخپلو قدمونو په نښو راواپس شو . ٨- موسى عليه السلام سلام وکړو خضر عليه السلام ونه پيژندلو ٩- موسى عليه السلام خپل نوم وښودو نو خضر عليه السلام پوښتنه وکړه چې دبني اسرائيلو موسى يئ او که بل څوک ؟

ددې څخه معلومه شوه چې دا دواړه نبيان په هر وخت او په هرځاى کې حاضر او ناظر نه وو ،که چيرته موسى عليه السلام حاضر او ناظر وى نو دا أمور به نه پيښېدل ، که موسى عليه السلام دمخکې څخه هلته حاضر وى نو بيا هلته دتللو څه مطلب وو ؟

**شلم دليل:** واقعه دسليمان عليه السلام : وَتَفَقَّدَ الطَّيْرَ فَقَالَ مَا لِيَ لَا أَرَى الْهُدْهُدَ أَمْ كَانَ مِنَ الْغَائِبِينَ

ددې څخه معلومه شوه چې سليمان عليه السلام ته دهدهد په باره کې علم نه وؤ . ۲- دملک صباء او دملکې دصبا په باره کې هم ورته علم نه وو. ۳- دهدهُد دوينا وڅخه وروسته يې هم يقين رانغلو، بلکې امتحان يې ترينه واخستلو. ۴- سليمان عليه السلام خط وليکلو او دهدهد په ذريعه يې وليږلو. دا ټولې خبرې پدې دلالت کوي چې سليمان عليه السلام نه حاضر وو او نه ناظر وو او نه عالم الغيب وو.

**يوويشتم دليل:** نبي عليه السلام فرمايي چې کله چې زه دمعراج څخه را واپس شوم او دمشرکينو په مخکې مې واقعه بيان کړه چې زه دمکې مکرمې څخه مسجد اقصى ته او دهغې ځای څخه سدرة المنتهى پورې او بيا تر کوم ځای پورې چې الله ته منظوره وه په ويښه باندې، په يوه شپه کې، دجسد عنصري سره، دالله تعالى په حکم او په قدرت باندې لاړم او راغلم، نو مشرکينو وويل ښه! که ته واقعي تللى يئ نو مونږ ته وښايه چې دبيت المقدس فلانکې فلانکې شى چيرته او په کومه موقع باندې واقع دى؟ نبي عليه السلام فرمايي چې ماته معلومه نه وه نو په دې باندې مشرکينو استهزاء شروع کړه، نبي عليه السلام فرمايي چې (فكربت كربتا ماكربت مثله قطه)(مسلم ج ۱ ص ۹۴)

بيا الله تعالى بيت المقدس دلږ وخت دپاره زما مخې ته حاضر کړو، مشرکينو چې څه پوښتنې کولى ما به کتل او جواب به مې ورکولو ،نو که نبي عليه السلام په هر ځای کې او په هر وخت کې حاضر او ناظر وى نو دومره پريشانۍ ته ضرورت څه وو؟ او دلږ ساعت دپاره دبيت المقدس مخې ته دحاضرولو څه مطلب وو؟ ددينه معلومه شوه چې نبي عليه السلام په هر ځای کې په هر وخت کې حاضر او ناظر نه دى او عالم الغيب هم نه دى.

**دوه ويشتم دليل:** په پنځمه يا شپږمه هجرى کې په غزوه دبنى المصطلق کې دحضرت عائشې رضى الله عنها هار ورک شوى وو : فأقام رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ على التماسه (بخارى ج ۲ ص ۶۶۳) او په ابوداؤد ج ۱ ـ ص ۵۰) کې دي چې : عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها قَالَتْ: بَعَثَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُسَيْدَ بْنَ حُضَيْرٍ وَأُنَاسًا مَعَهُ فِي طَلَبِ قِلَادَةٍ أَضَلَّتْهَا عَائِشَةُ، رضى الله عنها.

دنبي عليه السلام سره چې کوم کسان (صحابه) په سفر کې شريک وو هغو ټولو ددې هار تالاش وکړو، دپوره کوشش څخه بعد هم پيدا نه شو، نو دتلو اعلان يې وکړو، په کوم اوښ باندې چې عايشې رضى الله عنها سوارلى کوله هغه چې پاڅولى شو نو هار دهغې له لاندې پروت وو (صحيح البخاري ج ۲ ص ۶۶۳ ، قديمه، مسند ابوداؤد ج ۱ ص ۳۰۲)

نو که نبي کريم ﷺ په هرځای کې او په هر وخت کې حاضر اوناظر وی نو هار به ورته خامخا په نظر ورتلی ، ځکه چې دحاضر اودناظر څخه هيڅ شی هم نشي پټيدلی ، حالانکې دلته داوبښ لاندې هار په نظر نه ورځي .

**درويشتم دليل:** دانس بن مالک رضي الله عنه روايت دی :أن النبی ﷺ افتقد ثابت ابن قيس فقال رجل يارسول الله ﷺ أنا أعلم لک علمه الخ .

ددې څخه معلومه شوه چې نبي کريم ﷺ په هرځای کې او په هر وخت کې حاضر اوناظر نه دی که نبي کريم ﷺ په هر ځای کې په هر وخت کې حاضر اوناظر وی نو ثابت ابن قيس رضي الله عنه ترې څنګه غائب شو؟

**څلورويشتم دليل:** عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا، قَالَتْ: لَمَّا رَجَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْخَنْدَقِ، وَوَضَعَ السِّلَاحَ وَاغْتَسَلَ، أَتَاهُ جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ، فَقَالَ: "قَدْ وَضَعْتَ السِّلَاحَ؟ وَاللّٰهِ مَا وَضَعْنَاهُ، فَاخْرُجْ إِلَيْهِمْ قَالَ: فَإِلَى أَيْنَ؟ قَالَ: هَاهُنَا، وَأَشَارَ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ، فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِمْ" (بخاری: ج ۲ص ۵۹۰)

ددې څخه ثابته شوه چې نبي عليه السلام په هر ځای کې په هر وخت کې حاضر او ناظر نه دی، ځکه چې کچرې نبي کريم ﷺ په هرځای کې په هروخت کې حاضر اوناظر وی نو جبريل عليه السلام به نبي عليه السلام ته دبني قريظه طرفته دتلو نه ويلی،ځکه چې که په بني قريظه کې نبي کريم ﷺ دمخکې څخه حاضر وي نو بيا دتلو څه ضرورت وو ؟ دجبريل عليه السلام څخه يې پوښتنه ولې وکړه چې (الی اين) ايا حاضر اوناظر هم بې خبره وي ؟. بيا نبي عليه السلام روان شو څوک چې حاضر او ناظر وي نو هغوي ته د روانيدو ضرورت نه وي او څوک چې ديو ځای څخه بل ځای ته ځي هغه په هرځای کې موجود نه وي، نو دا ټولې خبرې په دې دلالت کوي چې نبي عليه السلام په هرځای کې په هر وخت کې حاضر او ناظر نه دی.

**پنځه ويشتم دليل:** وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِقَبْرٍ دُفِنَ لَيْلًا فَقَالَ: «مَتَى دُفِنَ هٰذَا؟» قَالُوا: الْبَارِحَةَ. قَالَ: «أَفَلَا آذَنْتُمُونِي؟» قَالُوا: دَفَنَّاهُ فِي ظُلْمَةِ اللَّيْلِ فَكَرِهْنَا أَنْ نُوقِظَكَ، فَقَامَ فَصَفَفْنَا خَلفه فصلّى عَلَيْهِ ( متفق عليه، مشکوة: صـ ۱۴۵)

ددې څخه هم ثابته شوه چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هر وخت كې په هرځاى كې حاضر او ناظر نه دى، كه وى نو نبي عليه السلام به نه ويل چې تاسو ولې زه نه يم خبر كړى؟ بيا دصحابه وو دا عرض كول چې شپه وه مونږه اطلاع دركول مناسب ونه ګڼل دا ټول ددې خبرې دليل دى چې نبي عليه السلام په هرځاى كې په هر وخت كې حاضر او ناظر نه دى كه نه حاضر او ناظر ته د خبر وركولو څه ضرورت دى؟ ايا حاضر ناظر هم بې خبره كيدى شي؟

**شپږ ويشتم دليل:** وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ﷺ أَنَّ امْرَأَةً سَوْدَآءَ كَانَتْ تَقُمُّ الْمَسْجِدَ أَوْشَابٌ فَفَقَدَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَ عَنْهَا أَوْعَنْهُ فَقَالُوا: مَاتَ. قَالَ: «أَفَلَا كُنْتُمْ آذَنْتُمُونِي؟» قَالَ: فَكَأَنَّهُمْ صَغَّرُوا أَمْرَهَا أَوْ أَمْرَهُ. فَقَالَ: «دلونى علىٰ قبره» فدلوه فصلّٰى عَلَيْهَا. قَالَ: «إِنَّ هٰذِهِ الْقُبُورَ مَمْلُوءَةٌ ظُلْمَةً عَلَىٰ أَهْلِهَا وَإِنَّ اللّٰهَ يُنَوِّرُهَا لَهُمْ بِصَلَاتِي عَلَيْهِمْ» (متفق عليه، مشكوة: صـ ١٤٥، باب المشى بالجنازة والصّلٰوة عليها)

ددې څخه ثابته شوه چې نبى عليه السلام په هروخت او په هرځاى كې حاضر او ناظر نه دى كه وي نو بيا نبى عليه السلام پوښتنه ولې كوله؟

**اوه ويشتم دليل:** صَلَّىٰ بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ فَوَعَظَنَا مَوْعِظَةً بَلِيغَةً ذَرَفَتْ مِنْهَا الْعُيُونُ وَوَجِلَتْ مِنْهَا الْقُلُوبُ، فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ! (ﷺ) كَأَنَّ هٰذِهٖ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ فَأَوْصِنَا قَالَ: «أُوصِيكُمْ بِتَقْوَى اللّٰهِ... الخ. (مشكوة: صـ ٢٩، باب الاعتصام بالكتاب والسنة)

ددې څخه معلومه شوه چې نبى عليه السلام په هرځاى كې او په هر وخت كې حاضر او ناظر نه دى، دصحابي داخبره چې ته مونږ پريدې او روان يې او زمونږ څخه جدا كيږې او أخري وعظ فرمايي، بيا دوصيت درخواست كول او دنبي عليه السلام وصيت كول دا ددې خبرې ښكاره دليل دى چې نبي عليه السلام په هر وخت او په هر ځاى كې حاضر او ناظر نه دى، كه نه نو داسې جواب به يې وركړى وو چې زه خو په هرځاى كې او په هر و خت كې حاضر او ناظر يم، هيڅكله به هم زه ستاسو څخه جدا نشم او ددې څخه دصحابه وو عقيده هم معلومه شوه چې دصحابه وو عقيده هم دنبي عليه السلام دحاضر او دناظر نه وه.

**اته ويشتم دليل:** په اومه هجرى كې چې كله خيبر فتحه شو، نو يوې يهودنې ښځې ديزې په غوښه كې زهر اچول او نبي عليه السلام ته يې په طور دتحفې او دعوت راوليږل، نبى عليه السلام هم يو څو نوړى وخوړې او صحابه وو هم وخوړې، يو صحابي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ددغې غوښې دخوراک څخه شهيد شو، د مشكوة په روايت كې ر

اخي چې: وتوفى أصحابه الذين أكلوا من الشاة الخ (مشكوة صـ ٥٤٢، باب فى المعجزات ) الفصل الثانى)او په ابو داؤد ج ٢صـ٢٧٢، حقانيه) کې ذکر دي چې ديو څو نورې خوراک څخه وروسته نبى عليه السلام وفرمايل چې مه يې خورئ دا دغوښې تو ته ماته حال وايي چې په ماکې زهر دي.

نو که نبى عليه السلام په هر وخت او په هر ځاى کې حاضر اوناظر وى، نو دې يهودنۍ ښځې چې کله زهر اچول نو په دغه وخت کې به نبى عليه السلام ليدلې وه ،ځکه چې نبي عليه السلام به هلته موجود وو خپله به يې هم نه خوړله او صحابوته به يې هم ويلي وو چې مه يې خورئ، ايا نبي عليه السلام قصدا په صحابي باندې خوراک وکړو، چې هغه بيا شهيد شو، ددې مردارې عقيدې دلرلو څخه وروسته په نبي عليه السلام باندې دا ناپاکه الزام راځي، چې سره دعلم څخه يې صحابه منع نه کړل، چې دا دزهرو والا غوښه مه خورئ.

**نهم ويشتم دليل:** يو ځل يو سپي دنبي کريم ﷺ دکټ لاندې پروت وو دنبي کريم ﷺ سره جبريل عليه السلام دراتلو وعده کړې وه ، لکن رانه غی، کله چې نبي کريم ﷺ وکتل چې په کور کې سپی دی نو دحضرت عائشې رضى الله عنها څخه يې پوښتنه وکړه چې: (متى دخل هذا الكلب ههنا (مسلم ج ٢صـ ١٩٩)

نو که نبى عليه السلام حاضر اوناظر وى او يا عالم الغيب وی، نو دا به ورته معلومه وی چې دا سپی زما په مخکې په فلانکی لاره را داخل شوی دی، نو دحضرت عايشې رضى الله عنها څخه يې ولې پوښتنه کوله؟.

**ديرشم دليل:** نبيّ عليه السلام په څلورمه هجرې کې دحضر عاصم بن ثابت رضي الله عنه په مشرې کې نهه صحابه کرام دمشرکينو دحالاتو دمعلومولو دپاره وليږل، په لاره کې دبنو لحيان قبيلې محاصره کړل، اته صحابه يې شهيدان کړل اودوه کسان يې گرفتار کړل، مکې مکرمې ته يې بوتلل، يو څو ورځې وروسته يې دوي هم شهيدان کړل، حضرت عاصم رضي الله عنه دشهادت په وخت کې دا الفاظ وويل چې (اللّهمّ اخبر عنّا نبيّک) الله تعالى يې دعا قبوله کړه او نبى عليه السلام يې خبر کړو.

نوکه نبي عليه السلام په هر وخت او په هر ځاى کې حاضر اوناظر وى نو دا حضرت صحابه يې دمخبرۍ دپاره ولې ليږل؟ نبي عليه السلام په خپله په مکه مکرمه کې موجود وو او که نه ؟ که وايئ چې نه وو نو دحاضر اودناظر عقيده ختمه شوه او که وايئ چې حاضر ناظر وو نو بيا يې مخبريان ولې ليږل؟ ايا نبى عليه السلام قصداً دوي دقتل دپاره

ليږل؟ددې څخه دا هم معلومه شوه چې دصحابه وو عقيده دا وه چې ترڅو پورې چې الله تعالى دوحې په ذريعه باندې نبى كريم ﷺ خبر نه كړي تر هغې پورې نبى كريم پخپله نه شي خبريدلى.

**يوديرشم دليل:** رسول الله ﷺ دعرفات په خطبه كې وفرمايل چې: (فليبلغ الشاهد الغائب (صحيح البخارى ج ١ صـ ١٩)

څوک چې زمونږ سره حاضر وي هغوي دې دا خبرې هغو خلكو ته ورسوي چې دلته حاضر نه دي.

**دوه ديرشم دليل:** نبي عليه السلام په حالت دسفر كې دقصر مونځ كړى دى او دا ښكاره خبره ده چې قصر په هغه چا باندې وي چې هغه مسافروي او مسافر هغه وي چې يو ځاى پريږدي او بل ځاى ته لاړشي ، پس څوک چې مسافر وي هغه په هر ځآى كې په هر وخت كې حاضر اوناظر نشي كيدلى او څوک چې په هرځاى كې په هر وخت كې حاضر او ناظر وي هغه مسافر كيدلى نشي .

**دريم ديرشم دليل:** كه نبى عليه السلام په هرځاى كې او په هر وخت كې حاضر او ناظر ومنلى شي نو د واقعې دمعراج څخه به انكار لازم شي، ځكه چې كله چې نبى عليه السلام دمخكې څخه په اول اسمان كې موجود وو همدا سې په ثانى ثالث او سدرة المنتهى كې، نو بيا د (اسرى بعبده) څه مطلب شو ؟او څرنګه اسمانونو او جنتونو ته بوتللى شو؟ تلل او راتلل دهغه چا صفت وي چې په هر وخت او په هرځاى كې حاضر نه وي.

**خلورديرشم دليل:** دأهل سنت والجماعت عقيده ده چې دنبي عليه السلام دجسم اقدس سره چې دروضې مباركې كومه خاوره لګيدلې ده هغه دتمامو كايناتو څخه بهتره ده ، اوس كه نبي عليه السلام په هرځاى كې په هر وخت كې حاضر اوناظر شي نو بيا به دټولې زمكې دزرې زرې بهتري راشي ، حالانكې داسې نه ده، پس ثابته شوه چې نبي عليه السلام په هر وخت كې په هرځاى كې حاضر اوناظر نه دى .

**پنځه ديرشم دليل:** كه نبى عليه السلام په هرځاى او په هر وخت كې حاضر اوناظر شي نو بيا به دهيڅ يو مقرر لپاره په منبر باندې دكيناستلو او دخطبې دويلو حق نه وي ، ځكه چې كله چې نبي عليه السلام دمنبر دپاسه تشريف فرماوي نو دمقرر برابري به وروسره لازمه شي او دنبي عليه السلام سره برابر كيناستل بي ادبي ده او كه نبي ﷺ دمنبر څخه لاندې وي نو دا هم بې ادبي ده .

**شپږ دیرشم دلیل:** که نبي علیه السلام په هرځای کې او په هروخت کې حاضر اوناظر شي نو هیڅ یو عالم ته به امامت ته دمخکې کیدلو حق نه وي، ځکه چې دنبي علیه السلام په موجودګۍ کې نورو انبیاء کرامو ته دامامت دپاره دمخکې کیدو حق نشته نو بل عالم ته به څرنګه وي؟

**اوه دیرشم دلیل:** که نبي علیه السلام په هرځای کې او په هروخت کې حاضر اوناظر شي نو دهرې ګناه او دنافرمانۍ په ځای کې به هم موجود وي، دشرابو په محفلونو کې، په سینماخانو کې، دجوارۍ په اډو کې او په ناپاکه مقاماتو کې به موجود وي (نعوذبالله) نو ثابته شوه چې دغه عقیده لرل سخته ګستاخي او کفر دی.

**اته دیرشم دلیل:** یو عام شریف سړي خپل عورت دیو ماشوم په مخ کې نه ښکار کوي، نو که نبي علیه السلام په هرځای کې په هروخت کې حاضر اوناظر شي نو دامام الانبیاء په مخکې څرنګه عورت ښکاره کوي؟.

**نهه دیرشم دلیل:** دمکې مکرمې څخه مدینه منورې ته هجرت قطعي ثابت دی، او دهجرت معنی ده یو ځای پرېښودل اوبل ځای ته تلل. نبي علیه السلام چې په مکه مکرمې کې وو نو په مدینه کې نه وو که په مدینه منوره کې دمخکې څخه موجود وی نو دهجرت کولو څه مطلب وؤ؟

نو که نبي علیه السلام په هر ځای کې په هروخت کې حاضر اوناظر ومنلی شي نو دهجرت څخه انکار لازمیږي، او دهجرت څخه انکار کفر دی.

**څلویښتم دلیل:** دنبي علیه السلام دحدیث مطابق به دجال په ټول دنیا کې ګرځي، لکن مکې مکرمې ته به دکعبې له وجې نه شي تللی او مدینې منورې ته به دنبي علیه السلام له وجې نشي تللی، اوس که نبي علیه السلام په هرځای کې حاضر اوناظر وي نو بیا به په پوره دنیا کې ددجال تلل راتلل حرام شوی وی، حالانکه داسې نه ده، نو معلومه شوه چې نبي علیه السلام په هرځای کې او په هروخت کې حاضر اوناظر نه دی.

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ اَنْتُمُ الْفُقَرَآءُ اِلَى اللّٰهِ ۚ وَاللّٰهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ ۝

## مختار الکل صرف اللہ تعالی دی



الحمد لله وحده والصلوة والسلام علی من لا نبی بعده!

اما بعد:!

اهل السنة والجماعت فرمايي چې: دالله تعالی څخه بغير دپيغبرانو په شمول هيچاته دتحليل او دتحريم اختيار نه شته، پيغمبران عليهم السلام دالله تعالی حلال او حرام خلکوته رسوي.

تشريح: دمختار درې معنی ګانې دي، ځکه چې مختار ه يا په معنی داسم فاعل لازمي سره وي يعنې د اختيار والا او يا به په معنی د اسم مفعول سره وي، نو بيا يې دوه معنی ګانې دي: اول: اختيار ورکړل شوی او دوهم منتخب شوی، دا دريمه معنی اتفاقي ده، الله تعالی رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ په ټول مخلوق کې متخب کړی دی او په اعتبار د اولې معنی مختار الکل صرف الله تعالی دی په تکويني او تشريعي امورو کې حاکم او مختار صرف الله تعالی دی، الله تعالی په مافوق الاسباب کې هيچا ته هيڅ اختيار نه دی ورکړی.

بريلويان نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په اعتبار د اولو دواړو معنی ګانو مختار الکل او مالک الکل وايي.

١-بريلويان ليکي چې: ټوله دنيا دقانون پابنده ده، لکن دالله تعالی قوانين دنبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دشونډو حرکت ته منتظر دي، کوم شی چې دنبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دخولې مبارکې څخه ووزي همغه دالله تعالی قانون جوړيږي (سلطنت مصطفی، احمد يار خان صـ٢٩)

٢-نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دټولې خدايي مالک دی. (تفسير القرآن احمد يار خان حاشيه نمبر ۷ صـ٥٨٩)

٣-دالله تعالی په حکم باندې نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددواړو کونينو مالک او مختار دی، دزمان، دجهان، داسمان، او دجحيم، دانعام، او دالله تعالی داحکامو مالک نبی کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دی.

خالق کل نے آپ کو مالک کل بنا دیا
دونوں جہان ہیں آپ کی قبضہ اختیار میں
سلطنت مصطفی (صـ١۴)

۴- همدا رنګه ليکي چې: حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ هر قسم حاجتونه حل کوي د دنيا او اخرت ټول مرادونه د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَلَى آلِهِ وَسَلَّمَ په اختيار کې دی (برکات الامداد صـ٨)

۵- مجاهد تحريف مولوي محمد عمر ليكي چې د الله تعالى او د نبي كريم ﷺ په مابين كې د غيريت د عقيدې والا كافران دي، (اور رسولوں کو غیر اللہ کہنی والوں کے واسطے فتوی کفر ارشاد فرمایا کیونکہ کافر اللہ تعالی اور اس کے رسولوں کے درمیاں ایک غیرت کے رہنے کا قایل ہے (مقیاس حنفیت ص- ۴۳)

٦- د نبي كريم ﷺ د ارادې څخه مخالفت نه راځي (الامن والعلى صـ ۱۲۲) مولوي احمد رضا.

۷- نبى كريم ﷺ د الله تعالى د كارخانې مختار الكل دى (الامن والعلى صـ ۲۳۰)

۸- رسول الله ﷺ د ټولې زمكې او د ټولو مخلوقاتو مالک دى (الامن والعلى صـ ۵۴)

۹- شيخ عبدالقادر جيلانى رحمه الله د دنيا ټولې كارخانې چلوي او د كايناتو تدبير د ده په لاس كې دى (حدائق بخشش اول صـ ۲۷، الامن والعلى صـ ۱۲۴) او همدا عقيده د مفوضه شيعه گانو هم ده، په شيعه گانو كې يوه ډله ده چې المفوضه ورته وايي، (شيخ عبدالقادر جيلاني رحمه الله فرمايي چې: المفوضه فهم القايلون أن الله تعالى فوض تدبير الخلق الى الايمة وان الله تعالى أقدر النبى على خلق العالم وتدبيره، (غنية الطالبين ،صـ ۲۲۱)

د اهل سنت والجماعت مشهور محدث، فقيه، فلسفي او متكلم فرمايي چې: المفوضة قالوا ان الله تعالى فوض خلق الدنياء الى محمد ﷺ اى الله خلق محمداً ﷺ وفوض اليه خلق الدنيا، فهو الخالق لها وبما فيها (شرح مواقف صـ ٧٥٤)

اهل بدعت او شيعه گان د واړه نبي كريم ﷺ ته عطائي مختار الكل وايي د شيعه گانو پدې عباراتو كې د تفويض د عقيدې تصريح ده.

## بريلويان دمحبت الرسول ﷺ دعنوان لاندې دقرآن او دسنت سره دشمني كوي

بريلويان خلكو ته وايي چې مونږ دنبي كريم ﷺ مرتبه اوچتوو، أهل سنت والجماعت دنبي كريم ﷺ مرتبه دهرچا څخه اوچته ګڼي، لكن نبي كريم ﷺ ته دخدايي مرتبه وركول دقرآن دډيرو ايتونو او دنبي كريم ﷺ دډيرو احاديثو څخه دانكار سره مرادفه ده.

۱۰- بريلويان ليكي چې: الله تعالى نبي كريم ﷺ ته دتحليل او دتحريم اختيار وركړى دى (الامن والعلى ص۱۵۲)

۱۱- نبي كريم ﷺ ته دا اختيار دى چې دالله تعالى دمحرماتو څخه يو څه شيان مستثنى كړي (الامن والعلى ص۱۵۲)

نبي كريم ﷺ ته دا اختيار وو چې دالله تعالى په عمومي احكامو كې تخصيص راولي (الامن والعلى ص۱۵۹)

۱۲- حرام په دوه قسمه دى يو هغه دي چې الله تعالى حرام كړي دي او دوهم هغه دي چې نبي كريم ﷺ حرام كړي دي او دواړه برابر دي (الامن والعلى ۶۰)

۱۳- دالله تعالى نايب ته دالله تعالى له طرفه دالله تعالى په ملك كې دتصرف تام اختيار وركړل شوى دى (الامن والعلى ص۶۰)

دأهل سنت والجماعت په نيز دا عقايد شركي دي او ددې عقايدو والا دقرآن دصريحو نصوصو څخه انكار كوي.

## عقيده دمختار الكل او قرآن

۱- يَآأَيُّهَا النَّاسُ أَنْتُمُ الْفُقَرَاءُ إِلَى اللهِ وَاللهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيْدُ (فاطر ۱۵)

۲- وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ أَنْ يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللهِ (مؤمن / ۷۸)

۳- وَمَا كَانَ لَنَآ أَنْ نَأْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللهِ (ابراهيم)

۴- وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ أَنْ يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللهِ (رعد / ۳۸)

۵- قُلْ إِنَّمَا الْآيَاتُ عِنْدَ اللهِ (انعام / ۱۰۹)

ددې ايتونو څخه دا واضحيږي چې دنبي كريم ﷺ په شمول هيڅ پيغمبر هم پخپل اختيار باندې هيڅ معجزه نه شي ښكاره كولى.

٦- حَتّٰی إِذَا اسْتَيْئَسَ الرُّسُلُ وَظَنُّوا أَنَّهُمْ قَدْ كُذِبُوا جَاءَهُمْ نَصْرُنَا (یوسف /١١٠)

امام بخاري رحمه الله ددې ایت لپاره عنوان لګوي په نوم د (باب قوله تعالی اذا استیأس الرسل)

حضرت عایشه صدیقه رضی الله عنها ددې ایت په باره کې فرمايي چې: قَالَتْ: «هُمْ أَتْبَاعُ الرُّسُلِ الَّذِينَ آمَنُوا بِرَبِّهِمْ، وَصَدَّقُوهُمْ فَطَالَ عَلَيْهِمُ الْبَلَاءُ، وَاسْتَأْخَرَ عَنْهُمُ النَّصْرُ حَتّٰی إِذَا اسْتَيْأَسَ الرُّسُلُ مِمَّنْ كَذَّبَهُمْ مِنْ قَوْمِهِمْ، وَظَنَّتِ الرُّسُلُ أَنَّ أَتْبَاعَهُمْ قَدْ كَذَّبُوهُمْ، جَاءَهُمْ نَصْرُ اللهِ عِنْدَ ذٰلِكَ»
او مختار الکل نه اندیښمن کیږي.

٧- قُلْ لَا أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلَا ضَرًّا إِلَّا مَا شَاءَ اللهُ وَلَوْ كُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوْءُ

٨- دمکې کفارو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وویلې چې په مونږ باندې زر عذاب راوله الله تعالی نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته حکم وکړو چې ته دوي ته ووايه چې: لَوْ أَنَّ عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ لَقُضِيَ الْأَمْرُ بَيْنِي وَبَيْنَكُمْ (انعام /٥٨)

٩- مَا عِنْدِي مَا تَسْتَعْجِلُونَ بِهِ إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلّٰهِ (انعام ٥٧)

١٠- مَنْ يَهْدِ اللهُ فَهُوَ الْمُهْتَدِ وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُ وَلِيًّا مُرْشِدًا (الکهف /١٧)

١١- وَمَا أَنَا عَلَيْكُمْ بِوَكِيلٍ (یونس /١٠٨)

١٢- لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰهُمْ وَلٰكِنَّ اللهَ يَهْدِي مَنْ يَشَاءُ (بقره /٢٧٨)

١٣- إِنْ تَحْرِصْ عَلٰى هُدٰهُمْ فَإِنَّ اللهَ لَا يَهْدِي مَنْ يُضِلُّ

١٤- وَإِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْأَرْضِ أَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَاءِ فَتَأْتِيَهُمْ بِآيَةٍ وَلَوْ شَاءَ اللهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدٰى فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجٰهِلِينَ (انعام /٣٥)

١٥- وَلَوْلَا أَنْ ثَبَّتْنٰكَ لَقَدْ كِدْتَّ تَرْكَنُ إِلَيْهِمْ شَيْئًا قَلِيلًا إِذًا لَأَذَقْنٰكَ ضِعْفَ الْحَيٰوةِ وَضِعْفَ الْمَمَاتِ ثُمَّ لَا تَجِدُ لَكَ عَلَيْنَا نَصِيرًا (الاسری /٧٤، ٧٥)

١٦- وَإِذَا لَمْ تَأْتِهِمْ بِآيَةٍ قَالُوا لَوْلَا اجْتَبَيْتَهَا قُلْ إِنَّمَا أَتَّبِعُ مَا يُوحٰى إِلَيَّ مِنْ رَّبِّي (الاعراف /٢٠٣)

١٧- دابو طالب په واقعه کې راځي چې کله يې چې د مرګ په وخت کې هم د کلمې څخه انکار وکړو، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې: اما والله لأستغفرن لک) قسم په الله تعالی چې زه به ستا لپاره بخښنه غواړم، نو الله تعالی دا ایات نازل کړو چې: مَا كَانَ لِلنَّبِيِّ وَالَّذِينَ آمَنُوا أَنْ يَسْتَغْفِرُوا لِلْمُشْرِكِينَ وَلَوْ كَانُوا أُولِي قُرْبٰى (سورة توبه ١١٣)

۱۸- رسول الله ﷺ چې په عبد الله بن أبی بن سلول باندې د جنازې مونځ وکړو نو الله تعالی دا ایت نازل کړو چې: وَلَا تُصَلِّ عَلَىٰ أَحَدٍ مِّنْهُم مَّاتَ أَبَدًا (توبه / ۸۴)

نو معلومیږي دا چې دا اختیار صرف د احکم الحاکمین دی او نبي کریم ﷺ د الله تعالی د حکم او د فرمان تابع دی.

۱۹- کفارو نبی کریم ﷺ ته پیش نهاد وکړو چې زمونږ د بتانو د مذمت آیتونه د قرآن څخه وباسه، نو مونږ به په تا باندې ایمان راوړو، الله تعالی دا ایت کریم نازل کړو: قُلْ مَا يَكُونُ لِي أَنْ أُبَدِّلَهُ مِن تِلْقَاءِ نَفْسِي إِنْ أَتَّبِعُ إِلَّا مَا يُوحَىٰ إِلَيَّ إِنِّي أَخَافُ إِنْ عَصَيْتُ رَبِّي عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيمٍ قُل لَّوْ شَاءَ اللَّهُ مَا تَلَوْتُهُ عَلَيْكُمْ وَلَا أَدْرَاكُم بِهِ) (یونس/ ۱۵)

۲۰- وَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ لَوْ أَنفَقْتَ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مَّا أَلَّفْتَ بَيْنَ قُلُوبِهِمْ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ أَلَّفَ بَيْنَهُمْ إِنَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (انفال ۶۳)

۲۱- (قُلْ مَن بِيَدِهِ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيْءٍ وَهُوَ يُجِيرُ وَلَا يُجَارُ عَلَيْهِ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ۞)

د دې ټول ایتونو څخه واضحیږي چې نبي کریم ﷺ مختار الکل نه دی.

**۲۲- دبریلویانو دکور شاهدي :** مولوي نعیم الدین بریلوي لیکي چې: یوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمایل چې ما د خپل رب څخه درې سوالونه وکړل، دوه قبول شول او دریم سوال دا وو چې زما امت پخپلو کې مه جنګوه، نو دا قبول نه شو، نو معلومه شوه چې دپیغمبرانو په شمول ټول مخلوق الله تعالی ته محتاج دی (خزائن العرفان ص ۱۴۱)

## دپیغبرانو په شمول هیچاته دتحلیل او دتحریم اختیار نه شته، پیغمبران علیهم السلام دالله تعالی حلال او حرام خلکوته رسوي:

۲۳- نبي کریم ﷺ دیو حلال شي څخه قسم خوړلی وو الله تعالی ورته وفرمایل چې: يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ (تحریم /۱)

نو که دبریلویانو دعقیدې مطابق الله تعالی دنبي کریم ﷺ د شوندو حرکت ته منتظر وی لکه څرنګه چې په (شان حبیب از مولوي احمد یار خان بریلوي ص ۱۰۴) کې دي، نو بیا دا حکم ولې نازلیدلو.

۲۴- دأحد په جنګ کې چې کفارو دشهیدانو توهین وکړو خصوصاً د حضرت حمزه رضي الله عنه زړه یې راویستلو، نو رسول الله ﷺ قسم وکړو چې زه به دیو حمزه رضي الله عنه بدل داویا وو کافرانو څخه أخلم، پدې باندې الله تعالی ایت نازل کړو چې نبی کریم ﷺ بیا خپله اراده پرینبودله.

بریلویانو هم دا واقعه رانقل کړې ده، وګوره خزاین العرفان ص ۲۸۶)

۲۵- لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ (ال عمران ص۱۲۸) نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بنيرا وو نه منع كړو.

۲۶- رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د بدر د بنديانو څخه فديه واخستله الله تعالى ايت نازل كړو چې: ماكان لنبي أن يكون له اسرى حتى يثخن في الأرض (انفال/۶۸)

لَوْلَا كِتٰبٌ مِّنَ اللّٰهِ سَبَقَ لَمَسَّكُمْ فِيْمَآ اَخَذْتُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ (انفال/۶۸)

همدارنګه د الله تعالى د قرآن د ايتونو د انداز څخه معلوميږي چې مختار الكل او مالک د شريعت يواځې الله تعالى دى.

۲۷- وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ (انبياء/۲۵)

۲۸- قُلْ اِنِّيْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَعْبُدَ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ (الزمر/۱۱)

۲۹- وَاُمِرْتُ لِاَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ الْمُسْلِمِيْنَ (الزمر/۱۲)

۳۰- قُلْ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ (الزمر/۱۳)

۳۱- قُلْ اِنَّ صَلَاتِيْ وَنُسُكِيْ وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ لَا شَرِيْكَ لَهٗ وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ (انعام/۱۶۲)

۳۲- الله تعالى فرمايي چې: اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ

حضرت عدي بن حاتم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته وفرمايل چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ خو خپلو پيرانو او علماو ته ارباب نه ويل، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې تاسو هغوي د تحليل او تحريم مالكان ګڼل او همدا د هغوي أرباب ګڼل دي. د دې څخه صفا معلوميږي چې تحليل او تحريم يواځې او يواځې د رب العالمين شان دى.

۳۳- رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مرض الوفات كې په دوو كسانو (على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) باندې لاسونه أچولي وو، مسجد ته راغلو، د مونځ څخه وروسته يې تقرير وكړو چې دا د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أخري خطبه وه، په خطبه كې يې وفرمايل چې: زما طرفته د حلالو او د حرامو نسبت مه كوئ، ما هغه شيان حلال كړي دي كوم چې الله تعالى په خپل كتاب كې حلال كړي دي او هغه شيان مې حرام كړي دي كوم چې الله تعالى په خپل كتاب كې حرام كړي دي.

همدارنګه يې وفرمايل چې: دانسان د جزاء او د سزاء مدار دده په خپلو ذاتي اعمالو باندې دى.

همدارنګه يې وفرمايل چې: اى فاطمې او صفې همدلته د الله تعالى لپاره يو څه وكړئ، زه مو له الله تعالى څخه نه شم خلاصولى. (مسند امام شافعى، باب استقبال القبلة)

۳۴- په صحیح البخاری (باب ذکر من ذرع النبی ﷺ وعصاه وسیفه) کې د حضرت زین العابدین رضي الله عنه او د مسور بن مخرمه رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ په منبر باندې وفرمایل چې (وانی لست أحرم حلالا ولا أحل حراما) زه تحلیل د حرامو او تحریم د حلالو نه کووم.

۳۵- همدارنګه نبي کریم ﷺ فرمایي چې: ان لیس لی تحریم ما أحل الله (مسند احمد ج ۳ص ـ ٦١)

الله تعالی چې کوم شی حلال کړی دی نو دهغې حراموالی زما په اختیار کې نه دی.

۳۶- په أخر کې د رضاخانیانو څخه پوښتنه کوو چې ابو طالب به جنت ته ځي او که جهنم ته؟ که جهنم ته ځي نو نبي کریم ﷺ ته ولې دا اختیار ندی ورکړل شوی چې جنت ته یې را وباسي؟ نبي کریم ﷺ خو دابو طالب د مغفرت ډیر خواهش لرلو.

## داهل بدعتو د دلایلو تحقیق

## قراني دلایل

### وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبٰٓئِثَ

۱. (اَلَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ الرَّسُوْلَ النَّبِيَّ الْاُمِّيَّ الَّذِيْ يَجِدُوْنَهٗ مَكْتُوْبًا عِنْدَهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ وَ الْاِنْجِيْلِ يَاْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوْفِ وَ يَنْهٰىهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبٰٓئِثَ وَ يَضَعُ عَنْهُمْ اِصْرَهُمْ وَ الْاَغْلٰلَ الَّتِيْ كَانَتْ عَلَيْهِمْ ؕ فَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِهٖ وَعَزَّرُوْهُ وَنَصَرُوْهُ وَاتَّبَعُوا النُّوْرَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ مَعَهٗٓ ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ)

همدارنګه: ﴿وَلَا يُحَرِّمُوْنَ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ﴾ د دې ایتونو څخه معلومیږي چې نبي صلی الله علیه وسلم تحلیل او تحریم کولو او د أمت څخه یې مشکل حکمونه ختمول او همدا د مختار الکل معنی ده، نو نبي صلی الله علیه وسلم مختار الکل او مشکل کشا شو.

قلنا: دا ایت مکی دي نو که د دې آیت دا معنی شي چې نبي صلی الله علیه وسلم ته الله جل جلاله د تحلیل او تحریم اختیار ورکړی وو، نو بیا به یې د سورة تحریم د یو مدني آیت سره تعارض راشي، الله جل جلاله فرمایي چې: (يٰٓاَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ ۚ)، الله جل جلاله په تحریم د عسلو تنبیه ورکړه.

اهل بدعت وایي: چې په دې وروستني أیت کې نبي صلی الله علیه وسلم د عسلو تحریم نه وو کړي ځکه عسل حلال دي او تحریم د حلالو کفر دی بلکې د نه خوراک عزم یې کړی وو. (نور هدایت ص ۷۲)

لکن دا توجیه غلطه ده ځکه چې په آیت کریمه کې تصریح ده چې: لِمَ تُحَرِّمُ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ ۚ او هر چې

تحريم د حلالو دى نو دا په دوه قسمه دى، يو دا چې په واقع کې يې حرام وګڼي، چې دا بيا هرچاته حرام وي او دوهم دا چې په واقع کې يې حلال ګڼي لکن په ځان يې حرام کړي چې دا بيا صرف په همدې کس حرام وي، اول کفر دى او دوهم خو په فقه کې ډير مثالونه لري،لکه مظاهر حلاله ښځه په ځان حراموي،طلاق ورکوونکى حلاله ښځه په ځان حراموي، د قسم په وجه په قسم کوونکي حلال شى حراميږي الله ﷻ فرمايي چې (قَدْ فَرَضَ اللهُ لَكُمْ تَحِلَّةَ أَيْمَانِكُمْ)

٢.همدارنګه که ددې آيت دا معنى شي چې الله ﷻ نبي ﷺ ته د تحليل او تحريم اختيار ورکړى دى،نو بيا به ددې آيت او د راروانو احاديثو په مابين کې تعارض شي.اول: نبي کريم ﷺ فرمايي چې: وَإِنِّي لَسْتُ أُحَرِّمُ حَلَالًا وَلَا أُحِلُّ حَرَامًا، وَلَكِنْ وَاللهِ لَا تَجْتَمِعُ بِنْتُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَبِنْتُ عَدُوِّ اللهِ مَكَانًا وَاحِدًا أَبَدًا )(رقم: ۴۳۸۵ صحيح مسلم: ج ٢ ص٢٩٠.)

الشاه المحدث عبدالحق الدهلوي ددې معنى داسې بيانوي چې:گفت من حرام نمى گردانم حلال را و حلال نمى گردانم حرام را وليكن هرگز جمع نشود دختر دوست خدا و دختر دشمن خدا در يک جا،أشعة اللمعات ج ٣ص ٣٨٠.

دوهم:نبي کريم ﷺ فرمايي چې: «أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ لَيْسَ بِي تَحْرِيمُ مَا أَحَلَّ اللهُ لِي، وَلَكِنَّهَا شَجَرَةٌ أَكْرَهُ رِيحَهَا» (صحيح مسلم: ج ١ص٢٠٩.).

په يو بل روايت کې راځي چې: أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ وَاللهِ مَا لِي أَنْ أُحَرِّمَ مَا أَحَلَّ اللهُ وَلَكِنِّي أَكْرَهُ رِيحَهُ)الحديث.( ابو عوانه: ج ١ ص ۴١٢.)

امام نووى فرمايي چې حضرت علي رضي الله عنه ته د ابوجهل د لور حضرت جويرى رضي الله عنها سره نکاح حلاله وه،.قَالُوا وَقَدْ أَعْلَمَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِإِبَاحَةِ نِكَاحِ بِنْتِ أَبِي جَهْلٍ لِعَلِيٍّ بِقَوْلِهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَسْتُ أُحَرِّمُ حَلَالًا)(شرح النووى لمسلم ج ٢ ص ٢٩٠).

نبي کريم ﷺ دا نکاح حرامه نه کړه، لکن د دوو وجو څخه يې اجازت نه ورکولو ،يو له دې وجې چې د حضرت فاطمې ايذاء د نبي کريم ﷺ د ايذاء موجب دى،نو ځکه يې اجازه ور نکړه، چې حضرت علي رضي الله عنه او حضرت فاطمه رضي الله عنها په فتنه کې مبتلا نه شي.دوهم له دې وجې چې د حضرت فاطمې د غيرت له وجې د فتنې خطر وو.

۳.نو ددې ایت صحیح معنی دا ده چې الله ﷻ نبي کریم ﷺ ته د دین د بیانولو منصب ور کړی دی.د رسول اکرم ﷺ حکم،د مجتهد حکم او د اهل اجماع حکم صرف د الله ﷻ د حکم لپاره کاشف وي.الله ﷻ فرمايي چې (يَٰٓأَيُّهَا ٱلرَّسُولُ بَلِّغْ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ)،په دې ایت کې د نبی کریم ﷺ منصب ذکر شو چې تبلیغ د احکامو الهیه وو دی .احکام د شارع له طرفه دی،شارع حقیقي صرف الله ﷻ دی.ــ البته نبي کریم ﷺ ته مجازي شارع ویلی شي.

الشاه ولی الله الدهلوي رحمه الله فرمايي چې: وسر ذَلِك أَن التَّحْلِيل وَالتَّحْرِيم عبارَة عَن تكوين نَافِذ فِي الملكوت أَن الشَّيْء الفُلَانِيّ يُؤَاخذ بِهِ أَولَا يُؤَاخذ بِهِ، فَيكون هَذَا التكوين سَببا للمؤاخذة وَتركهَا، وَهَذَا من صِفَات الله تَعَالَى، وَأما نِسْبَة التَّحْلِيل وَالتَّحْرِيم إِلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فبمعنى أَن قَوْله أَمارَة قَطْعِيَّة لتحليل الله وتحريمه، وأما نسبتها إِلَى الْمُجْتَهدين من أمته فبمعنى روايتهم ذَلِك عَن الشَّرْع من نَص الشَّارِع أَو استنباط معنى من كَلَامه) (حجة الله البالغة: ص ۴۹).

او ددې راز دا دی چې تحلیل او تحریم د هغه تکوین نوم دی کوم چې په عالم الملکوت کې نافذوي چې په فلان شي به مؤاخذه وي او یا به نه وي، نو همدغه تکوین سبب دی لپاره د مؤاخذې او ترک د مؤاخذې.او دا تکوین د الله ﷻ د صفاتو څخه دی او هر چې د تحلیل او تحریم نسبت رسول الله ﷺ ته دی،نو هغه په دې معنی سره دی چې د رسول الله ﷺ قول د الله ﷻ د تحلیل او تحریم قطعي علامه ده، او د تحلیل او تحریم نسبت شارع ته په دې معنی سره دی چې هغوي دا د نص د شارع څخه روایتوي،یا د کلام د شارع څخه استنباط کوي-انتهی.

د شاه صاحب د عبارت څخه یو څو مسائل را معلومیږي:

۱-شرعي احکام د الله ﷻ د تکوین صفت ته راجع دي او د الله ﷻ د نورو صفاتو په شان د تکوین په صفت کې هم د الله ﷻ سره شریک نه شته.

۲-نبي کریم ﷺ ته د تحلیل او تحریم نسبت په دې معنی سره کیږي چې نبي کریم ﷺ مبلّغ دی،او د رسول الله ﷺ تحلیل او تحریم ددې علامه ده چې الله ﷻ دا شی حلال یا حرام کړی دی.

۳-مجتهدینو ته چې د تحلیل او تحریم نسبت کیږي،نو د هغې معنی دا ده چې مجتهدین د نص یا د نص څخه د استنباط په وجه تحلیل او تحریم بیانوي د خپل ځان څخه یو شي ته حلال او یا حرام نه وایي.

او شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمايي چې:مذهب صحيح آنست که أمر تشريع مفوض به پيغمبری نمی باشد زيرا که منصب پيغمبری منصب رسالت و ايلچی گريست نه نيابت خدا،ونه شرکت در کارخانه خدايی آنچه خدای تعالی حلال و حرام فرمايد آن را رسول ﷺ تبليغ می کند و بس از طرف خود اختياری ندارد .تحفه اثنا عشريه ص٣٣٥.

په بل ځای کې فرمايي چې: بديهی است که امام بلکی نبي ﷺ نيز شارع نيست شارع حق تعالی است.تحفه اثنا عشريه ص ٣٦١.

**وَ مَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَّ لَا مُؤْمِنَةٍ اِذَا قَضَى اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ اَمْرًا اَنْ يَّكُوْنَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ اَمْرِهِمْ ؕ وَ مَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَ رَسُوْلَهٗ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا مُّبِيْنًا ؕ**

ددې ايت څخه هم اهل بدعت د نبي کريم ﷺ په باره کې د مختار الکل عقيده ثابتوي.(قلنا)ددې ايت حاصل دا دی چې الله جل جلاله چې کومه فيصله کړې وي او نبي کريم ﷺ هغه بيان کړی او ظاهره کړې وي.نو پداسې مسئله کې د مؤمن او مؤمنې لپاره اختيار نه وي.د بريليانو معتمدمفسر مولوي عبدالحق صاحب ددې آيت په تفسير کې ليکي چې:بأن قضاء رسول الله قضاءه لان قضاء الرسول ﷺ بأمرالله و وحيه و ما ينطق عن الهوی ان هو الا وحی يوحی.تفسير کليل ج ٦ ص ٢٨.

د رسول الله ﷺ فيصله د الله جل جلاله فيصله ده ځکه چې د رسول الله ﷺ فيصله د الله جل جلاله په حکم او وحې سره وي،ځکه چې نبي کريم ﷺ د خپل ځان څخه څه نه وايي.

**(وَ مَا اٰتٰىكُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَ مَا نَهٰىكُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا ۚ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ)**

د دې ايت څخه معلوميږي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم د هر شي ورکړه کولی شي.

قلنا:أمور په دوه قسمه دي.(١)تکويني،(٢)تشريعي، پدې آيت کې تشريعي أمور مراد دي،ځکه چې د نهې تعلق د تشريعي أمورو سره وي،رسول الله ﷺ ددې آيت په تفسير کې تشريعيات ذکر کړي دي.

فَإِذَا نَهَيْتُكُمْ عَنْ شَيْءٍ فَاجْتَنِبُوهُ، وَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِأَمْرٍ فَأْتُوا مِنْهُ مَا اسْتَطَعْتُمْ (صحيح بخاری: ج ٢ ص ١٠٨٢).

نو په ایت کې د (اتاکم)او (نهاکم)څخه شرعي أمور مراد دي،الله تعالی په تکوینیاتو کې هېڅا ته اختیار نه دی ورکړی او په شرعي أمورو کې هم د نبي کریم ﷺ منصب تحلیل او تحریم نه دی،بلکې د حلالو او حرامو او نورو امورو د دین بیانول دي.( يَاأَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ ).

## (وَ مِنْهُمْ مَّنْ يَّلْمِزُكَ فِي الصَّدَقٰتِ فَاِنْ اُعْطُوْا مِنْهَا رَضُوْا وَ اِنْ لَّمْ يُعْطَوْا مِنْهَا اِذَا هُمْ يَسْخَطُوْنَ)

اهل بدعت وايي چې ددې څخه معلومېږي چې نبي کریم ﷺ ورکړه کولی شي،لهذا په ما فوق الاسباب کې ترېنه کومکونه غوښتلی شې،ځکه چې نبي کریم ﷺ مختار الکل دی.

قلنا:په دې آیت کې د صدقاتو تصریح ده(فی الصدقات)لهذا ددې څخه متنازع فیه استمداد ثابتول جهالت دی.

## (وَ مَا نَقَمُوْا اِلَّا اَنْ اَغْنٰهُمُ اللّٰهُ وَ رَسُوْلُهٗ مِنْ فَضْلِهٖ)

اهل بدعت وايي چې ددې آیت څخه معلومېږي چې نبي کریم ﷺ هم غني کول کولی شي.نور هدایت ص ۶۵.

قلنا: (۱)قاضي بیضاوي رحمه الله فرمایي چې د مدینې خلک غریب وو،کله چې نبي کریم ﷺ مدینې منورې ته راغلو او د جهاد حکم وشو،صحابه کرامو رضي الله عنهم غنیمتونه ونیول،نو اقتصادي حالات يې ښه شو،نو منافقینو نا شکري کوله.الله جل جلاله وفرمایل چې منافقینو ته پکار وه چې د الله جل جلاله شکر يې ادا کړی وی.

(۲)په صحیح البخاري کې صریح روایت موجود دی چې نبي کریم ﷺ ته د غني کولو نسبت له دې وجې دی چې نبي کریم ﷺ صرف ظاهري سبب دی: يَا مَعْشَرَ الأَنْصَارِ، أَلَمْ أَجِدْكُمْ ضُلَّالًا فَهَدَاكُمُ اللَّهُ بِي، وَكُنْتُمْ مُتَفَرِّقِينَ فَأَلَّفَكُمُ اللَّهُ بِي، وَعَالَةً فَأَغْنَاكُمُ اللَّهُ بِي.(الحدیث،صحیح البخاری: ج ۲ ص ۶۲۰).

نو نبي کریم ﷺ صرف د اغناء سبب او ذریعه وه نور غني کوونکی الله جل جلاله وو.

(۳)حافظ ابن کثیر ددې آیت په تفسیر کې فرمایي چې: وَمَا لِلرَّسُولِ عِنْدَهُمْ ذَنْبٌ إِلَّا أَنَّ اللَّهَ أَغْنَاهُمْ بِبَرَكَتِهِ وَيُمْنِ سِفَارَتِهِ)

يعنې د نبي کريمﷺ هيڅ قصور نه وو، که وو،نو هغه داوو چې اللهﷻ د نبي کريمﷺ په برکت سره غنيان کړي وو، يعنې دا احمقان دېته قصور وايي.

(٣)که نبي کريمﷺ مختار الکل وی نو بعضو غريبو ،مجاهدينو ته يې ولې ويلې چې لَاأَجِدُمَاأَحْمِلُكُمْ عَلَيْهِ)؟

## بريلويان نبي کريمﷺ ته عين الله وايي

اهل بدعت وايي چې د احد او د احمد په مابين کې عينيت دی لهذا چې اللهﷻ مشکل کشا او مختار الکل دی،نو نبي کريمﷺ هم مشکل کشا او مختار الکل شو.(ان الله على كل شى قدير)دی،نو نبي هم على كل شىء قدير شو.

مولوي محمد عمر بريلوي ليکي چې:ان آيات فرقانيه ميں الله تعالى نے آپنے اور آپنے رسولوكے درميان فرق ڈالنے والو اور رسولو كو غير اللهﷻ كہنے والوكے واسطے فتوی كفر ارشاد فرمايا، كيونكه كافر اللهﷻ اور اس كے درميان ايک غيريت كے رستے كا قايل ہے. الخ مقياس حنفيت ص ٤٣. جاء الحق ص ١٨٤،نور ہدايت ص ٧٨.

او بيا دلايل د عينيت وايي:اول دليل :وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّفَرِّقُوْابَيْنَ اللهِ وَرُسُلِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَّنَكْفُرُ بِبَعْضٍ وَّ يُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَّخِذُوْابَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا ۙ

قلنا: ټول مفسرين فرمايي چې ددې تفريق معنی داده چې د اللهﷻ احکام منل او د نبي کريمﷺ احکام نه منل.همدارنګه په اللهﷻ ايمان لرل او په انبياوو ايمان نه لرل کفر دی.

دوهم دليل: اللهﷻ فرمايي چې:(فَلَمْ تَقْتُلُوْهُمْ وَلٰكِنَّ اللهَ قَتَلَهُمْ).

نو شکې نبي کريمﷺ ويشتلې وې او اللهﷻ وفرمايل چې ما ويشتلي دي،نو د احد او احمد په مابين کې فرق پاتې نه شو.

قلنا:١-که داسې استدلال صحيح شي،نو بيا خو صحابه کرامو﷢ ته هم عين الله ووايي(معاذالله)ځکه چې د صحابه کرامو﷢ په باره کې اللهﷻ فرمايي چې (فَلَمْ تَقْتُلُوْهُمْ وَلٰكِنَّ اللهَ قَتَلَهُمْ)(٢)کوم کار چې د ظاهري او طبعي اسبابو لاندې نه وي داخل ،هغه اللهﷻ خپل ذات ته منسوبوي،يو موټی شګې دټولو کافرانو سترګو ته رسول د ظاهري او طبعي اسبابو لاندې نه وو داخل.ځکه اللهﷻ خپل ذات ته منسوب کړل.

همدارنګه درې سوه دیارلس بې سرو سامان په زرو مسلحو کافرانو غالبېدل او قتلول د طبعي اسبابو لاندې نه وو داخل، ځکه الله ﷻ خپل ذات ته منسوب کړل.

دعینیت دریم دلیل: (وَاللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗٓ اَحَقُّ اَنْ يُّرْضُوْهُ اِنْ كَانُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿۶۲﴾)

اهل بدعت وایي چې په (یرضوه) کې د مفرد ضمیر الله او رسول ته راجع دی، معلومېږي چې الله او رسول یو دی (معاذالله).

قلنا: د الله ﷻ رضا او د رسول ﷺ رضا لازم او ملزوم دی، نو ځکه یې مفرد ضمیر راوړو.

د عینیت څلورم دلیل: الله ﷻ د بیعت الرضوان ذکر کوي چې: (اِنَّ الَّذِيْنَ يُبَايِعُوْنَكَ اِنَّمَا يُبَايِعُوْنَ اللّٰهَ ۭ يَدُ اللّٰهِ فَوْقَ اَيْدِيْهِمْ ۚ)

اهل بدعت وایي چې ددې څخه معلومېږي چې د نبي کریم ﷺ لاس د الله ﷻ لاس دی، نو د احد او احمد په مابین کې څه فرق پاتې شو. مقیاس حنفیت ص ۴۳.

(تَبٰرَكَ الَّذِيْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ ۡ وَهُوَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرُۨ ۝)

چې د نبي کریم ﷺ لاس د الله ﷻ لاس شو او د الله ﷻ په لاس کې ټول ملک دی او الله ﷻ په هر شي قادر دی، نو د نبي کریم ﷺ په لاس کې ټول ملک راغلو او نبي کریم ﷺ په هر شي قادر شو.

قلنا: (۱) ددې آیت معنی دا ده چې د الله ﷻ د حکم د منلو او د نبي کریم ﷺ د حکم د منلو په مابین کې تلازم دی او نبي کریم ﷺ هر حکم د الله ﷻ له طرفه بیانوي، نو ځکه الله ﷻ د نبي کریم ﷺ حکمونه خپل ذات ته منسوبوي. او د نبي کریم ﷺ سره بیعت د خپل ذات سره بیعت ګڼي ــ ګوره څوک چې د الله ﷻ په حکم فقیر ته صدقه ورکړي، نو الله ﷻ فرمایي چې دا یې ماته راکړه. ( مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا) همدارنګه (وَ اَقْرَضُوا اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا) نو ایا دلته داسې ویلی شي چې فقیر عین الله دی؟ (معاذالله).

رسول الله ﷺ فرمایي چې: إِنَّ اللهَ عزوجل يَقُولُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ: يَا ابْنَ آدَمَ! مَرِضْتُ فَلَمْ تَعُدْنِي قَالَ: يَا رَبِّ كَيْفَ أَعُودُكَ وَأَنْتَ رَبُّ الْعَالَمِينَ؟ قَالَ: أَمَا عَلِمْتَ أَنَّ عَبْدِي فُلَانًا مَرِضَ فَلَمْ تَعُدْهُ؟ أَمَا عَلِمْتَ أَنَّكَ لَوْ عُدْتَهُ لَوَجَدْتَنِي عِنْدَهُ؟)

نو ددې حدیث معنی دا نه ده چې مریض او فقیر عین الله دی،بلکې معنی یې داده چې د مریض پوښتنه کول د الله جَلَّ جَلَالُهُ حکم دی.

اهل بدعت نور دلایل هم وایي لکه وګوره (مقیاس حنفیت ص ۹۳ جاءالحق ص ۱۸۴) خو هغه یو هم د دوی لپاره دلیل نه شي کیدلی.

## د احادیثو څخه استدلالات

## انما انا قاسم والله یعطی

قلنا: ۱- دا خبر واحد دی او په خبر واحد سره عقیده نه ثابتیږي.

۲-خبر واحد چې د کتاب الله سره معارض شي نو استدلال ترینه نه دی صحیح او دا خبر واحد د ایتونو سره معارض دی، الله تعالی فرمایي چې: (نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُمْ مَّعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا) او تقدیم د مسند الیه په مسند فعلي قصر راولي، نو تقسیم یوازې الله تعالی کوي.

همدارنګه دا حدیث دیو بل حدیث سره هم معارض دی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي چې: (إِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَخْلَاقَكُمْ كَمَا قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَرْزَاقَكُمْ) (مشکوة: ج ۲ص ۴۰۷).

۳- دا حدیث محدثین د کتاب العلم او باب الغنیمة لاندې ذکر کوي یعنې د علم او د غنیمت معطی الله دی او تقسیمونکی رسول الله صلی الله علیه وسلم دی.

۴- صاحب د مظاهر حق فرمایي چې ددې حدیث معنی داده چې زه احادیث بیان وم او د فکر او د عمل توفیق الله تعالی ورکوي.

۵- الزما: مونږ وایو چې بریلویان وایي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هر شي تقسیمونکی دی نو ایا غلا- زنا- د برما، افغانستان، عراق، او فلسطین ظلمونه هم رسول الله صلی الله علیه وسلم تقسیم کړي دي؟

## (لا یأتی ابن أدم النذر بشیٍٔ لم اکن قدرته)

په صحیح البخاري ص ۹۸۷ کې دا مذکور روایت دی چې نذر او منت انسان ته هیڅ فائده نه شي رسولی تر څو چې ما مقدّر کړی نه وي.

اهل بدعت وايي چې ددې حديث څخه معلومه شوه چې تقدير هم د نبي کريم ﷺ په اختيار کې دی،يعنې د هر چا په تقدير کې چې څه ليکل شوي دي هغه حضرت محمد ﷺ مقدر کړي دي. أربعين نبويه ص ٣٧.

قلنا:د اهل بدعتو امنت بالله هم بدله شوه د اهل سنتو په امنت بالله کې والقدر خيره و شره من الله تعالی دی او د اهل بدعتو په امنت بالله کې والقدر خيره و شره من محمد ﷺ دی.

الله ﷻ فرمايي چې:( وَ لَمْ يَكُنْ لَهُ شَرِيكٌ فِي الْمُلْكِ وَ خَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَقَدَّرَهُ تَقْدِيرًا۝)او اهل بدعت وايي چې: (له شريک فی الملک و التقدير).

رسول الله ﷺ فرمايي چې: كَتَبَ اللهُ مقادير الْخَلَآئق قبل أن يخلق السَّمٰوَات وَالْأَرْضَ بِخَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ )(مشکوة:ج:صـ:١٩).

او اهل بدعت وايي چې:کتب محمد ﷺ مقادير الخلايق..

(٢)تحقيقي جواب دادی چې دا حديث قدسي دی د صحيح بخاري دوه نسخې دي،په يوه کې د حديث الفاظ داسې دي چې:لم اکن قدرته،او په بله کې داسې الفاظ دي چې:لم يکن قدرله.

په صحيح مسلم ج ٢ ص ٤٤ کې په يوه حديث کې تصريح ده چې مقدر کوونکی الله ﷻ دی.

إِنَّ النَّذْرَ لَا يُقَرِّبُ مِنِ ابْنِ آدَمَ شَيْئًا لَمْ يَكُنِ اللهُ قَدَّرَهُ لَهُ

## د فضاله بن عبيد رضی الله عنه حديث

په ابو داود ج ١ ص ٦١ کې روايت دی،فضاله ابن عبيد رضی الله عنه فرمايي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د پنځو لمونځونو حفاظت کوئ!ما ورته وويل چې کېدلی شي چې زما څخه د پنځو لمونځونو حفاظت و نه شي،نبي کريم ﷺ وفرمايل چې بيا د سحر او مازديگر د لمونځونو پوره پابندي کوه!اهل بدعت وايي چې د نبي کريم ﷺ سره دومره وسيع اختيار وو چې فضاله رضی الله عنه ته يې درې لمونځونه معاف کړل.

قلنا١-: ددې حديث په سند کې داود بن أبی هند دی امام احمد فرمايي چې: ده به د نورو راويانو سره د حديث په متن او سند کې ډېر اختلاف کولو،تهذيب نو دا کمزوری خبر واحد دی، که صحيح خبر واحد وی هم عقيده پرې نه ثابتېدله.خصوصًا چې په مقابله کې يې د پنځو لمونځونو قطعي نص موجود وي.

٢- په دې حديث کې په کوم ځای کې د دريو لمونځونو د معافی ذکر راغلی دی؟

۳- پدې حدیث کې خو صرف دادي چې په خصوصیت سره د سهار او مازدیګر د لمونځونو پوره پابندي کوه.

## یو رجل ته درې لمونځونو معافول

د مسند احمد په یو روایت کې راځي چې یو رجل په دې شرط مسلمان شو چې زه به صرف دوه لمونځونه کوم، رسول الله ﷺ ورسره دا شرط ومنلو.

قلنا: (۱) امام حاکم په معرفت علوم الحدیث کې او حافظ ابن حجر په شرح نخبة الفکر ص ۱۳ کې او علامه جزائري په توجیه النظر ص ۱۷۸ کې فرمایي چې: وصفة الحدیث الصحیح ان یرویه عن رسول الله ﷺ صحابيٌ زائل عنه اسم الجهالة، نو هغه حدیث چې په هغې کې (عن رجل) یا (عن رجل من الصحابة) وي قابل قبول نه دی، تر څو چې د صحابي نوم نه وي ذکر شوی، نو که د رجل صحابي والی ثابت شي. بیا خو حدیث صحیح دی ځکه چې (الصحابة کلهم عدول) لکن تر څو چې صحابي والی نه وي ثابت شوی، نو دا رجل مجهول دی. چې صحابي به وي، که مرتد به وي او که منافق به وي، امام بیهقي په السنن الکبری ج ۱ص۱۹۰ کې علامه خطابي په معالم السنن ج۱ص۱۱۹ کې امام ابن حزم په المحلي ج۴ص۴۱۶ کې، علامه سیوطي په تدریب الراوي ص۲۱۵کې په (رجل من الصحابه) کلام کړی دی او دېته یې مجهول سند ویلی دی.

(۲) په دې حدیث کې دا نه دي ذکر شوي چې نبي کریم ﷺ ورته درې لمونځونه معاف کړل بلکې اسلام - چونکی اهم دی، له دې وجې یې نبي کریم ﷺ اسلام ومنلو په دې امید چې یو ځلې مسلمان شي نو بیا ټول عبادات په خپله کوي، د ثقیف قبیلې چې د لمونځونو معافي وغوښتله، نو نبي کریم ﷺ ورته معافي ونکړه، بلکې وې فرمایل چې: (وَلَا خَيْرَ فِي دِينٍ لَا رُكُوعَ فِيهِ) مسند طیالسی ص ۱۲۶) په یو روایت کې الفاظ داسې دي چې: لَا خَيْرَ فِي دِينٍ لَا صَلَاةَ فِيهِ ،(البدایة والنهایة ج۵ص ۳۰) او په یو روایت کې راځي چې ثقیف قبیلې چې دا شرط کېښودلو چې نه به زکوت ورکوي او نه به جهاد کوي، نو نبي کریم ﷺ وفرمایل چې: سَيَتَصَدَّقُونَ وَيُجَاهِدُونَ إِذَا أَسْلَمُوا ،(البدایة والنهایة ج۵ص ۳۰). یعنې چې یو ځلې مسلمانان شي، نو بیا به په خپله لمونځونه هم کوي او زکوة به هم ورکوي.

## ام عطیه رضي الله عنها ته د نوحې اجازت

نَوحَه(په مړي ژړا)هر چا ته حرامه وه،لکن نبي کریم ﷺ ام عطیه رضي الله عنها ته اجازت ورکړی وو.امام نووي رحمه الله فرمایي چې: (للشارع ان یخص من العمومات ما شاء).

قلنا:۱- حافظ ابن حجر په فتح الباري کې، علامه عیني په عمدة القاري کې او زرقاني په شرح مواهب ج۵ ص ۳۲۵ کې د امام نووي رحمه الله د قول تغلیط کړی دی او فرمایلي یې دي چې نبي کریم ﷺ ام عطیة رضي الله عنها ته په هغه وخت کې د نَوحې اجازت ورکړی وو په کوم وخت کې چې نوحه(په مړي ژړا)مکروه تنزیهي وه،په هغه وخت کې یې نه وو ورکړی په کوم وخت کې چې په مړي ژړا حرامه شوه.

په مړي ژړا اول مباحه وه،بیا مکروه تنزیهي شوه او بیا حرامه شوه.

(۲)د امام نووي رحمه الله په قول کې علی التعین د للشارع څخه نبي کریم ﷺ نه دی مراد،ځکه چې شارع حقیقي الله جل جلاله دی او شارع مجازي محمد ﷺ دی.

## اِسقاط الکفارة

په رمضان المبارک کې یو صحابي رضي الله عنه د ورځې د خپلې بي بي سره جماع کړې وه د غلام د ازادولو،د دوه میاشتې روژې نیولو،او شپېتو مسکینانو ته د ډوډۍ د ورکولو څخه یې غدر پیش کړو،بیا چا پنځلس صاعه کجورې راوړې،نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل چې دا واخله صدقه یې کړه!هغه صحابي رضي الله عنه وفرمایل چې په مدینه کې زما څخه زیات غریب بل څوک نه شته.نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل چې: (**أَطْعِمْهُ أَهْلَكَ**)په خپلو بچیو یې وخوره ستا صدقه أدا شوه. **ویجزئك ولایجزاحدابعدك.**

اهل بدعت وایي چې نبي کریم ﷺ ددې صحابي رضي الله عنه څخه کفاره ساقطه کړه،نو نبي کریم ﷺ مختارالکل شو.

قلنا:پدې حدیث کې دا نه شته چې ستا کفاره أدا شوه، راجح دا دی چې ددې صحابي رضي الله عنه څخه تأخیرالکفارة راغلی وو،سقوط الکفارة نه وو راغلی.

دا حدیث په صحیح بخاري ج۱ص۲۵۹،صحیح مسلم ج۱ص۳۵۵، ابو داود،ترمذي،ابن ماجه،موطأ امام مالک،طحاوي،مسند احمد،سنن الکبری وغیره کتابونو کې دی،لکن پدې یو کې هم دا جمله نه شته چې ستا کفاره أدا شوه،دا جمله د امام زهري رحمه الله څخه منقوله ده،لکن علامه

زيلعي رحمه الله فرمايي چې دا جمله ما د احاديثو په کتابونو کې ونه موندله.نصب الراية ج۱ص۴۵۳،حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايي چې دا جمله په هيڅ سند نه ده موجوده او علامه منذري رحمه الله فرمايي چې د امام زهري دا خبره چې (سقوط کفاره)دد ې شخص خصوصيت وو.عجيبه او بې دليله خبره ده.زيلعي ج۲ص۴۵۳.

ابن دقيق العيد د (أَطْعِمْهُ أَهْلَكَ)لپاره دېر توجيهات بيانوي:يوه دا چې:(انه خاص بهذا الرجل)الخ او دوهم دا چې: (انه منسوخ)بيا فرمايي چې: وهذان ضعيفان اذلا دليل على التخصيص ولا على النسخ.

بيا فرمايي چې اقربه داده چې: تكون الكفارة مرتبة في الذمة لما ثبت وجوبها في الحديث، (احكام الاحكام ج۲ص۱۰)

ملا على القاري فرمايي چې امام زهري رحمه الله فرمايي چې دا ددې کس خصوصيت وو او بعضې فرمايي چې دا منسوخ دي،بيا فرمايي چې دا دواړه بې دليله خبرې دي، اذلادليل عليهما، امام نووي رحمه الله هم ورته ضعيف ويلي دي.(شرح مسلم ج۱ص۳۵۴).خلاصه دا چې: و يجزئک ولا يجزء أحدًا بعدک، الفاظ نه دي ثابت او د امام زهري د تخصيص قول هم اکثرو نه دی قبول کړی.

(۲)په دار قطني ج۱ص۲۵۱ کې د حضرت علي کرم الله وجهه په روايت کې داسې جمله ده چې:فقد كفر الله عنک،لکن ددې په سند کې د منذر بن محمد په نوم راوي ضعيف دی او که دا جمله ثابته شي نو بيا خو يې معنى داده چې الله جل جلاله دده کفاره ساقطه کړې ده.

(۳)حافظ ابن حجر،حافظ بدرالدين عيني،امام نووي،علامه ماردينې شمس الايمة سرخسي،حافظ ابن همام رحمهم الله تعالى وغيره محدثينو دلته د تأخير الكفارې ذکر کړی دی.الشيخ المحدث عبدالحق رحمه الله دې ته القول القويم ويلی دی(لمعات، بحواله هامش صحيح بخاري ج۱ص ۲۶۰.

## ان ابراهيم حرَّم مكة و انى حرَّمت المدينة

قلنا:الشيخ المحدث عبدالحق الدهلوي رحمه الله فرمايي چې:اسناد تحريم بابراهيم از جهت آن باشد که وی رسانيد و اعلام کرد حکم الهی زيرا که حاکم بشرايع و احکام خدا جل جلاله است و حکم وی قديم است انبياء رسانند آن آحکام آند.(أشعة اللمعات، ج۲ص۱۷۸).

د مکې مکرمې د حرم په باره کې په صحيح البخاري کې داسې الفاظ دي چې: ان مکة حرمها الله ولم يحرمها الناس.صحيح البخاري، ج١ ص٢٤٧.

او د مدينې منورې د حرم په باره کې الفاظ داسې دي چې: حرم مابين لابتى المدينة على لسانى.صحيح البخاري ج١ ص٢٥١.

او په مسند احمد کې داسې الفاظ دي چې:ان الله حرم على لسانى.

لهذا علامه عينى او محدث عبدالحق الدهلوي رحمهم الله تعالى فرمايي چې ابراهيم عليه السلام او نبي کريم ﷺ ته د تحريم نسبت په دې معنى دى چې دا تحريم دوي بيان کړى دى.فانقيل چې:بيا نبي کريم ﷺ سمدستي د سرکړو استثناء وکړه چې (اِلا اِلاذخر).

قلنا: امام نووي رحمه الله فرمايي چې:هذا محمول على أنه ﷺ أوحى اِليه فى الحال باِستثناء اِلا ذخر.شرح مسلم ج١ص ٤٣٨. (وَمَا يَنۡطِقُ عَنِ الۡهَوٰى ۝ اِنۡ هُوَ اِلَّا وَحۡىٌ يُّوۡحٰى ۝)النجم: ۴.

فانقيل چې: دومره زر وحې څنګه راغله؟

قلنا :امام طحاوي رحمه الله په مشکل الأثار،حافظ ابن حجر او علامه عيني رحمه الله فرمايي چې دومره زر د وحې د راتللو څخه زنديق منکربدلى شي.

## د حضرت خزيمة رضي الله عنه وغيره شاهدي

(١)رسول الله ﷺ يواځې د حضرت خزيمةؓ شاهدي د دوو شاهدانو قايم مقام ګرځولى وو.

(٢)رسول الله ﷺ حضرت ابوبردة رضي الله عنه ته د شپږو مياشتو په چېلۍ (اوزه) باندې د قربانۍ اجازت ورکړې وه.

(٣)رسول الله ﷺ براء بن عازب رضي الله عنه ته د سرو زرو د ګوتمۍ اجازت ورکړى وو.

(۴)کله چې د حج اعلان وشو ،يو صحابي رضي الله عنه عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ صرف سږ کال حج فرض دى او که ټول عمر ؟نبي کريم ﷺ وفرمايل چې که ما د ټول عمر په باره کې نعم درته ويلى وو ،نو ټول عمر به فرض شوى وو.

قلنا: دا تول د الله ﷻ په حکم وو (وَمَا يَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰى ۝ اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْيٌ يُّوْحٰى ۝) النجم: ۴ د حضرت براء د سرو زرو د گوتمی په باره کې تصريح ده چې البس ما کساک الله و رسوله، مسند احمد.

## اعطيت مفاتح خزاين الأرض

اهل بدعت ددې حديث څخه استدلال کوي چې الله ﷻ د ځمکې تولې خزانې نبي کريم ﷺ ته ورکړې دي او نبي کريم ﷺ يې په خلکو تقسيموي.

قلنا: د احاديثو شارحينو ددې حديث معنی داسې بيان کړې ده چې:

الله ﷻ به د نبي کريم ﷺ أمت د تولې ځمکې د خزانو مالکان کړي، امام نووي رحمه الله فرمايي چې: فان معناه الإخبار بأن أمته تملک خزاين الأرض و قد وقع ذلک (شرح مسلم ج۲ ص۲۵۰) علامه عزيزي رحمه الله فرمايي چې: استعارة لوعدالله بفتح البلاد. (السراج المنير ج۱ ص۲۴۵) او دا منامې بشارت وو په صحيح مسلم ج۲ ص۲۴۴ کې د بيناانانايم تصريح ده.

خپله د رسول الله ﷺ د حديث څخه همدغه تشريح را معلوميږي. رسول الله ﷺ فرمايي چې: و اعطانى الكنزين الاحمر و الابيض و ان أمتى سيبلغ ما زوى لى منها، مستدرک ج ٤ ص ٤٤٩.

فانقيل چې: الشاه المحدث عبد الحق الدهلوي رحمه الله فرمايي چې پدې حديث کې د ظاهري ملک څخه ما سوى باطني ملک هم مراد دى، و اما در خزاين معنوى مفاتيح آسمان و زمين و ملک و ملکوت آست، تخصيص زمين ندارد. أشعة اللمعات ج ۴ ص ۶۰۵.

قلنا: د خزاينو معنويه وو څخه مکارم الأخلاق او د تول مخلوق څخه اوچته مرتبه مراد ده، ايمان او هدايت الله ورکوي. الله ﷻ فرمايي چې: ﴿اِنَّكَ لَا تَهْدِىْ مَنْ اَحْبَبْتَ﴾.

## حضرت علي رضي الله عنه ته اجازت چې خپل زوی ته نوم محمد او کنيت ابوالقاسم کيږدي

په ابتداء کې ددې نوم او کنيت جمع کولو څخه ممانعت وو، وروسته منسوخ شو، هرچا ته اجازت شو، شرح مواهب ج۵ ص۳۰۳.

## د لمر واپس کول

یوه ورځ رسول الله ﷺ د حضرت علي رضی الله عنه په غېږ کې سر اېښی وو اوده وو او یا وحي نازلېدله چې مازدیګر په قضا کېدو شو ،نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه چې د مازدیګر لمونځ دې کړی دی؟حضرت علي کرم الله وجهه وفرمایل چې نه، نو رسول الله ﷺ لمر د مغرب څخه را واپس کړو ،ددې څخه معلومېږي چې نبي کریم ﷺ مختار الکل وو، د دې حدیث په یو سند کې عبد الله بن موسی العبسي شیعه دی.
(قانون الموضوعات ص۲۷۵ تقریب ص۲۵۳)

په بل سند کې یې احمد بن صالح دی چې مطعون دی،بل راوي یې محمد بن موسی شیعه دی،تقریب ص۲۳۹.

په دریم سند کې یې عمار بن مطر کذاب دی،لهذا محدثین دې حدیث ته موضوع وایي،(موضوعات کبیر لملا علی القاري ص ۴۸) نو په دومره ضعیف خبر واحد باندې څرنګه عقیده ثابتوئ؟

د لمر د واپس کېدلو حدیث د ابو هریرة رضی الله عنه څخه هم مروي دی.لکن ددې په سند کې یزید، عبدالملک نوفلي متروک الحدیث دی.میزان الاعتدال.

(۲)که دا روایت صحیح شي نو بیا هم ترېنه د اهل بدعتو دعوی نه ثابتیږي.ځکه چې په دې روایت کې دا الفاظ هم دي چې: قال رسول الله ﷺ:انه کان فی طاعتک و طاعة رسولک فاردد علیه الشمس. خصایص کبرٰی ج ۲ ص ۸۲.

ددې څخه معلومیږي چې نبي کریم ﷺ صرف دعا کړې ده.

## وجدته في غمراتٍ من النار
## فأخرجته اِلى ضحضاحٍ

نبي كريمﷺ فرمايلي چې ما ابوطالب په اور کې ډوب وليدلو نو تر پښو پورې مې د اور نه را وويستلو.

قلنا: که نبي كريمﷺ مختارالكل وي،نو د ټول جهنم څخه يې ولې نه راوېستلو؟

(۲)په صحيح مسلم کې روايت دی چې:لولا انا لكان فى الدرک الاسفل من النار.

امام نووي رحمه الله ورته داسې باب لګوي چې: باب شفاعة النبي ﷺ لأبي طالب و التخفيف عنه بسببه،نو دا د شفاعت سره تعلق لري.

وصلى الله تعالى خير خلقه محمد و على اله و اصحابه اجمعين.

# معجزات او كرامات صرف د الله تعالی په اختیار کې دي



## معجزه او كرامت نه د نبي او دولي خلق دى او نه كسب ، بلكې صرف دالله فعل دى

معجزه يو غير اختياري او فى الجمله دغير طبعي اسبابو سره وابسته فعل وي چې دنبي كريم ﷺ په لاس صادريږي.

معجزه دعجز نه مشتق ده او عجز ضد القدرة ته وايي حرف(ها) پكې دمبالغې لپاره ده او دمنكرينو عاجز كونكى صرف الله تعالى دى ، لهذا معجزه صرف د الله تعالى فعل دى او صرف دالله تعالى په اختيار كې ده ، نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته يې د أدنى ملابست له وجې نسبت كيږي چې دنبي كريم صلى الله عليه وسلم په لاس صادره شوې ده په عامو افعالو كې خالق الله دى او كاسب عبد دى، خو په معجزاتو او كراماتو كې دبنده كسب هم نه تشه.

## قرآني دلايل

١- يَاأَيُّهَا النَّاسُ أَنتُمُ الْفُقَرَاءُ إِلَى اللَّهِ وَاللَّهُ هُوَ الْغَنِيُّ الْحَمِيدُ(فاطر ١٥)

٢- وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَنْ يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ(مؤمن / ٧٨)

٣- وَمَا كَانَ لَنَا أَنْ نَأْتِيَكُمْ بِسُلْطَانٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ(ابراهيم)

٤- وَمَا كَانَ لِرَسُولٍ أَنْ يَأْتِيَ بِآيَةٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ(رعد / ٣٨)

٥- قُلْ إِنَّمَا الْآيَاتُ عِندَ اللَّهِ(انعام/١٠٩)

ددې ايتونو څخه دا واضحيږي چې دنبي كريم ﷺ په شمول هيڅ پيغمبر هم پخپل اختيار باندې هيڅ معجزه نه شي ښكاره كولى .

٦-الله تعالى د ابراهيم عليه السلام معجزه ذكر كوي چې : قُلْنَا يَا نَارُ كُونِي بَرْدًا وَسَلَامًا عَلَى إِبْرَاهِيمَ.

ابن كثير ليكلي دي چې لو لا ان الله قال وسلماً لأذى ابراهيم، نو كه دا دابراهيم عليه السلام كسب وى نو د الله تعالى سلماً ته به ضرورت نه وو.

٧- همدارنګه الله تعالى د موسى معجزه ذكر كړې ده چې : وَأَلْقِ عَصَاكَ فَلَمَّا رَآهَا تَهْتَزُّ كَأَنَّهَا جَانٌّ وَلَّى مُدْبِرًا وَلَمْ يُعَقِّبْ

نو که معجزه د نبي کريم صلى الله په اختيار کې وی نو موسى وليې وويريدلو ؟

ابن کثير دلته فرمايي چې : هٰذَا بُرْهَانٌ مِّنَ اللّٰهِ تَعَالٰى لِمُوْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ، وَمُعْجِزَةٌ عَظِيْمَةٌ، وَخَرْقٌ لِّلْعَادَةِ بَاهِرٌ، دَالٌّ عَلٰى أَنَّهُ لَا يَقْدِرُ عَلٰى مِثْلِ هٰذَا إِلَّا اللّٰهُ عَزَّوَجَلَّ

نو معجزه صرف د الله تعالى په قدرت کې وي.

٨- رسول الله صلى الله عليه وسلم ته الله تعالى حکم کړی وو چې ته خلکو ته وايه چې: وَمَا كَانَ لَنَا اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ) همدارنګه: (قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ)

٩- د موسى عليه السلام معجزې الله تعالى خپل ځان ته منسوبوي فرمايي چې: (وَاِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ) همدارنګه : (ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ مِّنْ بَعْدِ مَوْتِكُمْ) همدارنګه : (وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَاَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَ السَّلْوٰى)

همدارنګه د داود عليه السلام معجزه خپل ذات ته منسوبوي چې: يٰجِبَالُ اَوِّبِيْ مَعَهٗ وَالطَّيْرَ وَاَلَنَّا لَهُ الْحَدِيْدَ

١٠- د رسول الله صلى الله عليه وسلم ډيرې معجزې وې خو په ټولو کې لويه معجزه قران دی، او س که معجزه د نبي فعل وی او د نبي کسب، قدرت او اختيار لره پکې دخل وی نو ددې معنی خو داده چې قران د محمد صلى الله عليه وسلم مقدور دی او نبي کريم صلى الله عليه وسلم پخپل قدرت جوړ کړی دی ، حالانکې دا د مشرکانو د مکې خيال وو هغوی دا تهمت لګولو چې قرآن کريم نبی کريم صلى الله عليه وسلم پخپله جوړ کړی دی.

١١- په معجزه د نبوت تصديق کيږي او نبوت د نبي کسب ندی نو تصديق به يې هم د نبي کسب نه وي.

١٢- ډير ځلې کافرانو فرمايشي معجزې غوښتې دي، نبي کريم صلى الله عليه وسلم به په زړه کې ارزو کوله چې که د اتمام حجت لپاره ددوي فرمايش پوره شوی وی ښه به وه، لکن د الله تعالى د حکمت تقاضی به نه وه چې دا فرمايشي معجزې ظاهرې شي، الله تعالى فرمايي چې: (اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ) ته دوي ته ووايه چې معجزې د الله تعالى سره دي.

همدارنګه : (وَمَا كَانَ لَنَآ اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ).

يعنې ستاسو د فرمايش پوره کول او معجزات راوړل زمونږ په قبضه کې نه دي ،بلکې الله تعالى چې کله وغواړي نو زمونږ په لاس معجزات ظاهروي.

۱۳- د مکې مشرکانو عناداً د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه یو څو فرمایشي معجزې وغوښتې الله تعالی فرمایي چې: ﴿وَقَالُوا لَن نُّؤْمِنَ لَكَ حَتَّىٰ تَفْجُرَ لَنَا مِنَ الْأَرْضِ يَنبُوعًا﴾.

قاضي بیضاوي رحمه الله فرمایي چې: (هل كنت الا بشرا رسولا كسائر الانبياء ، رسولا كسائر الرسل فكانو الا يأتون قومهم الا بما يظهره الله عليهم ما يلايم حال قومهم ولم يكن أمر الايات اليهم ولا لهم ان يتحكموا على الله حتى يتخيروا )

زه د نورو انسانانو په شان یو انسان او د نورو رسولانو په شان یو رسول یم، پیغمبران خپلو قومونو ته صرف هغه معجزې ښکاره کوي ، کومې چې الله تعالی ددوي په لاس صادروي او کومې چې ددوي د قوم د حال سره مناسبې وي او د معجزو صادرول د پیغمبرانو په قدرت کې ندي او داسې هم نه ده چې پیغمبران په الله تعالی کومه فیصله نافذه کړي چې په هغې کې دخپل اختیار څخه کار واخلي، حافظ ابن کثیر لیکلي دي چې: أَيْ: سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى وَتَقَدَّسَ أَنْ يَتَقَدَّمَ أَحَدٌ بَيْنَ يَدَيْهِ فِي أَمْرٍ مِنْ أُمُورِ سُلْطَانِهِ وَمَلَكُوتِهِ، بَلْ هُوَ الْفَعَّالُ لِمَا يَشَاءُ، إِنْ شَاءَ أَجَابَكُمْ إِلَى مَا سَأَلْتُمْ، وَإِنْ شَاءَ لَمْ يُجِبْكُمْ، وَمَا أَنَا إِلَّا رَسُولٌ إِلَيْكُمْ أُبَلِّغُكُمْ رِسَالَاتِ رَبِّي وَأَنْصَحُ لَكُمْ، وَقَدْ فَعَلْتُ ذَلِكَ، وَأَمْرُكُمْ فِيمَا سَأَلْتُمْ إِلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ

د الله تعالی په بادشاهۍ کې هیڅوک اختیار نه لري، صرف الله تعالی چې د کوم شي اراده وکړي هغه کوي، که الله تعالی وغواړي ستاسو مطالبات به پوره کړي او که وغواړي نه یې پوره کوي، زه صرف د الله تعالی رسول یم چې تاسو ته د الله تعالی پیغامات رسوم او تاسو ته نصیحت کوم (باقي تاسو چې کوم مطالبات کوئ هغه زما په اختیار کې ندي) هغه د الله تعالی په قدرت کې دي.

امام جلال الدین السیوطي رحمه الله فرمایي چې: كسائر الرسل ولم يكونوا يأتون بآية الا باذن الله زه د نورو پیغمبرانو په شان پیغمبر یم هغوي د الله تعالی د اذن څخه بغیر هیڅ معجزه نه شوه صادرولی.

۱۴- کفارو به اعتراض کولو چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره ولې همیشه یوه معجزه نه وي؟

د نبي کریم صلی الله علیه وسلم هم تمنا وه ځکه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د خلکو په ایمان ډیر حریص وو لکن دا د الله تعالی د حکمت تقاضی نه وه، الله تعالی فرمایي چې: وَإِن كَانَ كَبُرَ عَلَيْكَ إِعْرَاضُهُمْ فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَن تَبْتَغِيَ نَفَقًا فِي الْأَرْضِ أَوْ سُلَّمًا فِي السَّمَاءِ فَتَأْتِيَهُم بِآيَةٍ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدَىٰ ۚ فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجَاهِلِينَ ۝

علامه سیوطي رحمه الله فرمايي چې: فَتَأْتِيَهُمْ بِآيَةٍ﴾ مِمَّا اقْتَرَحُوا فَافْعَلِ الْمَعْنَى أَنَّكَ لَا تَسْتَطِيعُ ذٰلِكَ فَاصْبِرْ حَتَّى يَحْكُمَ اللهُ﴾(جلالين تحت هذه الآية).

## احادیث

۱-په صحيح البخاري ج ۱ص ۴۲،ص ۴۸۳، صحيح مسلم ج ۲ص ۲۶۶) کې حديث دی، چې موسی علیه السلام به چې غسل کولو نو د پوره پردې خيال به يې ساتلو ، نو يهودو تهمت ولګولو چې دموسی علیه السلام بدن عیبجن دی، يوه ورځ موسی علیه السلام غسل کولو، په يو کاڼي يې خپلې جامې ايښې وې، کاڼي دجامو سره وتښتيدلو او د بني اسرائيلو منځ ته لاړو.

فَفَرَّ الْحَجَرُ بِثَوْبِهِ، فَخَرَجَ مُوسٰى عليه السلام فِي إِثْرِهِ، يَقُولُ: ثَوْبِي يَا حَجَرُ! ثَوْبِي يَا حَجَرُ!)

موسی علیه السلام وربسې منډې وهلې او فرمايل يې چې ای کاڼيه! زما جامې راوړه زما جامې راوړه: قَالَ ابوهريرة وَاللهِ إِنَّهُ لَنَدَبٌ بِالْحَجَرِ، سِتَّةٌ أَوْ سَبْعَةٌ، ضَرْبًا بِالْحَجَرِ.

ابو هريرة رضی الله عنه فرمايي چې قسم دی چې په کاڼي کې د موسی علیه السلام دګزارونو شپږ او يا اوه نښانونه وو، امام نووي رحمه الله فرمايي چې: أَنَّ فِيهِ مُعْجِزَتَيْنِ ظَاهِرَتَيْنِ لِمُوسٰى عليه السلام: إِحْدَاهُمَا مَشْيُ الْحَجَرِ بِثَوْبِهِ إِلَى مَلَإِ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَالثَّانِيَةُ حُصُولُ النَّدَبِ فِي الْحَجَرِ

د کاڼي منډه د موسی علیه السلام معجزه وه، همدارنګه په کاڼي کې نښانونه جوړيدل دموسی علیه السلام معجزه وه، د کاڼي وهل دموسی علیه السلام فعل وو لکن هغه معجزه نده، معجزه په کاڼي کې نښانونه جوړيدل وو او هغه د الله تعالی فعل وو او دکاڼي منډه او په کاڼي کې نښانونه جوړيدل د موسی علیه السلام په اختيار کې نه وو ،بلکې دموسی علیه السلام دتقاضی په خلاف وو ، موسی علیه السلام نه غوښتل چې کاڼی وتښتي ځکه خو يې وربسې منډې وهلې، ورته غوصه وو او ګذارونه يې پرې وکړل.

۲- حضرت ايوب علیه السلام ته الله تعالی او ه ځامن درې لورګانې اوه زره اوزې (چيلۍ) درې زره اوښان پنځه سوه خره، پنځه سوه غواګانې او ډير غلامان ورکړي وو ، بيا امتحاناً الله تعالی داهر څه ورځنه واخستل ، تقريبا پنځلس کاله په جاني او مالي تکليف کې مبتلی وو، (تفسير حقاني ج ۵ص ۱۷۲) او دابن جرير په روايت کې راځي چې اتلس کاله پدې تکليف کې مبتلی وو، بيا د الله تعالی رحمت په جوش کې

راغلو همغه مړه او لادونه چې د چت لاندې شوي وو ورته يې را ژوندي کړل او ياپې نور اولادونه ورکړل ، دواړه خبرې مفسرينو ليکلي دي ، دابو هريرة رضى الله عنه په روايت کې راځي چې:

بَيْنَمَا أَيُّوبُ عليه السلام يَغْتَسِلُ عُرْيَانًا، فَخَرَّ عَلَيْهِ جَرَادٌ مِنْ ذَهَبٍ، فَجَعَلَ يَحْثِي فِي ثَوْبِهِ، فَنَادَاهُ رَبُّهُ يَا أَيُّوبُ! أَلَمْ أَكُنْ أَغْنَيْتُكَ عَمَّا تَرَى؟، قَالَ بَلَى يَا رَبِّ، وَلَكِنْ لاَ غِنَى لِي عَنْ بَرَكَتِكَ (صحيح البخاري جـ ١ صـ ٤٢)

ايوب عليه السلام بربنډ غسل کولو چې دسرو زرو د ملخانو باران پرې شروع شو، ايوب عليه السلام په ځادر کې راټولول دالله تعالى له طرفه اواز وشو چې ايا ته ما ددې څخه مستغني کړى نه يې؟ ايوب عليه السلام ورته وويل چې ولې نه ، لکن زما لپاره ستا د برکت څخه استغناء نه شته، ددې څخه معلوميږي چې د سرو زرو دملخانو را ورول دايوب عليه السلام په کسب او اختيار سره نه وو کنه دومره په عجلت به يې نه را ټولول.

(٣) ابراهيم عليه السلام او حضرت سارى رضى الله عنها شام ته هجرت کولو ، په لاره کې يو ظالم وو چې ښايسته ښځه به يې وليدله ،نو خاوند به يې ورته قتل کړو او ښځه به يې جنسي وينځه کړه، خفيه پوليسو ظالم د حضرت سارې رضى الله عنها د حسن څخه خبر کړو، ظالم ابراهيم عليه السلام را وغوښتلو او پوښتنه يې ترينه وکړه چې دا زنانه دې څخه ده؟ ابراهيم عليه السلام وفرمايل چې دا مې خور ده ، کله چې دبادشاه يقين راغلو چې دا يې خاوند نه دى ، نو دقتل اراده يې پريښوده(اسلامي خور او ورور مراد دي) حضرت ساره رضى الله عنها چې ظالم بادشاه ته پيش کړى شوه ، حضرت سارى رضى الله عنها اودس وکړو او په لمونځ ودريدله او دعا يې وکړه چې يا الله تعالى زما د عزت حفاظت وکړه، بادشاه چې لاس ور اچولو نو پښې يې په زمکه کې ننوتلې، ظالم عرض وکړو چې الله تعالى ته سوال وکړه چې ماته نجات راکړې زه به تا ته څه نه وايم، حضرت سارى رضى الله عنها سوال وکړو، الله تعالى نجات ورکړو ،لکن دوهم او دريم ځلې يې بيا کوشش وکړو لکن هر ځلې يې به يې پښې په ځمکه ښخيدلې اخر کې يې حضرت ساره رضى الله عنها پريښودله او هاجره رضى الله عنها يې ورته په تحفه کې ورکړه، حضرت ساره چې واپس راغله نو وې ليدل چې: فَأَتَتْهُ وَهُوَ قَائِمٌ يُصَلِّي، فَأَوْمَأَ بِيَدِهِ: مَهْيَا، قَالَتْ: رَدَّ اللَّهُ كَيْدَ الكَافِرِ، أَوِ الفَاجِرِ، فِي نَحْرِهِ (صحيح البخاري: صـ:٢٩٥).

ابراهيم عليه السلام لمونځ کولو حضرت سارى ته يې اشاره وکړه چې څه وشول؟ حضرت سارى ورته وفرمايل چې الله تعالى دکافر مکر دده په سينه ووهلو ، امام نووي فرمايي چې: وَفِي هٰذَا الْحَدِيثِ مُعْجِزَةٌ ظَاهِرَةٌ لِإِبْرَاهِيمَ عليه السلام. (شرح مسلم ج ١ صـ ٢٦٦)

نو که معجزه د ابراهيم فعل وي نو د مخکې څخه به ورته معلوم وو چې ددې ظالم پښې به په ځمکه کې ننوځي او حضرت سارى رضى الله عنها ته به الله تعالى نجات ورکوي نو دومره خوف ته څه ضرورت وو؟ همدارنګه دومره په بې قرارۍ پوښتنې ته څه ضرروت وو چې حضرت سارى رضى الله عنها ته يې په لمونځ کې اشاره وکړه چې څه وشو؟ ددې څخه دا هم معلوميږي چې ابراهيم عليه السلام عالم الغيب نه وو، حاضر او ناظر نه وو متصرف نه وو.

(۴) يوشع عليه السلام په مقدسه ځمکه حمله وکړه، په جنګ جنګ کې د هفتې شپه را ورسيدله، لمر په ډوبيدو شو، يوشع عليه السلام لمر ته مخاطب شو چې: إِنَّكِ مَأْمُورَةٌ وَأَنَا مَأْمُورٌ اللَّهُمَّ احْبِسْهَا عَلَيْنَا، فَحُبِسَتْ حَتَّى فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ (صحيح البخاري ج ١ صـ ٤٤٠)

ته هم مأمور يې (په ډوبيدلو) او زه هم مأمور يم (په جهاد) يا الله تعالى د ا لمر راته ودروه،نو لمر ودريدلو او هغه علاقه يوشع عليه السلام د لمر پريوتلو څخه مخکې فتحه کړه.

امام نووي رحمه الله فرمايي چې: فَقِيلَ رُدَّتْ عَلَى أَدْرَاجِهَا وَقِيلَ وُقِفَتْ وَلَمْ تُرَدَّ وَقِيلَ أُبْطِئَ بِحَرَكَتِهَا وَكُلُّ ذٰلِكَ مِنْ مُعْجِزَاتِ النُّبُوَّةِ (شرح مسلم ج ٢صـ ٨٥)

لمر يا خپلو منازلو ته واپس کړى شو، يا واپس نه کړى شو، بلکې حرکت يې ودرولى شو. يا يې حرکت ډېر کم شو، بهر حال داهر څه د يوشع عليه السلام معجزه وه، نو که دا د يوشع عليه السلام په اختيار کې وى نو اللهم احبسها علينا ته څه ضرروت وو؟

(۵) رسول الله صلى الله عليه وسلم چې د معراج څخه را واپس شو نو د مکې مشرکانو امتحاناً ترينه د بيت المقدس د يو څو نشانونو پوښتنې وکړې، نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايي چې: فَكُرِبْتُ كُرْبَةً مَا كُرِبْتُ مِثْلَهُ قَطُّ»، قَالَ: "فَرَفَعَهُ اللَّهُ لِي أَنْظُرُ إِلَيْهِ، مَا يَسْأَلُونِي عَنْ شَيْءٍ إِلَّا أَنْبَأْتُهُمْ بِهِ (صحيح مسلم ج ١ صـ ٩٦)

په دې وخت کې زه دومره خفه شوم چې مخکې دومره نه وم خفه شوى، نو الله تعالى راته بيت المقدس رامخامخ کړو، هغوى به چې څه پوښتنه کوله ما به جواب ورکولو، د صحيح بخاري الفاظ داسې دي چې:

لَمَّا كَذَّبَتْنِي قُرَيْشٌ، قُمْتُ فِي الحِجْرِ، فَجَلَى اللَّهُ لِي بَيْتَ المَقْدِسِ، فَطَفِقْتُ أُخْبِرُهُمْ عَنْ آيَاتِهِ وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَيْهِ (صحيح البخارى: ج:٢،صـ:٦٨٤).دا دنبي عليه السلام معجزه وه (ميزان العقائد للشاه

عبدالعزيز رحمه الله ص( ١٣٢) نو كه معجزه د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فعل وي او د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كسب او اختيار لپاره پکې دخل وی نو بیا دومره دخفګان څه ضرورت وو؟.

(۶) دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډيرې معجزې وې لکه: انشقاق القمر، د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس کې دکاڼو تسبيح، حنين الجزع لما فارقه د وچې ونې د ډډ ژړا ، لره ډوډۍ ډيرو ته کافي کيدل، لکن دا ټول دالله تعالى افعال وو، دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دفعل، دکسب او اختيار لره پکې دخل نه وو.

(۷) نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خيبر کې د زهر اولوده ګډه (پسه) غوښه خولې ته واچوله، دهغې په وجه په تکليف شو، حتى چې وروسته دهمدې له وجې شهيد شو، بيا يې هغه يهودنۍ ته وويل چې تا پدې غوښه کې زهر اچولي دي، هغې ورته وويل چې: (من أخبرک؟ قال أخبرتني هذه في يدی للذراع) ماته دغې ليچې خبر راکړی دی، نو دا معجزه وه او دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په کسب او اختيار کې نه وه ځکه چې که د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اختيار کې وی،نو د اول څخه به يې نه خوړله او صحابه به يې هم منع کړي وو.

## دعلماوو اقوال

الشيخ المحدث عبد الحق الدهلوي فرمايي چې: معجزه فعل نبي نيست بلکی فعل خدای تعالی است كه بردست. وی اظهار نموده بخلاف افعال ديگر كه كسب اين از بنده است وخلق از خدا تعالى و در معجزه كسب نيز از بنده نيست (مدارج النبوة ج ٢صـ١١٦)

همدارنګه په بل ځای کې فرمايي چې: معجزه وكرامت فعل خدا تعالى است كه ظاهر ميگر دد بر دست بنده بجهت تصديق وتكريم وی ، نه فعل بنده است كه صادر ميگردد بقصد واختيار او مثل سائر افعال (ترجمة فتوح الغيب صـ٢٧)

(۱) حافظ ابن حجر العسقلاني رحمه الله فرمايي چې: (وَسميت المعجزة لِعَجْزِ مَنْ يَقَعُ عِنْدَهُمْ ذٰلِكَ عَنْ مُعَارَضَتِهَا وَالْهَاءُ فِيهَا لِلْمُبَالَغَةِ أَوْهِيَ صِفَةُ مَحْذُوفٍ وَأَشْهَرُ مُعْجِزَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْآنُ). (فتح الباري ج ٦ صـ ٤٢٤)

معجزې ته ځکه معجزه وايي چې د چا په مخکې چې پيش کړی شي هغه ددې دمعارضې څخه عاجزه کيږي او حرف (ها) پکې دمبالغې لپاره ده (لکه په علامة کې) او يا لفظ د معجزې صفت دی او ددې موصوف (لکه لفظ د ايت) محذوف دی دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مشهوره معجزه قرآن کريم دی، آنتهی.

حافظ ابن حجر رحمه الله د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مشهورو معجزو كې قران ذكر كړو او په قرآن كې دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كسب فعل او اختيار لره دخل نشته، بلكې صرف د الله تعالى فعل دى.

(۳) ملا علي قاري رحمه الله فرمايي چې: المعجزة من العجز الذى هو ضد القدرة وفى التحقيق المعجز فاعل العجز فى غيره، وهو الله سبحانه (مرقات ج ۲صـ ۵۳۰)

معجزه دعجز څخه مشتقه ده چې ضد دقدرت دى او تحقيقي خبره صرف داده چې معجزه هغه ده چې په غير كې عجز پيدا كړي او په غير كې عجز پيدا كونكى صرف دالله تعالى ذات دى (انتهى)

پدې عبارت كې صراحةً ذكر شو چې معجز (عجز پيدا كونكى) صرف دالله تعالى ذات دى، نو معجزه صرف دالله تعالى فعل شو.

(۴) قاضي ابو بكر ابن الطيب رحمه الله فرمايي چې: فصل فى حقيقة المعجزة، معنى قولنا أن القران معجز على اصولنا أنه لايقدر العباد عليه وقد ثبت أن المعجز الدال على صدق النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لايصح دخوله تحت قدرة العباد وانما ينفرد الله تعالى بالقدرة عليه ولا يجوز أن يعجز العباد عما تستحيل قدرتهم عليه (الى ان قال) وكذلک معجزات سائر الانبياء (اعجاز القرآن، بر هامش اتقان، ج ۲صـ ۱۸۶)

فصل دى په بيان دحقيقت دمعجزې كې، زمونږ داصولو په بناء ددې قول مطلب چې قران معجزه ده دادى چې مخلوق ورباندې قدرت نه لري او دا خبره ثابته ده چې معجزه چې دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صدق دلالت كوي، ددې په باره كې دا خبره نده صحيح چې دا دبندګانو په قدرت كې داخله ده، بلكې دا صرف دالله تعالى په قدرت كې ده او دا نده جايزه چې ووايي چې بنده د داسې شي څخه عاجز دى په كوم چې دده قادريدل محال دي (بيا مخكې ليكي) چې همدا حال د ټولو انبياوو د معجزاتو دى چې هغه هم دبندګانو دقدرت لاندې داخلې نه دي (انتهى)

پدې عبارت كې هم صراحةً ذكر شو چې د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دنورو انبياوو معجزې صرف دالله تعالى فعل دى دبنده دكسب لپاره په كې هيڅ دخل نشته.

(۵) علامه قاضي عياض بن موسى بن عياض المالكي رحمه الله فرمايي چې: (اعلم أَنَّ مَعْنَى تَسْمِيَتِنَا مَا جَآءَتْ بِهِ الْأَنْبِيَآءُ عَلَيْهِمُ السَّلَامُ مُعْجِزَةً هُوَ أَنَّ الْخَلْقَ عَجَزُوا عَنِ الْإِتْيَانِ بِمِثْلِهَا وَهِيَ عَلَى ضَرْبَيْنِ: ضَرْبٌ هُوَ مِن نَوْعِ قُدْرَةِ

الْبَشَرِ فَعَجَزُوا عَنْهُ فَتَعْجِيزُهُمْ عَنْهُ فِعْلُ اللهِ دَلَّ عَلَى صِدْقِ نَبِيِّهِ (الى أن قال): عَلَى رَأْيِ بَعْضِهِمْ وَنَحْوِهِ وَضَرْبٌ هُوَ خَارِجٌ عَنْ قُدْرَتِهِمْ فَلَمْ يَقْدِرُوا عَلَى الإِتْيَانِ بِمِثْلِهِ كَإِحْيَاءِ الْمَوْتَى وَقَلْبِ الْعَصَا حَيَّةً وَإِخْرَاجِ نَاقَةٍ مِنْ صَخْرَةٍ وَكَلَامِ شَجَرَةٍ وَنَبْعِ الْمَاءِ مِنَ الْأَصَابِعِ وَانْشِقَاقِ الْقَمَرِ مِمَّا لَا يُمْكِنُ أَنْ يَفْعَلَهُ أَحَدٌ إِلَّا اللهُ فَيَكُونُ ذَٰلِكَ عَلَى يَدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فِعْلِ اللهِ تَعَالَى وَتَحَدِّيهِ مَنْ يُكَذِّبُهُ أَنْ يَأْتِيَ بِمِثْلِهِ تَعْجِيزٌ لَهُ (شفاء:صـ: ۱۲۲).

پوه شه چې كوم خوارق چې دانبياوو په لاس صادريږي هغوي ته له دې وجې ځخه معجزه وايي چې مخلوق ددې دظاهرولو ځخه عاجز شوى دى او چې كله مخلوق عاجز شو نو معلومه شوه چې معجزه صرف دالله تعالى فعل دى چې د پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په صدق دلالت كوي (بيا مخكې ليكي) چې لكه مړي راژوندى كول د امسا ځخه اژدها جوړول، د تيګي ځخه اوبه راويستل، دګوتو په منځ كې د اوبو راويستل، سپوږمۍ چول داسې شيان دي چې دالله تعالى ځخه بغير دبل چا ځخه ممكن نه دي،بلكې دا دالله تعالى فعل دى چې دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس صادريږي اود نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مكذبين يې چلنج كړل چې داسې كارونه وكړئ. انتهى

پدې عبارت كې هم صراحةً ذكر شو چې معجزه د الله تعالى فعل دى، د مخلوق پكې هيڅ دخل نشته، نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې صرف لدې وجې نسبت كيږي چې دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په لاس صادره شوې ده.

(۶) امام غزالي رحمه الله فرمايي چې: ووجه دلالت المعجزة على صدق الرسل ان كل ما عجز عنه البشر لم يكن الا فعلاً لله تعالى فمهما كان مقروناً بتحدى النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ينزل منزلة صدقت (احياء العلوم ج ۱ صـ ۹۷)

معجزات د انبياوو په صداقت داسې دلالت كوي چې كله چې ددې دظاهرولو ځخه ټول انسانان عاجز دي نو دا صرف دالله تعالى فعل دى او كله چې معجزه دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دتحدى سره مقرونه شي نو ګويا چې الله تعالى تصديق وكړو چې ته په دعوى د رسالت كې رشتينى يې. انتهى

پدې عبارت كې هم صراحةً ذكر شو چې معجزه صرف دالله تعالى فعل دى.

(۷) امام عبدالوهاب الشعرانى رحمه الله فرمايي چې (اعلم أن البرهان القاطع على ثبوت نبوة الانبياء هى المعجزات وهى فعل يخلقه الله خارقا للعادة على يد مدعى النبوة معترفا بدعواه

وذلک الفعل يقوم مقام قول الله تعالى له انت رسولي تصديقاً لما ادعاه الخ (اليواقيت والجواهر ج ١صـ ١٥٨)

پدې پوه شه چې د انبيا وو د نبوت په ثبوت واضح ترين دلايل معجزات دي او معجزه د الله تعالى فعل دی چې د مدعي د نبوت په لاس يې صادروي او پدې معجزه د نبي کريم ﷺ د نبوت اقرار کوي او معجزه د الله تعالى ددې قول قايم مقامه ده چې ته په خپله دعوه د رسالت کې رشتينی يې. انتهى، پدې عبارت کې هم صراحةً معجزې ته د الله تعالى فعل وويلی شو.

(٨) مشهور مؤرخ علامه عبدالرحمن بن خلدون رحمه الله ليکي چې: ومن علاماتهم ايضا وقوع الخوارق لهم شاهدة بصدقهم وهى افعال يعجز البشر عن مثلها فسميت بذلک معجزة وليست من جنس مقدور العباد وانما تقع فی غير محل قدرتهم وللناس فی کيفة وقوعها ودلالتها على تصديق الانبياء خلاف فالمتكلمون بناء على القول بالفاعل المختار، قائلون بأنها واقعة بقدرة الله لابفعل النبى ﷺ وان كانت افعال العباد عند المعتزلة صادرة عنهم الا ان المعجزة لاتكون من جنس أفعالهم وليس للنبى ﷺ فيها عند سائر المتكلمين الا التحدّى بها باذن ا لله وهو أن يستدل بها النبى ﷺ قبل وقوعها على صدقه فی مدعاه فاذا وقعت تنزلت منزلة القول الصريح من الله بأنه صادق (مقدمه صـ٩٣) د انبياوو په علاماتو کې د خوارقو وقوع هم دي، چې ددوي په صداقت باندې شهادت ورکوي او خوارق داسې افعال دي چې انسان ترينه عاجز دی له دې وجې دېته معجزه وايي او خوارق دهغو افعالو څخه ندي په کومو چې د بنده قدرت وي، بلکې خوارق د بندګانو د محل د قدرت څخه بهر دي او پدې کې اختلاف دی چې معجزات څرنګه واقع کيږي؟ او د انبياوو په تصديق څرنګه دلالت کوي؟ متکلمين فرمايي چې چونکې فاعل مختار يو دی، لهذا دا معجزات د الله تعالى په قدرت واقع کيږي د نبي فعل نه دی، معتزله اګر چې د بنده افعال د بنده څخه صادر ګڼي، لکن د معجزاتو په باره کې معتزله هم وايي چې په معجزاتو کې د بنده د فعل دخل نشته، او ټول متکلمين په دې متفق دي چې په معجزه کې د نبي کريم ﷺ فعل صرف د الله تعالى په اذن تحدي ده، چې نبي کريم ﷺ د معجزې د وقوع څخه مخکې په همدې معجزې سره په خپل صدق باندې استدلال کوي او چې کله معجزه واقع شي نو ګويا د الله تعالى له طرفه صريحي قول صادر شو چې نبي کريم

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صادق دی او معجزه داسې شوه لکه صریحې قول. انتهی، علامه صاحب تصریح وکړه چې معجزه دهغو افعالو ځخه نده کوم چې دبنده د قدرت لاندې داخل دي، بلکې صرف د الله تعالی فعل دی.

(۹) حافظ کمال الدین ابن همام الحنفي لیکي چې: انها لما کانت مما یعجز عنه الخلق لم تکن الا فعلاً لله تعالی سبحانه (المسامره صـ ۸۹ ج ۲)

کله چې معجزه داسې شی دی چې ددې دصادرولو ځخه مخلوق عاجز دی نو معجزه صرف دالله تعالی فعل دی.

(۱۰) علامه کمال الدین محمد بن أبی شریف الشافعي رحمه الله فرمایي چې: ان المعجزة لیست الا فعلا لله تعالی (المسامرة ج ۲صـ ۸۹) بېشکه چې معجزه صرف د الله تعالی فعل دی.

(۱۱) علامه قاضي عضد الدین الحنفي رحمه الله دمعجزې شرایط بیان کړي دي فرمایلي يې دي چې: دمعجزې اوه شرطونه دي:

الاول: أن یکون فعل الله او مایقوم مقامه (المواقف صـ ٦٦٠)

اول شرط: چې معجزه به دالله تعالی فعل وي او یا به ددې قایم مقام وي (لکه ترک وغیره)

(۱۲) علامه جلال الدین الدوانی رحمه الله دمعجزې په بحث کې فرمایي چې: ولهاسبعة شروط الأول أن یکون فعل الله او ما یقوم مقامه من التروک (شرح العقائد، عضدیه صـ ۹۵)

دمعجزې لپاره اوه شرطونه دي اول شرط دادی چې: دا به دالله تعالی فعل وي او یا به دفعل قایم مقام وي دتروکو ځخه. انتهی

(۱۳) علامه نسفي رحمه الله او تفتازاني رحمه الله فرمایي چې: وأیدهم ای الانبیاء بالمعجزات الناقضات للعادات الخ (شرح العقائد ص ۸۹)

الله تعالی د پیغمبرانو تائید په معجزاتو کړی دی چې دعادت ځخه مخالف امور دي. انتهی د تائید نسبت الله تعالی ته شوی دی.

(۱۴) علامه تفتازاني رحمه الله په بل ځای کې فرمایي چې: واما کونه موجبا للعلم فللقطع بأن من اظهر الله تعالی المعجزة علی یده تصدیقا له فی دعوی الرسالة کان صادقاً الخ (شرح العقائدصـ

١٤) خبر رسول ځکه موجب دعلم دی چې پدې خبره یقین دی چې دچا په لاس چې الله تعالی معجزه ظاهره کړی وي لپاره دتصدیق دده په دعوه د رسالت کې نو ددې څخه ثابتیږي چې دا رشتینی دی.

(۱۵) علامه توریشتی رحمه الله فرمایلي دي چې: معجزات انبیاء علیه السلام وآن جزء خدا نتوان کرد (معتمد فی المعتقد، باب دوم، فصل اول.

همدا رنګه یې فرمایلي دي چې: قرآن معجز است ومعجز آن باشد که جزء خدای تعالی دیگری برآن قادر نباشد واگر قول جبرئیل بوذی معجز نبودی واگر قول پیغمبر بودی همچنین معجز نبودی(المعتمد فی المعتقد ، باب دوهم ، فصل ششم)

(۱۶) مولنا سید، خلیفه مجاز سید احمد شهید وشاګرد رشید شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمایي چې: اصدار معجزه وقبول ایمان بخواهش واختیار رسول نمی باشد تا او تعالی نخواهد واراده نفرماید وقوع نیابد، (بحواله فتاوی رشیدیه ج ۳صـ۲۷)

دمعجزې صادرول او دایمان قبلول د رسول صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خواهش او اختیار سره نه وي تر څو چې الله تعالی یې ونه غواړي او اراده یې ونه فرمایي نه واقع کیږي.

(۱۷)مولانا عبدالحی رحمه الله فرمایي چې: معجزه عبارت است از امر خارق عادت که بردست مدعی نبوت بمقابله منکرین نبوت صادر شود وکسی مثل او کردن نتواند(مجموعه فتاوی ج ۲صـ۱۸)

معجزه هغه خلاف العادت کار ته وایي چې په مقابله دمنکرینو د نبوت کې دمدعي دنبوت په لاس صادریږي او پداسې خلاف العادة کار باندې څوک قادر نه وي . انتهی

د دې ټولو عباراتو څخه ظاهره شوه چې معجزه نه د نبي خلق دی او نه یې کسب دی او نه د نبي په اختیار کې ده، بلکې کله یې چې الله تعالی وغواړي نو دنبي په لاس یې ظاهر وي.

سپوږمۍ ته اشاره د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اختیار کې وه ،لکن اشاره معجزه او دخوارقو څخه نده، بلکې د سپوږمۍ دوه ځایه کیدل دخوارقو څخه دي هغه دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اختیار کې نه وو، دسلیمان علیه السلام اُمتي دعا وکړه ، دعا دده اختیاري عمل وو ،لکن د ا معجزه نه وه ،معجزه د بلقیس د تخت را حاضرول دي ، هغه صرف د الله تعالی فعل وو.

(۱۸) قاضي عضد رَحِمَهُ اللهُ او سید سند رَحِمَهُ اللهُ په مواقف او شرح مواقف کې د معجزې په باره کې دمنکرینو شبه رانقلوي فرمايي چې: وغرضنا ههنا رد شبهة المنكرين للبعثة وهم طوايف الخ (شرح مواقف صـ ٦٧٠) او بيا يې دمنکرينو ډلې ذکر کړې دي، فرمايي چې: (الطايفة الخامسة من قال ظهور المعجزة لا يدل على الصدق فى دعوى النبوة لاحتمالاتٍ، الاول كونه من فعله لا من فعل الله الخ (صـ ٦٧٣)

معجزه د نبي کريم په صدق ځکه دلالت نه کوي چې پدې کې دا احتمال دی چې دادې د نبي فعل وي د الله تعالی فعل دې نه وي ،نو جواب يې دا ذکر کړی دی چې: انا بينا أن لا مؤثر فى الوجود الا الله فالمعجز لا يكون الا فعلاً له لا للمدعي (صـ ٦٧٥)

داشياؤ په وجود کې د الله تعالی څخه بغير بل مؤثر نه شته ، لهذا معجزه محض د الله تعالی فعل دی دمدعي د نبوت فعل نه دی.

(۱۹) ډېر ځلې د پيغمبر په وهم او گمان کې هم نوي چې زما په لاس کوم خارق صادريږي امام نووي رحمه الله فرمايي چې: وفى كثير من الاوقات يقع ذلك اتفاقاً من غير أن يستدعيه اويشعربه (شرح مسلم ج ۲ صـ ۲۲۱)

## معجزه چا دنبي فعل گڼلو؟

فلاسفه وو او منکرينو د معجزاتو به خوارق دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل عمل گڼلو.

۱-علامه عبد الرحمن بن خلدون رحمه الله ليکي چې: وأما الحكماء فالخارق عندهم من فعل النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ولو كان فى غير محل القدرة بناء على مذهبهم فى الايجاب الذاتي ووقوع الحوادث بعضها عن بعض متوقف على الاسباب والشروط الحادثة مستندةً اخيراً الى الواجب الفاعل بالذات لا بالاختيار وان النفس النبوية عندهم لها خواص ذاتية منها صدور هذه الخوارق بقدرته وطاقة العناصر له فى التكوين والنبى مجبول على التصريف فى الاكوان مهما توجه اليها واستجمع لها بما جعل الله له من ذلك والخارق عندهم يقع للنبي سواء كان للتحدى أم لم يكن وهو شاهد بصدقه من حيث دلالته على تصرف النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فى الاكوان الذى هو من خواص النفس النبوية لا بأنه يتنزل منزلة القول الصريح بالتصديق فلذلک لا تكون دلالتها عندهم قطعية كما هى عندالمتكلمين الخ (مقدمه صـ ۹٤)

د حکماوو او فلاسفه وو په نیز خوارق د نبي فعل وي اګر چې محل د قدرت هم نه وي او د فلاسفه وو دا قول د دوي د مذهب په یو قانون باندې مبني دی چې ایجاب ذاتي دی او همدارنګه په دې خبره مبني دی چې د حوادثو یو دبل څخه وقوع د دوي تر اسبابو او شروطو حادثه وو پورې موقوفه ده، هغه اسباب او شروط حادثه چې په اخر کې د واجب او فاعل بالذات طرفته مستند دي (قطعاً للتسلسل) او فلاسفه وایي چې ددې حوادثو وقوع او صدور د الله تعالی په اختیار کې نه دی، (ځکه چې هغوي دالله تعالی ذات علت موجبه ګڼي او تخلف المعلول عن العلت جایز نه دی) همدارنګه فلاسفه وایي چې دنبوي نفس لپاره ډیر ذاتي خواص دي مثلاً: یو دا چې ددې خوارقو صدور دنبي دقدرت څخه وي او عناصر په تکوین کې دنبي اطاعت کوي او دحکماوو په نیز نبي چې کله ددې عناصرو طرفته متوجه شي او اراده دتصرف پکې وکړي نو تصرف په کې کوي ، ځکه چې الله تعالی انبیاوو ته د تصرف اختیار ورکړی دی او خوارق دحکماوو په نیز د انبیاوو څخه واقع کیږي ، عام ددې څخه چې تحدي پرې راغلې وي او که نه ، او دا خوارق له دې وجې دنبي دصدق دلیل دی چې نبی دخپل نفس دخواصو د تأثیر څخه په دوي کې تصرف کوي، د دوي په نیز خوارق( د الله تعالی) د صریح قول قایم مقام نه دي ، له دې وجې حکماء وایي چې دخوارقو دلالت د نبي په نبوت قطعي نه دی په خلاف د متکلمینو چې د دوي په نیز دا دلالت قطعي دی، انتهی.

د اهل بدعتو او فلاسفه وو یو مسلک دی چې نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته په معجزاتو باندې عطائي قدرت ثابتوي، دواړه دلې وایي چې پیغمبران دخوارقو په صادرولو قادر دي باذن الله.

وجه يې داده چې فلاسفه یول حوادث د عقولو په واسطه واجب الوجوب ته منسوبوي او بیا الله تعالی ته فاعل بالذات وایي ،فاعل بالاختیار ورته نه وایي او دقران او سنت څخه ثابته عقیده داده چې الله فاعل بالاختیار دی (فعال لما یرید)

فانقیل: دحکماوو په دې قول کې د نبوت ذکر راغلو معلومیږي دا چې ددې څخه حکماء د اسلام مراد دي، نو دا هم د اهل الاسلام قول شو چې معجزات د انبیاوو په اختیار کې دي؟

قلنا: ددې څخه حکماء د اسلام نه دي مراد ، بلکې حکماء مراتده او حکماء فلاسفه مراد دي، ځکه چې ۱-دلته حکماء د متکلمینو په مقابله کې ذکر شوي دي او دمتکلمینو په مقابله کې حکماء د اسلام نه، بلکې حکماء د فلاسفه وو راځي ۲- دلته دحکماوو یو قول دا ذکر شو چې الله تعالی فاعل بالذات دی ، حالانکې

حكماء د اسلام، الله تعالى فاعل بالاختيار گڼي او پاتې شوه د نبوت مسئله، نو حكماء د فلاسفه وو اگر چې په اسلامي معنى سره نبوت او رسالت نه مني، لكن بيا هم نفس نبوت مني چې د دوي په نيز ورته يو څه خواص او اثار دي، په مطامح الانظار شرح مطالع الانور، لقاضي ناصر الدين البيضاوي صـ (۴۰۶) كې همدارنگه په شرح مواقف (۶۶۳) همدارنگه په تهافت الفلاسفه للغزالي صـ (۶۱) كې تصريح ده چې فلاسفه د نفس نبوت او رسالت قايل وو.

۳- مخكې د مواقف عبارت ذكر شو چې د منكرينو د معجزاتو دا خيال وو چې معجزه د نبي خپل فعل دی، **الطايفة الخامسة من قال ظهور المعجزة لايدل على الصدق في دعوى النبوة لاحتمالات، الاول كونه من فعله لامن فعل الله (شرح مواقف صـ ۶۷۳)**

## كرامت

كله چې معجزه صرف د الله فعل شو او د نبی لپاره پكی نه خلق شته او نه كسب او نه د نبی په اختيار كی ده نو كرامت هم صرف د الله تعالى فعل دی، د ولي لپاره پكی نه خلق شته او نه كسب او نه د ولي په اختيار كی دی

۱- سيد الطايفه الشيخ عبد القادر الجيلاني رَحِمَهُ ٱللَّهُ د سالک مقام بيان كړي دي فرمايلي يې دي چې:

كله چې د خپل ځان څخه فناشي نو پدی وخت كی: **فحنئذ يضاف اليه التكوين وخرق العادات فيرى ذلك منك في ظاهر العقل والحكم وهو فعل الله وارادته حقا في العلم الخ (فتوح الغيب ص ۷ مقاله ۲۶)**

پدی وخت كی ستا طرف ته د تكوين او د خوارقو نسبت كيږی او دا به د عقل د ظاهري فيصلی مطابق ستا څخه ليدل كيږی حالانكی په حقيقت كی او په اعتقادي طريقه په واقع كی دا د الله (جل جلاله) فعل او د الله په اراده وي چې ستا په لاس يې ظاهروي.

د دې په تشريح كې الشيخ المحدث عبد الحق الدهلوي رحمه الله فرمايي چې: پس چون فانی شد از خودی ونماند جز فعل وارادت درتونسبت كرده می شود بسوی تو پيدا كردن كاينات وپاره كردن عادات يعنی متصرف می گرداند ترا در عالم بخوارق وكرامات پس ديده می شود آن فعل وتصرف از تو در ظاهر عقل وحكم وی وليكن در باطن ونفس الامر فعل پروردگار است چه معجزه وكرامت فعل خدا است كه ظاهر می گردد بردست بنده بجهت تصديق وتكريم وی نه فعل بنده است كه صادر ميگردد بقصد واختيار او مثل ساير افعال چنانكه فرموده آند وحال آنكه آن خرق عادت فعل وتصرف خدا است الخ. (ترجمه فتوح الغيب صـ ۲۷، مقاله ۷)

نو کله چې ته د خپل ځان څخه فنا شي او په تا کې د فعل او د ارادې څخه بغير بل څه پاتې نه شي، نو بيا ستا طرف ته د کايناتو د تخليق او د خوارقو نسبت کيږي، يعنې تا په عالم کې په خوارقو او کراماتو متصرف ګرځوي، نو په ظاهري طريقه هغه فعل او تصرف ستا څخه صادريږي لکن په باطن او نفس الأمر کې هغه د الله تعالی فعل وي، ځکه چې معجزه او کرامت د الله تعالی فعل وي چې دبنده په لاس دده دتصديق او تکريم لپاره صادريږي، معجزه او کرامت د بنده فعل نه وي چې لکه دنورو افعالو اختياريه وو په شان د بنده په قصد او اختيار صادر شي، لکه څرنګه چې خپله شيخ عبد القادر رحمه الله فرمايي چې خرق عادت او تصرف د الله تعالی فعل وي چې دبنده په لاس صادريږي او د «التکوين» په شرحه کې يې ليکلي دي چې: (سپرده می شود بوی پيد کردن اشياء وتصرف در آکوان که عبارت از خرق عادت وکرامت است ) بيا مخکې ليکي چې: يعنی آن درحقيقت فعل حق آست که بر دست ولی ظهور يافته چنانچه معجزه بردست نبي (ترجمه فتوح الغيب صـ۲۰۷، مقاله ۴۶)

چې دوي ته د اشياء وو پيدا کول او په اکوانو کې تصرف سپارل شوی دی يعنې خوارق او کرامت چې د دوي په لاس ظاهريږي په حقيقت کې هغه د الله تعالی فعل وي چې د ولي په لاس صادريږي لکه: معجزه چې دنبي په لاس صادريږي، لکن د الله تعالی فعل وي، انتهی.

نو پدې عبارت کې اوله: فائده داده چې: کرامت د ولي فعل نه وي بلکه د الله تعالی فعل وي چې دولي په لاس صادريږي ۲-او دوهمه فايده: داده چې (د صوفيه وو په عباراتو کې چې دتکوين او دتصرف الفاظ استعماليږي نو دهغې معنی دا نوي چې دوي د الله تعالی په شان تکوين او تصرف کوي، بلکې دهغې معنی صرف خرق العادت او کرامت دی چې الله تعالی د دوي په لاس خوارق صادروي.

۳-دشاه عبد العزيز رحمه الله شاګرد مولانا حيدرعلي ټونکی رحمه الله فرمايي چې: **وما يزعم العوام أن الكرامت فعل الاولياء انفسهم باطل بل هو فعل الله تعالى يظهره على يد الولى تكريماً له وتعظيماً لشأنه وليس للولى ولا للنبى فى صدوره اختيار اذ لا اختيار لأحد فى افعال الله تعالى** (بحواله فتاوی رشيديه ج۳ صـ۲۵)

دعوامو دا ګمان چې کرامت دولي خپل فعل وي بالکل غلط دی، بلکې کرامت د الله تعالی فعل وي چې د ولي په لاس يې دده دتکريم او تعظيم لپاره ظاهروي او دولي پکې هيڅ اختيار نه وي، ځکه چې دالله تعالی په افعالو کې دهيچا اختيار نه شته.

۴- د سید احمد شهید رحمه الله خلیفه حضرت مولانا سخاوت علی صاحب جونپوري رحمه الله المتوفی (۱۲۷۴ هـق) څخه پوښتنه شوې ده چې: ایا کرامت د ولي په اختیار کې دی؟ هغه جواب ورکوي چې کرامت د ولي په اختیار کې نه دی، بلکې چې کله الله تعالی وغواړي نو د ولي د عزت د زیاتولو لپاره یې دده په لاس ظاهروي، (بحواله فتاوی رشیدیه ج ۳ صـ ۲۶)

۵- عجیبه لا دا چې د اهل بدعتو سرګروه احمد رضاخان لیکي چې عرض: کسے کی کرامت کسبی بھی ہوتی ہے؟ ارشاد: کرامت سب کے وہبی ہوتی ہے اور وہ جو کسب سے حاصل ہو یہاں متی کا تماشا ہے لوگوں کو دہوکہ دینا ہے (ملفوظات حصہ چہارم ص-۱۳)

د دې ټول تحقیق څخه معلومه شوه چې معجزه او کرامت صرف د الله تعالی فعل دی او صرف د الله تعالی په اختیار کې دی، نبي او ولي ته د ادنی ملابست له وجې منسوبیږي او هغه دا چې د دوي په لاس صادریږي.

## د اهل بدعتو د دلایلو تحقیق

اهل بدعت معجزه د نبي اختیاري عمل ګڼي او کرامت د ولي اختیاري عمل ګڼي او پخپل ګمان یو څو ضعیف استدلالت کوي

## د آصف رضی الله عنه کرامت

۱- د سلیمان علیه السلام د تخت دلیل:

سلمان علیه السلام د آصف څخه په مافوق الاسباب کې کومک غوښتی وو چې (أَيُّكُمْ يَأْتِينِي بِعَرْشِهَا) او اصف رحمه الله ورسره په مافوق الاسباب کې کومک کړی وو، دډیر لږې څخه یې ورته دسترګو په رپ کې تخت راحاضر کړو.

قلنا: ۱- دا دسلیمان علیه السلام معجزه وه اویا دأصف کرامت وو او دمعجزاتو او کراماتو څخه داستمداد لپاره استدلال نه صحیح کیږي.

۲- پدې واقعه کې د آصف څخه ماتحت الاسباب أمر صادر شوی وو چې دعا ده، نور ما فوق الاسباب کار چې د تخت راوړل دي الله تعالی کړی وو، په جلالین شریف کې فرمایي چې: دَعَا آصفُ بِالِاسْمِ الْأَعْظَمِ أَنْ يَأْتِيَ اللهُ بِهِ فَحَصَلَ بِأَنْ جَرٰى تَحْتَ الْأَرْضِ حَتّٰى نَبَعَ تَحْتَ كُرْسِيِّ سُلَيْمَانَ عليه السلام). جلالین صـ ۳۲۱)

حافظ ابن کثیر رحمه الله فرمايي چې، **قام فتوضأ ودعا الله قال مجاهد: قال يا ذا الجلال والاكرام وقال الزهري: قال يا الهنا واله كل شيء الهاً واحداً لا اله الا انت ائتني بعرشها.**

نو اصف رحمه الله صرف ماتحت الاسباب کار وکړو چې داسم اعظم لوستل، دلاسونو وچتول او دالله تعالی څخه دتخت درا وړلو غوښتل دي، نور مافوق الاسباب کار یعنې دتخت راوړل او دسلیمان علیه السلام مخې ته یې را حاضرول دالله تعالی فعل دی.

۳- کله چې الله تعالی تخت راحاضر کړو نو سلیمان علیه السلام وفرمایل چې: (هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّيْ) په فضل کې دهیچا د کسب دخل نه وي.

نو په (اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ) کې د راوړلو نسبت آصف ته مجازاً شوی دی، ځکه چې داسم اعظم په برکت یې دعا کړې وه او په (اَيُّكُمْ يَاْتِيْنِيْ بِعَرْشِهَا) کې هم غیر الله ته نسبت مجازاً شوی دی.

## دعیسی معجزات

۲- بریلویان دعیسی علیه السلام دمعجزاتو څخه استدلال کوي، الله تعالی فرمايي چې (وَاِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ بِاِذْنِيْ فَتَنْفُخُ فِيْهَا فَتَكُوْنُ طَيْرًا بِاِذْنِيْ)

بریلویان لیکي چې: حالانکی مٹی سے مختلف شکلیں تو چوٹی چوٹی بچی بھی اپنے قصد واختیار سے بنالیتے ہیں کوئے بات سوچ کرنیے چاہے (نور ہدایت ص-٦٠)

وړې وړې مرغۍ خو ماشومان هم په خپل قصد او اختیار سره جوړوي، نو د عیسی علیه السلام خصوصیت دادی چې عیسی علیه السلام په خپل اختیار سره پکې روح اچولو او ماشومان پکې روح نه شي اچولی.

قلنا: دلته دوه فعله دي یو د ختو څخه دمرغیو شکل جوړول او په هغې کې پوکول، دا دعیسی علیه السلام فعل دی، لکن دا معجزه نده ځکه چې تاسو پخپله وویل چې دختو څخه د مرغیو شکل خو ماشومان هم جوړولی شي او په هغې کې پوکولی هم شي، او دوهم په مرغۍ کې روح اچول او دهغې څخه ژوندۍ مرغې جوړول دي، دا دالله تعالی فعل دی او همدا معجزه ده، الله تعالی اول فعل عیسی علیه السلام ته منسوب کړی دی، تخلق، تنفخ او دوهم فعل یې ورته ندی منسوب کړی، (فَتَكُوْنُ طَيْرًا بِاِذْنِيْ) نو مرغۍ به صرف د الله تعالی په حکم ژوندۍ کیدله او دبریلویانو دا اعتراض چې دمرغیو شکلونه خو ماشومان هم جوړولی شي، نو بیا دعیسی خصوصیت څه شي دی؟

نو دا د دوي ناپوهي ده، ځکه چې ماشومان د مرغيو شکلونه جوړوي او په هغې کې پوکی کوي، لکن بيا هم پکې الله تعالى روح نه اچوي او عيسى عليه السلام به چې د مرغۍ شکل جوړ کړو او په هغې کې به يې پوکی وکړو نو الله تعالى به پکې روح واچولو او ژوندۍ مرغۍ به شوه.

د نورو خلکو جوړې مرغۍ الله تعالى نه ژوندۍ کولې او دعيسى عليه السلام جوړه مرغۍ الله تعالى ژوندۍ کوله بس دغه فرق دی.

۲- الله تعالى چې کوم خوارق عيسى عليه السلام ته منسوب کړي دي نو دهغوي سره د (بِإِذْنِي) کلمه ذکر کوي، الله تعالى همدې خبرې ته اشاره کوي چې دا معجزه اګر چې ظاهرا دعيسى عليه السلام څخه صادره شوي ده، لکن په حقيقت کې دا دالله تعالى فعل دی، دعيسى عليه السلام دکسب او اختيار لپاره پکې هيڅ دخل نشته.

۴- دعيسى عليه السلام دحوارينو همدا عقيده وه چې معجزات صرف دالله تعالى په اختيار او قدرت کې دي، لهذا عيسى عليه السلام ته يې ويلي وو، چې (هَلْ يَسْتَطِيعُ رَبُّكَ أَنْ يُنَزِّلَ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ)

عيسى عليه السلام هم ورته ونه ويل چې دا خو زما په قدرت او اختيار کې دي، بلکې يو بل قادر او مختار ذات ته يې لاسونه اوچت کړل او وې فرمايل چې: (اللَّهُمَّ رَبَّنَآ أَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ)

## دعلماوو د اقوالو څخه استدلالات

**دشرح مواقف عبارت:** ۱-دشرح مواقف د عبارت څخه معلوميږي چې معجزه د نبي فعل دی او دنبي په اختيار کې ده، دعبارت معنی داسې ده چې:

اويو قوم په معجزه کې دا شرط لګولی دی چې معجزه به په داسې امر کې نه وي کوم چې (عادةً) د نبي دقدرت ماتحت وي، ځکه چې که دنبي دقدرت لاندې داخل شي لکه په هوا کې الوتل او په اوبو ګرځيدل نو دا به د الله تعالى له طرفه د تصديق قايم مقام نه شي.

مګر دا شرط هيڅ حقيقت نلري ځکه چې دنبي قادريدل په داسې حال کې چې نور خلک ورباندې عادةً قادر نه وي دا هم معجزه ده.

علامه أمدي رحمه الله فرمايي چې: ايا دا متصوره ده چې معجزه دنبي دمقدوراتو څخه شي؟

نود أيمه وو پدې كې اختلاف دى بعضې فرمايي چې په مذكور مثال كې نفس حركت (په هواكې الوتل) معجز نه ده، ځكه چې دا دالله تعالى دخلق په وجه د نبي په قدرت كې داخل دي، بلكې معجزه پدې حركت باندې دنفس قدرت نوم دى او قدرت د نبي دطاقت څخه بهر دى، او نور امامان فرمايي چې: محض حركت معجزه ده ځكه چې همدا حركت خارق العادة دى او الله تعالى پيدا كړى دى او اګر چې دا مقدور دنبي هم دى او دا قول زيات صحيح دى ، انتهى (شرح مواقف صـ۶۶۶)

قلنا: ۱- د شرح مواقف د عبارت معنى داده چې يوقوم په معجزه كې دا شرط لګولى دى چې په معجزه به دنبي قدرت نه وي ، ځكه چې كه معجزه د نبي مقدوره شي نو دا به د الله تعالى له طرفه عملي تصديق نشي،كوم چې دقولي تصديق قايم مقام دى ، ځكه چې پدې كې دا شبه راځي چې دا خو د نبي مقدور فعل دى نو دا به څرنګه معجزه شي؟ ، مثلاً كه په هواكې الوتل د نبي مقدور فعل شي نو دا به معجزه نه شي ځكه چې بيا پدې كې عملي او فعلي تصديق نه راځي چې بالاخره دقولي تصديق قايم مقام شي ، ځكه چې د نبي مقدور فعل به څرنګه دالله تعالى له طرفه تصديق شي؟ نو بعضې علماوو پدې شرط رد كړى دى او فرمايلي دي چې په مذكور مثال كې معجزه په هواء كې الوتل نه دي كوم چې بخلق الله دنبي مقدور دى، بلكې معجزه په مذكور مثال كې نفس قدرت دى او نفس قدرت مقدور د نبي نه دى او نور امامان فرمايي چې: ان نفس هذه الحركة معجزة من جهة كونها خارقا للعادة ومخلوقة لله تعالى وان كانت مقدورة لنبى الله تعالى وهو الاصح صـ(٦٦٦)

دا نفس حركت معجزه ده ځكه چې همدا خلاف العادة فعل دى او دالله تعالى پيدا كړى شوى شى دى اګر كه دا مقدور دنبي هم وي (مګر د معجزې په صورت كې به پكې دنبي د قصد او اختيار دخل نه وي) او دا خبره صحيح ده.

خلاصه دا چې دلته دوه خبرې دي: اول دا چې معجزه مقدوره د نبي شي، دوهم ا چې په مقدوراتو دنبي كې غير مقدوره معجزه متحققه شي وبينهما بون بعيد، په شرح مواقف كې دوهمه خبره بيانيږي او نزاع په اوله خبره كې ده.

۲- كه دشرح مواقف د عبارت دغه معنى نه شي كومه چې مونږ بيان كړه نو بيا به دشرح مواقف په عباراتو كې تعارض راشي، مخكې مونږ دشرح مواقف صريح عبارات رانقل كړي دي چې معجزه د نبي د

قدرت، کسب او اختيار لاندې نده، لهذا ددې عبارت يا هغه معنى ده چې کومه مونږ ذکر کړه او يا پکې بل تاويل پکار دى.

## دفتح الباري عبارت

اهل بدعت دصحيح البخاري ج۱ص ۵۰۴، حاشيه نمبر ۴) باب علامات النبوة، يوه حاشيه رانقلوي چې: وَالْفَرْقُ بَيْنَهُمَا أَنَّ الْمُعْجِزَةَ أَخَصُّ لِأَنَّهُ يُشْتَرَطُ فِيهَا أَن يتحدى النَّبِي مَنْ يُكَذِّبُهُ بِأَنْ يَقُولَ إِنْ فَعَلْتُ كَذٰلِكَ أَتُصَدِّقُ بِأَنِّي صَادِقٌ أَوْيَقُولُ مَنْ يَتَحَدَّاهُ لَا أُصَدِّقُكَ حَتّٰى تَفْعَلَ كَذَا وَيُشْتَرَطُ أَنْ يَكُونَ الْمُتَحَدّٰى بِهِ مِمَّا يَعْجِزُ عَنْهُ الْبَشَرُ فِي الْعَادَةِ الْمُسْتَمِرَّةِ).

قلنا: ۱-اهل بدعت دېته دمعجزې تعريف وايي وګوره، نورهدايت ص(۳۷) حالانکې دا د معجزې تعريف ندى، بلکې حافظ ابن حجر رحمه الله د تحدّى صورت بيانوي اهل بدعت د معجزې دتعريف او د تحدى دتصوير په مابين کې فرق نشي کولى.

۲- په همدې حاشيه کې دمعجزې تعريف شته چې: وَسُمِّيَت المعجزة لِعَجْزِ مَنْ يَقَعُ عِنْدَهُمْ ذٰلِكَ عَنْ مُعَارَضَتِهَا وَالْهَاءُ فِيهَا لِلْمُبَالَغَةِ أَوْهِيَ صِفَةُ مَحْذُوفٍ وَأَشْهَرُ مُعْجِزَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْآنُ)

نو حافظ ابن حجر رحمه الله د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مشهورو معجزاتو کې قرآن ذکر کړو او په قران کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم قدرت، کسب او اختيار لره هيڅ دخل نشته.

۳-الشيخ المحدث عبدالحق الدهلوي رحمه الله فرمايي چې: پس ديده ميشود آن فعل وتصرف ازتو در ظاهر عقل وحكم وى، وليكن در باطن ونفس الأمر فعل پروردگار است تعالى، چه معجزه وكرامت فعل خداست كه ظاهر ميگردد بردست بنده، بجهت تصديق وتكريم وى نه فعل بنده است كه صادر ميگردد بقصد واختيار او مثل سائر افعال (ترجمه فتوح الغيب صـ ۲۷، مقاله نمبر ٦)

## د امام رازي رحمه الله عبارت

اهل بدعت وايي چې امام رازي رحمه الله په المباحث المشرقيه ج ۲ص ۵۲۳، کې فرمايي چې دنبي دريمه خاصه داده چې دده ذات ددې عالم په ماده کې متصرف وي، نو عصا په مار بدلوي، او به په وينه بدلوي، ړوند او کوڼ ته شفاء ورکوي، همداسې نور معجزات، يعنې د الله تعالى نبي ته دا قدرت حاصل دى چې هغه بې روحه لرګى په مار او اوبه په وينه بدلې کړي او همداسې تصرفات دوي ته حاصل وي (نورهدايت ص ۳۵)

قلنا: اهل بدعتو ته پکار دي چې د امام رازي رحمه الله المباحث المشرقيه ديو کامل ديوبندي استاذ څخه ولولي ترڅو چې ورته معلومه شي چې امام رازي رحمه الله د چا مسلک رانقل کړی دی، او بيا يې په کوم انداز سره دهغې ترديد کړی دی په اصل کې امام رازي رحمه الله د نبوت په باره کې د فلاسفه وو غلط نظريات يو يو رانقلوي او بيا ورته جوابات ورکوي، د متکلمينو هيڅکله دا مسلک ندی چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم ذات ددې عالم په ماده کې متصرف دی، مخکې مونږ ددې عنوان لاندې چې (معجزه چا دنبي فعل ګڼول؟) د نبوت په باره کې د فلاسفه وو عقديه دمقدمې د ابن خلدون په حواله رانقل کړې وه، په مواقف او شرح مواقف کې د صـ (۶۶۳) څخه تر (۶۶۵) پورې يې دحکماوو دا غلط نظريات رانقل کړي دي او تفصيلي جوابات يې ورکړي دي په هغې کې يې د فلاسفه وو يو دا عقيده رانقل کړې ده چې دنبي څخه خوارق صادريږي ځکه چې دعالم عناصر ماده د دوي مطيعه او منقاده وي (وګوره شرح مواقف صـ ۶۶۴)

## د مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله عبارت

اهل بدعت د مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله پورې يو بهتان وايي چې مولنا قاسم نانوتوي رحمه الله په تحذير الناس صـ ۷ کې فرمايي چې: معجزات او کرامات د انبياوو او اولياوو په قصد او اختيار سره هم صادريږي (نور هدايت صـ ۳۷، ۳۸)

قلنا: د مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله پوره عبارت دا دی: *اور یہ وجہ ہوئی کہ معجزہ خاص جو ہر نبی کو مثل پروانہ تقرری بطور سند نبوت ملتا ہے اور بنظر ضرورت ہر وقت قبضہ میں رہتا ہے، مثل عنایات خاصہ گاہ و بیگاہ کا قبضہ نہیں ہوتا ہماری حضرت صلی اللہ علیہ وسلم کو قران ملا جو تبیانا لکل شیء ہے تا کہ معلوم ہو کہ آپ اس فن میں یکتا ہیں کیوں کہ ہر شخص کا اعجاز اسے فن میں متصور ہے اور اس کے شریک نہ ہوں اور وہ اس میں یکتا ہو الخ (تحذیر الناس ص ۔ ۷)*

پدې کې مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله تصريح کړې ده چې معجزه: *مثل پروانہ تقرری کے نبی کو بطور سند نبوت ملتا ہے* يعنې معجزه د نبوت د سند په طريقه نبي ته ورکول کيږي او سند هغه معتبر وي چې د معطي له طرفه وي، کوم سند چې څوک په خپل کسب او اختيار سره تيار کړي هغه معتبر نه وي او بيا فرمايي چې د نبي هميشنۍ معجزه قران دی، چې هميشه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم سره دی او په قران کې دنبي کسب قدرت او اختيار لره هيڅ دخل نشته قران د نبي کريم صلی الله عليه وسلم سره هميشنۍ معجزه ده داسې نه ده لکه نور عنايات خاصه چې ګاه وبيګاه يعنې چې وقتاً فوقتاً د نبي په لاس صادريږي.

الحمدلله وحده والصلوٰة والسلام علی من لا نبی بعده.

اما بعد!

نبي کریم ﷺ بشر دی نور نه دی، نور په دوو معناگانو سره راځي، یودا چې (کیفیة ظاهرة بنفسها مظهرة لغیرها) او بله دا چې دعناصرو دکیفیاتو څخه دبیلتون په صورت کې دهوا په شان غیر مرئي شی، نو دنبي کریم ﷺ په صفاتو کې نور په اولی معنی سره راغلی دی لکن ذات یې بشر دی.

**دبریلویانو عقیده:** مولوي عمر اچهروي لیکلي دي چې دنبي کریم ﷺ په اشاره باندې دسپوږمۍ دوه ټوټې کیدل دنبي کریم ﷺ دبشریت سره منافي دي (مقیاس نور ص ۶۱)

په بل ځای کې یې لیکي دي چې: وهابیان نبي کریم ﷺ ته بشر وایي او حنفیان ورته بې مثله نور وایي، فکر وکړئ چې نبی کریم ﷺ څه شی دی؟ مقیاس حنفیت ص ۲۳۵)

دعیسویانو دا عقیده ده چې عیسی علیه السلام دالله تعالی ځوی دی او دالله تعالی ذات نور دی کله چې انگریزان هندوستان ته راغلل او په مسلمانانو کې ورته ددې عقیدې چلول سخت ښکاره شول، نو دخپلې دغې خودساخته ډلې په غوږ کې یې دا خبره پوکړه چې تاسو هم دمحمد ﷺ په باره کې دعیسویانو په شان خبره مشهوره کړئ، ددې لپاره چې دعیسویت گولۍ په اسانه باندې دمسلمانانو په ستوني کې تیره شي او دعیسویانو دعقیدې اجنبیت ختم شي، نو بریلویانو ولیکل چې: دوحدتِ دنور ټوټه زمونږ نبي کریم ﷺ دی (حدایق بخشش ص (۶۲)

په بل ځای کې لیکي چې: په معراج کې دنبي کریم ﷺ نوري جسم په نور کې مدغم شو (سخن رضا ص ۲۸۳)

انگریزانو به ورته روزانه دیو مجلس دمنعقدولو لپاره یوولس روپۍ ورکولې، پدې مجلس کې به دوي دشاه محمد اسحاق رحمه الله او دشاه اسماعیل شهید رحمه الله په خلاف باندې فضاء هواروله او دا تقریرونه به یې کول چې الله تعالی نور دی او دالله دنور څخه دنبي کریم ﷺ نور پیدا شو، نو نبی کریم ﷺ ذاتاً نوردی او دالله تعالی دنور یوه حصه ده، وروسته د رسول الله ﷺ دممکن الوجود والي او دمخلوق والي څخه هم منکر شول دبریلویانو په یو شعر کې د رسول الله ﷺ دممکن والي او دمخلوق والي اسلامي عقیده داسې تحت التراب شوې ده.

*ممکن میں یہ قدرت کہاں؟ واجب میں عبدیت کہاں؟*
*حیران ہوں یہ بھی ہے خطا: یہ بھی نہیں وہ بھی نہیں.*

(حدائق بخشش حصه اول صـ۴۹)

يعنې نبي كريم ﷺ ددومره قدرتونو دمالكيت سره څرنګه ممكن كيدلى شي؟ بل طرفته مونځ او نور عباداتونه كوي نو ددې عبادت سره څرنګه واجب كيدلى شي ؟زه حيران يم حق دادى چې دا دواړه خبرې غلطې دي، دا هم نه ده صحيح چې نبي كريم ﷺ ممكن او مخلوق شي او دا هم نه ده صحيح چې نبي كريم ﷺ واجب او خداى شي ، په يو بل ځاى كې يې ليكلي دي چې: (معدن اسرار علام الغيوب : برزخ بحرين امكان و وجوب) (حدائق بخشش حصه دوم صـ۸۹)

احمد رضاخان په يو ځاى كې صراحةً دنبي كريم ﷺ دممكن الوجود والي څخه انكار كړى دى اوليكـي چـې: كمان امكان كے جهوٹے نقطو تم اول اخر كے پهير مى هو محيط كے چال سے تو پوچه كد هر كى اے كد هر گے تهى. (حدائق بخشش حصه دوم ص- 114)

احمد رضاخان نبى كريم ﷺ ته ذاتاً نور وايي او بشريت ته يوه ظاهري پرده وايي د (قـل انـمـا أنـا بشر مثلـكـم) په تشريح كې ليكلي دي چې، تم فرماؤ ظاهرى صورت بشرى ميں تو ميں تم جيسا هوں (كنز الايمان ص- ۴۸۶)

ته ورته ووايه چې په ظاهري بشري صورت كې زه ستا سو په شان يم، مفتي احمد يار نعيمي ليكلي دي چې (ان كو بشر ماننا ايمان نهيں ) تفسير نعيمى ج ا صـ۱۰۰) نبي كريم ﷺ تـه بشـر ويـل ايمـان نـه دى.

خواجه قمر الدين سيالوي ليكلي دي چې: جوذات سب كى پهلى بشرى پهلى موجود هو اس مقدس و مطهر هستى كو بشر كهنا يا ماننا كس طرح صحيح هى (انوار قمرى ج ۵ ص- ۹۴)

نبى كريم ﷺ دابو البشر څخه مخكې موجود وو نو څرنګه بشر شو؟

فانقيل: چې بعضې ديوبندي علماوو خو ليكلي دي چې بريلويان دنبى كريم ﷺ بشريت مني

قلنا: بريلويان دمنافقانو په شان كله كله داهل حقو په مخ كې وايي چې مونږ بشريت منو، لكن كله چې بيا دخپلو شياطينو سره يو ځاى شي نو بيا انكار كوي.

## دأهل سنت والجماعت عقيده

دأهل سنت والجماعت په نيز (نور) دالله تعالى په صفاتو کې صفت الفعل دى او درسول الله ﷺ په صفاتو کې هم نور راغلى دى نو نبي کريم ﷺ دهدايت نور دى (ان الرسول لنور يستضاء به)

پاتې شوه دالله تعالى ذات اودمحمد ﷺ ذات نو مونږ وايو چې دالله تعالى دذات او دکنهې ادراک نه کيږي، دالله تعالى ذات زمونږ دادراک څخه بهر دى مونږ ته صرف دالله صفات معلوم دي، (ماعرفناک حق معرفتک وما عبدناک حق عبادتک ) او نبي کريم ﷺ ذاتا بشر او انسان دى ممکن الوجود او مخلوق دى.

حضرت امام رباني مجدد الف ثاني رحمه الله ليکي چې: اى برادر! محمد الرسول الله ﷺ بأن علو شان بشر بود، وبداغ حدوث وامکان متسم بشر از خالق بشر چه دريابد وممکن از واجب چه فراگيرد وحادث قديم راجلت عظمته چه طور احاطه نمايد > (مکتوبات دفتر اول نمبر ۱۷۳.ص(۱۷۷)

په يو بل ځای کې يې ليکلي دي چې: انبياء عليهم الصلوة والتسليمات باعامه درنفس انسانيت برابر آند و درحقيقت وذات همه متحد تفاضل باعتبار صفات کامله آمده است (مکتوبات دفتر اول نمبر ٦٦٦، صـ۳۲۹)

علامه ابو البرکات نعمان خير الدين الأفندي الألوسي رحمه الله دبغداد په لويو علماوو کې وو، دعيسويانو دمشهور اسقف عبد المسيح سره يې سخته مقابله کړې ده، دعبد المسيح دفريبونو په جواب کې يې په دوو جلدونو باندې مشتمل يو غټ کتاب وليکلو په نوم د (الجواب الفسيح ) ددې کتاب په ج ۲ صـ ۲۱۸) کې ليکي چې: **فنبينا عليه الصلوة والسلام عبد الله ورسوله وبشر، تحله العوارض كما قال سبحانه قل انما أنا بشر مثلكم**

يعني دعيسويانو دا عقيده ده چې عيسى عليه السلام صرف په اعتبار دظاهري صورت سره بشر دى، ددوي په خلاف دمسلمانانو دا عقيده ده چې: زمونږ پيغمبر ﷺ دالله بنده او رسول دى، بشر دى، په نبي کريم ﷺ دبندګۍ عوارض (مريضي او نور ضروريات) راځي، لکه الله تعالى چې فرمايي چې: ته دوي ته ووايه چې بيشکه زه ستاسو په شان بشر يم.

## دبريلويانو وهمي دلايل

(۱)رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به دعالم الملكوت انكشاف كيدلو او دعالم الملكوت كشف بشري بدن ته نه كيږي بلكې دا كشف لطافت غواړي.

جواب: رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته به دعالم الملكوت انكشاف كيدلو، لكن دا به په موقت طور باندې يو كيفيت وو چې بدن ته به عارضيدلو، وروسته به أصل صفات دبدن را واپس كيدل، لكه جبرئيل عليه السلام ته به چې په وقتي طور باندې بشريت عارضيدلو پدې سره به دجبريل ملكوتيت نه ختميدلو.

شيخ الاسلام علامه شبير احمد العثماني رحمه الله فرمايي چې: هى حالة يؤخذفيها عن حال الدنيا من غير موت فهو مقام برزخي يحصل له عند تلقى الوحى (فتح الملهم ج ۱صـ ۳۱۰)

هغه داسې حالت وو چې دمرګ څخه بغير پكې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددنيا څخه او چتولى شو پس هغه برزخي حالت دى چې دوحې په وخت كې ورته حاصليدلو.

(۲) محدث الحرم ملا على القاري رحمه الله د (واجعلنى نورا) په تشريح كې ليكلي دي چې: واذا انتقفت المؤمنون عن الكدورات البشرية فى دار الثواب فيرونه بلا حجاب كما أن النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رأه فى الدنيا، لانقلابه نوراً كما قال فى الدعاء اللّٰهُمَّ اجعل فى قلبي نورا وفى بصرى نورا الى قوله واجعلنى نورا (مرقات ج ۱صـ ۱٦٤)

كله چې مؤمنان په دار الثواب (اخرت) كې دبشريت دخيرو څخه جدا شي، نو بيا به الله تعالى ته بې حجابه ګوري لكه په دنيا كې چې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الله تعالى بې حجابه ليدلى وو، نو دا لدې وجې څخه وو چې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په نور باندې بدل شوى وو لكه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې فرمايي چې يا الله تعالى زما په زړه كې نور پيدا كړه او زما په سترګو كې نور پيدا كړه تر دې چې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې ما نور كړه.

جواب: ددې څخه هم همدا تمثيل مراد دى، چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دا نكشاف تام په وخت كې عارض شوى وو، پدې وخت كې نبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دبشريت دټولو تقاضاوو څخه مجرد شوى وو او په موقته طريقه باندې دبشريت دتقاضا ګانو څخه غايبيدل نفى دحقيقت البشرية نه راولي، لكه جبريل عليه السلام څو څو ځله دبشر په تمثل كې راغلى دى لكن بيا هم دملكوتيت دحقيقت څخه نه

وو وتلی، نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یوه ورځ په دغه خاص حالت کې ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ونه پیژندلو او پوښتنه یې ترینه وکړه چې ته ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یې؟

شیخ الاسلام علامه شبیر احمد العثماني رحمه الله لیکلي دي چې : قال علی القاري رحمه الله الاستفهام اما علی حقیقته لانه علیه السلام کان غایباً عن بشریته بسبب ایحاء هذه البشارة فلم یشعر فی أول الوهلة کأنه هو واما للتقریر وهو ظاهر واما للتعجب لاستغرابه أنه من این دخل علیه والطرق مسدودة (فتح الملهم ج ١صـ ٢٠٤)

یعنې دابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وکړه چې ته ابو هریره یې؟ نو دا یا په حقیقت باندې بناء ده، ځکه چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د وحې ددې زیرې په وجه دبشریت څخه وتلی وو، نو په اول وخت کې پوه نه شو چې دا ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی او یا داپوښتنه دتقریر لپاره ده وهو ظاهر او یا دتعجب لپاره ده چې څرنګه ابو هریرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دی بند ځای ته راغلو؟.

خلاصه دا چې ددې دعا په اخر کې چې راغلي دي چې یا الله تعالی زما څخه نور جوړ کړې نو ددې څخه دبشریت څخه مکمل وتل نه دی مراد ، همدارنګه محدثین فرمایي چې ددې څخه دهدایت نور مراد دی، د ذات نور نه دی مراد امام نووي رحمه الله فرمایي چې: قَالَ الْعُلَمَاءُ سَأَلَ النُّورَ فِي أَعْضَائِهِ وَجِهَاتِهِ وَالْمُرَادُ بِهِ بَيَانُ الْحَقِّ وَضِيَاؤُهُ وَالْهِدَايَةُ إِلَيْهِ فَسَأَلَ النُّورَ فِي جَمِيعِ أَعْضَائِهِ وَجِسْمِهِ وَتَصَرُّفَاتِهِ وَتَقَلُّبَاتِهِ وَحَالَاتِهِ وَجُمْلَتِهِ فِي جِهَاتِهِ السِّتِّ.(شرح صحیح المسلم:ج١ صـ ٢٦٠)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایلي دي چې: وکل هذا الأمور راجعة الی الهدایة والبیان وضیاء الحق (فتح الباري ج ٦صـ ٤٣٠) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي ده چې نورې هدای (ابن کثیر ج ٣صـ٢٨٩)

خلاصه دا چې په هندوستان باندې دانګریزانو ددورې څخه مخکې هیڅ داسې معتمد عالم نه دی تیر شوی چې هغه ددې څخه ذاتي نور مراد کړی وي (فیض احمد أویسي بریلوي لیکلي دي چې دنور څخه دهدایت دنور مراد ول ګمراهي ده) احسن البیان حصه دوم صـ ٢٦)

لطیفه: نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې مطالبه دنور کوي نو معلومیږي چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذاتاً نور نه دی.

(۳) رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: أول ما خلق الله نوري، نو معلوميږي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذاتا په خلقت كې نور دى په صفت او اكتساب كې نه دى.

جواب: كه دا روايت ثابت شي نو بيا د نور څخه روح مراد دى او روح خصوصاً دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روح يو نوراني شى دى، نو په هغه وخت كې د روح نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پيدا كول د نور پيدا كول وو.

محدث الحرم ملا على القاري رحمه الله فرمايلي دي چې: ومنه قوله أول ما خلق الله نوري وفى رواية روحى، ومعناهما واحد، فان الأرواح نورانية اى أول ما خلق الله من الأرواح روحى (مرقات ج ۱ صـ ۱٦٧) جديد.

(۴) په زمكه باندې به دنبى كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سورى نه وو چې دا د ذاتي نور دليل دى، علامه سيوطي رحمه الله يو مرسل روايت ذكر كړى دى چې: عَن ذَكْوَان ان رَسُول الله صلى الله عَلَيْهِ وَسلم لم يكن يرى لَهُ ظل فِي شمس وَلَا قمر، قَالَ ابْن سبع من خَصَائِصه ان ظله كَانَ لَا يَقع على الأَرْض وَأَنه كَانَ نورا فَكَانَ إِذا مَشى فِي الشَّمْس أَو الْقَمَر لَا ينظر لَهُ، خصايص الكبرى ج ۱ صـ ۶۸) باب الأية فى أنه لم يرى له ظل.

جواب: دكومو مسلمانانو چې دا عقيده ده چې دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سورى نه وو نو هغوي دا شان دنبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معجزه او خوارق ګڼي او دا به دخوراقو څخه په دې صورت كې وي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذاتاً نور نه شي.

علاوه لا دا چې دا روايت نه دى ثابت، (۱) د دې روايت اولنى راوي عبد الرحمن بن قيس زعفراني رَحِمَهُ اللهُ دى، ابن مهدى رَحِمَهُ اللهُ او ابو زرعه رَحِمَهُ اللهُ ورته كاذب ويلي دي امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې ذهب حديثه، امام احمد رَحِمَهُ اللهُ فرمايي لم يكن بشيء امام نسائي رَحِمَهُ اللهُ ورته متروك الحديث ويلي دي، صالح بن محمد رَحِمَهُ اللهُ ورته وضاع ويلي دي، (ميزان الاعتدال ج ۲ صـ ۵۸۳) تهذيب التهذيب ج ۶ صـ ۲۳۱)

دوهم راوي عبد الملك بن عبد الله بن الوليد هم مجهول الحال دى.

(۲) په دومره عامه واقعه كې پكار دى چې راويان صحابه كرام په زرګونو وى، لكن د حديثو په ذخيره چې نظر واچول شي نو په دې باره كې صرف يو مرسل روايت او هغه هم انتها يې ضعيفه تر سترګو كيږي چې دا د دې روايت دعدم ثبوت يوه قوي قرينه ده.

## د رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دبشريت دلايل

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ إِنِّي خَالِقٌۢ بَشَرًا مِّنْ صَلْصَالٍ مِّنْ حَمَإٍ مَّسْنُونٍ فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِي فَقَعُوا لَهُ سٰجِدِينَ (پاره ۱۴، حجرات / ۲۸)

الله تعالى ملايکې د نور څخه پيدا کړي دي، پيريان يې دبل نوراني شی يعنې د اور څخه پيدا کړي دي او آدم عليه السلام يې دختې څخه پيدا کړو، الله تعالى دختې څخه جوړ شوي بشر ته په نوراني ملائکو او پيريانو باندې ترجيح ورکړه، نوراني بشر ته يې په سجده باندې مأمور کړل، ټولو دا فضيلت ومنلو، يواځې ابليس لعين دبشر دفضيلت څخه منکر شو، نو معلوميږي چې بشريت ته دحقارت په نظر باندې کتل دشيطان نظريه وه، چې په همدې شيطاني نظريه کې دنن سبا بدعتيان ګرفتار دي، بشر او انسان دواړه يوه معنى لري، الله تعالى بي بي مريمې رضى الله عنها ته حکم کړی وو چې (فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ أَحَدًا الخ) دلته ذکر دبشر دی چې انسان ترينه مراد دی او الله تعالى دانسان په باره کې فرمايي چې: (لقد خلقنا الانسان فى أحسن تقويم) بريلويان دنبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د احسنيت څخه انکار کوي او بله نوعه ترينه جوړوي.

۲- قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ (کهف / ۱۱۰)

دا ايت کريمه دنبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بشريت کې صريح نص دی، دکافرانو دا عقيده وه چې بشر حقير وي، نو څرنګه رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شو؟ الله تعالى په دې ايت کې دنبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشريت او رسالت دواړه ذکر کړه او دايي ښکاره کړه چې دنبوت او دبشريت په مابين کې هيڅ منافات نشته، کافرانو دنبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشريت منلو لکن رسالت يې نه منلو، بريلويان دنبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رسالت منی لکن بشريت يې نه مني او ددې صريح ايت مطابق أهل سنت والجماعت دنبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشريت او رسالت دواړه مني.

۳- مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُؤْتِيَهُ اللّٰهُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا عِبَادًا لِّي مِن دُونِ اللّٰهِ (ال عمران/۷۹)

ددې ايت څخه معلومه شوه چې دنبوت او دکتاب مورد هميشه انسان وي.

۴- وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُكَلِّمَهُ اللّٰهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِن وَرَآئِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُولًا فَيُوحِيَ بِإِذْنِهِ مَا يَشَاءُ (الشورى /۵۱)

بعضې بريلويـان وايي چې نبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تو اضعاً ځانتـه بشـر ويلي دي، لکن دا خبره غلطه ده ځکه چې په تواضع کې د روغ ويل نه دي جايز ، بلکې تواضع پـه قدر مشترک کې راځي، مثلاً دمدرسې مهتمم او يا صدر مدرس دمدرسې ملازم ته ووايي چې زه هم دمدرسې خادم يم، نو دا تواضع ده لکن کـه مهـتمم داسې ووايي چې زه مهـتمم نـه يـم نـو دا بيـا دروغ دي، همـد ارنګـه کـه نبـی کـريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشر نه وي نو بيا به معاذ الله د (انما أنا بشر مثلكم) جمله دروغ شي.

٥- رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: انه لو أحدث فی الصلوة شیء أنبـأتکم بـه ولکـن انما أنا بشر أنسی كما تنسون ، فاذا نسيت فذكرونی ( صحيح مسلم ج ١ صـ ٢١٢)

که په مانځه کې کومه نوې خبر پيدا شي نو زه تاسو ورباندې خبروم لکن خبره دا ده چې زه ستاسو په شان بشر يم زما ځخه هم هيريږی کله چې زما ځخه هير شي نو تاسو يې راياد وئ.

٦- رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايي چې: انكم تختصمون الیّ وانما أنا بشـر ولعـل بعضـكم أن يكون الحن بحجته (ترمذی ج ١ صـ ١٦٠) تاسو ماته دوسېې راوړئ او زه بشريم کيدی شي چې په تاسو کې کوم يو په دلايلو کې قوي وي، نو که زه ديو چا په باره کې دبل دحق ځخه فيصله وکوم نو ييشکه چې زه هغه ته د أور ټوټه ورکوم.

٧- دصحابه کرامو په عقيده کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشر وو، حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احاديث ليکل، نو صحابه کرامو منع کړو او ورتـه وې فرمايل چې: أتكتب كل شیء تسمعه من رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشر يتكلم فی الغضب والرضاء (سنن ابی داؤد ج ٢ صـ ٥١٤)

آيا ته دنبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځخه هر اوريدلی شئ ليکی؟ حال دا چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشر دی کله دغصې او کله دخوشحالی په حالت کې وي، عبد الله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تـه دخلکو دا خبره ورسوله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و فرمايـل :(أكتـب فـوالذی نفسـی بيده مايخرج منه الا حق ) ليکه په هغه الله مې دې قسم وي چې زما روح دهغه په قبضه کې دی چې زما دخولې ځخه صرف حق راووزي.

۸- حضرت عایشه رضی الله عنها فرمایي چې: كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْصِفُ نَعْلَهُ وَيَخِيطُ ثَوْبَهُ وَيَعْمَلُ فِي بَيْتِهِ كَمَا يَعْمَلُ أَحَدُكُمْ فِي بَيْتِهِ وَقَالَتْ: كَانَ بَشَرًا مِنَ الْبَشَرِ...(مشکوة: صـ ۵۲۰)

رسول الله به خپلې پڼې او جامې پخپله جوړولې او ستاسو په شان به يې په کور کې کار کولو او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يو بشر وود بشر څخه.

۹- حضرت عکرمه رحمه الله فرمايي چې: (ان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قـدمات وأنـه بشـر) دارمي ج۱صـ۳۹) بې شكه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفات شو او خبره دا ده چې بې شكه چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشر وو.

۱۰-په شرح العقائد کې د أهل السنت والجماعت عقيده داسې ليکل شوي ده چې (وقد ارسـل الله تعالى رسلا من البشر الى البشر صـ۱۳۳)

الله تعالى دبشر څخه بشر ته رسولان ليګلي دي، دعقايدو په کتابونو کې د رسول تعريف داسې کيږي چې (انسان بعثه الله لتبليغ ما أوحى اليه)

۱۱-امام رباني مجدد الف ثاني شيخ احمد سرهندی رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې: هرګاه انبياؤ عليهم الصلوة والسلام فرمايد: اغضب كما يغضب البشر، باولياء چي رسد؟ همچنين اين بزرګواران در اکل وشرب ومعاشرت بأهل وعيال وموانست ايشان باساير الناس شريک أند، تعلقات شتى كه أز لوازم بشريت است از خواص وعوام زايل نمى ګردد، حق سبحانه وتعالى درشان انبياء عليهم الصلوة والسلام مى فرمايد (وما جعلنا هم جسـدا لا يـأكلون الطعـام) وكفار ظاهر بين مى ګفتند (وَقَالُوا مَالِ هٰذَا الرَّسُولِ يَأْكُلُ الطَّعَامَ وَيَمْشِي فِي الْأَسْوَاقِ (مبدء معاد صـ۲۶)

## حکم

دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دبشريت اقرار دصحت دايمان لپاره شرط دی، شيخ ولی الدين عراقي فرمايي چې: هل العلم بكونه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بشراً ومن العرب شرطٌ فی صحة الايمان او من فرض الكفاية؟

الجواب: أنه شرط فی صحة الايمان، فلو قال شـخص أومـن برسـالة محمـد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الی جميع الخلق لكن لا أدری هل هو من البشـر او من الملائكة او من الجن اولا أدری هل هـو مـن العرب او من العجم فلاشک فی كفره (غاية المواعظ للعلامه خيرالدين أبی الـبركات ج ۲صـــ۱۹).

# مسئلة الاستمداد من غير الله

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده.

اما بعد!:

الله تعالى فرمايي چې: (وَالْعَصْرِ ۙ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِیْ خُسْرٍ ۙ اِلَّا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ) هر انسان په خسران کې دی، مګر هغه انسان دخسران څخه بچ دی چې صحيح اعمال او صحيح عقايد ولري او د صحيحو عقايدو بنياد: درې شان دي، توحيد. رسالت او معاد او بيا په دې دريو کې اصل الاصول توحيد دی، درسالت غټ مقصد دتوحيد بيانول دي، دمعاد څخه هم مقصد ترغيب الى التوحيد دی، د پيغمبرانو ددعوت ابتداء دهمدې مسئلې څخه وه او دکافرانو ددشمنی سبب هم همدا مسئله وه، کافرانو، نبي کريم صلى الله عليه وسلم او صحابه کرامو ته سخت تکليفونه ورکول او سخته دشمني يې ورسره کوله، ددې سبب اوامر (لمونځ، روژه، زکوة، حج وغيره) نه وو ځکه چې دا احکام وروسته نازل شو.

همدرانګه نواهي هم نه وو ځکه چې د شرابو، متعې، بې حجابۍ وغيره وغيره نواهي وروسته نازل شول، همدارنګه د رسول الله صلى الله عليه وسلم دذات او مکارم الأخلاق سره هم د دوي د شمني نه وه، د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ذات او اخلاقو څخه خو کافران هم ډير متأثر وو، همدارنګه د الله تعالى په خالقيت، رازقيت، مدبريت او اختيار کې هم اختلاف نه وو، ځکه چې مشرکانو هم خالق، رازق، مدبر، او مختار الکل يواځې الله تعالى ګڼلو، دمشرکنيو د دوشمنۍ سبب صرف دالله تعالى الوهيت او خالص توحيد وو، رسول الله صلى الله عليه وسلم به فرمايل چې (يا ايها الناس قولوا لا اله الا الله تفلحوا الخ) إله او مشکل کشا يو الله وګڼئ، مشرکانو به ويل چې: (اَجَعَلَ الْاٰلِهَةَ اِلٰهًا وَّاحِدًا) ايا ډير مشکل کشاګان او معبودان يې پريښودل او يو اله او مشکل کشا يې مختاره کړو؟ مشرکانو دهر کار لپاره يو عطائي مشکل کشاء جوړ کړي وو، باذن الله به يې ورته مشکل کشا ويلې، (وَيَقُوْلُوْنَ هٰۤؤُلَاۤءِ شُفَعَاۤؤُنَا عِنْدَ اللّٰهِ) حالانکې يواځې محمد صلى الله عليه وسلم او صحابه نه، بلکې د ادم عليه السلام څخه تر محمد صلى الله عليه وسلم پورې هر پيغمبر د همدې مشرکانه عقيدې دختمولو لپاره تکليفونه تيرول او اعلانونه به يې کول چې: ﴿مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ﴾ (وروسته به راشي چې إله مشکل کشا وي) يعنې هر پيغمبر دا اعلان کولو چې مشکل کشا او مستعان منه صرف الله دی، نن سبا اهل بدعت دنبي کريم صلى الله عليه وسلم دعشق د پردې لاندې همغې مشرکانه عقيدې ته دعوت چلوي دکومې دختمولو په جرم چې محمد صلى الله عليه وسلم په شعب ابی طالب کې بندي وو، دکومې دختمولو په جرم چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وهل کيدلو، دکومې دختمولو په جرم چې دنبي کريم صلى

الله علیه وسلم د شهید ولو منسوبې جوړېدې او د کومې د ختمولو په جرم چې ډېرو صحابه وو د شهادت جامونه نوش کړل دغو دیوالي او ظاهري عاشقانو او دنبي حقیقي د ښمنانو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم دمښن په خلاف دمکې دمشرکانو په شان دهر مشکل لپاره یو مشکل کشا جوړ کړی دی.

دمکې مشرکانو بوتانو ته عطائي او باذن الله مشکل کشا ګان ویلې او بچي ، رزقونه، بارانونه وغیره یې ترینه غوښتل او دوي انبیاوو او اولیاوو ته عطائي او باذن الله مشکل کشاګان وایي او بچي ، رزقونه، صحتونه او بارانونه وغیره ترینه غواړي، انبیاء او أولیاء خو لاڅه چې؟ خرو ته جهراً مشکل کشایان وویلې (معاذ الله) یو طرفته وایي چې په استمداد کې مافوق الاسباب او ماتحت الاسباب ته تقسیم غلط دی او بل طرفته وایي چې خر هم مشکل کشا دی ، نو حاصل یې همدا شو چې خر په مافوق الاسباب کې هم مشکل کشا دی او په ماتحت الاسباب کې هم مشکل کشا دی، یعني په خر باندې په ماتحت الاسباب کې ګیاه راوړه او په مافوق الاسباب کې ترینه بچي ،رزق او باران وغیره غواړه (معاذ الله) او یواځې دانه وه چې خر ته یې مطلقاً مشکل کشا و ویلې، بلکې ددغې مشرکانه عقیدې مخالفینو ته یې د مناظرو چلنجونه ورکول، کومو اکابرو چې په خپلو تصانیفو کې دا عقیده واضحه کړې وه (چې په مافوق الاسباب کې مشکل کشا یو الله تعالی دی ، لکه امام أهل سنت مولانا سرفراز خان صفدر رحمه الله وغیره ) نو دهغوي تکفیر یې شروع کړو، قسما قسم غلط نسبتونه یې ورته کول، چې دخلکو سره په مبایلونو کې محفوظ دي .

کله چې زمونږ په علاقو کې په عوامو کې د استمداد او د دې په شان د یو څو نورو باطلو عقید و د زهرو خوریدل شروع شو نو بعضو ورونړو تقاضی وکړه چې که دا عقائد په عام الفهم انداز باندې تشریح شي نو یو طرفته به د اهل حقو د عقائدو تحفظ وشي او بل طرفته به دهغو خلکو د عقائدو اصلاح هم وشي چې په غیر شعوري طریقه د أهل بدعتو سره یو ځای شوي دي، اګر چې مشکلات ډیر دي لکن بیا مې هم د یو علمي امانت د ادا کولو لپاره ددوي غوښتنې ته لبیک وویلې ، الله تعالی دې یې د خپلې رضا سبب وګرځوي.

فائده: پدې رساله کې ما اکثر دخپلو جملو په ځای صرف د اکابرو خصوصاً د امام اهل سنت والجماعت مولنا سرفراز خان صفدر او د شیخ الکل مفتي محمد فرید رحمه الله وغیره اکابرو دکتابونو عبارات رانقل کړي دي ، لهذا دا عقاید یواځې زما ندي ، بلکې دا داهل سنت والجماعت اجماعي عقاید دي.

اسأل الله التوفیق.

## د استمداد من غير الله جايز او ناجايز صورتونه

د استمداد من غير الله لپاره لس صورتونه دي، پنځه ناجايز او پنځه جايز دي، لنډ تعبير يې دا دى چې كوم يكې مافوق الأسباب دي هغه ناجايز دي او كوم چې ماتحت الأسباب دي هغه جايز دي.

اول: چې د الله تعالى څخه بغير بل مستعان منه (يعنې ولي يا شهيد يا بل غير الله) مستقل او قادر بالذات او كڼئ او مدد ترينه وغواړي.

د اقسم اتفاقا شرک دى د اسلام په دعوه كونكو كې هېڅوک ددې قايل نه دى.

دوهم: چې د الله تعالى څخه بغير بل مستعان منه، نبي يا ولي يا شهيد قادر بالذات ونه ګڼې بلكې قادر بالعطاء او قادر باذن الله يې وګڼې او دا عقيده ولرې چې دې غير الله ته الله تعالى داسې قدرت وركړى دى چې د هغې په وجه دا مسقل او خودمختار ګرځيدلى دى، لكه بادشاه چې قاضي مقرز كړي او بيا قاضي په خپلو فيصلو كې خودمختاره وي چې څه غواړي او كله يې غواړي كوي يې، دا قسم هم منصوصي شرک دى، دمكې مشركانو همدا قسم شرک كولو، هغوي خپل بتان قادر بالذات نه ګڼل، بلكې قادرين بالعطاء او متصرفين باذن الله يې ګڼل او دا عقيده يې وه چې اوس بتانو ته داسې اختيارات حاصل دي چې كله چې وغواړي او چاته چې وغواړي امداد ورسره كولى شي، دمكې مشركانو به په تلبيه كې ويلې چې لاشريک لک الا شريکا تملكه و ما ملک، همدارنګه الله تعالى ددې مشركانو عقيده داسې بيان كړي دي چې دوي به ويلې چې ﴿هٰؤُلَآءِ شُفَعَآؤُنَا عِنْدَ اللهِ﴾ او همدارنګه ﴿مَا نَعْبُدُهُمْ اِلَّا لِيُقَرِّبُوْنَآ اِلَى اللهِ﴾ نن سبا دغه عقيده په اهل بدعتو كې عامه ده او مباحثې او مناظرې وربانديې كوي او وايي چې انبياء او اولياء په مافوق الاسباب كې باذن الله كومک كوي.

دريم: د ژوندي سړي څخه په امورو عاديه وو كې كومک غوښتل، چې هغه فعل په عادت كې د انسان په افعالو كې شمارلى شي، لكه چاته ووايئ چې ماته اوبه راكړه، دلته مستعان منه صرف د آلې په مرتبه كې وي او حقيقي مشكل كشا او حاجت روا الله تعالى وي.

دا قسم بالاتفاق جايز دى، الله تعالى د عيسى عليه السلام په باره كې فرمايلي دي چې خپلو امتيانو ته يې وويلې چې ﴿مَنْ اَنْصَارِىْٓ اِلَى اللهِ﴾ همدارنګه ذوالقرنين وفرمايل چې ﴿فَأَعِيْنُوْنِىْ بِقُوَّةٍ﴾

څلورم: د ژوندي کس څخه په أمورو غیر عادیه وو کې کومک غوښتل چې هغه عادةً د انسان د قدرت څخه بهر وي او عادةً د انسان په افعالو کې نه شي شمارلی کیدلی، لکه یو څوک ووایي چې ای نبي! او یا یا ولي! ماته اولاد راکړه، دا قسم استعانت من غیر الله ناجایز دی.

پنځم: د نبي یا دولي د وفات څخه وروسته ترینه په امورو عادیه وو کې کومک غوښتل، مثلا یو متوفي ته ووایي چې ای ولی الله! زما لانجه ختمه کړه دا هم ناجایز دی، ځکه چې دا په ژوندیو کې د امورو عادیه وو څخه دي، لکن دمړو په باره کې د أمورو عادیه وو څخه نه دی.

شپږم: د کوم نبي یا د ولي د وفات څخه وروسته ترینه په امورو غیر عادیه وو کې کومک غوښتل، مثلاً یو ولي ته ووایي چې ای ولی الله! ماته اولاد راکړه دا هم ناجایز دی.

اووم: استفاضه بعد الوفات ده، یعنې دنبي یا د ولي دوفات څخه وروسته ترینه روحاني فیض حاصلول دي او دا جایز او واقع ـ ، د صاحب القبر څخه د فیض حاصلولو مطلب د اندی چې دهغوي څخه امداد غواړه، بلکې معنی یې داده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: انما القبر روضة من ریاض الجنة او حفرة من حفر النیران (الترمذي)

نو په قبرونو کې په انبیاوو او اولیاوو، شهیدانو او علماوو باندې دالله تعالی خصوصي رحمتونه او برکتونه نازلیږي او دهغې رحمتونو او برکتونو اثر زائیرینو ته هم رسیږي، لکه د عطار په دوکان کې چې ته کینې نو ته پخپله معطر کیږې، په صحیح البخاري کې باب دی په نوم د باب ماجاء فی قبر النبی صلی الله علیه وسلم وابي بکر وعمر رضی الله عنهما دهغې لاندې امام بخاري رحمه الله یو حدیث ذکر کړی دی چې حضرت عمر رضی الله عنه خپل ځوی حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما حضرت عایشې رضی الله عنها ته ورولیږلو چې په روضة مبارکه کې ترینه د دفن اجازت وغواړه، حضرت عایشې رضی الله عنها اجازت ورکړو، نو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمایلي دي چې: وفیه الحرص علی مجاورة الصالحین فی القبور طمعاً فی اصابة الرحمة اذا نزلت علیهم وفی دعاء من یزورهم من اهل الخیر (باب ما ینهی من سب الاموات)

یعنې پدې حدیث کې په قبرونو کې د صالحینو سره دمجاورت حرص ذکر شوی دی لپاره ددې چې کله په صالحینو د الله تعالی رحمتونه نازلیږي نو هغه چاته به هم رسیږي چې دده سره په څنګ کې ښخ شوي

وي او كوم زيارت كونكى چې صالحينو ته دعاګانې كوي نو په هغې دعا كې به ورسره هغه څوک هم شريكيږي چې دده په څنګ كې ښخ شوى وي.
په فتاوى محموديه كې د استفاضې په باره كې داسې سوال او ځواب دى، چې: د اهل الله له قبورو څخه دصوفيانو په طريقه د فايدې حاصلولو څه طريقه ده؟
الجواب: اول يو مقدار تلاوت وكړه او ثواب يې صاحب القبر ته وبښه او له هغه وروسته ستر ګې پټې كړه او تصور وكړه چې زما روح ددې ولي د روح سره متصل شو او له هغه څخه ماته خاص احوال را منتقل كيږي (فتاوى محموديه صـ ۴۰۱، ج۱۳، بوادر النوادر ج ۱صـ ۸۵)
شاه عبدالعزيز رحمه الله د يو سوال په جواب كې فرمايي چې كسى اصحاب باطن يا صاحب كشف برقبور ايشان مراقبه شده چيزى از باطن اخذ ميتواند نمود يانه ؟
جواب: ميتواند. (فتاوى عزيزي ج ۱صـ ۸۹) قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم دقبر شريف او داولياوو د قبرونو څخه فيض حاصليدلى شي (ارشاد الطالبين صـ ٣٦)
مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمايلي دي چې: زيارت كول، ايصال ثواب كول او صاحب نسبت ته فيض حاصليدل ښې خبرې دي (تعليم الدين صـ۹۹)
حضرت مولانا محمد بدر عالم ميرتهى ثم مدني فرمايلي دي چې: فقد سألت عنه مرّة عن الاستفاضة من اهل القبور هل يجوز ذلک أم لا؟ فقال: اما المحدثون فلا أراهم يجوّزونه ولكن أجيز انا لكونه ثابتاً عند ارباب الحقايق غير انه ينبغى لمن كان اهلاً له اما من كان منغمساً فى الظلمت فلا خير له فيه ،(هامش فيض الباري ج ٣صـ ٤٣٤)
قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايلي دي چې بعضې دقوي استعداد خاوندان كله دنبي كريم صلى الله عليه وسلم يا دولي څخه فيض حاصلوي دېته اويسي وايي ځكه اويس قرني د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه فيض حاصلولو او ملاقات يې ورو سره نه وو شوى (ارشاد الطالبين صـ ۳۷)
نو د استفاضې من القبور د استمداد فى مافوق الاسباب سره هيڅ تعلق نشته. تفصيل به وروسته راشى ان شاء الله.

اتم: په امورو عادیه وو یا غیر عادیه کې دیو ژوندي په وسیله او برکت د الله تعالی څخه مدد غوښتل چې: یا الله تعالی د محمد صلی الله عیه وسلم یا د فلان ولي په وسیله او برکت ما ته اولاد راکړې او یا زما لانجه ختمه کړې، دا قسم جایز دی ، دې قسم ته کله مجازاً استمداد ویلی شي ، لکن دا په حقیقت کې توسل دی ، مدد پکې د الله تعالی څخه غوښتل شوی دی، پدې قسم کې استشفاع هم داخله ده.

په فتاوی شامي کې فرمایي چې معروف کرخي رحمه الله مستجاب الدعوات دی او دده د قبر څخه باران غوښتلی شي، نو ددې څخه یا همدغه اتم قسم استمداد مراد دی او یا را روان لسم قسم استمداد بمعنی طلب الدعاء هم مرادیدلی شي.

نهم: کله یو نبي او یا ولي په یو خاص وخت کې وو ایي چې یو څه وغواړه، نو پدغه خاص وخت کې سایل ترینه امور عادیه یا غیر عادیه وغواړي، نو دا قسم هم جایز دی، لکن چونکې د اکرامت او معجزه ده نو یو خو معجزه او کرامت خلاف قانون کار دی او په خلاف قانون کار کې استمرار نشته چې په بل وخت کې یا بعد الوفات یې ترینه یا وغواړې او بل معجزه او کرامت نه دنبي او د ولي خلق دی او نه یې کسب دی ، بلکې د الله تعالی فعل دی او دنبي او یا د ولي په لاس یې صادر کړی دی، نو نبي او یا ولي ته یې د أدنی ملابست له وجې نسبت کیږي چې دده په لاس صادر شوی دی نو رپکې ذطاقت بشري هیڅ دخل نه وي.

لسم: استمداد من اهل القبور بمعنی طلب الدعاء یعنې پدې معنی چې د یو ولي او یا دنبي او یا د یو شهید قبر ته ورشې او دنیږدې څخه ورنه په أمورو عادیه وو او یا غیر عادیه وو کې دعا وغواړې، پدې نیت چې ددوي دعا قبلیږي، نو دنبي کریم صلی الله علیه وسلم په سماع کې خو اختلاف نشته ، لهذا عند قبر النبی صلی الله علیه وسلم خو پدې استمداد کې اختلاف نشه، البته دعامو امواتو سماع اختلافي ده.

جمهور علماء د سماع قایل دي ، ځکه چې دروح او دجسد په مابین کې دتعلق له وجې جسد ژوندی دی ،علم او ادراک لري ،لهذا د جمهورو په نیز دا استمداد بمعنی طلب الدعاء جایز دی پدې کې مستعان نبي او ولي ندی بلکې مستعان الله دی او څوک چې د عامو امواتو سماع نه مني هغوي دې استمداد ته عبث وایي.

## د نداء الی غیر الله اقسام

ددې لپاره دولس صورتونه دي: بعضې پکې جایز او بعضې ناجایز دي، ځکه چې منادا به یا ژوندی وي او یا به وفات وي، **که منادی ژوندی وي نو په نداء کې خلور صورتونه دي:**

اول: چې ژوندي ته د نږدې ځخه اواز وکړي چې هغه یې عادةً اوري، لکه صحابه وو به چې دنبي کریم صلی الله علیه وسلم په مجلس کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته یا رسول الله ویلې، دا قسم خو اتفاقا جایز دی.

دوهم: چې ژوندي ته دلرې ځخه اواز وکړي چې هغه یې عادةً نه اوري، لکن ستا اواز تلذذا، یا محبتاً، شوقاً یا تحسراً یا حرماناً او یا په تصور کې قریب فرض کړی شوی وي دا قسم هم جایز دی.

دریم: چې ژوندي ته دلرې ځخه ندا وکړي خو په دې نیت چې دا زما ندا هغه ته په خط یا وغیره ذریعو باندې رسیږي دا هم جایزه ده لکه رسول الله صلی الله علیه وسلم هرقل ته لیکلي وو چې ادعوک بدعایة الاسلام.

څلورم: ژوندي ته د لرې ځخه اواز کول یعنې غایبانه ندا په دې نیت چې دا منادی دا زما اواز دلرې ځخه عادةً اوري نو دا قسم شرک دی.

**او که منادی وفات شوی وي او ته ورته بعد الوفات اواز کوې نو پدې کې ( ۸ ) صورتونه دي:**

اول: چې متوفی ته (قبل الدفن) نږدې ورشې او اواز ورته وکړې لکه ابوبکر صدیق رضی الله عنه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته راغلو او په یارسول الله یې ورته اواز وکړو، همدارنګه صالح علیه السلام خپل هلاک شوي قوم ته وفرمایل چې (يٰقَوۡمِ لَقَدۡ اَبۡلَغۡتُكُمۡ رِسَالَةَ رَبِّيۡ) نو دا هم جایز دی.

دوهم: چې متوفی ته بعد الدفن دقبر خواته ورشی او اواز ورته وکړی، لکه د رسول الله صلی الله علیه وسلم روضې مبارکې ته ورشئ او الصلوة والسلام علیک یا رسول الله ووایي او یا السلام علیک یا ابا بکر ووایي، نو دا اواز چې د استمداد په طریقه نه وي، نو بیا جایز دی، ځکه چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم یې اتفاقاً اوري او عام مړي یې د جمهورو په نیز اوري.

**حضرت مولانا رشید احمد گنگوهي رحمه الله فرمایي:** رسول الله ﷺ پخپل قبر کې ژوندی دی (ونبی اللهِ حيٌّ یرزق) دا مضمون مولوي محمد قاسم صاحب سلمه الله تعالی پخپله رساله آب حیات کې ثابت کړې دی (بمالامزید علیه)هدایة الشیعة صـ ۴۹ ) دانبیاوو په سماع کې د هیچا اختلاف نشته، (فتاوی رشیدیه، کتاب الایمان والکفر، *زندوں کا مردوں سے مانگنا*)او سماع فرعه د حیات ده.

**شيخ الهند مولنا محمود الحسن رحمه الله فرمايي:** وهو معتقدنا ومعتقد مشائخنا جميعا لاريب فيه (المهند صـ ٧٤) تقدير الكلام ما من احد يسلم عليّ الّا ردّ عليه السلام لاني حيٌّ اقدر على رد السلام (حاشية سنن ابي دواد ج ١ صـ ١٥٧ الانبياء احياء في قبورهم، حاشيه سنن ابي دواد ج ١ صـ ١٥٧)

دريم: نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته د لرې څخه اواز په نيت د تبليغ الملايكې هم جايز دی خو دا بيا تر نبي كريم صلى الله عليه وسلم پورې خاص دی ځکه چې دنبي كريم صلى الله عليه وسلم په باره کې تبليغ الملايكه په حديث کې ثابت دی او د بل ولي او دصحابي په باره کې ندی ثابت.

**رئيس المفسرين مولنا حسين علي رحمه الله فرمايي:** عن ابي الدرداء قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اكثروا الصلوة عليّ يوم الجمعة فانه مشهود تشهده الملائكة وان احدا لن يصلى عليّ الا عرضت على صلوته حين يفرغ منها قال قلت وبعد الموت؟ قال وبعد الموت، ان الله حرم على الارض ان تأكل اجساد الانبياء فنبيُّ الله حيٌّ يرزق، وقد صنف السيوطي رسالة انباء الاذكياء في حياة الانبياء. (تحريرات حديث على اصول التحقيق صـ٣٣١ رسالة درود شريف حديث نمبر ٨)

څلورم: متوفي ته غايبانه اواز بغير د استمداده، محض شوقاً، محبتاً، تلذذاً، تحسراً او حرماناً، نو دا هم جايز دی، اكثر د بزرگانو شعري قصيدې په دې قسم کې داخلې دي، ددې اكابرو هيڅکه دا عقيده نه وه چې متوفی يې دلرې څخه اورې اويا مدد کولی شي.

پنځم: متوفی ته غايبانه اواز خو حكايةً لكه چې يو څوک دقران تلاوت کوي او دا ايت تلاوت کړي چې (يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا).

شپږم: چې متوفی ته غايبانه اواز وکړئ دعاءً، پدې نيت نه چې هغه يې اوري او پدې نيت هم نه چې دهغه څخه استمداد کوی، لكه حضرت علي رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کې داسې دعا وکړه چې: (نورت مساجدنا نور الله قبرک يا ابن الخطاب) حالانكې په دغه وخت کې حضرت عمر رضي الله عنه وفات شوی وو، مولنا عبد الحكيم السيالكوټي د عبد الغفور په حاشيه کې ليکلي دي چې: «لابعدت» بكسر العين صيغة الخطاب، يعني أن صيغة النهى مستعمل للدعاء صـ ٣٢، حاشيه نمبر (١٥).

اووم: چې دنبي كريم صلى الله عليه وسم نوم په كوم مجلس كې ذكر شي او يو كس ته بې اختيا ره دا تصور راغلو چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم موجود دى او په همدې تصور يې نداء وكړه دا هم جايز دى، مولانا عبد الغفور اللاري فرمايي چې: قولهم فى الميراثى لا تبعد، اى لا تهلك كأنهم من ظنهم بالميت تصوروه حيًّا فكرهوا موته، فقالوا لا تبعد اى لا بعدت ولا هلكت، عبدالغفور صـ ۳۲۸.

مفتي محمد تقي عثماني حفظه الله فرمايي چې: زه خو تر دې وايمه چې يو سړي ته په يو مجلس كې دحضـور ﷺ نـوم مبـارک مخـې تـه راغـی او ده تـه بې اختيـاره دا تصـور راغـی چې حضـور ﷺ مخامخ موجود دى او ده په دې تصور وويل (الصلوة والسلام عليـک يارسـول الله) او د حاضر ناظر عقيده دده په زړه كې نشته، بلكه لكه څنګه چې يو سړى دغيب څيز تصور وكړي چې دا څيز زما مخې ته دى نو په دې تصور كې هغه دا الفاظ ووايي نو په دې كې څه حرج نشته. لكن كه چيرې داسړى دا الفاظ په دې عقيدې سره ووايي چې حضور ﷺ دلته داسې حاضر او ناظر دى، څنګه چې الله تعالى حاضر او ناظر دى، نو دا به شرک شي، (معاذ الله) او كه په دې عقيده يې نه وي ويلي، ليكن داسوچ يې وي چې (الصلوة والسلام عليک يارسول الله) ويـل سنت دي او داسې درود ويـل ضروري دي او كوم سړى چې داسې الفاظ نه وايي نو دده په زړه كې دنبي كريم ﷺ سره محبت نشته، نو بيا هم دغه عمل بدعت ضلالت او ګمراهي ده. (بدعت يو عظيمه ګناه ده، پښتو صـ ۵۰، ۵۱)

اتم: متوفى ته غايبانه نداء په دې نيت چې هغه يې دلرې څخه عادةً اوري نو دا بيا شرک دى.
ملخصاً: امداد الفتاوى ج ۵ صـ ۳۳۵، فتاوى رشيديه صـ ۱۸۲)

## په ما فوق الاسباب کې د غير الله څخه استمداد غوښتل دا کابرو په نيز شرک دى

د كوم نبي او يا كوم ولي څخه بچي غوښتل، باران غوښتل، صحت غوښتل وغيره مافوق الاسباب أمور غوښتل شرک دى (۱) (شاه ولي الله الدهلوي) فرمايي چې: واعلم أن طلب الحوايج من الموتى عالما بانه سبب لانجاحها كفر يجب الاحتراز عنه تحرمه هذه الكلمة (كلمة شهادة) والناس أليوم فيه منهمكون (الخير الكثير صـ ۱۰۵)

د مړو څخه كومک غوښتل وګو كه د سبب په مرتبه كې وي هم كفر دى، كلمه د شهادة د مړو څخه كومک غوښتل حراموي او خلک پكې مصروف دي. انتهى

د مړو څخه كومک غوښتل ما فوق الاسباب دى، نو د مړو څخه مافوق الاسباب كومک غوښتل كفر شو.

(۲) همدارنګه فرمايي چې : من ذهب الى بلدة اجمير او الى قبر سالار مسعود او ماضاهاها لأجل حاجةٍ يطلبها فانه أثم اثما اكبر من القتل والزنا. (تفهيمات الهيه، تفهيم نمبر ٣٤)

څوک چې اجمير ته لاړو او يا دسالار مسعود رحمه الله قبر ته لاړو او يا د کوم بل نبي او يا ولي قبر ته لاړو ،لپاره د حاجة چې (دولي يا دنبي څخه يې) غوښتلو نو د قتل او زنا څخه يې هم سخته ګناه وکړه تبصره (دا استعانت په مافوق الاسباب کې دی) نو په مافوق الاسباب کې دمړو څخه کومک غوښتل د قتل او د زنا څخه هم سخته ګناه ده او د قتل او زنا څخه سخته ګناه کفر دی.

۳- همدارنګه په باب حقيقة الشرک کې يې د مشرکينو عقيده بيان کړې ده چې مشرکينو به ويلي چې: أَن اللّٰه هُوَالسَّيِّد وَهُوَالْمُدبر، لكنه قد يخلع علٰى بعض عبيده لِبَاس الشرف والتأله، ويجعله متصرفا فِي بعض الْأُمُور الْخَاصَّة، وَيقبل شَفَاعَته فِي عباده بِمَنْزِلَة ملك الْمُلُوك يبْعَث علٰى كل قطر ملكا، ويقلده تَدْبِير تِلْكَ المملكة فِيمَا عدا الْأُمُور الْعِظَام (حجة الله البالغة: صـ: ٦١).

د مشرکانو دا عقيده وه چې سيد او مدبر الله تعالى دی لکن الله تعالى بعضې بندګان هم په بعضې کارونو کې متصرفين او (د نفع او دضرر اختيارمند) ګرځولي دي، لکه بادشاه چې واليان مقرر وي او په وړو وړو کارونو کې يې اختيارمند ګرځوي (ددې څخه معلوميږي چې په مافوق الاسباب کې غير الله متصرف ګڼل ولو که عطاءً او باذن الله يې متصرف ګڼي شرک دی).

۴- همدارنګه په تفهيم (ج۲صـ۷۳) کې فرمايي چې: واما الاشراک بالله استعانةً فحده ان يطلب من احد حاجته عالما بأن فيه قدرة انجاحها).

په کومک غوښتلو کې شرک دادی چې ديو چا څخه خپل حاجت وغواړي او هغه (غير الله) ددې مشکل په حل کولو قادر وګڼي (بالذات او بالعطاء).

۵- همدارنګه شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله فرمايي: چې: وَمِنْهَا أَنهم كَانُوا يستعينون بِغَيْر اللّٰه فِي حوائجهم من شِفَاء الْمَرِيض وغناء الْفَقِير، وينذرون لَهُم، يتوقعون إنجَاح مقاصدهم بِتِلْكَ النذور، ويتلون اسماءهم رَجَاء بركتها، فَأوجب اللّٰه تَعَالٰى عَلَيْهِم أَن يَقُولُوا فِي صلَاتهم: {إياك نعْبد وَإِيَّاك نستعين}

وَقَالَ تَعَالٰى: {فَلَا تدعوا مَعَ اللّٰه أحدا} .وَلَيْسَ المُرَاد من الدُّعَاء الْعِبَادَة كَمَا قَالَه الْمُفَسِّرُونَ، بل هُوَ الِاسْتِعَانَة لقَوْله تَعَالٰى: {بل إِيَّاهُ تدعون فَيكْشف مَا تدعون} ). (حجة الله البالغة: صـ: ٦٢).

د شرک یو قسم دادی چې مشرکانو به په خپلو حاجتونو کې دغیر الله (په ما فوق الاسباب اقسامو کې) د شرک یو قسم دادی چې مشرکانو به په خپلو حاجتونو کې دغیر الله
(په ما فوق الاسباب اقسامو کې) (به یې دغیر الله څخه غوښتله) دوي ته به یې
څخه کومکونه غوښتل مثلا د مریض شفاء او دفقیر غنی (به یې دغیر الله څخه غوښتله) دوي ته به یې
نذرونه منل او پدې وجه به یې دخپلو امیدونو د پوره کولو امید لرلو او دبرکت د حاصلولو لپاره به یې
ددوي د نومونو ذکر کولو، نو الله تعالی پدوي واجبه کړله چې په لمانځه کې ایاک نعبد وایاک نستعین
ولولي، همدارنګه الله تعالی فرمايي چې دالله سره غیر الله د (کومک لپاره) مه رابلئ او ددعا څخه
عبادت نه دی مراد لکه بعضې مفسرینو چې لیکلي دي، بلکې استعانت مراد دی ځکه چې الله تعالی
فرمايي چې (بَلْ إِيَّاهُ تَدْعُونَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ) صرف الله تعالی رابلئ ځکه هغه چې به ستاسو تکلیف
رفع کوي.

۶- شاه ولي الله رحمه الله په بل ځای کې فرمايي چې: وكفر الله سبحانه مشركى مكة بقولهم لرجل سخ
كان يلت السويق للحجاج أنه نصب منصب الالوهية وجعلوا يستعينون به عند الشدايد (بدور البازغ
صـ ۱۲۶)

الله تعالی د مکې مشرکانو ته ځکه کافران ویلي دي چې په دوي کې یو سخي سړی وو چې ستوان
یې په غوړیو کې لړل او حاجیانو ته به یې ورکول (دهغه نوم لات وو) نو دمکې کافرانو د الوهیت
(مشکل کشائي) منصب ورکړی وو او د مشکلاتو او مصیبتونو په وخت کې یې استعانت ترینه کولو
۷- په بل ځای کې فرمايي چې: د مشرکینو داعقیده وه چې د ټولو کایناتو مدبر صرف الله تعالی دی
لکن الله تعالی بعضې خاصو بندګانو ته په بعضو خاصو علاقو کې د تصرف کولو اختیار ورکړی دی
(ويجعلن مؤثرا فى قسط من العالم) بدور بازغه ص( ۱۲۳.
مخکې لیکي چې دیهودو، نصارا وو مشرکانو او د محمد صلی الله علیه وسلم په دین کې د سخت
منافقانو هم همدا عقیده وه (والغلاة من منافقى دين محمد صلى الله عليه وسلم فى يومنا هذا
بدوربازغه صـ ۱۲٤)

ددې څخه معلومه شوه چې مشرکانو چې دغیر الله څخه استعانت کولو نو مستقل یې نه ګڼل، بلکې د
الهي او امداد الهي مظاهر یې ګڼل، لکه د نن سبا اهل بدعتو نام نهادو مسلمانانو چې همدا عقیده ده.

۸-په بل ځای کې فرمايي چې: والشرـک ان يثبـت لغـير الله سـبحانه وتعـالى شـيئاً مـن صـفاته المختصة كالتصرف فى العالم بالارادة الذى يعـبر عنـه بكُـنْ فيكـون او العلـم الذاتى مـن غـير اكتساب بالحواس و دليل العقل ولمنام والالهام ونحـو ذلـك او الايجـاد لشـفاء المـريض او اللعـن لشخص والسخط عليه حتى يقدر عليـه الـرزق او يمـرض او يشـفى لذلـك السـخط او الرحمـة لشخص حتى يبسط له الرزق ويصح بدنه ويسعد ولم يكن المشركون يشركون احـداً فى خلـق الجواهر وتدبير الامور العظام ولا يثبتون لاحد قدرة على الممانعة اذا ابرم الله سبحانه وتعـالى أمـرا وانما كان اشراكهم فى الامور الخاصة ببعض العباد وكانـوا يظنـون ان الملـک على الاطـلاق جـل مجده شرّف بعض العباد بخلعة الالوهية ويؤثر رضاهم وسخطهم على ساير العباد كما ان ملـكا مـن الملوک عظيم القدر يرسل عبيده المخصوصين الى نواحى المملكة ويجعلهـم متصرـفين فى الامـور الجزئية الى ان يصدر عن الملک حكم صريح فلايتوجه الى تدبير الامور الجزئيـة ويفـوض اليهـم أمور ساير العباد ويقبل شفاعتهم فى امور من يخدمهم ويتوسـل بهـم فيقولـون بوجـوب التقـرب بعباد الله سبحانه المخصوصـين المـذكورين يتيسرـ لهـم قبـول الملـک المطلـق وتقبـل شـفاعتهم للمتقربين بهم فى مجارى الامور وكانوا يجوزون بملاحظة هذه الامـور ان يسـجد لهـم ويـذبح لهـم ويحلف بهم ويستعان بهم فى الامور الضرورية بقدرة كـن فيكـون وكانـو ينحتـون مـن الحجـر والصفر وغير ذلک صوراً يتخذونها قبلة التوجه الى تلک الارواح آه (الفوز الكبير صـ ۳)

شرک دېته وايي چې غير الله ته د الله په خاصو صفاتو کې کوم صفت ثابت کړی، لکه (۱) په دنيا کې په هغې ارادې سره تصرف کول د کومې ځخه چې په کن فيکون باندې تعبير کيږي.

(۲) يا غير الله ته علم ذاتي ثابتول چې د حواسو، عقلي دليل، خوب او الهام واسطه پکې نه وي.

(۳) يا غير الله ته د مريضئ د لرې کولو صفت ثابتول (غير الله ته شافي الامراض ويل)

۴- او يا د اسې ناراضگي چې د هغوي په وجه رزق تنګ شي (يعنې لکه ځرنګه چې د الله تعالى د ناراضګۍ په وجه رزق تنګيږي نو د بل چا په باره کې دا عقيده لرل چې د ده د ناراضګۍ په وجه هم رزق تنګيږي.

۵- یا دغیر الله په باره کې دا عقیده لرل چې دده د مهربانۍ په وجه رزق پراخه کیږي او دده دمهربانۍ په وجه بدن صحیح کیږي او نیک بخته کیږي، مشرکانو دجواهرو او داجسامو په پیدا کولو کې غیر الله نه شریکولو ، یعنې په صفت الخلق کې یې اشراک نه کولو همدارنګه یې د غټو غټو کارونو په تدبیر کې هم اشراک نه کولو همدارنګه یې دالله تعالی د قدرت په مقابل کې دبل چا قدرت مانع نه ګڼلو بلکې ددوي اشراک په بعضو خاصو خاصو کارونو کې وو، او ددې مشرکانو داخیال وو چې علی الاطلاق بادشاه الله تعالی دی ، لکن الله تعالی بعضې بندګان دمشکل کشائي په شرافت بانډې مشرف کړي دي او دهمدې بعضې بندګانو رضا او نارضاګۍ ته یې په نورو بندګانو ترجیح ورکړې ده ، لکه یو بادشاه چې خپل خاص غلامان د مملکت اطرافو ته لیږي او په بعضې جزئي معاملاتو کې دتصرف اختیار ورکوي ترڅو چې ددوي دتصرفاتو په خلاف د بادشاه حکم نوي راغلی نو تر هغې پورې دا غلامان په همدې جزئي معاملاتو کې تصرفات کوي، نو بادشاه د دغې جزئي امورو د تدبیر طرفته توجه نه کوي بلکې دا ټول یې دې غلامانو ته سپارلي وي او څوک چې ددې غلامانو خدمت کوي او پدوي توسل کوي نو بادشاه دغلامانو شفارش ددې خادمانو په باره کې قبلوي، له دې وجې مشرکان دغې خاصو بندګانو ته تقرب ضروري ګڼي، ترڅو چې ورته په آسانۍ سره د بادشاه په دربار کې قبولیت حاصل شي او د معاملاتو په پوره کولو کې دغلامانو شفارش ددې متقربینو په باره کې قبول شي بیا مشرکان همدا کارونه په نظر کې نیسي او همدې مخصوصو بندګانو ته سجدو کولو ته جایز وایي او دهمدوي په نوم حیوانات ذبح کوي او دهمدوي په نوم قسمونه کوي او د کن فیکون دقدرت ماتحت ترینه په مهمو کارونو کې استعانت کوي، او د تیګو او مسو وغیره څخه بوتان جوړوي ، لکن دا بیا ددې مخصوصو بندګانو اورواحو ته د توجه قبله ګڼي. انتهی.

شاه صاحب رحمه الله بالکل زمونږ دزمانې دمشرکانو نام نهادو مسلمانانو نقشه بیان کړې ده چې دغیرالله څخه په همدې طریقه استمداد کوي او دغیر الله په باره کې همدا عقیدې لري.

(۶) الشاه عبدالقادر رحمه الله په خپل تفسیر موضح القرآن کې د ولاتنکحوا المشرکات په تفسیر کې لیکلي دي چې پدې ایت کې یې د مسلمان او دکافر په مابین کې نسبت حرام کړو که ښځې یا سړي شرک وکړو نو ددوي نکاح ختمه شوه ، شرک دادی چې دالله صفت بل چاته ثابت کړی، مثلاً دیو چا په

باره کې دا عقیده ولري چې ده ته هره خبره معلومه ده اویا چې څه وغواړي کولی یې شي، یا زمانیک بختي یا بد بختي دده په اختیار کې ده اویا دالله تعالی تعظیم دبل چا لپاره وکړي مثلا بل شي ته سجده وکړی اویا دبل چا څخه خپل حاجت وغواړي او بل څوک اختیارمند وګڼي.

۷- الشاه عبدالعزیز رحمه الله د شرک بیان کړی دی فرمایلي دي چې: (وانبیاء ومرسلین را لوازم الوهیت از علم غیب وشنیدن فریاد هر کس وهرجا، وقدرت بجمیع مقدورات ثابت کند (تفسیر عزیزی ، پاره اول صـ ۵۲)

۸- همدارنګه شاه عبدالعزیز رحمه الله په فتاوی عزیزي ج ۱صـ ۳۳) کې لیکلي دي چې: مدد خواستن دو طور مي باشد ۱-مددخواستن مخلوق از مخلوق مثل آنکه از امیر وپادشاه نوکر وګدا مهمات خود می جویند وعوام الناس از اولیاء دعا مي خواهند ، که از جناب الهی مطلب مارا درخواست نمائید ، این نوع مددخواستن در شرع از زنده ومرده جایز است ۲-انکه بالا ستقلال چیزیکه خصوصیت بجناب الهی دارد مثل دادن فرزند یا بارش باران، یادفع أمراض یا طول عمر ومانند آن چیزها ، بي انکه دعا وسوال از جناب الهی درنیت منظور باشد از مخلوق در خواست نماید ، این نوع حرام مطلق، بلکی کفر است (انتهی)

نو بچي ورکول، باران ورول، صحت ورکول، عمر ورکول دا ټول مافوق الاسباب أمور دي دېته یې خصوصیت بجناب الهی وویلې او دمخلوق څخه ددې أمورو غوښتلو ته یې کفر وویلې.

۹- همدارنګه شاه عبدالعزیز رحمه الله په بل ځآی کې فرمایلي دي چې: واګر عام است در امور دنیا ودین پس وجه اختصاص این هست که هر که غیر خود را اعانت می کند منتهائی کار او انست که در دل او داعیه اعانت آن غیر می اندازند واین فعل فعل او تعالی است پس ګویا بنده ګوید که غیر ترا اعانت من ممکن نیست مګر چون اورا تو اعانت فرمایی تا اسباب اعانت بهم رساند، (تفسیر عزیزی ج ۱صـ ۳۵)

ددې څخه صفا معلومه شوه چې دمخلوق اعانت تحت الاسباب دی.(تا اسباب اعانت بهم رساند)

۱۰- شاه رفیع الدین الدهلوي رحمه الله فرمایلي دي چې و درتصرف درکاینات جزئیه مانند کشادن رزق، ودادن اولاد، و دفع امراض وتسخیر ارواح ومانند آن بکار مي آرند، این خود شرک صریح است و دراین مقام عذری نیست (فتاوی شاه رفیع الدین صـ ۷)

١١- بيهقي وقت قاضی ثناء الله پآنی پتي الحنفي المتوفی ١٣٢٥ھ فرمايلي دي چې يا شـيخ عبـدالقادر شيئا لله ويل (استعانةً) او يا (ياخواجه شمس الدين پاني پتي شيئا لله )ويل (استعانة) جايز ندي، بلکې کفر او شرک دی (ارشاد الطالبين صـ٢١)

همدارنګه فرمايي چې: مسئله: عبادت مر غير خدا را جايز نيسـت ونـه مـدد خواسـتن از غـير حـق (ارشاد الطالبين صـ ٢٠)

١٢- کمال الدين رحمه الله فرمايي چې: والمراد ههنا عدم الشريک فی الألوهية وخواصـها کتـدبير العـالم واستحقاق العبادة (المسامره ج ١صـ ١٧، وج ١صـ ٦٣)

نو تدبير د عالم (اختيار د نفع او دضرر) د خواصو د ألوهيت څخه دی غير الله ته د نفع او د ضرر اختيار مندويل شرک دی.

١٣- ملا علي القاري رحمه الله فرمايي: دغير الله څخه څه مه غواړه ځکه چې غير الله خپـل ځان تـه د نفع او د ضرر مالک نه دی (مرقات علی المشکوة ج ٢صـ ٤٥٣)

١٤- ملا علي القاري رحمه الله په بل ځای کې فرمايلي دي چې: **وَيُعْتَمَدَ فِي جُمْهُورِ الْأُمُورِ عَلَيْهِ، وَلَا يُسْأَلَ غَيْرُهُ، لِأَنَّ غَيْرَهُ غَيْرُ قَادِرٍ عَلَى الْعَطَاءِ وَالْمَنْعِ وَدَفْعِ الضُّرِّ وَجَلْبِ النَّفْعِ، فَإِنَّهُمْ لَا يَمْلِكُونَ لِأَنْفُسِهِمْ نَفْعًا وَلَا ضَرًّا. (مرقات علی هامش مشکوة ج ٢ صـ ١٥٩)**

په ټولو کارونو کې به په الله تعالی اعتما کوې د بل چا څخه به يې نه غواړې، ځکه چې غير الله پـه ورکړه او منعه کښې رسولو او ضرر دفع کولو نه دی قادر، ځکه چې غير الله (نبي او ولـي) خپـل ځان تـه نفع او ضرر نه شي رسولی.

١٥- قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله په بل ځای کې فرمايلي دي چې که يو څوک ووايي چې الله تعـالی او رسول صلی الله عليه وسلم په دې خبره ګواه دی نو کافر شو، اوليـاء د معدوم پـه پيدا کولو او يـا د موجود په معدومولو نه دی قادر، نو د پيدا کولو، فناکولو، رزق ورکولو، اولاد ورکولو، مصيبتونو دفع کولو، دمرض څخه شفاء ورکولو وغيره وو نسبت غير الله تـه کول او دغير الله څخـه يې غوښتل کفر دی (ارشاد الطالبين صـ ٢٠).

۱۶- مافوق الاسباب په مصیبتونو او مشکلاتو کې له غیر الله څخه امداد غوښتل ناجایز او حرام دي او دا سې عقیده لرل چې دالله تعالی څخه بغیر نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او یا کوم ولي د بندګانو په کارونو کې مداخله او تصرف کولی شي، او د خلکو مشکلات حل کولی شي دا عقیده لرل کفر دی، خلاصه دا چې په مافوق الأسباب کې د غیر الله څخه کومک غوښتل حرام دي او په مافوق الاسباب کې کې غیر الله ته متصرف او مشکل کشا ویل شرک دی (فتاوی حقانیه ج ۱ صـ ۱۶۶، کتاب العقاید والایمانیات)

۱۷- علامه ابن نجیم رحمه الله فرمایي چې: وَمِنْهَا أَنْ ظَنَّ أَنَّ الْمَيِّتَ يَتَصَرَّفُ فِي الْأُمُورِ دُونَ اللّٰهِ تَعَالَى وَاعْتِقَادُهُ ذَلِكَ كُفْرٌ (البحر الرائق ج ۲ صـ ۲۹۸ الفصل الثاني فيما يتعلق بالله)

۱۸- سوال: د حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په باره کې د مشکل کشا والي عقیده لرل څه حکم لري؟

الجواب: باسم ملهم الصواب: له الله تعالی څخه پرته له مخلوق څخه د مافوق الاسباب افعالو د کیدلو عقیده لرل شرک دی، البته که چیرته حضرت علی رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ته مجازاً مشکل کشا وویل شي نو په دې سره شرک نه لازمیږي، بیا هم عوام د دې فرق او امتیاز نه شي کولی هغوي باید د داسې عقایدو له درلودلو څخه ځان وساتي (فتاوی الحقانیه ج ۱ صـ ۱۶۶، کتاب العقاید والایمانیات)

۱۹- سوال: د (یاشیخ عبد القادر جیلاني شیئا لله) وظیفه کول څه حکم لري؟

الجواب باسم ملهم الصواب: د یا شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله شیئًا لله وظیفه کول په دې عقیدې سره چې دی حاضر او ناظر دی او زمونږ دا آواز اوري صریح شرک دی (فتاوی حقانیه ج ۱ صـ ۱۶۶)

۲۰- سوال: که چیرته یو سړی د شیخ عبد القادر جیلاني رَحِمَهُ اللّٰهُ په اړه دا عقیده ولري چې که چیرته هغه ته د مصیبت په وخت کې په لاندې الفاظو باندې او ازونه وشي نو دا واز کونکي سړي مدد کوي او مصیبت یې لرې کوي (أغثنی وأمددني فی قضاء حاجتي یا قاضی الحاجات) یا شیخ عبدالقادر جیلانی مدد کن شاه شهانی، مدد کن شاه جیلانی، مدد کن شاه بغداد، نو د دې عقیدې والا څه حکم دی؟

الجواب باسم ملهم الصواب: که چیرته څوک سیدنا عبد القادر جیلاني رحمه الله ته په دې عقیده باندې او ازونه کوي چې هغه زمونږه اوازونه أوري، او را رسیږي، او امداد کوي نو دا یوه مشرکانه عقیده ده، ځکه چې دا دالله تعالی صفات دي او په دې کې له هغه سره څوک شریک نه شته، لما قال

العلامه الكردي رحمه الله : من قال أن أرواح المشايخ حاضرة تعلم يكفر. (فتاوی بزازيه على هامش الهنديه ج ۶ص ۳۲۶، مايتعلق بالله)

۲۱- قال العلامه عبدالحی اللکنهوي رحمه الله : جواب او كافر است فی البزازيه من قال أرواح المشايخ حاضرون يعلمون يكفر ،(مجموع الفتاوی فارسی ج ۳ ص ۵ باب العقايد فتاوی حقانيه ج ۱ ص ۱۶۳، پښتو ،ص ۳۳۷ دبريلوي ډلې يادونه)

۲۲- مفتي الثقلين محمد فريد رحمه الله فرمايلي دي چې: (۱) دغير الله څخه غايبانه حاجتونه غوښتل.

(۲)يا دغير الله لپاره دتسلط غيبي عقيده لرل.

(۳) يا دا عقيده لرل چې الله تعالى كوم كس دخلكو دحاجتونو دحل كولو لپاره مقرر كړی دی (باذن الله مشكل كشا عقيده لرل)

(۴) يا دغير الله په باره كې دا عقيده لرل چې دده دعا ضرور قبليږي دا ټول شركيات دي. (فتاوی فريديه ، باب الكرامات ج ۱ص ۵۴۱)

همدارنګه فرمايی چې: د غير الله څخه دكومک غوښتونكي مشرک باندې رد كول په علماوو فرض دي.(فتاوی فريديه ج ۱ص ۵۴۵)

## دأهل بدعتو (بريلويانو) عقيده

۱-مفتی احمد يار خان نعيمی ليكي چې: اولياء اور انبياء كرام سے مدد مانگنا جائز ہے (جاء الحق ص ۱۹۳)

دأولياؤ او دانبياؤ څخه مدد غوښتل جايز دي دص ۱۹۳ څخه تر ۲۱۳) پورې يې دا بحث كړی دی په ص ۲۰۷ كې يې ليكلي دي چې: دانبياوو او داولياوو څخه مدد غوښتل نه شرک دی او نه دالله څخه بغاوت دی بلكې دقانون الهي او دمنشأ الهي سره بالكل مطابق دی.

## داهل بدعتو اعتراضاتو ته جوابات

**۱- اعتراض: بريلويان وايي چې په استمداد كې مافوق الاسباب او ماتحت الاسباب ته تقسيم او بيا په مافوق الاسباب كې يې د الله تعالى څخه غوښتل او په ماتحت الاسباب كې يې دبنده څخه غوښتل**

**دمجوسیانو سره مشابهت دی.** مجوسیانو کارونه په دوه خدایانو تقسیم کړي وو، یو اهرمن او بل یزدان یو ته یې خالق الخیر ویلې او بل ته یې خالق الشر ویلې.

قلنا: ۱- مونږ الزاماً وایو چې بریلویان په استمداد کې استقلال او عدم استقلال ته تقسیم مني همدارنګه خلق او کسب ته تقسیم مني دخلق نسبت الله تعالی ته مني او دکسب نسبت عبد ته مني نو دا څرنګه د مجوسو سره مشابهت نه دی؟

۲-تحقیقي جواب: په سورة فاتحه کې الله تعالی فرمایي چې (ایاک نستعین) مفسرین فرمایي چې ای فی المهمات کلها نو هر استعانت ظاهري وي او که باطني، په مافوق الاسباب کې وي او که په ماتحت الاسباب کې، مستقل وی او که غیر مستقل، دخلق په درجه کې تر الله تعالی پورې خاص دی، پدې معنی چې دهر شي خالق الله تعالی دی، لکن الله تعالی انسان ته یو صفت ورکړی دی چې صفت الکسب ورته وایي، په مافوق الاسباب امورو کې د انسان هیڅ دخل نشته نه دخلق په لحاظ او نه دکسب په لحاظ یعنې په مافوق الاسباب أمورو کې، عبد نه خالق دی او نه کاسب، لهذا په مافوق الاسباب کې خو مستعان الله تعالی دی او په ماتحت الاسباب أمورو کې عبد خالق نه دی البته کاسب دی لدې وجې یې بندګانو ته نسبت کیږي، نو په ماتحت الاسباب امورو کې هم استعانت دخلق په درجه کې د الله تعالی پورې خاص دی او د کسب په درجه کې هم پدې معنی د الله تعالی پورې خاص دی چې کسب په آلاتو او اسبابو سره کیږي او د اسبابو، الاتو او اعضاوو خالق الله تعالی دی.

شاه عبدالعزیز رحمه الله د استعانت په بحث کې لیکلي دي چې: واګر عام است د أمور دنیا و دین پس وجه این اختصاص انست که هر که غیر خود را اعانت می کند منتهاء کار او انست که در دل او داعیه اعانت آن غیر می آندازند واین فعل فعل او تعالی است پس ګویا بنده میګوید که غیر ترا اعانت من ممکن نیست مګر چون اورا تو اعانت فرمائی تا اسباب اعانت بهم رسناند باز در دل او داعیه اعانت من أندازی پس من از وسایط قطع نظر میکنم وغیر از اعانت تو نمی بینم (تفسیر عزیزی پاره اول صـ ۳۵)

**۲-اعتراض: بریلویان وایي چې په استمداد کې ما فوق الاسباب او ماتحت الاسباب ته تقسیم ندی ثابت؟**

جواب(۱): دمخکنیو حوالو څخه ثابت شو چې په مافوق الاسباب کې دغیر الله څخه استمداد شرک دی.

۲-جواب: د شاه ولي الله رحمه الله د يو عبارت څخه صراحة معلوميږي چې په مافوق الاسباب کې د غير الله څخه استمداد شرک دی شاه ولي الله الدهلوي فرمايي چې: (لاشريک له فی وجوب الوجود ولا فی استحقاق العبادة ولا فی الخلق والتدبير ، فلا يستحق العبادة اى أقصى غاية التعظيم الاهو، ولا يشفى مريضا ولا يرزق رزقا ولا يكشف ضرّاً الا هو، بمعنى ان يقول لشئ كن فيكون لا بمعنى التسبيب العادی الظاهری کما يقال شفى الطبيب المريض ورزق الامير الجند فهذا غيره وان اشتبه فی اللفظ (تفهيمات الهيه ج ١صـ ١٩٧، وفی البعض صـ ١٤٥، تفهيم نمبر ٦٥)

الله تعالى سره نه په وجوب الوجود کې څوک شريک دی، نه ورسره په استحقاق دعبادت کې څوک شريک دی، نه ورسره په خلق کې څوک شريک دی، نه ورسره په تدبير کې څوک شريک دی ، لهذا يواځې الله تعالى مستحق دعبادت دی مريضانو ته يواځې الله تعالى شفاء ورکوي، مخلوق ته يواځې الله تعالى رزق ورکوي د خلکو څخه يواځې الله تعالى مصيبتونه لرې کوي او د الله تعالى ورکړه د ماتحت الاسباب څخه ماسوی ده يعنی په مافوق الاسباب کې ده.

۳-صاحب د ما لابد منه(الشيخ ابو بكر بن محمد عارف خوقير رحمه الله) صراحةً فرمايلي دي چې په مافوق الاسباب کې غير الله ته قادر ويل شرک دی ، الشرک هو اعتقاد ان لغير الله أثرً فوق ما وهبه الله من ا لاسباب الظاهرة وان لشئ من الاشياء سلطاناً عما خرج عن قدرة المخلوقين (مالا بد منه صـ١١)

نو څوک چې د غير الله په باره کې د اسبابو ظاهره وو څخه بالاتر د طاقت عقيده لري او د غير الله قدرت پکې مؤثر ګڼي نو دهغه څخه په مافوق الاسباب کې استمداد کوي.

۴-په شرح العقائد کې د اهل سنت والجماعت عقيده داسې ذکر شوې ده چې خالق، الله تعالى دی او کاسب عبد دی او بيا يې دخلق او دکسب په مابين کې داسې فرق کړی دی چې: (ان الكسب واقع بآلة والخلق لا بآلة(شرح العقائد صـ ٦٦)

يعنې کسب سبب او آلې ته محتاج وي، بيا آله عامه ده ظاهري وي او که باطني او خلق آلې ته نه وي محتاج ،نو ماتحت الاسباب هغه شی دی چې قدرت کاسبه دعبد ورپورې متعلق کيدلی شي ، خلاصه دا چې کسب ماتحت الاسباب دی او عبد ته منسوبيږي نو د عبد هرڅه ماتحت الاسباب دي(عبد کاسب دی، د دې دوهم تعبير دا شو چې عبد ماتحت الاسباب کارونه کوي) نو دعبد څخه به هغه شی غواړې چې

ماتحت الاسباب وي او خلق ما فوق الاسباب دی او الله تعالی ته منسو بيږي نو مافوق الاسباب به د الله تعالی څخه غواړي.

**۳-اعتراض: بريلويان وايي چې د استعانت د جواز او عدم جواز مدار استقلال اوعدم استقلال دی،** مافوق الاسباب او ماتحت الاسباب نه دی او بيا وايي چې د ديوبنديانو شيخ الهند محمود الحسن رحمه الله هم د اياک نستعين په تفسير کې ليکلي دي چې که يو مقبول بنده غير مستقل وګڼي او د الله تعالی د رحمت لپاره يې وسيله وګڼي او ظاهري استعانت ترينه وکړي نو دا جايز دی، ځکه چې دا په حقيقت کې د الله تعالی څخه استعانت دی؟

جواب: دا د بريلويانو کم علمي ده، چې ماتحت الاسباب او غير مستقل دوه جدا جدا أمور ګڼي، مونږ وايو چې د ماتحت الاسباب او دغير مستقل الفاظ جدا جدا دي لکن مأل د دواړو يو دی، ځکه چې علامه تفتازاني رحمه الله د خلق او د کسب په مابين کې دوه فرقه داسې کوي چې: ان الکسب واقع بآلة والخلق لا بآلة (شرح العقائد صـ ٦٦)

يعني کسب سبب او آلې ته محتاج وي او خلق سبب او آلې ته نوي محتاج او بيا يې فرمايلي دي چې: والکسب لايصح انفراد القادر به والخلق يصح (شرح العقائد صـ ٦٦)

صاحب د نبراس ددې په تشريح کې فرمايي چې: لان قدرة العبد غير مؤثرة فلايصدر منه الفعل الا بقدرة الله والخلق يصح فان الله سبحانه يخلق مايشاء بلا حاجة الی کسب العبد (نبراس صـ ٢٧٨)

يعني کسب نه مؤثر دی او نه پکې عبد مستقل دی او خلق مؤثر دی او خالق پکې مستقل دی، نو کسب ماتحت الاسباب هم دی او کاسب پکې غير مستقل هم دی.

نو خلاصه دا چې متکلمين کله په خلق او کسب سره تعبير کوي کله په استقلال او عدم استقلال سره تعبير کوي او کله په مافوق الاسباب او ماتحت الاسباب سره تعبير کوي، نور کسب، عدم استقلال او ماتحت الاسباب په مأل کې يو شی دی.

**۴-اعتراض: اهل سنت والجماعت فرمايي چې** دغير الله څخه په ماتحت الاسباب او امور عاديه وو کې استعانت جايز دی، امور عاديه ديته وايي چې عادةً د انسان په اختيار کې وي، نو د اختيار څخه کوم

اختیار مراد دی؟ که اختیار علی وجه الایجاد مراد وي نو دا خو شرک دی او که علی وجه الکسب مراد وي نو بیا خو دا کسب په امورو غیرو عادیه وو کې هم شته نو بیا پدې کې ولې استعانت شرک دی؟

قلنا: د امور غیر عادیه وو سره چې معجزات او کرامات هم پکې داخل دي، دبنده دکسب تعلق نشته، کسب خو داسبابو سره تعلق لري (شرح العقائد صـ ۶۶) نو د مافوق الاسباب امورو سره به یې څرنګه تعلق راشي؟

**۵-اعتراض: اهل السنت والجماعت فرمايي چې: په ما فوق الاسباب کې غيرالله قادر بالعطاء ګڼل شرک دی،** څوک چې غیر الله ته عطائی اختیارات ثابتوي اوپه مافوق الاسباب کې ترینه کومک غواړي نو دامشرک دی، اوشرک خو دیته وایی چې دالله(تعالی) سره په کوم خاص صفت کښې غیر الله شریک کړی حالانکی عطائی قدرت او عطائی اختیار خو بالکل دالله تعالی صفت نه دی، همدارنګه تاسو وایی چې دمتوفی او بعید څخه استمداد شرک دی، نو الله تعالی خو مړ او بعید نه دی بلکی (حی قیوم)دی او دشارک څخه هم نږدې دی.

قلنا: خالق الله تعالی دی او کاسب عبد دی او دکسب تعلق داسبابو سره وي، شرح العقاید صفحه ٦٦ نو عبدته ماتحت الاسباب أمور منسوبیږي، په مافوق الاسباب أمورو کښې دبنده کسب او فعل لره دخل نه شته، بلکی مافوق الاسباب أمور خاص دالله تعالی فعل دی نو غیرالله ورسره پکښې شریکول دالله تعالی په خاص فعل کښې دغیر الله شریکول دي، داسې هم ویلی شئ چې دمافوق الاسباب پورې خلق متعلق کیږي ، ځکه چې خلق اسبابوته نه وي محتاج، نو دغیر الله څخه په مافوق الاسباب کې کومک غوښتل غیرالله خالق ګڼل دی او غیر الله خالق ګڼل شرک دی ځکه چې خلق دالله تعالی خاص صفت دی.

**٦-اعتراض: اهل سنت والجماعت په ماتحت الاسباب امورو کښې دغیرالله څخه استعانت ته جائز وایي، نو سوال دادی چې په ماتحت الاسباب أمورو کښې استعانت مطلقاًجائز دی؟** اوکه دعدم استقلال داعتقاد په حیث جایز دی؟ په اول تقدیر غیرالله مستعان بالذات شو اوغیرالله مستعان بالذات ګڼل شرک دی، اوپه دوهم تقدیر مدار دجواز استقلال او عدم استقلال شو نو غیر الله چې مستعان بالذات او مستقل ونه ګڼي نوپه ماتحت الاسباب او مافوق الاسباب دواړو کښې ترینه استعانت جائز شو.

۱

قلنا: په ماتحت الاسباب أمورو کښې دبنده کسب او فعل وي، لهذا په دې أمورو کښې دبنده څخه استعانت جایز دی او مخکی ذکر شو چې په کسب کښې بنده مستقل او منفرد نه وي، بلکی د الله تعالی خلق ته محتاج وي ، نو کسب عدم استقلال او ماتحت الاسباب یو شئ دی، بنده کاسب دی او کسب ألاتو ته محتاج وي او کاسب پکې مستقل نه وي،( شرح العقاید صفحه ٦٦ )لهذا دبنده څخه استعانت په ماتحت الاسباب أمورو کښې شو اوبنده په کې مستقل نه شو اوپه مافوق الاسباب أمورو کښې دبنده فعل نه شته بلکی دالله فعل دی، اودالله تعالی په فعل کښې غیر الله شریکول کفر او شرک دی.

**٧-اعتراض: په شرح العقاید صفحه ٥٦ کښې دشرک دوه صورتونه ذکر شوي دي** اودغیر الله څخه په مافوق الاسباب کښې استمداد په دغو دوو صورتونو کې نه شته.

قلنا: په شرح العقاید کښې چې دشرک کوم دوه صورتونه بیان شوي دي، نو دهغې دا معنی نه ده چې شرک په همدې دوو صورتونو کې منحصر دی، بلکی مطلب دادی چې د شرک دا دوه صورتونه عام دي ، الله تعالی فرمایي چې (وَاِنَّ الشَّيٰطِيْنَ لَيُوْحُوْنَ اِلٰٓى اَوْلِيٰٓـِٕهِمْ لِيُجَادِلُوْكُمْ ۚ وَاِنْ اَطَعْتُمُوْهُمْ اِنَّكُمْ لَمُشْرِكُوْنَ ۝) پاره ٨ نو الله تعالی دشیاطینو اطاعت ته شرک ویلی دی، او دشیاطینو اطاعت دشرح العقاید په بیان کرده دوو صورتونو کښې نه شته (٢) شاولی الله الدهلوي رحمه الله فرمایي: چې شرک دیته وایي چې دالله تعالی په خاصو صفاتو کښې ورسره غیر الله شریک کړی (٣) مخکی مونږ د تفهیمات الهیه، حجة الله البالغه، ارشادالطالبین وغیره کتابونو ډیر عبارات لیکلی دي چې دغیر الله څخه په مافوق الاسباب کې استمداد ته یې شرک ویلی دي.

## مَظَاهر

**٨-اعتراض:** مولوي نعیم الدین بریلوي لیکلي دي چې: ایاک نستعین میں یہ تعلیم فرمایے کہ استعانت خواہ بواسطہ ہو یا بے واسطہ ہر طرح اللہ تعالی کے ساتھ خاص ہے، حقیقی مستعان وہی ہے ، باقی آلات وخدام واحباب وغیرہ سب عون الہی کے مظہر ہے بندی کو چاہے کہ اس پر نظر رکھے اور ہر چیز میں دست قدرت کو کارکن دیکھے اس سے یہ سمجھنا کے اولیاء وانبیاء سے مدد چاہنا شرک ہے عقیدہ باطلہ ہے کیونکہ مقربان حق کے امداد الہی ہے استعانت بالغیر نہیں.

استمداد دالله تعالى څخه استمداد حاصل داچې انبياء او أولياء مظاهر د عون الهي دي، نو ددوي څخه استمداد دالله تعالى څخه استمداد دى دغير الله نه دى، نو مستعان حقيقي الله تعالى دى او د انبياءو او اولياوو څخه استمداد صرف پدې معنى دى چې دا مظاهر دعون الهي دي. دى دغير الله څخه نه دى او ددوي امداد دالله تعالى امداد دى دغير الله نه دى، نو مستعان حقيقي الله

قلنا(۱):همداسې عقيده دمشركانو وه، شاه عبدالعزيز رحمه الله دسورة نوح په تفسير كښې فرمايلي دي چې: ولا يغوث يعنى ومگزاريد بالخصوص يغوث راكه مظهر فريادرسي ومشكل كشائى آو تعالى است واين مظهر را قوم نوح عليه السلام به صورت آسپى ساخته بودند زيراكه آسپ دردويدن وزودرسيدن واعانت نمودن مثل است واين صفت رادرشرع (غياث المستغيثين ومجيب دعوت المضطرين) نامند وبزبان هندي اين مظهر را اندر نامند، وَيَعُوْقَ يعنى ومگزاريد يعوق راكه مظهر منع وحمايت ودفع بلااست واين صفت را درشرع (كاشف الضر ودافع البلاء) گويند اه تفسير عزيزى پاره ۲۹ صفحه ۱۳۰.

دهغه وخت مشركانو به «لات» او «منات» او «عزات» مظاهر العون گڼل او مافوق الاسباب استمداد به ئې ترينه كولو اودنن سبا مشركان انبياء او اولياء مظاهر العون گڼي او په مافوق الاسباب اموروكښې ورڅخه استمداد كوي، همدارنگه شاه عبدالعزيز رحمه الله د (لا تذرن) په تفسير كې ليكلي دي چې: يعنى هرگز مگزاريد عبادت مظاهر اوراكه در آن مظاهر ها الوهيت خود ظهور فرموده است وبهمين ظهور للاهيت درآنها آن مظاهر شده آند (تفسير عزيزي پاره ۲۹ صفحه ۱۲۹).

(۲) په اياک نستعين كښې تقديم دمفعول داختصاص لپاره دى، بل طرفته په ماتحت الاسباب او آمورو عاديه ووه كښې استعانت من غير الله په قران كې ثابت دى لكه ( فَاَعِيْنُوْنِيْ بِقُوَّةٍ) دارنگه (مَنْ اَنْصَارِيْٓ اِلَى اللّٰهِ) نو ضرور په اياک نستعين كې استعانت فى مافوق الاسباب دالله تعالى پورې خاص دى نو دشرک فدايان چې پدې ايت كښې داتفسير كوي چې انبياء او اولياء مظاهر دعون الهي دي لهذا دوي څخه استمداد دالله تعالى څخه استمداد دى، نو بعينه همداسې تفسير خو په اياک نعبد كې هم كيدلى شي چې آنبياء او اولياء مظاهر دتقرب الهي دي لهذا د دوي عبادت دالله تعالى عبادت دى. نو آيا دا تفسير به صحيح وي؟ كه صحيح وي نو بيا ولې غير الله ته لمونځ نه كوئ؟ ولې غير الله ته روژې نه نيسئ؟ ولى غير الله ته حج نه كوئ؟

(۳) انبياء او اولياوو چې مظاهر العون شو اوبيا ددوي څخه استمداد دالله تعالى څخه استمداد شو دغير الله څخه نه شو او ددوي امداد دالله تعالى امداد شو دغير الله امداد نه شو نو داخو دالله تعالى او

دمخلوق په مابين کښې اتحاد شو، دعيسويانو دعقيدې په شان دالله تعالى او دغيرالله په مابين کښې اثنينيت ختم شو.

**فانقيل: په دوهم جواب باندې اعتراض واردېږي چې قِرَان فی الذکر قِرَان فی الحکم لره نه وي مستلزم**، مثلاً (فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَ اٰتُوا الزَّكٰوةَ) د صلوة او زکات په مابين کښې قِرَان فی الذکر دی لکن قران فی الحکم نه شته، لمونځ د ورځې پنځه وخته فرض دی او زکات په کال کې يو ځل فرض دی، لهذا په اياک نستعين کښې داتفسير جائز دی چې انبياء او اولياء مظاهر دعون الهي دي، نو ددوي څخه استمداد دالله تعالى څخه ستمداد دی او اياک نعبد په اياک نستعين مه قياسوه چې انبياءوو او اولياوو ته مظاهر دتقرب الهي ووايي او ددوي عبادت ته عين دالله عبادت ووايي، همدارنګه عبادت سبب او استعانت مسبب دی، لهذا يو په بل يې قياس نه دی صحيح.

قلنا: زمونږ استدلال په دې باندې نه دی بناء چې مونږ قران فی الذکر قران فی الحکم لره مستلزم ګڼو، بلکې زمونږ استدلال په دې بناء دي چې په اياک نستعين کښې تقديم دمفعول دحصر لپاره دی نو که پدې حصر کښې تاسو دا احتمال راوباسی چې مستعان حقيقي الله تعالى دی او دانبياوو او اولياوو څخه استمداد صرف پدې اعتبار سره دې چې دا مظاهر العون دي، نو بيا سوال دادی چې په اياک نعبد کښې هم تقديم دمفعول دحصر لپاره دی نو په دې کښې ولې دا احتمال نه دې صحيح چې معبود حقيقي الله تعالى دی او انبياء او اولياء مظاهر التقرب دي لهذا انبياوو او اولياوو ته عبادت صرف پدې اعتبار سره دی چې دا مظاهر التقرب دي؟

فانقيل: چې په دريم جواب باندې اعتراض واردېږي چې موسي عليه السلام ته دونې څخه اواز وشو چې: (اِنَّنِيْٓ اَنَا اللّٰهُ) نو دلته ونه دکلام الهي لپاره مظهر وه خو بيا هم اثنينيت باقي وو، همدارنګه په مشکوة صفحه ١٩٧ کې ديو حديث الفاظ داسې دي چې: فکنت سمعه الذی يسمع بی (الحديث).

ددې مطلب دادی چې دا محبوب بنده دالله تعالى د تصرفاتو مظهر شي نو مظهريت شته خو عيسويت نشته ځکه چې مظهريت عدم اثنينيت لره ندی مستلزم؟

قلنا: ١- انبياء او اولياء چې د الله تعالى مظهر العون شو، نو اوس يې ايا د الله تعالى سره مغايرت دى او كه اتحاد؟ كه اتحاد وي نو اثنينيت ختم شو او عيسويت راغلو، او كه مغايرت وي، نو بيا د اياک نستعين په خلاف استمداد من غير الله راغلو.

٢- يو د الله تعالى وجود دى او بل وجوب الوجود دى، نو دا ټول كائنات د الله تعالى د وجود مظاهر دي، ځكه چې دا ټول د الله تعالى د وجود لپآره دلايل اينيه دي، لكن د الله تعالى د وجوب الوجود مظهر پدې كايناتو كې هيڅ شى هم ندى د وجود لپاره د مظهريت په صورت كې مغايرت باقي پاتې كيږي او د وجوب الوجود لپآره د مظهريت په صورت كې مغايرت او اثنينيت ختميږي،

شاه عبدالعزيز رحمه الله فرمايي چې: آرى ظهور حق درين مظاهر بمحض وجود البته مسلّم است اما محض وجود بدون وجوب وجود عام است جميع موجودات راكه بسبب آن ظهور بعض موجودات استحقاق معبوديت بعض آخر ندارند والا ترجيح بلا مرجح لازم ايد يا عابد را معبود شدن ومعبود را عابدشدن وهردو آمر محال وممتنع است (تفسير عزيزى پاره ٢٩، صـ ١٣٠)

يعنې د الله تعالى ظهور پدې مظاهرو كې يواځې د وجود په لحاظ سره دى، لكن د وجوب څخه بغير يواځې وجود ټولو موجوداتو ته عام دى چې ددې ظهور په وجه بعضې موجودات د بعضو نورو لپاره استحقاق دمعبوديت نه لري كه نه ترجيح بلا مرجح به راشي يا به لازم شي كون العابد معبوداً وكون المعبود عابداً او دا دواړه محال او ممتنع دي.

خلاصه: دا چې فقط دوجود د الله تعالى لپاره دا ټول كاينات مظاهر دي، لكن پدې اعتبار سره مظهريت تاسو ته مفيد نه دى ځكه چې بيا ولې يواځې د انبياوو او اولياوو څخه كومک غواړئ؟ مظاهر خو ټول كاينات دي، همدارنګه پدې اعتبار سره د الله تعالى او ددې مظاهرو په مابين كې مغايرت باقي پاتې كيږي نو دا ياک نستعين په خلاف استمداد من غير الله راځي او په كوم اعتبار سره چې مظهريت تاسو ته مفيد دى چې غيريت ختم شي يعنې چې د وجوب الوجود لپاره مظهر شي نو داسې مظهريت محال دى.

٣- د(كنت سمعه) او موسى عليه السلام ته چې دونې څخه د (إِنِّيٓ أَنَا اللّٰهُ) اواز راغلو نو دا د باب د تجلى څخه دى، د صوفيه كرامو په اصطلاح كې د تجلىٓ ډير اقسام دي لكه تجلى ذاتي، تجلي صفاتي، تجلى

افعالي، په تجلّی صفاتي کې که دصفاتو جلالیه وو تجلّی راشي نو په سالک باندې د خشوع او دخضوع غلبه راځي او که د صفاتو جمالیه و تجلّی راشي نو په سالک باندې دسرور او دأنس غلبه راځي (تعلیم الدین ص۸۲) لکه په طور چې تجلي شوې وه او موسی علیه السلام بې هوشه شوی وو، ددې تجلّی څخه دا ثابتول چې ونه معاذ الله دالله سره داسې متحده شوې وه چې غیریت نه وو پاتې ډیر حماقت دی.

سید محمد انور شاه الکشمیري رحمه الله د (کنت سمعه الذی یسمع بی) په تشریح کې فرمایلي دي چې (فاعلم أن التجلیّ ضروب وأمثال تقام وتنصب بین الرب وعبده لمعرفته تعالی فتلک مخلوقة وهی التی تسمی برؤیة الرب جل مجده وهذا کما فی القران العزیز فی قصة موسی علیه السلام فلما جاءها نودی أن بورک من فی النار فالمرئی والمشاهد لم یکن الا النار دون ا لرب جل مجده ولکن الله سبحانه لما تجلیّ فیها قالَ یموسی انیْ أناالله و ما رأیت لفظا موهما فی سایر القرآن أزید من هذا فانظر فیه أنه کیف سمع صوتا من النار انی أنا الله فهو نار ثم صح قوله انی أنا الله ایضاً فالمتکلم فی المرئی کان هو الشجرة ثم اسند تکلمها الی الله وذلک لان الرب جل مجده لما تجلی فیها صارت الواسطة لمعرفته اياه هی الشجرة فأخذ المتجلی فیه حکم المتجلی بنفسه بنحو تجرید وهذا الذی قلنا فیما سبق أن المرئی فی التجلی لاتکون الا الصور والمرئی یکون هو الذات (الی قوله) فامثال تلک الاحادیث عندی ترجع الی مسألة التجلی فان فهمت معنی التجلی کما هو حقه وبلغت مبلغه فدع الامثال والصور المنصوبة وارق الی ربک حنیفا فانه اذا صح للشجرة الخ (فیض الباری ج ٤صـ ٤٣٨)

پوه شه چې دتجلّی لپاره ډیر اقسام دي، چې دالله تعالی د معرفت لپاره دالله تعالی او دبنده په مابین کې قایم دي او مخلوق دي، او دا تجلی هغه ده چې دالله په روئیت سره مسمی ده او دا لکه څرنګه چې دموسی علیه السلام په قصه کې راځي چې کله موسی علیه السلام او ورته راغلو نو اواز راغلو چې برکت کړی شوی دی په هغه چې په اور کې دی، نو هلته صرف د أور مشاهده کیدله د الله تعالی مشاهده نه کیدله ،لکن چې کله الله تعالی په اور باندې تجلّی أچولې وه نو وې فرمایل چې زه الله یم، او ما په ټول قرآن کې ددې څخه زیات بل موهم لفظ نه دی لیدلی نو پدې کې فکر وکړه چې موسی علیه السلام څرنګه د اور څخه د انی أنا الله اواز واوریدلو؟ هغه خو اوور وو او د انی أناالله اواز هم صحیح دی، نو په

ښکاره ونې خبرې کولې او بیا دا خبرې الله تعالی خپل ذات ته منسوبې کړې ځکه چې کله الله تعالی په ونه کې تجلی وکړه نو ونه د الله تعالی دمعرفت ذریعه شوه نو په کوم شي کې چې تجلی وشوه نو هغه شی بنفسه د تجرید په طریقه د تجلی کونکي په حکم کې شو او دا هغه خبره ده کومه چې مونږ مخکې وکړه چې په تجلی کې صور لیدل کیږي او مقصود ذات وي (او بیا مخکې لیکي) چې دا قسم احادیث زما په نیز تجلی ته راجع دي که تا دتجلی معنی زده کړه او حقیقت ته یې ورسیدلې نو امثال او صور منصوبه پریږده او دخپل رب طرفته مایل لاړ شه چې کله ددې ونې څخه د انی انا الله اواز اوریدل کیږي نو انسان چې اشرف المخلوقات دی ( وخلقه الله علی صورته ) د شجرې څخه کم ندی نو دده په غوږونو پوزې وغیره اعضاوو کې به متصرف صرف الله تعالی وي.

شاه صاحب د علماء الشریعت څخه ددې حدیث معنی رانقل کړې ده او په صوفیانه انداز باندې یې داسې بیان کړی ده چې: (قلت وهذا عدول عن حق الالفاظ لان قوله کنت سمعه بصیغة المتکلم یدل علی أنه لم یبق من المتقرب بالنوافل الاجسده وشبحه وصار المتصرف فیه الحضرة الالهیة فحسب وهو الذی عناه الصوفیة بالفناء فی الله ای الانسلاخ عن دواعی نفسه حتی لایکون المتصرف فیه الا هو وفی الحدیث لمعة الی وحدة الوجود (فیض الباری ج ٤صـ ٤٣٨)

زه وایم چې دا د الفاظو د حق څخه اعراض دی ځکه چې په (کنت سمعه) کې د متکلم صیغه پدې دلالت کوي چې دمتقرب بالنوافل صرف صورت او جسم باقي پاتې کیږي اوپده کې تصرف کونکی صرف دالله تعالی ذات وي، صوفیه کرام دې ته فنا فی الله وایي، یعنې دخپل نفس د دواعیو او محرکاتو څخه جدا کیدل تر دې چې پدې کې تصرف کونکی ذات صرف الله تعالی وي او پدې حدیث کې وحدة الوجود ته اشار ده، نو دشاه صاحب د تشریح خلاصه داشوه چې کله چې په ډیرو نوافلو سره دانسان خواهشات مغلوب شي نو بیا دده په اندامونو کې الله تعالی تصرف کوي او بنده بې طاقته شي د ا معنی نده چې بنده او خالق یو دبل سره یو شي.

**فانقیل: چې شاه عبدالعزیز رحمه الله دایاک نستعین په تفسیر کې غیر الله تعالی ته مظهر العون ویلو او بیا ترینه استمداد ته جایز ویلي دي** ،شاه عبدالعزیز رحمه الله په یو ځای کې لیکي چې : واگر التفات محض بجانب حق آست، و اورا یکی از مظاهر عون دانسته در حقیقت این نوع استعانت

بغير نسبت بلکی استعانت بحضرت حق است لاغير، وانبياء واولياء اين نوع استعانت بغير کرده اند (تفسير عزيزی پاره ١ صـ٣٧)

يعني که توجه صرف الله تعالى ته وي او غير الله مظهر العون وګڼي نو دا په حقيقت کې استعانت بالغير ندی، بلکې د الله تعالى څخه استعانت دی او انبياو اواولياوو دا قسم استعانت بالغير کړيدی.

قلنا: د شاه عبدالعزيز رحمه الله پدې مجمل عبارت کې د عالم الاسباب ظاهري استعانت مراد دی، يعنې په ماتحت الاسباب أمورو کې په ظاهر کې د امير او بادشاه څخه استعانت وي. ، لکن دا هم په حقيقت کې د الله تعالى څخه وي، ځکه چې ددوي په زړونو کې داعيه د امداد الله تعالى أچولې ده، همدارنګه دمريضی په صورت کې د دوايانو څخه استعانت په حقيقت کې د الله تعالى څخه استعانت دی، ځکه چې په دوايانو کې اثر الله تعالى اچولی دی او دا ځکه چې د شاه عبدالعزيز په عبا راتو کې ددې خبرې تصريح ده چې دغير الله څخه استعانت په ماتحت الاسباب او امورو عاديه وو کې کيږي هغه فرمايي چې: و او را يکی از مظاهر عون دانسته ونظر بکار خا نه اسباب وحکمت او تعالی نموده الخ (تفسر عزيزی صـ٨)

په دې عبارت کې (نظر بکارخانه اسباب) صريح دی په دې کې چې دشاه عبدالعزيز حمه الله خبره په امور عاديه وو او ماتحت الاسباب کې ده، شاه صاحب فرمايي چې: وا ستعانت يا بچيز يست که توهم ا ستقلال آن چيز در وهم وفهم هيچ کس از مشرکين و موحدين نمی ګزرد مثل استعانت بحبوب وغلات در دفع ګرسنګی واستعانت بآب وشربتها در دفع تشنګی واستعانت برای راحت بسايه درخت ومانند آن و در دفع مرض بادويه وعقاقير ودر تعين وجه معاش بآمير وبادشاه که در حقيقت معاوضه خدمت بمال است وموجب تذلل نيست يا بأطباء ومعالجان که بسبب تجربه واطلاع زايد آز آنها طلب مشوره آست واستقلالی متوهم نميشود پس اين قسم استعانت بلا کراهت جايز است زيراکه درحقيقت استعانت نيست واګر استعانت است ، استعانت بخدا است ، (تفسير عزيزی صـ ٣٨)

اوا استعانت يا ددا سې شي څخه کيږي چې د هغه استقلال دهيچا (موحد وي او که مشرک وي) په فهم او وهم کې نوي تير شوی، لکه د ولږې په دفع کولو کې د دانو او غَلو څخه استعانت او دتندې دختمولو لپاره د اوبو او شربتونو څخه استعانت او دخوب لپاره د ونې دسوري څخه استعانت او دمريضی د

ازالې لپاره د دواګانو او بوټو څخه استعانت او د معاش دوجې دتعین لپاره د امیراو دبادشاه څخه استعانت چې دا په حقیقت کې دخدمت مالي معاوضه ده او موجبه د تذلل نه ده یا دحکیمانو او علاج کونکو څخه استعانت چې دهغوي دتجربې او زیاتی خبرداری له وجې دهغوي څخه دمشورې غوښتل دي او دلته د استقلال توهم نه کیږي نو دا قسم (ماتحت الاسباب) استعانت بلا کراهیته جایز دی ځکه چې دا په حقیقت کې استعانت نه دی (صرف ظاهري استعانت دی) او که دا استعانت وي نو صرف دالله تعالی څخه استعانت دی (انتهی)

نو شاه صاحب په ماتحت الاسباب امورو کې دغیر الله څخه ظاهري استعانت ته جایز ویلي دي.

حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله دکافرانو د باطلو عقیدو په تردید کې لیکلي دي چې: واگر کافران گویند که معبودان ما مظاهر صفات کامله الهی آند وبا او اتحاد نسبت مظهر باظاهر دارند نه مغایرت ومقابله (الی قوله) گویم این نیز خیال باطل شما است آه (تفسیر عزیزی پاره ۲۹ صـ ۴۹) او که کافران دا ووایي چې زمونږ معبودان د الله د صفاتو کمالیه وو مظاهر دي او دالله تعالی سره نسبت د اتحاد د مظهر د ظاهر سره لري نه د مغایرت او د مقابلې (بیا مخکې لیکي) چې مونږ وایو چې ستاسو دا خیال باطل دی (انتهی)

نو شاه صاحب غیر الله ته داسې مظهر ویل چې غیریت پکې ختم شي باطل او دکافرانو عقید وایي، شاه صاحب په یو ځای کې لیکلي دي چې : توضیح این مقام انست که بنده را بظاهر قدرتی داده آند که بسبب آن قدرت گمان می کند که کردن وناکردن بدست من است لکن ترجیح فعل بر ترک هرگز او را از خود میسر نیست ، زیراکه اگر مرجح از جانب بنده باشد در آن مرجح نیز سخن خواهد بود تا آنکه تسلسل لازم آید پس آن مرجح نمی باشد الا از جانب خدا پس استعانت لایق نیست الا از خدا ونیز دیده ایم که جمیع خلایق مطلوبات خود را طلب می کند حالانکه در قدرت و عقل وشعور وکوشش وجد واجتهاد هیچ کس قصور نمی کند و بمطلب نمی رسند الا بعض ایشان پس حصول مطلب نیست الا باعانت غیبی ونیز بارها دیده شده که انسان آز از انسان دیگر حاجتی را طلب نموده ، وان شخص مدتها یی مدیده مدافعت کرده و بلیت ولعل گزرانیده باز ناگاه حاجت او ر ا بر آورده از هیمن جا معلوم شد که القای داعیه انجاح در قلب آن شخص از جانب غیب است پس مرد مؤمن را که از شرک می گریزد از اول وهله باید که

اعانت غیر راکه بظاهر اعانت است و درمعنی اصلاً قدرت ندارد از نظر بینداز‌د وبا اعانت قادر حقیقي اکتفا نماید گویند که چون خلیل علیه السلام را نمرود لعین دست وپا بسته در آتش انداخت حضرت جبریل علیه السلام در رسیدند وگفتند اگر ترا حاجتی بمن باشد بفرما حضرت خلیل علیه السلام درجواب فرموده که بسوی توحاجت ندارم حضرت جبریل علیه السلام گفت که بخدا التجا کن ، حضرت خلیل فرمود او دانائی نهان واشکار است حاجت عرض من نیست (تفسیر عزیزی صـ۳۵)

ددې مسئلې توضیح داده چې انسان ته الله تعالی په ظاهر کې قدرت ورکړې دی، ددې قدرت په وجه گمان کوي چې کول او نه کول زما په اختیار کې دي، لیکن ترجیح د فعل په ترک هیڅکله له خپل جانب څخه حاصله او میسره نه ده ځکه چې که مرجح د بنده له طرفه شي نو بیا پدې مرجح کې کلام کیدلی شي چې ددې مرجح د فعل ترجیح په ترک باندې د کوم ځای څخه راغلې ده ؟ چې ددې څخه تسلسل لازمیږي لهذا هغه مرجح به صرف د الله تعالی له طرفه وي، نو دالله تعالی څخه بغیر دبل چا څخه استعانت مناسب نه دی ، همدارنگه مونږ گورو چې هر مخلوق خپل حاجت طلبوي او دحاجت په حاصلولو کې په خپل قدرت، عقل شعور کوشش او په جد او اجتهاد کې هیڅ کمی نه کوي، لکن بیا هم بعضې مطالب نه حاصلیږي نو د مطلوب حاصلیدل بغیر د اعانت غیبي د الله تعالی څخه ممکن نه دی، همدارنگه کله یو څوک د بل چا څخه تر ډیره وخته پورې خپل حاجت طلبوي او هغه یې دحاجت په پوره کولو کې تأخیر اولیت او لعل کوي بیا یې دفعةً حاجت پوره کړي نو ددې ځای څخه معلومه شوه چې دده په زړه کې دحاجت د پوره کولو خیال راتلل د غیب له طرفه دي نو مؤمن انسان ته چې دشرک څخه تختي پکار دی چې د اول څخه د غیر الله ظاهري اعانت نظر انداز کړي او دقادر حقیقي په اعانت باندې اکتفاء وکړي، مشر ان فرمایي چې نمرود لعین چې دابراهیم علیه السلام پښې اولاسونه وتړل او اور ته یې واچولو نو جبریل علیه السلام ورته راغلو اوورته وې فرمایل چې زما لایق که کوم حاجت او خدمت وي نو ووایي حضرت ابراهیم علیه السلام ورته وفرمایل چې تاته مې هیڅ حاجت نشته ، جبریل علیه السلام ورته وفرمایل چې الله تعالی ته سوال وکړه ،ابراهیم علیه السلام وفرمایل چې هغه جل جلاله په ظاهر او باطن عالم دی زماد سؤال ضرورت نشته انتهی.

ددې ځخه معلومه شوه چې دغير الله تعالى ځخه استمداد په ماتحت الاسباب کې دی هغه (غير الله) ذي روح وي او که غير ذی روح لکه دواياني، حتی چې د جبريل عليه السلام ځخه په ماتحت الاسباب کې استمدا د دی که دابراهيم د اجازت ځخه وروسته جبريل عليه السلام دعا کولې نو دا به دحاضر دعا وی او دوعا کول هم ماتحت الاسباب أمر دی.

خلاصه دا چې دشاه صاحب ددې صريحو عباراتو په موجودګۍ کې دمجمل عبارت څه چې دسياق او دسباق ځخه يې جدا کړې وي صرف دعوامو دوهکه کول دي، شاه صاحب د (لايزال عبدي يتقرب اليّ) په تشريح کې فرمايلي دي چې: لکن اين طريق تقرب خاص بذات او تعالى است اگر کسى خواهد کی باين طريق بيکی از مخلوقات تقرب پيدا کند ممکن ومطرد نيست وسببش آن ست که درين نوع تقرب متقرب اليه را دوچيز می بايد.

اول: احاطه علمي باذکار قلبيه ولسانيه ذاکرين باوصف تخالف أمکنه وأزمنه و مدارک وألسنه تا ذکر قلبي ولسانی هر ذاکر رامعلوم کند.

دوهم: قوت نزديک شدن و درمدرکه او در آمدن وآنرا پُر کردن، وحکم صفت آن پيدا کردن که در عرف شرع آن را دُنُو وتَدَلّی ونزول وقرب خوانند واين هردو صفت خاصه ذات پاک او تعالى است هيچ مخلوق را حاصل نيست آری بعض کفره در حق بعض از معبودان خود وبعض پير پرستان آز زمره مسلمين در حق پيران خود امر أول راثابت می کنند و دروقت احتياج بهمين اعتقاد بآنها استعانت می نمايد أما مطردنمی باشد (الی قوله) وديگر مخلوقات هر چند روحانيات باشد أول علم محيط ندارندکه بر ذکر هر ذاکر مطلع شوندالخ (تفسير عزيزى پاره ۲۹ صـ ۱۸۱)

لکن دتقرب دا طريقه دالله تعالى د ذات پورې خاصه ده که ځوک غواړي چې پدې طريقه په مخلوق کې چاته تقرب پيدا کړي نودا ممکنه او جاري نه ده ځکه چې دتقرّب ددې طريقې لپاره په متقرب اليه کې دوه شيان ضروري دي.

اول دا چې داختلاف زماني، اختلاف مکاني، اختلاف لساني، او اختلاف نظري با وجود دهر ذاکر په ذکر قلبي او لساني باندې علم محيط ولري تر ځو چې دهر ذاکر ذکر قلبي او لساني ورته معلوم شي.

دوهم: په متقرب اليه کې صفت د (دُنوا او تدَلی) او نزول او قرب دی، يعنې دنږدې کيدلو قوت او په مدرکه د ذاکر کې د راتللو او دهغې د ډکولو قوت او دهغې دصفت دحکم دپيدا کولو قوت او دا دواړه د الله تعالی خاص صفات دي په مخلوق کې هيڅا ته حاصل نه دی، البته کافران خپلو معبودانو ته او بعضې پير پرست مسلمانان خپلو پيرانو ته اول أمرثابتوي او دحاجت په وخت کې په همدې عقيده دخپلو پيرانو څخه استمداد کوي په هر حال دا جاري نده (بيا مخکې ليکي چې) دالله تعالی څخه بغير بل مخلوق اگر چې ذی روح ولې نه وي اول علم محيط نه لري چې د ذاکر په ذکر خبر شي الخ.
په دې عبارت کې شاه صاحب دا قانون بيانوي چې دهر ذاکر په ذکر باندې علمي احاطه دالله تعالی خاصه ده، همدارنگه هر حاجتمند ته قرب د الله خاصه ده لکن بعضې پير پرستان په علم محيط کې غير الله دالله تعالی سره شريکوي.

اعتراض: شاه عبدالعزيز رحمه الله په تفسير عزيزي ص۸ کې فرمايلي دي چې: لکن در اينجا بايد فهميد که استعانت از غير بوجهی که اعتماد برآن غير باشد واورا مظهر عون الهی نداند حرام است الخ که دغير الله څخه استمداد پداسې طريقه وکړي چې په همدې غير الله اعتماد وکړی او مظهر العون الالهی ورته ونه وايي حرام دی (توضيح البيان)

قلنا: د حضرت شاه عبدالعزيز ټول عبارت داسې دی چې: شيخ سفيان ثوري روزی در نماز شام امامت می کرد، چون اياک نعبد واياک نستعين گفت بيهوش افتاد چون بخود امد گفتند ای شيخ! ترا چی شده بود؟ گفت چون اياک نستعين گفتم ترسيدم که مرا بگويند که ای دروغگو! چرا از طبيب دارومی خواهی؟ واز امير روزی؟ واز بادشاه ياری ميجويی؟ ولهذا بعضی از علماء گفته آندکه مرد رابايد که شرم کند ازانکی روز وشب پنج نوبت در مواجه پروردگار خود استاده دروغ گفته باشد، لکن درين جابايد فهميد که استعانت از غير بوجهی که اعتماد بر آن غير باشد واو را مظهر عون الهی نداند حرام است واگر التفات محض بجانب حق است واورا يکی از مظاهر عون دانسته ونظر بکار خانه اسباب وحکمت او تعالی در آن نموده بغير استعانت ظاهر نمايد دور از عرفان نخواهد بود، و درشرع نيز جايز و روا است، وانبياء و اولياء اين نوع استعانت بغير کرده اند و در حقيقت اين نوع استعانت بغير نيست بلکی استعانت بحق تعالی است (تفسير عزيزی ص۸)

سفیان ثوري رحمه الله يوه ورځ دمابنام دلمانځه امامتي كوله، كله يې چې اياک نعبد واياک نستعين تلاوت كړو نو بيهوشه شو، كله چې په هوش شو نو خلكو ترينه پوښتنه وكړه چې ولې بيهوشه شوې؟ سفيان ثوري رحمه الله فرمايل چې زه دالله تعالى څخه وويريدم چې الله تعالى راته ونه وايي چې دروغ ولې وايې؟ ته خو د طبيب څخه دوايي غواړې د أمير څخه روزي غواړې اود باشاه څخه مدد غواړې، لدې وجې بعضې علماء فرمايي چې انسان ته شرم پكار دى چې په يوه شپه او ورځ كې د الله تعالى په مخكې پنځه وخت دروغ وايي، لكن دلته په دې خبره ځآن پوهول پكار دي چې دغير الله څخه په داسې طريقه مدد غوښتل چې په همدې غير الله باندې اعتماد وشي او مظهر دعون الهى ونه گڼلى شي حرام دي او كه توجه صرف دالله تعالى طرفته وي او غير الله يو دمظاهرو دعون څخه وگڼلى شي او نظر دالله تعالى د اسبابو په كارخانه او حكمت وي او بيا ددې غير څخه امداد وغواړي نودمعرفت څخه لرې نه ده او په شريعت كې هم جايز او روا دى او انبيا وو او اولياءوو داسې قسم استعانت كولو او په حقيقت كې دا دغير څخه استعانت نه دى بلكې دالله تعالى څخه استعانت دى، انتهى.

نو دشاه صاحب دعبارت خلاصه داده چې ۱- سفيان ثوري رحمه الله دغلبة الحال له وجى د طبيب امير او بادشاه څخه ماتحت الاسباب او ظاهري استعانت هم ددې ايت څخه مخالف گڼلو.

۲-دا دسفيان ثوري رحمه الله دغلبة الحال خبره وه په شريعت كې د طبيب څخه دوايي غوښتل د امير څخه ډوډۍ غوښتل او دبادشاه څخه كومک غوښتل يعني ماتحت الاسباب او ظاهري استعانت په ممنوع استعانت كې نه دى داخل.

۳- د شاه عبدالعزيز رحمه الله دا الفاظ چې: او را يكى از مظاهر عون الخ همدې د طبيب، امير اوبادشاه څخه استعانت ته اشاره ده چې دا ماتحت الاسباب او ظاهري استعانت دى او بيا پخپله شاه صاحب پخپلو دغې الفاظو چې (نظر بكار خانه اسباب) دى په خپل مراد باندې تصريح كړې ده چې ظاهري او ماتحت الاسباب استعانت دى.

## په مافوق الاسباب كې د غير الله څخه دكومک دغوښتلو دشرک دلايل

۱-په مافوق الاسباب كې د غير الله څخه كومک غوښتل غير الله خالق گڼل دي ځكه چې علامه تفتازاني رحمه الله فرمايي چې: ان الكسب واقع بآلة والخلق لا بآلة (شرح العقائد صـ ٦٦)

نو ما تحت الاسباب هغه شی دی چې قدرت کاسبه د عبد ورپورې متعلق کیدلی شي او د مافوق الاسباب پورې قدرت خالقه د رب متعلق کیږي.

۲-د غیر الله څخه په مافوق الاسباب کې د استعانت څخه مخکې به دې د همدې مستعان په باره کې عقیده د علم الغیب وي مثلاً چې ته د شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله څخه بچې یا باران غواړې نو اول به د شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله په باره کې دا عقیده لرې چې شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله زما په حال خبر دی او زما پدې استعانت هم خبریږي، حالانکې د غیر الله په باره کې د علم الغیب عقیده لرل کفر دی، الله تعالی فرمایلي دي چې: (وهم عن دعائهم غافلون) او احناف فقهاء د دې عقیدې والا تکفیر داسې کړی دی چې: لَوْتَزَوَّجَ بِشَهَادَةِ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ لَايَنْعَقِدُ وَيَكْفُرُ لِاعْتِقَادِهٖ أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَعْلَمُ الْغَيْبَ (قاضی خان، کتاب النکاح، باب الشهادة ج ۲ ص ۵۷۶، والبحر الرائق ج ۳ ص ۸۸، کتاب النکاح)

۳-د غیر الله څخه په مافوق الاسباب کې د استعانت څخه مخکې به د همدې غیر الله (مستعان) په باره کې عقیده د حاضر او د ناظر لرې مثلاً چې څوک د شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله څخه بچې او یا باران غواړي نو اول به د شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله په باره کې دا عقیده لري چې شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله ما ګوري او زما اواز اوري یعنې حاضر او ناظر دی، حالانکې الله تعالی فرمایلي دي:(اِنْ تَدْعُوْهُمْ لَا يَسْمَعُوْا دُعَآءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوْا مَا اسْتَجَابُوْا لَكُمْ) او فقهاء د دې عقیدې والا تکفیر داسې کړی دی چې: من قال ارواح المشايخ حاضرة تعلم يكفر، (فتاوی بزازیه علی هامش الهندیه، الفصل الثانی فیما یتعلق بالله)

۴-د غیر الله څخه په مافوق الاسباب کې د استعانت څخه مخکې به د همدې مستعان(غیر الله) په باره کې عقیده د مختار الکل او د متصرف والی لرې مثلاً چې څوک د شیخ عبد القادر رحمه الله څخه بچې یا باران غواړي نو اول به د شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله په باره کې دا عقیده لري چې د شیخ عبد القادر جیلاني رحمه الله سره د نفع او د ضرر اختیار دی، حالانکې الله تعالی فرمایلي دي چې: (فَلَا يَمْلِكُوْنَ كَشْفَ الضُّرِّ عَنْكُمْ وَلَا تَحْوِيْلًا)

او د دې عقیدې والا تکفیر احناف فقهاوو داسې کړی دی چې څوک چې غیر الله ته نذر کیږدي، نو دا کافر کیږي ځکه چې د ناذر دا خیال وي چې: أَنَّ الْمَيِّتَ يَتَصَرَّفُ فِي الْأُمُوْرِ دُوْنَ اللّٰهِ تَعَالٰى وَاعْتِقَادُهٗ ذٰلِكَ كُفْرٌ (بحر الرائق ج ۵ ص ۲۹۸، فصل عقد البیان ما یوجب العبد علی نفسه)

ځوک چې دا عقیده لري چې مړی د الله لاندې تصرف کوي یعنې ځوک چې دغیر الله په باره کې دا عقیده لري چې دا متصرف بالعطاء دی او متصرف باذن الله دی نو دا کافر دی.

**دون: دلته په معنی د ماتحت سره دی:** لکه دمعراج په شپه دنبي کریم صلی الله علیه وسلم دسورلۍ په باره کې راځي چې: فوق البغل ودون الحمار.

دمکي مشرکانو الله تعالی بالکل پرېښی نه وو بلکې د الله تعالی لاندې يې نور متصرفين بالعطاء او متصرفين باذن الله نيولي وو، لکه د نن زماني مشرکين چې انبياء او اولياء متصرفين بالعطاء او متصرفين باذن الله ګڼي.

۵- الله تعالی فرمايي چې: (وَإِنْ يَمْسَسْكَ اللَّهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهُ إِلَّا هُوَ وَإِنْ يَمْسَسْكَ بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ)

پدې ایت کې د او اضحه ذکر شوي دي چې غیر الله هیچا ته نفع او ضرر نه شي رسولی، بلکې نفع او ضرر صرف الله تعالی رسوي، دمکې مشرکانو بوتان پدې عقیده رابلل چې هغه يې نافع او ضار ګڼل او عطاء او باذن الله نافع او ضار يې ګڼل لکه د نن سبا مشرکين چې انبياء او اولياء عطايي او باذن الله نافع او ضار ګڼي.

ملا علي قاري رحمه الله فرمايي چې: دغير الله ځخه څه مه غواړه ځکه چې غير الله خپل ځان ته د نفع او دضرر مالک ندی، (مرقات علی المشکوة ج ۲ص ۴۵۳)

۶- دمکې مشرکينو به غير الله عطائي او باذن الله مشکل کشا او حاجت روا ګڼلو، الله تعالی د دوي عمل د «دعا يدعو» په صيغو سره ذکر کړی دی چې دا تاسو چې ځوک رابلئ او کومکونه ترينه غواړئ هغه د نفع او دضرر مالکان ندي او ستاسو په تکليفونو او مصيبتونو باندې خبر نه دي، بل طرفته نبي کريم صلی الله عليه وسلم او مومنانو ته فرمايي چې دغير الله ځخه استمداد مه کوئ.

الله تعالی فرمايي: (إِنَّ الَّذِينَ تَدْعُونَ مِنْ دُونِ اللَّهِ لَنْ يَخْلُقُوا ذُبَابًا وَلَوِ اجْتَمَعُوا لَهُ)

همدا رنګه: قُلِ ادْعُوا الَّذِينَ زَعَمْتُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ لَا يَمْلِكُونَ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَلَا فِي الْأَرْضِ وَمَا لَهُمْ فِيهِمَا مِنْ شِرْكٍ وَمَا لَهُ مِنْهُمْ مِنْ ظَهِيرٍ ۲۲)

همدارنګه: قُلْ أَفَرَءَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ إِنْ أَرَادَنِيَ اللَّهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كَاشِفَاتُ ضُرِّهِ أَوْ أَرَادَنِي بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكَاتُ رَحْمَتِهِ قُلْ حَسْبِيَ اللَّهُ عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُونَ

همدارنګه: قُلْ أَرَأَيْتُم مَّا تَدْعُونَ مِن دُونِ اللَّهِ أَرُونِي مَاذَا خَلَقُوا مِنَ الْأَرْضِ أَمْ لَهُمْ شِرْكٌ فِي السَّمَاوَاتِ ائْتُونِي بِكِتَابٍ مِّن قَبْلِ هَٰذَا أَوْ أَثَارَةٍ مِّنْ عِلْمٍ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ وَمَنْ أَضَلُّ مِمَّن يَدْعُو مِن دُونِ اللَّهِ مَن لَّا يَسْتَجِيبُ لَهُ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَهُمْ عَن دُعَائِهِمْ غَافِلُونَ

همدارنګه: وَالَّذِينَ تَدْعُونَ مِن دُونِهِ مَا يَمْلِكُونَ مِن قِطْمِيرٍ إِن تَدْعُوهُمْ لَا يَسْمَعُوا دُعَاءَكُمْ وَلَوْ سَمِعُوا مَا اسْتَجَابُوا لَكُمْ وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ يَكْفُرُونَ بِشِرْكِكُمْ وَلَا يُنَبِّئُكَ مِثْلُ خَبِيرٍ

پدې ټولو ايتونو کې الله تعالى دمشرکينو شرک دا ذکر کړی دی چې هغوي د الله تعالى څخه لاندې مخلوق مشکل کشا او حاجت روان ګڼلو يعنې غير الله يې مشکل کشا او حاجت روا باذن الله، و بالعطاء ګڼلو، الله تعالى وفرمايل چې په تکويني کارونو کې د تکليف څخه په نجات ورکونکو او مهرباني کونکو کارونو کې غير الله د يوې ذرې مالکان هم ندي، او دغه غير الله چې دوي يې مشکل کشا او حاجت روا ګڼې او ل خو ددوي اواز نه اوري او که بالفرض واي وري، نو بيا ور سره مدد نه شي کولی، الله تعالى دې عقيدې ته دشرک عقيده وايي، الله تعالى فرمايي: ذَٰلِكُم بِأَنَّهُ إِذَا دُعِيَ اللَّهُ وَحْدَهُ كَفَرْتُمْ وَإِن يُشْرَكْ بِهِ تُؤْمِنُوا فَالْحُكْمُ لِلَّهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيرِ

په دې ايت کې هغه چاته الله تعالى مشرک ويلي دي چې غير الله نافع او ضار ګڼې او بيا ترېنه استمداد کوي.

**اعتراض: بريلويان وايي چې د لاتدعوا او يدعوه، همدارنګه وادعوا څخه عبادت مراد دی (جاء الحق صـ ۲۰۲)؟**

قلنا: ۱- که د دعا او عبادت په مابين کې تضاد وی او دواړه دوه جدا جدا حقيقتونه وی نو بيا الله تعالى ولې په عبادت باندې د دعا اطلاق کړی دی؟ او که دلته يو شی وي اګر چې په بل ځای کې به د دواړو په مابين کې عموم من وجه وي نو بيا د بريلويانو اعتراض باطل دی.

۲- په قرآن کريم کې اکثر د (دعا يدعوا) څخه وروسته د (اجاب استجاب) او د (يجيب) صيغې راغلي دي او دا صيغې په دې دلالت کوي چې (دعا يدعوا) په معنی د غوښتلو سره دی.

۳- دلغتو په کتابونو کې -دعا يدعوا- په معنی دغوښتلو سره راغلی دی (فی الصراح ص۲۳) اجابه واجاب عن سؤاله بمعنی اجاب الله دعائه واستجاب بمعنی (انتهی) يعنی د -اجابه -او د- أجاب- معنی داده چې دده سوال يې قبلو کړو او د -اجاب الله دعائه واستجاب- يوه معنی ده چې الله تعالی دده دعا واوريدله او قبوله يې کړه.

۴- په احاديثو کې راغې چې: (الدعاء مخ العبادة) مفسرينو دعبادت او د عا په مابين کې عينيت منلی دی نه تعارض او تضاد، ځکه يې ددعا معنی په عبادت سره کړې ده.

۵-شاه ولي الله الدهلوي رحمها لله فرمايي چې: وَقَالَ تَعَالَىٰ: {فَلَا تدعوا مَعَ اللّٰه أحدا} وَلَيْسَ الْمُرَاد من الدُّعَآء الْعِبَادَة (اى العبادة المخالف للدعآء) كَمَا قَالَه الْمُفَسِّرُونَ، بل هُوَ الِاسْتِعَانَة لقَوْله تَعَالَىٰ: {بل إِيَّاه تدعون فَيكْشف مَا تدعون} .) (حجت الله البالغة: ج ۱ص ۶۲).

بريلويان زيات زور په دې لګوي چې د بتانو څخه مافوق الاسباب استمداد شرک دی او د اوليا وو او انبياوو څخه ما فوق الاسباب استمداد شرک نه دی، حالانکې شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله فرمايلي دي چې دشرک جرړه داده چې مُعظِّمِين من الناس په انسانانو کې بهترينې هستی په داسې اوصافو باندې متصفې کړی چې هغه دخواصو دالوهيت څخه وي، لکه عالم الغيب يې وګڼئ حاضر اوناظر يې وګڼئ متصرف فی الأمور يې وګڼئ وغيره.

حَقِيقَة الشّرك أَن يعْتَقد إِنْسَان فِي بعض المعظمين من النَّاس أَن الْآثَار العجيبة الصادرة مِنْهُ إِنَّمَا صدرت لكَونه متصفا بِصفة من صِفَات الْكَمَال مِمَّا لم يعْهَد فِي جنس الْإِنْسَان، بل يخْتَص بِالْوَاجِبِ جلّ مجده لَا يُوجد فِي غَيره إِلَّا أَن يخلع هُوَ خلعة الألوهية على غَيره، أَو يُغني غَيره فِي ذَاته وَيبقى بِذَاتِهِ أَو نَحْو ذَلِك مِمَّا يَظُنّهُ هَذَا الْمُعْتَقد من أَنْوَاع الخرافات) (حجة الله البالغة:ج ۱ص ۶۱).

دشرک حقيقت دادی چې کوم انسان په انسانانو کې په يوه عظيمه هستی کې عجيب او غريب خوارق وګوري او بيا دا عقيده ولري چې دغه د الله تعالی پورې مختص اثار ځکه ددې عظيمې هستی څخه صادر شوي دي چې دا په داسې صفاتو دکمال باندې متصف دی چې په نورو انسانانو کې نه شته بلکې د الله تعالی پورې خاص دي، نو دا صفات به يا په ا لله تعالی کې وي او يا به په داسې چا کې وي چې الله

تعالی د الوهیت په خلعت نازولی وي او دا برزګ فنا فی الله وي او همداسې نور خرافات ددې معتقد په ذهن کې راځي.

۷ دلیل: دوه مقدمې دي اوله دا چې اله صرف الله دی او دوهمه دا چې: اله مشکل کشا او حاجت روا ته وایي، ددې نتیجه داده چې مشکل کشا او حاجت روا صرف الله تعالی دی، مثلاً اوله مقدمه الله تعالی داسې بیانوي: وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا نُوْحِيْٓ اِلَيْهِ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدُوْنِ.

همدارنګه: يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖٓ اَنْ اَنْذِرُوْٓا اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاتَّقُوْنِ

همدارنګه: نوح علیه السلام فرمایلي دي چې: فَقَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ.

حضرت هود علیه السلام فرمایلي دي چې: قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ

همدارنګه صالح علیه السلام فرمایلي دي چې: قَالَ يٰقَوْمِ اعْبُدُوا اللّٰهَ مَا لَكُمْ مِّنْ اِلٰهٍ غَيْرُهٗ)

همدارنګه موسی علیه السلام ته فرمایلي دي چې: اِنَّنِيْٓ اَنَا اللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا فَاعْبُدْنِيْ

همدارنګه الله تعالی فرمایلي دي چې: لَا تَتَّخِذُوْٓا اِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ ۚ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ

دوهمه مقدمه: الله تعالی داسې بیان کړی ده چې: اَمَّنْ يُّجِيْبُ الْمُضْطَرَّ اِذَا دَعَاهُ وَيَكْشِفُ السُّوْٓءَ وَيَجْعَلُكُمْ خُلَفَآءَ الْاَرْضِ ءَاِلٰهٌ مَّعَ اللّٰهِ.

پدې ایت کې الله تعالی دا خبره واضحه ذکر کړې ده چې د (اله) په کارونو کې دا هم دي چې د مجبورو او بې کسو خلکو د عاګانې قبلوي، امداد ورسره کوي او تکلیفونه یې لرې کوي، یعنې اله فریادرس او مشکل کشا ته وایي، یونس علیه السلام د ماهي په خیټه کې وفرمایل چې: لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ سُبْحٰنَكَ اِنِّيْ كُنْتُ مِنَ الظّٰلِمِيْنَ.

مطلب یې دا وو چې یا الله ستا څخه بغیر نه بل کوم فریادرس شته او نه د تکلیف ختمونکی شته، نه دحاجت روا شته او نه مشکل کشا شته.

## د اهل بدعتو بریلویانو د دلایلو څخه جوابات

په حقیقت کې د بریلویانو سره هیڅ قطعي دلیل نشته او په خبر واحد عقیده نه ثابتیږي (شرح العقائد ۱۰۱، نووي ج۱ص۲۲، شرح مواقف ص۷۲۷، شرح فقه الاکبر ص۶۷، مسامره ج۲ص۷۸)

## د قرآن څخه غلط استدلالات

## (لِاَهَبَ لَكِ غُلٰمًا زَكِيًّا)

بریلویان وایي چې: جبریل علیه السلام خو غیر الله دی او حضرت مریم ته وایي چې (لِاَهَبَ لَكِ غُلٰمًا زَكِيًّا۝) نو هبه د ولد مافوق الاسباب شی دی او جبریل علیه السلام ځان ته منسوب کړی دی، نو جبریل علیه السلام مافوق الاسباب امداد کولی شي.

قلنا: ۱- جبریل علیه السلام ماتحت الأسباب عمل کړی وو، چې: دحضرت مریم په ګریبان او یا خوله کې یې دم أچولی وو اویایې پوکی کړی وو او دم اچول اوپوکی کول ماتحت الاسباب شی دی، دا جبریل علیه السلام ته منسوبیږي البته پدې باندې اثر مرتبول ما فوق الاسباب او خارق العادة شی دی هغه الله تعالی ته منسوبیږي، نو هبه کونکی الله تعالی دی او جبریل علیه السلام ته دهبې نسبت مجازاً دی.

۲- جبریل علیه السلام دالله تعالی قاصد وو (اِنَّمَآ اَنَا رَسُوْلُ رَبِّكِ) او قاصد دخپل ځان څخه چاته څه نه شي ورکولی، هغه صرف د مُرسل ورکړی شوی شي حواله کوي، نو هبه د ولد الله تعالی کړی ده، جبریل علیه السلام صرف دومره کړي دي چې دالله تعالی کړی ولد یې حضرت مریم ته حواله کړی دی نو ددغې أدنی ملابست له وجی یې د (لِاَهَبَ لَكِ) صیغه استعمال کړې ده، جبرئیل علیه السلام حضرت مریم علیها السلام ته فرمایلي وو چې: (يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيْحُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ)، نو جبریل علیه السلام صرف د هبة الولد د زیری راوړونکی وو، زیری الله تعالی ورکړی وو او هبة الولد هم الله تعالی کړی وه.

۳-ملایکو ته چې الله تعالی کوم کار حواله کوي هغه ماتحت الاسباب وي، دبریلویانو اعلی حضرت لیکي چې: *اللہ اکبر حاکم حقیقی عزجلالہ پاک ہے اس سے کہ کسی سے توسل کرے، وہ اکیلا حاکم اکیلا خالق اکیلا مد بر ہے سب اس کی محتاج ہیں وہ کس کا محتاج نہیں اس نے عالم اسباب میں ملایکہ کو تدبیر امور پر مقرر فرمایا ہے قال اللہ تعالی فالمدبرات امرا (احکام شریعت حصہ سوم ص- ۱۶۴)*.

۴- دلته خوحضرت مریم دحضرت جبریل علیه السلام څخه استمداد نه وو کړی، نو دا څرنګه داستمداد لپاره په دلیل کې پیش کولی شي؟

۵- دا دجبريل عليه السلام او مريمې کرامت د ی او دکراماتو څخه داستمداد لپاره استدلال ندی صحيح.

## اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ قَبْلَ اَنْ يَّرْتَدَّ اِلَيْكَ طَرْفُكَ

سليمان عليه السلام د آصف رضی الله عنه څخه په مافوق الاسباب کې کومک غوښتی وو چې ( اَيُّكُمْ يَاْتِيْنِىْ بِعَرْشِهَا) او اصف رحمه الله ورسره په مافوق الاسباب کې کومک کړی وو، دډير لږې څخه يې ورته دسترګو په رپ کې تخت را حاضر کړو.

قلنا:۱- دا دسليمان عليه السلام معجزه وه اويا دأصف رضی الله عنه کرامت وو او دمعجزاتو او کراماتو څخه داستمداد لپاره استدلال نه صحيح کيږي.

۲-پدې واقعه کې داصف څخه ماتحت الاسباب أمر صادر شوی وو چې دعا ده، نورما فوق الاسباب کار چې د تخت راوړل دي الله تعالی کړی وو،په جلالين شريف کې فرمايي چې: دَعَآ آصف بِالِاسْمِ الْأَعْظَمِ أَنْ يَأْتِيَ اللّٰهُ بِهِ فَحَصَلَ بِأَنْ جَرٰى تَحْتَ الْأَرْضِ حَتّٰى نَبَعَ تَحْتَ كُرْسِيِّ سُلَيْمَانَ ﷺ( جلالين صـ ۳۲۱)

حافظ ابن کثير رحمه الله فرمايي چې: ثُمَّ قَامَ فَتَوَضَّأَ، وَدَعَا اللّٰهَ عَزَّوَجَلَّ. قَالَ مُجَاهِدٌ رحمه الله: قَالَ: يَاذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ. وَقَالَ الزُّهْرِيُّ رحمه الله: قَالَ: يَآ إِلٰهَنَا وَإِلٰهَ كُلِّ شَيْءٍ، إِلٰهًا وَاحِدًا، لَآ إِلٰهَ إِلَّآ أَنْتَ، ائْتِنِيْ بِعَرْشِهَا.

نو اصف رحمه الله صرف ماتحت الاسباب کار وکړو چې داسم اعظم لوستل، دلاسونو وچتول او دالله تعالی څخه دتخت درا وړلو غوښتل دي، نور مافوق الاسباب کار يعنې دتخت راوړل اودسليمان عليه السلام مخې ته يې را حاضرول دالله تعالی فعل دی.

۳- کله چې الله تعالی تخت را حاضر کړو نو سليمان عليه السلام وفرمايل چې : (هٰذَا مِنْ فَضْلِ رَبِّيْ) په فضل کې دهيچا د کسب دخل نه وي.

نو په (اَنَا اٰتِيْكَ بِهٖ) کې د راوړلو نسبت آصف ته مجازا شوی دی، ځکه چې داسم اعظم په برکت يې دعا کړې وه او په ( اَيُّكُمْ يَاْتِيْنِىْ بِعَرْشِهَا) کې هم غير الله ته نسبت مجازاً شوی دی.

## د عيسى عليه السلام معجزات همدارنګه شق القمر

عيسى عليه السلام ته الله تعالى مافوق الاسباب أمور منسوب كړي دي چې (وَ اُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَ الْاَبْرَصَ وَ اُحْيِ الْمَوْتٰى)

قلنا: دا ټول معجزات دي او د معجزاتو څخه د استمداد من غير الله فى مافوق الاسباب لپاره استدلال نه صحيح كيږي، ځكه چې معجزه د الله تعالى فعل وي مړي ته د (قم باذن الله) كلمه ويل ماتحت الاسباب أمر دى په شق القمر كې سپوږمۍ ته اشاره كول ماتحت الاسباب أمر دى، البته پدې نتيجه او اثر مرتبول د الله تعالى فعل دى، د (قم باذن الله) د كلمې ويل او سپوږمۍ ته اشاره كول خوارق او معجزې ندي ،معجزې او خوارق د مړي ژوندي كول او د سپوږمۍ دوه ځايه كول وغيره اثار او نتايج دي او هغه اثار او نتايج صرف د الله تعالى فعل دى د نبي لپاره پكې خلق او كسب نشته.

### (فَاَعِيْنُوْنِيْ بِقُوَّةٍ)

ذوالقرنين د ياجوجو مأجوجو د بندولو لپاره ديوال جوړولو نو دهغې علاقې د خلكو څخه يې امداد وغوښتلو؟

قلنا: چې دا استعانت، ١- د ژونديو څخه وو ٢- په ماتحت الاسباب امورو كې وو يعنې په بدني خدماتو او د بدني قوت په استعمال كې وو، بدني قوت د الله تعالى خلق دى، لكن استعمال يې د بنده كسب دى، ٣- او دا استمداد د حاضرينو څخه وو، خلاصه دا چې دا ظاهري استعانت وو او په ماتحت الاسباب كې وو، د دې څخه مطلق استعانت ثابتول او ياترينه په مافوق الاسباب كې استعانت ثابتول جهالت دى.

فائده: دا اتفاقي قانون دى چې (مطلق الشئ يتحقق بتحقق فردمّا) نو چې خاص استعانت ثابت شو نو مطلق استعانت هم ثابت شو؟

قلنا: ١- يو (مطلق الاستعانت) دى او بل (الاستعانت المطلق) دى (مطلق الاستعانت) مطلق الشئ دى او مطلق الشئ عبارت دى د ماهيت من حيث هى هى څخه او دا ماهيت تاسو په ضمن د بل فرد كې هم متحقق ګڼئ چې استعانت من غير الله فى مافوق الاسباب دى نو د تحقق د مطلق الشئ څخه په ضمن ديو فرد كې دا نه لازميږي چې دا مطلق الشئ دى په ضمن د بل فرد كې هم متحقق وي، مثلا زيد دلته په جلال اباد كې دى او عمرو په جزيرة العرب كې دى نو په جلال اباد كې په تحقق د زيد سره تحقق د مطلق

الانسان راځي ،لکن په جلال اباد کې په تحقق د مطلق الانسان سره په ضمن دزيد کې تحقق د مطلق الانسان په ضمن دعمرو کې نه راځي او خبره په ماهيت الاستعانت فی مرتبة من حيث هی هی کې نه ده ،بلکې خبره په تحقق ددې ماهيت کې ده فی ضمن الفرد الاخر .

٢-تاسو داستعانت من غير الله دواړو افرادو ته جايز وايي (ماتحت الاسباب وي او که مافوق الاسباب وي) نو ستاسو په نيز دمطلق استعانت څخه مطلق الاستعانت نه دی مراد ، بلکې الاستعانت المطلق مو ترينه مراددی او د الشئ المطلق تحقق په تحقق ديو فرد سره نه راځي بلکې تحقيق دادی چې الشئ المطلق په تحقق د ټولو افرادو سره متحقق کيږي.وګوره ميرزا قطبي.

## وَ اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَ الصَّلٰوةِ

نعيم الدين بريلوي په مافوق الاسباب کې دغير الله څخه داستعانت لپاره دا ايت هم پيش کړی دی؟

قلنا : دا ډيره سخته مغالطه ده ځکه چې صبر او صلوة يقينا چې غير الله دي، لکن پدې ايت کې صبر او صلوة ته مستعان ندی ويلي شوي يعنې دصبر او دصلوة څخه استمداد نه دی شوی، ځکه چې په . بالصبر. کې ـ باء ـ دسببيت لپاره ده، يعنې دصبر اودصلوة په ذريعه دالله تعالی څخه کومک وغواړئ نوصبر او صلوة صرف ذريعه شوه او مستعان الله دی، اياک نستعين، والله المستعان، انا نستعينک دا ټولې د قصر صيغې دي.

## هٰذَا عَطَآؤُنَا فَامْنُنْ اَوْ اَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ

قلنا : سليمان عليه السلام بادشاه وو په خزانو کې يې هر څه وو نو دا عطاء ماتحت الاسباب ده.

## فَالْمُدَبِّرٰتِ اَمْرًا

قلنا١-: ايت قطعي الثبوت دی لکن د بريلويانو په مراد قطعی الدلالة ندي، ځکه چې شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله پکې اوه احتماله ذکر کړي دي مثلا مصنفين، بادشاهان، ستوري، ارباب العقل والتدبير، په تفسير مظهري کې يې ددې آيت په تشريح کې ليکلي دي چې (وذکر فی تاويل هذه الاية وجوه آخر)

٢- دملائکو دمدبر والي څخه د اولياوو او دانبياوو مدبر والی نه لازميږي لانّ القياس لايجری فی العقائد، بلکې قطعی الثبوت او قطعی الدلالت دليل ورته پکار دی.

٣- دلته تصرف ماتحت الاسباب مراد دی.

## د أحاديثو څخه غلط استدلالات

## (إنمَّا أنَا قَاسِمٌ وَاللهُ يُعْطِىْ)

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې: إِنَّمَآأَنَاقَاسِمٌوَاللهُ يُعْطِىْ.

قلنا: ١- دا خبر واحد دی او په خبر واحد سره عقيده نه ثابتيږي.

٢-خبر واحد چې د كتاب الله سره معارض شي نو استدلال ترينه نه دی صحيح او دا خبر واحد د ايتونو سره معـارض دی، الله تعـالی فرمـايلي دي چې: (نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُمْ مَّعِيْشَتَهُمْ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا) او تقديم د مسند اليه په مسند فعلي قصر راولی، نو تقسيم يوائې الله تعالی كوي.

همدارنګه دا حديث د يو بل حديث سره هم معـ[illegible]ی رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې: إِنَّ اللَّهَ تَعَالٰى قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَخْلَاقَكُمْ كَمَا قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَرْزَاقَكُمْ (مشكوة ج ٢صـ ٤٠٧)

٣- دا حديث محدثينو د كتاب العلم او باب الغنيمة لاندې ذكر كړي دي يعنې د علم او د غنيمت معطی الله دی او تقسيمونكی رسول الله صلى الله عليه وسلم دی، صاحب د مظاهر حق فرمايلي دي چې د دې حديث معنى داده چې زه احاديث بيانوم او د فكر او د عمل توفيق الله تعالی وركوي.

٤- الزاماً: مونږ وايو چې بريلويان وايي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د هر شي تقسيمونكی دی نو ايا غلا- زنا- د برما، افغانستان، عراق، او فلسطين ظلمونه هم رسول الله صلى الله عليه وسلم تقسيم كړي دي؟(معاذ الله)

## د حضرت ربيعة رضى الله عنه واقعه

حضرت ربيعة رضى الله عنه فرمايي چې: ما يوه شپه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د اودس لپاره اوبه راوړې رسول الله صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل چې (سَل) وغواړه؟ ما ورته وويلې چې يارسول الله صلى الله عليه وسلم! په جنت كې ستا رفاقت غواړم، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې: فاعنى على نفسک بكثرة السجود (مشكوة ج ١صـ ٨٤)

د دې حديث په تشريح كې يې په اشعة اللمعات كې ليكلي دي چې: واز اطلاق سوال كه فرمود: سل، وتخصيص نكرد بمطلوبی خاص، معلوم ميشود كه كار همه بدست همت وكرامت اوست، هرچه خواهد، هر كه خواهد باذن پروردگار بدهد، او ملا علي قاري رحمه الله ليكلي دي چې: وَيُؤْخَذُ

مِنْ إِطْلَاقِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ الْأَمْرَ بِالسُّؤَالِ أَنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى مَكَّنَهُ مِنْ إِعْطَاءِ كُلِّ مَا أَرَادَ مِنْ خَزَائِنِ الْحَقِ... إِلٰى أَنْ قَالَ: أَنَّ اللّٰهَ تَعَالٰى أَقْطَعَهُ أَرْضَ الْجَنَّةِ يُعْطِي مِنْهَا مَا شَاءَ لِمَنْ يَشَاءُ (مرقاة: شرح مشكوة).

قلنا ۱- دمرقات او اشعة اللمعات عبارات متعارض دي، ځکه چې د شفاعت يو اوږد حديث دی دهغې لاندې ملا علي القاري ليکلي دي چې: فَأَقُولُ يَارَبِّ ائْذَنْ لِي فِيمَنْ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ قَالَ لَيْسَ ذٰلِكَ لَكَ (مرقات ج ۲صــ ۴۸۹) او همدلته يې په اشعة اللمعات کې ليکلي دي چې: ميگويد پروردگار، نيست شفاعت کردن مر کسی را که گفت است لا اله الا الله مرترا ونيست اين کارتو (اشعة اللمعات ج ۴صـ ۲۰۸)

همدارنگه الشيخ المحدث عبد الحق رحمه الله دده حديث په تشريح کې چې: يا فاطمة بنت محمد سلينی ما شئت من مالی لا اغنی عنک من الله شيئا) ليکلي دي چې: مرا آنست که اگر مالی در ملک من باشد بطلب اما نجات اخرت در ملک من نيست (اشعة اللمعات ج ۴صـ ۳۷۵)

همدارنگه نور قطعي دلايل په دې دلالت کوي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم مختار الکل نه وو.

که رسول الله صلی الله عليه وسلم د جنت د ورکړې مالک او مختار الکل وی، نو ابو طالب ته به يې جنت او ايمان ورکړی وو، د نبي کريم صلی الله عليه وسلم خو د ابو طالب د ايمان دير خواهش وو.

په همدې حديث کې د فأغنی علی نفسک جمله په دې دلالت کوي چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم مختار الکل نه وو.

نو د دفع د تعارض لپاره د مرقات او د اشعة اللمعات په عبارتونو کې تاويل پکار دی، چې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په سفارش او دعا سره الله تعالی ورکړه کوي او د أعطاء نسبت نبي کريم صلی الله عليه وسم ته مجازاً دی.

۲- همدارنگه: په مسند احمد کې داسې دي چې: يَارَسُولَ اللّٰهِ! أَسْأَلُكَ أَنْ تَشْفَعَ لِي إِلٰى رَبِّكَ فَيُعْتِقَنِي مِنَ النَّارِ (البداية والنهاية: ج ۵صـ ۲۲۵).

ددې څخه معلومه شوه چې حضرت ربيعة رضی الله عنه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم څخه جنت نه وو غوښتی، بلکې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د دعا او شفاعت په برکت يې د الله تعالی څخه غوښتی وو، نو د (سل) معنی داده چې د الله تعالی څخه سوال وکړه ته چې د کوم شي سوال کوې زه دهغې په باره کې الله تعالی ته سفارش او دعا کوم، حضرت ربيعة رضی الله عنه وفرمايل چې زه په جنت کې ستا د

رفاقت سوال کوم، نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې بيا زما سره مدد وکړه هغه داسې چې ډيرلمونځونه کوه چې زه ستا لپاره شفاعت وکړم.

## د سلمة بن الأكوع رضی الله عنه د پونډې واقعه

رسول الله صلی الله عليه وسلم د سلمة بن الاكوع په پونډې لاس راکاږلو نو هغه جوړه شوه، (مشکوة صـ٥٣٣)

همدارنګه نورې معجزې هم شته د رسول الله صلی الله عليه وسلم په چپنه او ويښتو باندې تبرک حاصل شوی دی، نو دلته د رسول الله صلی الله عليه وسلم په لاس مافوق الاسباب عمل صادر شو.

قلنا: په دم او دعا کې د شونډو خوزول او کلمات لوستل وي او دا ماتحت الاسباب امور دي، دا د نبي کريم صلی الله عليه وسلم او دولي کسب دی او دنبي او ولي څخه همدا غوښتل کيږي، البته پدې باندې اثر مرتبول د الله فعل دی او مافوق الاسباب دي او دا صرف د الله څخه غوښتل کيږي، دوايي حسي سبب دی او دم او دعا معنوي سبب دی، خلک وايي زه دم کوم، نو رشفاء الله تعالی ورکوي، نو دم کول ماتحت الاسباب دي، ځکه بنده ته منسوبيږي او شفاء ورکول، مافوق الاسباب دي، ځکه الله تعالی ته منسوبيږي.

امام غزالي رحمه الله فرمايلي دي چې: (فالدعاء سبب لرد البلاء ووجود الرحمة كما أن الترس سبب لدفع السلاح والماء سبب لدفع الحر والماء سبب لخروج النبات من الأرض، (هامش نبراس صـ٥٨١)

صحابه وو دنبي کريم صلی الله عليه وسلم څخه مافوق الاسباب کې څه نه غوښتل بلکې دعاېې ترې غوښتله لکه په يوه بې بي چې مرګي راتلل نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ته يې داسې ونه ويلې چې ماته شفاء راکړه بلکې داسې يې وورته وويلې چې (فادع الله لی)

همدارنګه توسل او تبرک هم سبب دی التبه پدې اثر مرتبول خرق العادة دی او دالله تعالی فعل دی.

## معجزات او کرامات

انبياوو او اولياوو ته په مافوق الاسباب کې داسې تصرف ندی ثابت چې دنبي يا دولي کسب لره پکې دخل وي، معجزه او کرامت حق دی لکن په معجزه او کرامت کې دنبي او دولي کسب نه وي بلکې صرف دالله تعالی فعل وي، الشيخ المحدث عبد الحق الدهلوي فرمايلي دي چې: معجزه فعل نبي نيست بلکی فعل خدای تعالی است که بردست وی اظهار نموده بخلاف افعال ديگر که کسب اين از بنده است وخلق از خدا تعالی و در معجزه کسب نيز از بنده نيست (مدارج النبوة ج ٢صـ١١٦)

همدارنګه په بل ځای کې فرمايلي دي چې: معجزه وکرامت فعل خدا تعالى است که ظاهر ميګرد دد بر دست بنده بجهت تصديق وتکريم وى ، نه فعل بنده است که صادر ميګردد بقصد واختيار او مثل سائر افعال (ترجمة فتوح الغيب صـ ۲۷)

علامه توربشتى رحمه الله فرمايلي دي چې: قرآن معجز است ومعجزان باشد که جز خداى تعالى ديګرى برآن قادر نبا شد واګر قول جبرئيل بودى معجز نبودى واګر قول پيغمبر بودى هم معجز نبودى (المعتمد فى المعتمد باب دوهم فصل ششم)

علامه ابن خلدون فرمايلي دي چې وقد يو جد لبعض المتصوفة واصحاب الكرامات تـأثير ايضـا فى احوال العالم وليس معدودا من جنس السحر وانما هو الامداد الالهى لان طريقتهم ونحلتهم مـن اثار النبوة وتوابعها (مقدمة ابن خلدون صـ ۵۰۲)

کله کله د صوفيه کرامو او د کراماتو ذ خاوندانو لپاره په حالاتو د عـالم کې تاثير وي او دا جادو نه وي بلکې دا دالله تعالى په امداد سره وي ځکه چې ددې اکابرو طريقه او نسبت د اثارو دنبوت او دتوابعوا دنبوت څخه دى.

په شرح العقايد صـ ۹۸ کې يې فرمايلي دي چې وأيدهم بالمعجزات ا لناقضات للعادت (انتهى) نو الله تعالى د انبياوو تائيد په معجزاتو کړى دى ، ملا على القاري رحمه الله فرمايلي دي: **الْمُعْجِزَةُ: مَأْخُوذٌ مِنَ الْعَجْزِ الَّذِي هُوَ ضِدُّ الْقُدْرَةِ، وَفِي التَّحْقِيقِ: الْمُعْجِزُ فَاعِلُ الْعَجْزِ فِي غَيْرِهِ، وَهُوَ اللَّهُ سُبْحَانَه** (مرقاة شرح مشكوة: ج ۲صـ ۵۳۰).

علامه جلال الدين الدواني د معجزې په بحث کې فرمايلي دي چې: ولها سبعة شروط، الاول ان يكون فعل الله او ما يقوم مقامه من التروک (شرح عقائد عضديه صـ ۹۵)

د معجزې لپاره اوه شرطونه دي اول شرط دا دي چې معجزه به د الله تعالى فعل وي يا به د فعل قايم وي چې تروک دي.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايلي دي: **وَسميت المعجزة لِعَجْزِ مَنْ يَقَعُ عِنْدَهُمْ ذَلِكَ عَنْ مُعَارَضَتِهَا وَالْهَاءُ فِيهَا لِلْمُبَالَغَةِ أَوْ هِيَ صِفَةُ مَحْذُوفٍ وَأَشْهَرُ مُعْجِزَاتِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُرْآنُ** (فتح البارى ج ٦ صـ ۴۲۴)

معجزې ته ځکه معجزه وايي چې چاته چې پيش کړی شي هغه يې د مقابلې څخه عاجز کيږي او حرف (هاء) پکې د مبالغې لپاره ده (لکه په علامه کې) او يا د معجزې لفظ صفت دی لپاره د موصوف مقدره مثلاً (اية وغيره) او د نبي کريم صلی الله عليه وسلم مشهوره معجزه قرآن کريم دی، انتهی.

نو حافظ ابن حجر رحمه الله د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په مشهورو معجزو کې قرآن ذکر کړو او قرآن نبي کريم صلی الله عليه وسلم په خپل کسب او اختيار سره نه وو جوړ کړی، اهل بدعت د بخاري په حاشيه نمبر (۴) باندې حواله ورکوي او دهغې څخه دا ثابتول غواړي چې معجزه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په اختيار کې وه، (نور هدايت صـ ۳۷) حالانکې دا د دوي جهالت دی ځکه چې پدې ځای کې حافظ ابن حجر رحمه الله د معجزې تعريف نه دی کړی، بلکې د تحدّی صورت يې بيان کړی دی، اهل بدعت د تعريف او د تحدی د تصوير په مابين کې فرق نه شي کولی.

نو په معجزه او کرامت کې نه د ولي او د نبي خلق شته او نه کسب، بلکې د الله تعالی په اختيار کې وي چې څه وخت يې وغواړي نو د نبي او د ولي په لاس يې صادر وي نو نبي او ولي ته يې له وجې د أدنی ملابست څخه نسبت کيږي او هغه دا چې د دوي په لاس صادريږي.

۱- الله تعالی د ابراهيم عليه السلام معجزه ذکر کړې ده چې: (قُلْنَا يٰنَارُ كُوْنِيْ بَرْدًا وَّسَلٰمًا عَلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ ﴿۶۹﴾)

ابن کثير ليکلي دي چې: لو لا ان الله قال وسلماً لأذى ابراهيم، نو که دا د ابراهيم عليه السلام کسب وی نو نو د الله تعالی سلماً ته به ضرورت نه وو.

۲- همدارنګه الله تعالی د موسی معجزه يې ذکر کړې ده چې (وَ اَلْقِ عَصَاكَ فَلَمَّا رَاٰهَا تَهْتَزُّ كَاَنَّهَا جَآنٌّ وَّلّٰى مُدْبِرًا وَّ لَمْ يُعَقِّبْ)

نو که معجزه د نبي کريم صلی الله په اختيار کې وی نو موسی وليې وويريدلو؟

ابن کثير دلته فرمايلي دي چې: هذا برهان من الله لموسى ومعجزة عظيمة وخرق للعادة باهر دل على أنه لايقدر على مثل هذا الا الله عز وجل . نو معجزه صرف د الله تعالی په قدرت کې وي.

۳- رسول الله صلی الله عليه وسلم ته الله تعالی حکم کړی دی چې ته خلکو ته و وايه چې:

وَمَا كَانَ لَنَآ اَنْ نَّاْتِيَكُمْ بِسُلْطٰنٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ.

همدارنګه: قُلْ اِنَّمَا الْاٰيٰتُ عِنْدَ اللّٰهِ.

۴- دموسی علیه السلام معجزې الله تعالی خپل ځان ته منسوبې کړې دي فرمايلي يې دي چې: وَإِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ.

همدارنګه: ثُمَّ بَعَثْنَاكُمْ مِنْ بَعْدِ مَوْتِكُمْ.

همدارنګه: وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوَى.

همدارنګه د داود عليه السلام معجزه يې خپل ځان ته منسوبه کړې ده چې: يَا جِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ وَالطَّيْرَ وَأَلَنَّا لَهُ الْحَدِيدَ.

دا اعتراض به کافرانو کولو چې معجزه دنبي نه شي کيدلی، ځکه چې کيدلی شي چې دا دنبي خپل فعل وي، علامه سيد سند دمنکرينو اعتراضات رانقل کړي دي او فرمايلي يې دي چې: الطايفـة الخامسـة من قال ظهور المعجزة لا يدل على الصدق فى دعوى النبوة لاحتمالات الأول كونه من فعله لا مـن فعل الله تعالى الخ، بيا يې جواب ورکړی دی چې: انـا بينـا أن لا مـؤثر فى الوجـود الا الله فـالمعجزة لايكونَ الا فعلا له لا للمدعى شرح مواقف صـ (٦٧٥).

**نو په مافوق الاسباب کې د ولي يا دنبي څخه استمداد معجزةً و کرامةً تر څلورو خبرو پورې موقـوف دی اول:** تر دې پورې چې معجزه او کرامت دنبي او دولي په اختيار کې شي چې کله وغواړي معجزةً وکرامةً ستا سره امداد وکړي، حالانکې معجزه او کرامت دنبي او دولي په اختيار کې ندی.

دوهم: تـر دې پـورې موقـوف دی چې پـه معجزه او کرامت کې دوام او استمرار ثابت شي، حـالانکې معجزه او کرامت چونکې خرق العادة او خلاف القانون شی دی، نو دوام پکې نشته چې هروخت ستاسره معجزةً وکرامةً امداد وکړي.

دريـم: تـر دې پـورې موقـوف دی چې پـه مسـايلو اعتقاديه وو کې قياس جايز شي، حالانکې پـه مسـايلو اعتقاديه وو کې قياس نه چليږي، چې يو څوک ووايي چې په فلان أمر کې نبي عليه السلام ته معجزةً تصرف ورکړل شوی وو، لهذا په نورو أمورو کې به هم ورکړل شوی وي.

څلورم: تر دې پورې موقوف دی چې معجزه او کرامت مطلقاً مـافوق الاسباب شي، حالانکې شاه ولی الله الدهلوي رحمه الله فرمايلي دي چې: انمـا المعجـزات والكرامـات امـور اسـبابية غلـب عليهـا السبوغ فباينت ساير الاسباب (تفهيمات الهيه ج ٢صـ ٣٣، وفى البعض صـ ٤٨، تفهيم نمبر ٣٣)

نو معجزه او کرامت اسباب عادیه نه لري لکن مخفي اسباب لري، نو که کوم نبي یا کوم ولي په کوم وخت کې معجزةً وکرامةً مدد کړی وي، نو دا مطلقاً ما فوق الاسباب ندی، نو ما فوق الاسباب استمداد لپاره ترینه استدلال نه دی صحیح.

فانقیل: چې د شق القمر په معجزه کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم سپوږمی ته اشاره وکړه نو دا اشاره خو دنبي کریم صلی الله علیه وسلم کسب او اختیاري عمل دی؟

قلنا: اشاره معجزه او امر خارق ندی، بلکې امر خارق او معجزه د اشارې څخه وروسته د سپوږمی دوه ټوټې کیدل دی او دسپوږمی دوه ټوټې کول صرف د الله تعالیٰ فعل دی.

## په کرامت او عقیده کې فرقونه

۱- عقیده دائمي وي او کرمت عارضي وي.

۲- عقیدهٔ اختیاري وي او کرامت غیر اختیاري وي.

۳- عقیده د احکامو منبع وي او په کرامت احکام نه ثابتیږي.

۴- کرامت د بل چا په خلاف حجت نه وي او عقیده ټولو ته یو برابر وي.

۵- کرامت د یو ظني شي څخه هم ثابتیږي او د عقیدې لپاره مظبوط دلایل پکار دي.

## تصرف

بریلویان وایي چې په بعضې کتابونو کې اصحاب القبور ته تصرف ثابت شوی دی؟

قلنا: تصرف په دوه قسمه دی اول دژوندیو اولیاوو تصرف او دوهم داصحاب القبور تصرف، د ژوندیو اولیاوو د تصرف دوه معنی ګانې دي اول داولیاوو کارونه او دوهم په قوة توجه سره د مختلفو اثارو پیدا کول یعنې توجه کول (امداد الفتاوی، رسالة التعرف فی تحقیق التصرف ج ۵ ص ۲۳۷، بوادر النوادر ص ۷۸۱، روح المعانی تحت قوله تعالی وایدناه بروح القدس)

او داصحاب القبور دتصرف هم دوه معنی ګانې دي.

اول: التوجهات، والدعاء، والفیوضات والکرامات.

دوهم: غیبي تسلط دا اخري قسم شرک دی (تفهیمات الهیه، تفهیم نمبر ۳۴)

او مخکې درې واړه قسمه ثابت دي لکن داستمداد من غیر الله فی مافوق الاسباب سره هیڅ تعلق نشته.

**د صوفیه وو په اصطلاح کې هغوي تصرف په معنی د کرامت او د خوارقو سره دی:**

سید الطایفه الشیخ عبد القادر الجیلاني رَحِمَهُ ٱللَّهُ د سالک مقام بیان کړي دي فرمایلي یې دي چې:

کله چې دخپل ځان څخه فناءشی نوپدی وخت کی فحنئذیضاف ءالیه التکوین وخرق العادات فیری ذلک منک فی ظاهرالعقل والحکم وهوفعل الله وارادته حقاق العلم الخ (فتوح الغیب ص۷ مقاله ۲٦)

پدې وخت کی ستاطرف ته دتکوین اودخوارقونسبت کیږی اودابه دعقل دظاهري فیصلی مطابق ستاڅخه لیدل کیږی حالانکی په حقیقت کی اوپه اعتقادي طریقه په واقع کی دا د الله (جل جلاله) فعل او دالله په اراده وي چی ستاپه لاس یی ظاهروي.

د دې په تشریح کې الشیخ المحدث عبدالحق الدهلوي رحمه الله فرمایلي دي چې: پس چون فانی شدی از خودی ونماند جز فعل وارادت درتونسبت کرده می شود بسوی تو پیدا کردن کاینات وپاره کردن عادات یعنی متصرف می گرداند ترا در عالم بخوارق وکرامات پس دیده می شود آن فعل وتصرف از تو در ظاهر عقل وحکم وی ولیکن در باطن ونفس الامر فعل پروردگار است چه معجزه وکرامت فعل خدا است که ظاهر می گردد بردست بنده بجهت تصدیق وتکریم وی نه فعل بنده است که صادر میگردد بقصد واختیار او مثل سایر افعال چنانکه فرموده آند وحال آنکه آن خرق عادت فعل وتصرف خدا است الخ.(ترجمه فتوح الغیب صـ۲۷، مقاله ۷)

نو کله چې ته دخپل ځان څخه فنا شي او په تا کې د فعل او د ارادې څخه بغیر بل څه پاتې نه شي، نو بیا ستا طرف ته د کایناتو د تخلیق او دخوارقو نسبت کیږي، یعني تا په عالم کې په خوارقو او کراماتو متصرف ګرځوي، نو په ظاهري طریقه هغه فعل او تصرف ستا څخه صادریږي لکن په باطن او نفس الأمر کې هغه د الله تعالی فعل وي، ځکه چې معجزه او کرامت د الله تعالی فعل وي چې دبنده په لاس دده دتصدیق او تکریم لپاره صادریږي، معجزه او کرامت د بنده فعل نه وي چې لکه دنورو افعالو اختیاریه وو په شان د بنده په قصد او اختیار صادر شي، لکه څرنګه چې خپله شیخ عبدالقادر رحمه الله فرمایلي دي چې خرق عادت او تصرف د الله تعالی فعل وي چې دبنده په لاس صادریږي او دالتکوین په شرحه کې یې لیکلي دي چې: (سپرده می شود بوی پید کردن اشیاء وتصرف در آکوان که عبارت از خرق عادت وکرامت است ) بیا یې

مخکې ليکلي دي چې: يعنی آن درحقيقت فعل حق آست که بر دست ولی ظهور يافته چنانچه معجزه بردست نبي (ترجمه فتوح الغيب صـ ۲۰۷، مقاله ۴۶)

## حديث ابن عمر (أذكر أحب الناس اليک)

دعبد الله بن عمر رضی الله عنه پوندۍ ماته شوه چا ورته وويل چې: أذكر أحب الناس اليک فقـال يـا محمداه (ادب المفرد صـ ١٢٤)

قلنا: ۱- دا خبر واحد دی او په خبر واحد عقيده نه ثابتيږي.

۲- پدې خبر واحد کې د أذکر لفظ دی د أدع، لفظ نه دی او د (يا) کلمه شوقاً استعماليدلی شي چې عقيده دعلم الغيب او دحاضر اوناظر نه وي.

۳- د اخبر واحد په ډير سندونو سره مروي دی او ټول سندونه يې ضعيف دي، په يو سند کې يې ابو شعبه دی دارقطني ورته متروک ويلي دي (ميزان الاعتدال ج ۳صـ ۳۶۴، لسان ج ۶صـ ۳۹۴)

په بل سند کې يې محمد بن معصب دی، ضعيف عند النسائي وابی حاتم.

علامه خطيب فرمايي چې: ډيرې غلطيانې يې کولې، عبد الله بن يسـار ورتـه ضعيف ويلي دي، ابن حبان، او ابو احمد الحاكم هم ورته ضيعف ويلي دي (تهذيب ج ۹صـ ۴۵۹، ميزان ج ۳صـ ۱۲۷)

زهير ثقه دی، لکن د ابو اسحاق په طريقه روايات يې غير صحيح دي (تقريب صـ ۱۳۰)

## دعبدالله بن عباس پښه ماته شوه او ديا محمداه اواز يې وکړو؟

قلنا۱- : ددې خبر واحد په سند کې غياث بن ابراهيم متروک عند احمد دی، امام يحی فرمايي چې ثقه نه دی، جوزجاني فرمايي چې جعلي احاديث به يې جوړول امام بخاري ورته متروک ويلي دي (ميزان ج ۲صـ ۳۲۳)

۲- د يا محمداه! کلمه دتبرک لپاره جايزه ده.

## اعينونی يا عباد الله

د عبد الله بن مسـعود رضی الله يو حديث دی چې مضمون يې داسی دی چې رسـول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي چې کله چې د يو کس څخه په ځنګل کې سورلی ورکه شوه، نو داسې اواز دې وکړي چې: اعينونی يا عباد الله (و فی رواية ) يا عباد الله أَحْبِسُوْا فان لله فی الارض حاضراً ( وفی روايـة عباداً) يستحبسه، (مجمع الزوائد ج ١صـ ١٣٣، کتاب الاذکار صـ ٢٠١)

قلنا: ۱- دا خبر واحد دی او په خبر واحد عقیده نه ثابتیږي.

۲- پدې خبر واحد کې استمداد فی مافوق الاسباب نه شته، ځکه چې پدې روایت کې دا راغلي دي چې هلته د الله تعالی بندګان حاضر دي، د عبد الله بن عباس رضی الله عنه په یو روایت کې راغلي دي چې هغه ملایکې دي نو دا استعانت په ماتحت الاسباب کې شو.

۳- ددې روایت دعبد الله بن مسعود رضی الله عنه د حدیث په سند کې معروف بن حسان دی،(ضعیفٌ عندالهیثمی، مجمع الزواید ج ۱صـ ۱۳۳، منکرٌ عند ابن عدی، میزان ج ۳صـ ۱۸۳، مجهـولٌ عنـد أبی حاتم ج ٦صـ ٦١)

او د عتبه بن غزوان رضی الله عنه د حدیث په سند کې انقطاع ده، ځکه چې د یزید بن علي ملاقات دعتبه رضی الله عنه سره نه دی ثابت (مجمع الزواید ج ۱۰، صـ ۱۳۳) علامه هیثمی فرمایي چې: رجالهم وثقـوا علی ضعف فی بعضهم)

## روایة- علی- أعوذ بدانیال علیه السلام

حضرت علي رضی الله عنه فرمایلي دي چې که په ځنګل کې دحیواناتو ویره وه نو اعوذ بدانیال علیه السلام ووایه (ابن سنی صـ ۱۱۳)

قلنا: ۱- دا موقوف خبر واحد دی، عقیده وربانديې نه ثابتیږي.

۲- او انتهائي ضیعف هم دی، ددې حدیث اول راوي عبد العزیز بن عمران دی چې امام بخاري ابن معین، نسائي، ابن حبان، ابو حاتم، ابو ذرعه، ترمذي، دارقطني ټولو ورته ضعیف ویلي دي (تهذیب ج ۶صـ ۳۵۱)

دوهم راوي پکې ابن أبی حبیبه دی چې نوم یې ابراهیم بن اسماعیل دی، امام بخاري ورته منکر الحدیث ویلي دي، نسائي دار قطني، ابن معین، ابو حاتم، عقیلي ترمذي او ابن حبان ورته ضعیف ویلي دي (تهذیب ج ۱صـ ۱۰۴)

دریم راوي یې داود بن حصین دی، وهو ضعیف مطلقاً عند ابن عیینه، وابی زرعه، وابی حاتم، والجوز قانی، وسعد بن ابراهیم و ضعیفٌ فی روایته عن عکرمه عند ابن المدینی وابی داود، وابن حجر (میزان ج ۱صـ ۲۱۷) او دا روایت یې هم د عکرمه څخه دی.

## په يو روايت کې راغلي دي چې حضرت بلال بن الحارث المزني په قحط سالۍ کې يا محمداه وويلې (کامل ابن عدی)

قلنا: کامل ابن عدي د ځلورمې درجې په کتابونو کې دی او ددې طبقې په باره کې محدثينو فرمايلي دي چې: این احاديث قابل اعتماد نيستند که در عقيده يا عملی بأنها تمسک کرده شود. (عجاله نافعه صـ ۷)

البته که سندا کوم روايت صحيح ثابت شي نو دهغې په صحت کې بيا کلام نه شته.

۲- دا اواز د روضې مبارکې په خوا کې شوی دی، لهذا دا د غائبانه استمداد دقبيلې څخه نه دی.

۳- دا کلمه تبرکاً وتوسلاً واستشفاعاً جايزه ده.

## د عبدالرحمن مسعودي په خولې يا محمداه ليکل شوی وو

دعبدالرحمن مسعودي ضعيف دی (زيلعی صـ ۱۳۳) نو عمل يې څرنګه حجت شو؟ او عبدالرحمن مسعودي دومره مجذوب وو چې جشرات به يې په غوږونو کې ننوتل (ميزان ج ۲ صـ ۱۱).

۳- پدې روايت کې استمداد هم نشته.

## د معراج په شپه دموسی عليه السلام مدد

رسول الله صلی الله عليه وسلم ته دمعراج په شپه موسی عليه السلام مشوره ورکړه چې زما تجربه داده چې ستا امت پنځوس لمونځونه نه شي کولی، ددې څخه معلوميږي چې مړي ژوندیو ته پکار ورتلی شي؟

قلنا: پدې واقعه کې خو نه استمداد شته او نه مدد، بلکې ددې واقعې څخه صرف دومره ثابتيږي چې که دکوم متوفی سره په ويښه اويا په خوب کې ملاقات وشي او متوفی ورته کومه ديني اويا دونيوي مشوره ورکړي، نو په هغه مشوره باندې عمل کول شرک نه دی، پدې واقعه کې دغاييانه استمداد ذکر نشته.

## د حضرت ساريه واقعه

په حضرت سارية رضی الله عنها باندې دښمن دشا له طرفه دحملې اراده کړې وه، نو حضرت عمر رضی الله عنه په مسجد نبوي کې د ممبر څخه اواز ورکړو چې يا سارية الجبل، حضرت سارية رضی الله عنها اواز وا.، يدلو او ځان يې بچ کړو، معلوميږي چې غايب مدد کولی شي.

قلنا: ۱- دا روایت بیهقي، ابو نعیم او خطیب په خپلو کتابونو کې لیکلی دی، ابو نعیم او خطیب دڅلورمې طبقې دي او د څلورمې طبقې په باره کې دمحدثینو نظر مخکې د بلال بن الحارث د واقعې لاندې ولیکل شو او بیهقي د دریمې طبقې دی، (عجاله صـ ۷) او ددې طبقې په باره کې محدثینو فرمایلي دي چې: اکثر آن احادیث معمول به نزد فقهاء نشده آند بلکی اجماع برخلاف آنها منعقد گشته (عجاله صـ ۷)

۲- په خبر واحد عقیده نه ثابتیږي.

۳- ددې واقعې تعلق دکرامت سره دی داستمداد فی مافوق الاسباب سره ندی، ځکه چې حضرت ساریة رضی الله عنها خو استمداد نه وو کړې، او کرامت د الله تعالی فعل دی د ولي په اختیار کې نه دی، همدارنګه استمرار هم پکې نشته، همدا حضرت عمر رضی الله عنه وو چې کله ابو لؤلؤ (فیروز) مجوسي د حضرت عمر رضی الله عنه دشهیدولو په اراده راغلو، نو اول صف ته ورسیدلو حضرت عمر رضی الله عنه یې په خنجر ووهلو زخمي یې کړو او دیارلس کسان یې نو هم زخمیان کړل چې په هغوي کې بیا اوه شهیدان شول (صحیح البخاري ج۱صـ ۵۲۳) او حضرت عمر نه خنجر ولیدلو او نه مجوسي.

۳- دلته خو حضرت عمر رضی الله عنه هم ژوندی وو او حضرت ساریه رضی الله عنه هم ژوندی وو، پدې باندې دغایبو مړو څخه د استمداد مسئله څرنګه قیاسوئ.

۴- پدې روایت کې خو د مدد کونکي غایبانه اواز ذکر شوی دی، د مدد غوښتونکی غایبانه اواز خو پکې ندی ذکر شوی.

۵- لکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته چې الله تعالی بیت المقدس مخې ته حاضر کړو، همدارنګه یې ورته دنجاشي جنازه حاضره کړه، نو کیدلی شي چې حضرت عمر رضی الله عنه ته الله تعالی د نهاوند واقعه حاضره کړې وي، نو په دې صورت کې د غائبانه ندا سوال نه پیدا کیږي.

## دعلماوو اقوال

## داحمد بن علوان څخه استمداد

په در مختار کې یې لیکلي دي چې کله در څخه یو څه ورک شو نو داسې اواز وکړه چې: یا احمد بن علوانه! که زما دا ورک شی را واپس نه شو ، نو زه به تا دا ولیاوو دلیست څخه وباسم، بریلویان یې داسې معنی کوي چې: که زما دا ورک شی دی را واپس نه کړو ،نو زه به تا د اولیاوو د لیست څخه وباسم.

قلنا: ۱- پدې عبارت کې په اول کې داسې دي چې: و أراد أن يرده الله عليه ، او په آخر کې داسې دي چې فان الله يرد عليه ضالته ببركته، نو د احمد بن علوان رحمه الله ذکر صرف د توسل او د تبرک لپاره شو ،داحمد بن علوان رحمه الله څخه پکې استمداد نه دی ذکر شوی .

۲- په در مختار کې دمجهولې صیغې دي، (ان لم تُردَّ عليّ ضالتي) او بریلویان ترینه دمعلومې صیغه جوړوي او دعبارت په اول او په اخر کې درد کولو فاعل ذکر شوی دی چې الله تعالی دی نو ددې مجهولې صیغې فاعل به هم الله تعالی وي.

## اذا تحيرتم فى الامور فاستعينوا باصحاب القبور؟

قلنا: شاه عبدالعزيز رحمه الله فرمايلي دي چې: اذا تحيرتم فى الأمـور فاسـتعينوا باصـحاب القبـور حديث نيست ، قول بزرگيست وله معانٍ شتى،منها اذا تحيرتم نظـرا الى الدلائـل المتعارضـة فى حـل بعض الاشياء وحرمتها فاتركوا اجتهاد كم وتقلدوا بمن قدمات وهذا القـول اشـبه منقـول عـن عبدالله بن مسعود وسفيان الثورى، ومنها انكم اذا تحيرتم فى الأمـور الدونيويـة وضـاق بسـبب ذلك قلبكم فانظروا الى اصحاب القبور كيف تركوا الدنيا واستقبلوا الاخـرة واعلمـوا انكـم ايضا صائرون الى ما صاروا، وهذا العلم يسهل عليكم مصايب الدنيا وشـدايدها وبالجملـة نـص در معنى استمداد نيست. (فتاوى عزيزي ج ۱صـ ۱۰۵، صـ ۱۲۱)

## د شیخ صلاح الدین رحمه الله قول

مفتي احمد يار خان بريلوي د روح البيان په حواله ليكلي دي چې: شيخ صلاح الدين رحمه الله فرمايلي دي چې الله تعالى ماته دا قدرت راكړى دى چې په زمكه باندې اسمان راوغورزوم دالله تعالى په قدرت. (جاء الحق صـ ۱۸۷)

سبحان الله، څومره قطعي الثبوت او قطعي الدلالت دليل يې پيش كړو؟

بل طرفته يې دشيخ صلاح الدين رحمه الله مرتبه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه هم مخكې كړه، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو به فرمايل چې: (قُلْ لَّوْ اَنَّ عِنْدِيْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ لَقُضِيَ الْاَمْرُ بَيْنِيْ وَ بَيْنَكُمْ ۭ وَ اللّٰهُ اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝)

## د صاوي عبارت

مفتي احمديار خان په صـ ۲۰۳ كې دصاوي يو عبارت رانقل كړى دى حالانكې صاوي دديارلسمې صدۍ د رطب او ديابس راجمع كونكى نيم شيعه او غير معتبر مفسر دى.

## د امام صاحب رحمه الله عقيده

مولوي عمر بريلوي د امام ابو حنيفه رحمه الله طرف ته يوه جعلي او مصنوعي عقيده منسوبه كړې ده، او دهغې څخه يې درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه په استعانت او استمداد باندې استدلال كړى دى (مقياس حنفيت صـ ۴۸۱)

مولوي عمر په دې نه پوهيږي چې د امام اعظم رحمه الله شخصيت خو څخه ګمنام شخصيت نه دى او دا جعلي عقيده د امام صاحب نه ده او همدارنګه امام صاحب هيڅ كله په مافوق الاسباب كې داستمداد من عباد الله قائل نه دى.

**فائده:** بعضې خلک دا شبه كوي چې د امام صاحب په خپل لاس باندې هيڅ ليكلى شوي كتاب نشته او خصوصاً فقه اكبر د امام صاحب كتاب نه دى او بعضې وايي چې فقه اكبر دابو حنيفه البخارى تأليف دى، حالانكې دا بلكل خطاء خبره ده، مشهور او پخوانى مؤرخ علامه ابو الفرج محمد ابن اسحاق ابن نديم المتوفى (۳۸۵) هـ په خپل كتاب الفهرست لابن نديم كې ليكلي دي چې الفقه الاكبر، كتاب العالم والمتعلم، والرد على القدريه وغيره د امام اعظم رحمه الله كتابونه دي (الفهرست لابن نديم صـ ۲۹۹) او همدارنګه علامه احمد ابن مصطفى المتوفى (۹۶۲) فرمايي چې شمس الدين كردي، امام نووي، امام عبدالعزيز

البخاري، او دمشايخو يو لوی جماعت په دې خبره متفق دي چې فقه اکبر دامام صاحب تصنيف دی او بيا يې فرمايلي دي چې معتزله وايي چې امام صاحب زمونږ د مسلک والا دی او په فقه اکبر کې په معتزله وورددی نو معتزله وايي چې دا دامام صاحب تصنيف نه دی، (مفتاح السعادت ومصباح السيادة ج ۲ صـ۹)

## د اشعة اللمعات عبارت

د شرک داعيان د استمداد من غير الله في مافوق الاسباب لپاره د اشعة اللمعات (ج ۳ صـ۴۰۱) يو اوږد عبارت رانقلوي چې: (واما استمداد بأهل القبور منکر شده اند الخ)؟

قلنا: ددې عبارت تعلق د توسل باهل المقابر او دطلب الدعا عند القبور سره دی او ددې په جواز کې اختلاف نشته د اشعة اللمعات په عبارت کې دغير الله څخه داستمدا ذکر نشته د استمداد بأهل القبور او استمداد من أهل القبور په مابين کې فرق دی.

## د تفسير کبير عبارت

أما رازي رحمه الله په تفسير کبير ج ۴ صـ۸۵ کې فرمايلي دي چې: انبياوو ته الله تعالى دومره علوم او معارف ورکړي دي چې دهغې په وجه دخلکو په زړونو او روحونو کې تصرف کولی شي؟

قلنا: ۱- امام رازي رحمه الله داستمداد من غير الله في مافوق الاسباب قايل نه دی، وروسته به دده عبارات ذکر کړو ان شاء الله تعالى، لهذا د امام رازي رحمه الله دعقيدې مطابق دامام رازي د عبارت معنى داده چې انبياوو ته الله تعالى دومره علوم او معارف ورکړي دي چې دهغوي دتعليم په وجه ډير خلک متأثر او فيض يافته کيږي او د الله تعالى دمخلوق لپاره راهنمايان جوړيږي، نو دا د علم، عرفان، وعظ او کريمانه اخلاقو څخه د متأثره کيدلو تصرف دی.

۲- د امام رازي رحمه الله مقصد هيڅکله د اندی چې انبياوو ته په مافوق الاسباب او امور غير عاديه وو کې قدرت حاصل دی، کنه نو پکار وه چې ادم عليه السلام تصرف في مافوق الاسباب کړی وی او قابيل يې د هابيل د وژلو څخه تکويناً منع کړی وي، همدارنګه پکار وو چې نوح عليه السلام خپل ځوی مسلمان کړې وی، پکار وه چې لوط عليه السلام خپله بي بي راهله مسلمانه کړې وی، پکار وه چې سيد الانبياء محمد صلى الله عليه وسلم خپل تره ابو طالب مسلمان کړې وی.

۳- امام رازي رحمه الله د (قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِىْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا) په تشريح کې فرمايلي دي چې: (والمراد أن انزال العذاب على الاعداء واظهار النصرة للاولياء لايقدر عليه أحد الا الله سبحانه) په دشمنانو باندې دعذاب په نازلولو او ددوستانو سره په امداد کولو صرف الله تعالى قادر دى ، همدارنګه د (قل لا أملك لكم ضرّاً ولا رشداً) لاندې يې ليکلي دي چې اما ان يفسر الرشد بالنفع حتى يكون تقدير الكلام لا أملك لكم غيا ولارشدا ويدل عليه قراءة أبى غيّا ولا رشدا ، ومعنى الكلام أن النافع والضار والمرشد والمغوى هو الله تعالى و أن احدا من الخلق لاقدرة له عليه. ضرر رسونکی او فايده رسونکی هدايت ورکونکی او ګمراه کونکی صرف الله تعالى دى، يهدى من يشاء ويضل من يشاء)

۴- معجزې او کرامتونه حق دي لکن پدوي کې د نبي او ولي د فعل او کسب هيڅ دخل نه وي مونږ دهغه تصرف څخه منکر يو په کوم کې چې دنبي يا دولي د فعل او د کسب دخل وي.

## د شاه ولي الله رحمه الله د همعات عبارت

د شرک د اعيان وايي چې شاه ولي الله رحمه الله په همعات کې د حديث النفس په علاج کې فرمايلي دي: د مشايخو أرواحو طيبه وو ته متوجه شه د ايصال الثواب لپاره ورته سورة فاتحة ولوله يا دهغوي د قبر زيارت ته لاړ شه او دهغوي څخه د انجذاب سوال وکړه؟

قلنا: ۱- د رسالې په اول کې مونږ د شاه ولي الله رحمه الله ډير عبارات رانقل کړي دي په هغې کې صراحةً متنازع فيه استمداد ته شرک ويلی شوي دي، د هغو صريحو عباراتو په بناء باندې ددې مجمل عبارت مفهوم دا دى چې کوم سړى چې په حديث النفس کې مبتلی وي او په خپل اخلاص کې ورته کمې په نظر ورځي نو دمشايخو ارواحو ته دې متوجه شي، چې هغوي چې کله په دنيا کې وو نو د حديث النفس علاج يې څرنګه کولو ؟ همغه رنګ علاج دې وکړي ، مشايخو ته دې د ايصال ثواب لپاره سورة فاتحه ولولي کله چې هغوي ته د عرض الاعمال د حديث مطابق ستا دا تحفه ورسيږي نو ستا لپاره به د عا وکړي او الله تعالى به دا خلاص صفت درکړي او يا د اولياوو دقبرونو زيارت ته ورشه او دهغوي څخه دانجذاب سوال وکړه يعني دقبرونو په خوا کې د اولياوو په توسل دعا وکړه او يا دسماع الموتى د قايلينو په نيز دهغوي څخه دعا وغواړه چې الله تعالى دهغوي په شان اخلاص درکړي او د حديث النفس دشر څخه د

بڅ کیدلو په صفت کې دی جذب کړي دأهل القبور څخه د استمداد معنی دهغوي څخه د عا غوښتل دي ، شاه عبد العزیز رحمه الله فرمایي چې: استمداد از اهل قبور بطریق دعا است که از جناب الهی عرض کرده مطلب مرا برآرند آه (فتاوی عزیزي ج ۱صـ ۳۴).

په بل ځای کې یې فرمایلي دي: اذا تحیرتم فی الامور فاستعینوا بأصحاب القبور.

**حدیث نیست قول بزرگیست** : وله معانٍ شتی، منها اذا تحیرتم نظرا الی الدلایل المتعارضة فی خل بعض الاشیاء وحرمتها فاترکوا اجتهادکم وتقلدوا بمن قدمات وهذا القول أشبه منقول عن عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وسفیان الثوری ، ومنها انکم اذا تحیرتم فی الأمور الدونیویة وضاق بسبب ذلک قلبکم فانظروا الی اصحاب القبور کیف ترکوا الدنیا واستقبلوا الآخرة واعلموا أنکم ایضا صائرون الی ما صاروا وهذا العلم یسهل علیکم صعایب الدنیا وشدائدها ، وبالجمله نص در معنی استمداد نیست. (فتاوی عزیزی ج ۱صـ ۱۲۱۲، صـ ۱۰۵)

د اذا تحیرتم فی الأمور فاستعینوا باصحاب القبور دوه معناګانې یې ذکر کړي دي، اول دا چې کله چې دحل او دحرمت دلایل متعارض وونو دخپل تحقیق په ځای د خپلوا اسلافو او اکابرو په تحقیق لاړ شه ، دوهم دا چې کله ددنیا مشکلات درباندې راغلل نو داسلافو او اکابرو په نقش قدم لاړ شه چې هغوي څرنګه د نیا پریښې وه او اخرت ته متوجه شوي وو، دهغوي د خالاتو مطالعه د دنیا مصیبتونه درباندې اسانه کوي ، لهذا دا عبارت په متنازع فیه استمدا کې نص ندی.

۲- دشاه ولي الله الدهلوي رحمه الله په عبارت کې د انجذاب لفظ یوه صوفیانه اصطلاح ده، حضرت قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله د علم التصوف په یوه رساله ارشاد الطالبین کې لیکلي دي چې: دا خبره دې واضحه وي چې دقرب الهي موجب جذب دی، یعني چې الله تعالی یو انسان خپل طرف ته راګاږي، بیا داجذب کله بغیر له کومې واسطې څخه وي هغې ته اجتباء وایي او اکثر دکومې واسطې په وجه وي او واسطه استقراءً دوه شیان وي کله ډیر عبادت وي او کله د یو کامل او مکمل انسان صحبت وي نو کوم جذب الهي چې دعبادت په واسطې سره وي هغه ته د عبادت ثمره وایي او کوم چې د صحبت په واسطې سره وي هغې ته تأثیر وایي (ارشاد الطالبین صـ ۳۱)

خلاصه دا چې جذب الهي یا داجتباء او یادثمرة العبادة اویا د تأثیر څخه عبارت دی، په صـ ۳۷ وصـ ۳۸، کې هم همدا تشریح ده ددې څخه معلومیږي چې جذب دالله تعالی فعل دی، کله بغیر د ابتداء څخه

هم حاصلیږي، د مشایخو کار پکې دادی چې دعا وکړي او یا درته دالله تعالی دقرب طریقه وښایي، نور د جذب د کیفیت ورکول نه ددوي کار دی او نه ددوي په طاقت کې دي.

## د شاه عبدالعزیز رحمه الله عبارات

(۱) شاه عبد العزیز رحمه الله فرمایلي دي چې د وفات شوو اولیاوو او نورو صلحاوو مؤمنانو څخه استفاده او استعانت جاري أو ساري دی او ددې اولیاوو او صلحاوو څخه افاده أو امداد هم متصور دی په خلاف دهغو مړو کوم چې سوزول شوي دي، ځکه چې دا کارونه دهغوي په مذهب کې هم جایز نه دي (تفسیر عزیزي پاره ۳۰، صـ ۵۰)

اهل بدعت وایي چې ددې عبارت څخه معلومه شوه چې بعدالوفات استعانت او اعانت دمسلمانانو خصوصیت دی او استعانت او أعانت نه کول د کافرانو خصوصیت دی، همدارنګه ددې عبارت څخه معلومه شوه چې دکومو أمواتو څخه چې استعانت نه دی جایز هغه سوزول شوي مړي دي.

(۲) همدارنګه شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمایلي دي چې: هغه خواص اولیاء چې ځانونه یې د انسانانو دهدایت لپاره وقف کړي دي هغوي د وفات څخه وروسته هم په دنیا کې د تصرف کولو طاقت لري دهغوي ادراک دومره وسیع دی چې د اخرت په کارونو کې استغراق یې د دنیا طرف ته د توجه څخه مانع نه دی د أویسي سلسلې حضرات خپل باطني کمالات ددوي طرف ته منسوبوي او حاجت مند خلک ددوي څخه خپل حاجات غواړي او مرادونه حاصلوي هغوي دحال په ژبه وایي چې که تاسو دبدن په زریعه زمونږ طرفته راځئ نو مونږ د روح په زریعه ستاسو طرفته پیش قدمي کوو (تفسیر عزیزي پاره ۳۰، صـ ۱۱۳)

۳- همدارنګه شاه عبد العزیز رحمه الله فرمایلي دي چې خواجه باقي بالله رحمه الله یو نانبائي ته توجه اتحادي وکړه او دځان په شان یې کړو (تفسیر عزیزي پاره ۳۰ - صـ ۲۴۵)؟

قلنا: ۱- شاه عبد العزیز رحمه الله خپله دخپل عبارت معنی داسې کړې ده چې: استمداد از اهل قبور بطریق دعا است که از جناب الهی عرض کرده مطلب ما را برآرند الخ (فتاوی عزیزی ج ۱ صـ ۳۴)

همدارنګه یې فرمایلي دي چې: اذا تحیرتم فی الامور فاستعینوا باصحاب القبور، حدیث نیست قول بزرگیست: وله معانٍ شتی، منها اذا تحیرتم نظرا الی الدلایل المتعارضة فی حل بعض الاشیاء وحرمتها فاترکوا اجتهادکم و تقلدوا بمن قدمات وهذ القول أشبه منقول عن عبدالله بن مسعود رضی الله

عنه وسفيان الثوري رضى الله عنه ومنها أنكم اذا تحيرتم فى الامور الدونيوية وضاق بسبب ذلك قلبكم فانظروا الى اصحاب القبور كيف تركوا الدنيا واستقبلوا الأخرة واعلمو انكم ايضا صائرون الى ما صاروا وهذا ا لعلم يسهل عليكم صعايب الدنيا وشدايد ها ، بالجمله نص در معنى استمداد نيست ، انتهى. (فتاوى عزيزى ج ١صـ ١٢١، صـ ١٠٥)

نو دشاه عبدالعزيز رحمه الله عبارت په متنازع فيه استمداد ور حملول توجيه القول بما لايرضى به قايله ده خلاصه دا چې دشاه عبدالعزيز رحمه الله په عبارت کې استعانت يا په معنى ١- دطلب د دعا سره دی ٢- يا په معنى د توسل سره دی ٣- يا متأهّلو خلکو ته په معنى داستفاضې سره دی ۴- يا په صورت د تعارض ددلايلو د حل او د حرمت کې دهغوي په تقليد او پيروی سره دی ۵- اويا په ترک د دنيا کې دهغوي په نقش قدم باندې دتللو په معنى سره دی.

٢- په اصل کې شاه عبد العزيز رحمه الله په هندوانو باندې رد کړی دی او دمړو د سوزولو مضرات يې بيان کړي دي دهغه اصل عبارت چې وګورئ نو دبدعتيانو په دجل په پوه شئ، شاه صاحب فرمايلي دي: ونيز در سوختن بأتش تفريق اجزاى بدن ميت است كه بسبب آن علاقه روح از بدن انقطاع كلي مې پزيرد واثار اين عالم بأن روح كمتر مې رسد وكيفيات آن روح باين عالم كمتر سرايت مې كند و در دفن كردن چون اجزاى بدن بتمامه يكجا مى باشند ، علاقه روح بابدن از راه نظر وعنايت بحال مې ماند وتوجه روح بزائرين ومستأنسين ومستفيدين بسهولت مى شود كه بسبب تعين مكان بدن گويا مكان روح هم متعين است واثار اين عالم از صدقات وفاتحه ها وتلاوت قران مجيد چون در آن بقعه كه مدفن بدن اوست واقع شود بسهولت نافع مى شود پس سوختن گويا روح را بى مكان كردن است و دفن كردن گويا مسكنى براى روح ساختن بنا براين است كه از اولياء مدفونين وديگر صلحاى مؤمنين انتفاع وفايده جارى است وآنها را افاده واعانت نيز متصوّر است بخلاف مردهاى سوخته كه اين چيزها اصلا نسبت بآنها در مذهب آنها نيز واقع نيست آه( صـ ٦١صـ ٦٢، وفى العبض صـ ٥٠.)

٣-شاه عبد العزيز رحمه الله په متنازع فيه استمداد او عقايدو باطله وو باندې رد کړی دی او فرمايلي يې دي چې: ويا رتبه ايمه و أولياء رابرتبه انبياء ومرسلين گرداند وا نبياء ومرسلين را لوزم الوهيت از علم غيب وشنيدن فرياد هركس در هرجا وقدرت برجميع مقدورات ثابت كند وملايكه وارواح

انبیاء و أولیاء را در پرده صور وتماثیل وقبور وتعزیه ها معبود سازد ورزق وفرزند وخدمت ومنصب از ا یشان بالاستقلال در خواست کند وشفاعت وعرض ایشان را در جناب او تعالی واجب القبول گو مکروه انجناب باشد بداند .( تفسیر عزیز ج ۱صـ ۴۰)

گوره شاه عبد العزیز علم الغیب ته خواص د الوهیت وایي، همدارنگه دهر ځای ځخه دهر چا د فریادونو اوریدلو ته خواص د ألوهیت وایي ، همدارنگه بالاستقلال ترینه د أولادونو أو رزقونو غوښتلو ته خواص د اولوهیت وایي ، همدارنگه أولیاء او أنبیاء واجب القبول شفاعت کونکی گڼلو ته باطله عقیده وایي، شاه عبدالعزیز رحمه الله د –«ود»– «سواع».

«یغوث» او «یعوق» په باره کې فرمایي چې: هر چند این پنج اسم نامهای پسران ادریس علیه السلام اند که همه مردمان وادمیان بودندآه (تفسیر عزیزی ج۲۹صـ ۱۳۱)

بیا فرمایي: ولایغوث یعنی ومگذارید بالخصوص یغوث را که مظهر فریاد رسی ومشکل کشائی او تعالی واین مظهر راقوم نوح علیه السلام بصورت أسپی ساخته بودند زیراکه اسپ در دویدن وزود رسیدن واعانت نمودن مثل است واین صفت را درشرع غیاث المستغیثین ومجیب دعوات المضطرین نامند وبزبان هندی این مظهر را أندر نامند، ویعوق یعنی ومگذارید یعوق را که مظهر منع وحمایت ودفع بلا است واین صفت را درشرع کاشف الضر ودافع البلاء گویند آه (تفسیر عزیزی صـ ۱۳۰) نو غیر الله ته مشکل کشا او فریاد رس ویل دمشرکانو عقیده وه چې نوح علیه السلام نهه نیم سوه کاله ددې عقیدې په خلاف تبلیغ وکړو.

۴- د شاه عبدالعزیز رحمه الله دوهم عبارت چې کومو اولیاوو چې د انسانانو د هدایت لپاره ځانونه وقف کړي دي، هغوي د وفات ځخه وروسته هم تصرف کولی شي نو دهغې مطلب دادی چې دا اولیاء لکه ځرنگه چې په عالم الدنیا او تکلیفي زندگی کې د دعا او دتبلیغ په وجه د خلکو د هد ایت ذریعې وې اوس په عالم البرزخ کې د تکلیفي زندگی مرحله ختمه شوه لهذا اوس د تبلیغ وخت لاړو ،لکن ددعا سلسله اوس هم جاري ده دعرض الاعمال په حدیث کې ددعا ذکر موجود دی ، لهذا اوس د دعا په طریقه دخلکو دهدایت ذریعې دي، او ددوي أخروي استغراق اهل الدنیا ته ددعا ځخه مانع نه دی .

۵- د شاه عبدالعزیز رحمه الله د دریم عبارت ځخه هم استدلال نه دی صحیح چې خواجه باقي بالله یو نانبائي ته توجه اتحادي وکړه او دځان په شان یې کړو، ځکه چې دا کرامت دی او په کرامت کې د ولي

فعل او کسب لره هيڅ دخل نه وي ،په دې واقعه کې د خواجه باقي بالله فعل دعا او توجه ده او دا کرامت ندی بلکې کرامت او امر خارق ددې نتيجه ده چې شکل بدلول دي او هغه د الله تعالى فعل دی ، يو کس دبل همشکله کولو ته دصوفيه وو په اصطلاح کې بروز او تاثير اتحادي وايي او بروز او تاثير اتحادي دالله تعالى د خواصو څخه دی ، شاه عبدالعزيز رحمه الله فرمايلي دي چې: اين نوع تصرف يعنی بروز روح در روح حيّ يا ميت د ر اصل از خواص حقيقة الحقايق تعالى وتقدس است ، آه (فتاوى عزيزي ج ۱صـ ۱۱۲)

د ژوندي يا دمړي په روح کې د روح بروز دالله تعالى د خواصو څخه دی او خاصه په غير کې نه موجوديږي ، دشاه عبدالعزيز رحمه الله پوره عبارت داسې دی :

چهارم: تاثير اتحادى كه شيخ روح خود راكهَ حامل كمالى است باروح مستفيد بقوت تمام متحد سازد تا كمال روح شيخ بروح تلميذ مى زسد وبار بار حاجت استفاده نمى ماند ، در أولياء الله اين قسم تأثير به ندرت واقع شده از حضرت خواجه باقى بالله منقول است كه روزى درخانه ايشان چند كس مهمان شدند وما حضر موجود نه بود اوقات حضرت خواجه در فكر ضيافت مشوش شده درتلاش ماحضر شدند، اتفاقا نانوايى متصل خانه ايشان دوكان داشت برين تشويش مطلع شد يک قرص نان خوب پخته بانهارى مكلف ومرغن بخدمت ايشان آورد،وقت ايشان باين سلوک او بسيار خوش شد فرمودند بخوا الخ (تفسير عزيزى پآره ۳۰صـ۳۰۸)

خواجه باقی بالله ته ميلمانه راغلي وو دخواجه صاحب په کور کې څه نه وو ، دکور په څنګ کې نانبای چې دا حالت وکتل نو ميلمنو ته يې ښه خواړه تيار کړل او خواجه صاحب ته يې راوړل ، خواجه صاحب ډير خوشحاله شو او ورته وې فرمايل چې وغواړه څه چې غواړې ؟هغه نانبايي ورته وويل چې زه ستا په شان کيدل غواړم خواجه صاحب ورته وويل چې بل څه شی وغواړه، نابنأی ورته وويل چې بل څه شی نه غواړم بس ستا په شان کيدل غواړم ،نو خواجه صاحب خپلې خانقا ته بوتللو او توجه اتحادي يې ورته وکړه چې بهر راووتل نو د دواړو فرق نه کيدلو ، صرف دومره وه چې خواجه صاحب په هوش کې وو او هغه نانبای زنګيدلو (يو طرف بل طرف) بيا وفات شو الخ.

دا تصرف په پيريانو او شيطانانو کې ډير وي او په انسانانو کې دخارق العادة په طرقه واقع کيږي (فتاوی عزيزی ج ۱.۱۱۲)

۱- نو يو خو بروز او خوارق دالله تعالی فعل دی.

۲- دا دالله تعالی فعل ديو ولي په لاس ډير لږ صادريږي، د شاه عبدالعزيز رحمه الله په عبارت کې د «ندرت» کلمه ده.

۳- خپله خواجه باقي بالله رحمه الله دومره عاجز بنده وو چې ديو څو ميلمنو د اکرام او د ناشتې طاقت يې نه لرلو، نانبای ورسره کومک وکړو، نو څرنګه به د نانبايي لپاره مشکل کشا شي؟

## استمداد از ارواح

د شاه ولي الدهلوي رحمه الله او ابن عربي رحمه الله عبارات:

د شرک شيدايان د متنازع فيه استمداد لپاره د شاه ولي الله رحمه الله دا طيب النعيم يو عبارت رانقلوي چې: لاً بدست از استمداد بروح انحضرت صلى الله عليه وسلم د رسول الله صلى الله عليه وسلم د روح د استمداد څخه بغير چاره نشته، علامه شعراني رحمه الله د ابن عربي رحمه الله قول رانقل کړی دی چې: و أما القطب الواحد فهو روح محمد صلى الله عليه وسلم المُمِدُّ لجميع الانبياء والرُّسل و الأقطاب من حين النشئ الانساني الى يوم القيمة، (كبريت احمر ج۱ص-۱۰، اليواقيت و الجواهر ج۲ص-۸۲)

قطب واحد د محمد صلى الله عليه وسلم روح دی چې د ټولو انبياؤ، رسولانو او اقطابو د پيدايښت څخه تر قيامته پورې مدد ګار دی؟

قلنا: ۱- د روح دوه معنی ګانې دي اول قران او دين محمدي، دوهم روح حقيقي، نو که د روح څخه مراد حقيقي روح شي نو بيا د استمداد من الارواح څخه روحاني فيض مراد دی يعنې بيا داستمداد از روح محمد صلى الله عليه وسلم دا معنی نه ده چې ټول انبياء، رُسل او اقطاب د رسول الله صلى الله عليه وسلم د روح مبارک څخه په تکويني او مافوق الاسباب امورکې مراد ونه غواړي، بلکې د استمداد از روح محمد صلى الله عليه وسلم معنی داده چې د نور القمر مستفاد من نور الشمس په طريقه د ټولو انبياؤ اولياؤ او اقطابو علمي او عملي کمالات د رسول الله صلى الله عليه وسلم فيض دی، بعضې محققين ددې څخه داسې تعبير کوي چې دمحمد صلى الله عليه وسلم نبوت بالذات دی او دنورو پيغمبرانو نبوت بالعرض او د نبي عليه السلام د نبوت فيض دی د محمد صلى الله عليه وسلم دنبوت

فیض ټولو ته عام دی دفیض څخه مراد د تقرب الهی فیض دی په مافوق الاسباب کې دمدد فیض ندی مراد، یعنې د رزق د ورکولو د اولاد د ورکولواو د تکلیفونو د لرې کولو فیض نه دی مراد

۲- او که د روح څخه قرآن او دین محمدي مراد شي نو بیا د امداد معنی داده چې په تشریعي امورو کې ټول انبیاء رسولان او اقطاب د روح محمدي یعنې دقرآن څخه استفاده کوي، روح محمدي په معنی د قرآن سره دی، الله تعالی فرمایلي دي: (وَ كَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا[1])

## تشریح الجوابین

شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله فرمایي چې: فالنبوة عمت کل اصناف والاحمر والاسود مستویان فیما یرجع الی الفیض الذی هو من باب النبوة (تفهیمات ج ۱صـ۲۰۳)

نبوت ټولو اقسامو ته شامل دی، د نبوت دباب څخه چې کوم فیض حاصلیږي په هغې کې سور او توریو برابر دی (رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې: فَلَا فَضْلَ لِعَرَبِيٍّ عَلٰى أَعْجَمِيٍّ، وَلَا أَحْمَرَ عَلٰى أَسْوَدَ إِلَّا بِالتَّقْوٰى، رواه البزار ورجاله رجال الصحیح، مجمع الزوائد ج۸ صـ۸۴)

او دتصوف په انداز سره یې د اقتراباتو خمسه وو تذکره کړی ده، فرمایلي دی چې: توسط الانبیاء صلوة الله علیهم بین الله سبحانه وبین المقربین باحدی هذه الاقتربات الخمس لیس معناه ان یکونوا مفیضی الکمال علیهم بل ان یکون جهة اقترابهم وسمت توجههم ماتشخص به هذالنبی عند العود من اصناف الکمال (تفهیمات ج ۲صـ ۱۳۷، ۱۳۸)

د الله تعالی او دمقربینو په مابین کې د انبیاوو توسط په یو ددې اقتراباتو خمسه وو څخه دی، ددې دامعنی نه ده چې انبیاء په مقربینو باندې فیض اچوي، بلکې معنی یې داده چې دکمالاتو د اقسامو څخه چې کوم قسم ددې مقربینو طرفته راجمع کیږي نو په متعینه او مشخصه طریقه باندې دغه نبي ددې مقربینو د اقتراب او د توجه سمت او جهت وي انتهی، یعنې په مقربینو باندې د پیغمبرانو د فیض معنی د انده چې پیغمبران مقربینو ته ددې فیض اعطاء کوي، بلکې معنی یې داده چې پیغمبران ددې فیض لپاره ذریعه، وسیله او سبب وي او د رسول الله صلی الله علیه وسلم فیض د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات څخه وروسته هم جاري او ساري دی، اصحاب النسبة د قبرونو او د أرواحو څخه هم فیض حاصلوي، قاضي ثناء الله پاني پتي

رحمه الله فرمايلي دي چې: که صاحب د نسبت وي نو خپل زړه دې د نورو خيالاتو څخه فارغ کړي او دصاحب القبر څخه د فيض دحاصلولو لپاره دې مراقبه وکړي، (ارشاد الطالبين صـ ۲۴)

همدارنګه يې فرمايلي دي چې: څوک چې دکمال مرتبې ته رسيدلی وي هغه ته د الله تعالی له طرفه بغير له واسطې څخه فيض رسيږي او د عباداتو څخه هم ترقيات حاصلوي.

الله تعالی فرمايي: واسجد وا قترب، يعني سجده وکړه اود الله تعالی قرب حاصل کړه او درسول الله صلی الله عليه وسلم دقبر شريف او داولياء وو دقبرنو څخه هم فيض حاصلوي ، (ارشاد الطالبين صـ ۳۴)، لکن د افيض دعالم الدينا دفيض په شان نه وي، قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايلي دي چې: که څوک ووايي چې داولياوو فيض د وفات څخه وروسته هم باقي وي نو دبل شيخ طلبول فضول دي ، نو ورته ويلی شي چې د وفات څخه وروسته د اولياوو فيض دومره نه وي چې ناقص دکمال درجې ته ورسوي، مګر شاذ او نادر ، که د وفات څخه وروستني فيض د عالم لدنيا د فيض په شان وی نو درسول الله صلی الله عليه وسلم د زماني څخه تر ننه پورې ټول اهل مدينه به د صحابه کرامو سره يو برابروی، همدارنګه به هيڅوک هم د اولياوو صحبت ته محتاج نه وو (ارشاد الطالبين صـ ۱۷ صـ ۱۸)

لکن ددې فيض څخه دتقرب الهی فيض مراد دی ، د رزق ورکولو، اولا د ورکولو او دتکليفونو لرې کولو فيض نه دی مراد ، لکه څرنګه چې قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايلي دي چې: که يو څوک ووايي چې الله تعالی او رسول الله صلی الله عليه وسلم پدې خبره شاهدان دي نو کافر شو ، اولياء دمعدوم په موجودلو او دموجود په معدومولو قادر نه دي ، نو اولياوو ته د پيد ا کولو، رزق ورکولو، اولاد ورکولو او دمرض څخه دشفاء ورکولو نسبت او ددوي څخه مدد طلبول کفر دی،( قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِىْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ) ارشاد ا لطالبين صـ ۲۰.

همدارنګه يې فرمايلي دي چې: اولياء علم الغيب نه لري البته د بعضو غايبو شيانو علم ورته الله تعالی دکشف يا دالهام په ذريعه ورکوي او دا ويل چې اولياء علم الغيب لري کفر دی، (ارشاد الطالبين صـ ۲۰)

۲- داستمداد من الروح څه معنی ده ؟که د استمداد من الروح معنی دا وي چې صاحب النسبة خلکو ته د رسول الله صلی الله عليه وسلم د روح څخه فيض رسيږي ، نو ددې تحقيق خو وشو چې ددې د استمداد فی مافوق ا لاسباب سره تعلق نشته او که د امعنی يې وي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په مافوق

الاسباب کې رزق ورکوي، اولادونه ورکوي، مريضانو ته شفاء ورکوي، دخلکو مشکلات حل کوي نو دا بيا (توجيه القول بما لايرضى به قايله) ده ځکه چې مخکې د شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله عبارات تير شول چې هغوي استمداد فی مافوق الاسباب ته شرک ويلي وو ، همدارنګه د امعنى د نصوصو قطعيه وو او احاديثو متواترو ځخه مخالفه ده.

٢- د شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله په عباراتو کې د استمداد معنى دانه ده چې خلک در سول الله صلى الله عليه وسلم د روح ځخه رزقونه، اولادونه ، اود مشکلاتو حل کول غواړي، بلکې دشاه ولي الله رحمه الله په عباراتو کې ددې معنى پدې طريقه باندې استفاضه هم راغلې ده چې دسکر يا بې هوشۍ په حالت کې ، ياهمداسې مراقبه وکړي او پدې مراقبه کې په مثالي طريقه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د روح سره ملاقات وشي او په علمي طريقه ورځخه استفاده وکړي د رسول الله صلى الله عليه وسلم مثالي روح يې علمي اشکالات حل کړي، شاه ولي الله رحمه الله خپله فرمايلي دي چې: اين فقير از روح پر فتوح سوال کرد که حضرت چی می فرمايند در باب شيعه که مدعى محبت اهل بيت اند وصحابه را بدمی گويند؟ انحضرت بنوعی از کلام روحانی القاء فرمودند که مذهب ايشان از لفظ امام معلوم ميشود چون از ان حالت افاقه دست داد درلفظ امام تأمل کردم معلوم شد که امام باصطلاح ايشان معصوم مفترض الطاعة منصوب للحق است ووحی باطنی در حق امام تجويز می نمايند پس در حقيقت ختم نبوت رامنکر آند گويا بزبان آنحضرت را صلى الله عليه وسلم خاتم الانبياء می گفته باشند (تفهيمات الهيه ج ٢صـ ٢٤٤)

دغې فقير درسول الله صلى الله عليه وسلم دروح پر فتوح ځخه پوښتنه وکړه چې تاسو د شيعه ګانو په باره کې ځه وايي چې داهل بيت سره دمحبت د عوه کوي ؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم راته په يو قسم روحاني کلام سره القاء وکړه چې دشيعه ګانو مذهب دامام دلفظ ځخه مغلوميږي، کله مې چې ددې حالت ځخه افاقه وشوه نو دامام په لفظ کې مې فکر وکړو نو معلومه شوه چې امام د دوي په نيز معصوم وي اطاعت يې فرض وي او دحق لپآره نصب شوی وي او همدرانګه د امام په باره کې دباطني وحې تجويز کوي نو په حقيقت کې هغوي دختم نبوت ځخه منکر دی نو صرف په ژبه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته خاتم الانبياء وايي، انتهى نو دا د رسول الله صلى الله عليه وسلم د روح مبارک ځخه روحاني سوال وو لکه

ځرنګه چې خپله شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله فرمايلي دي چې: سألته سؤالا روحانياً عن الشيعة الخ (تفيهمات ج ۲صـ ۲۵۰) ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم ځخه په روحاني طريقه پوښتنه وکړه دا معامله د سکر يا بې هوشۍ اويا دېرکالۍ په حالت کې کيږي(چون ازان حالت افاقه دست داد) ورباندې دلالت کوي او د رسول الله صلى الله عليه وسلم جواب هم يو قسم روحاني وو (بنو عى از کلام روحانى) ورباندې دلالت کوي، خلاصه دا چې پدې کلام کې متنازع فيه استمداد نه دى مراد، چې دغير الله ځخه په مافوق الاسباب کې رزق اولادونه او دفع المضرات وجلب المنافع غوښتل دي.

## د ابن عربي رحمه الله د عبارت مزيد تشريح

د ابن عربي رحمه الله ټول عبارت داسې دى چې: واما لقطب الواحد فهو روح محمد صلى الله عليه وسلم الممذ لجميع الانبياء والرسل والاقطاب من حين النشئ الانسانى الى يوم القيمة ، والله اعلم، وقال: فان الوحى المتضمن للتشريع قد اغلق بعد محمد صلى الله عليه وسلم ولهذا كان عيسى عليه السلام اذا نزل يحكم بشريعة محمد صلى الله عليه وسلم دون وحى جديد آه ( الكبريت الاحمر على هامش اليواقيت والجواهر ج ۱صـ ۱۰)

او بهر حال هغه يو قطب د محمد صلى الله عليه وسلم روح دى چې د انسان د پيدايښت ځخه تر قيامته پورې د ټولو انبياء وو رسولانو او اقطابو مدد کونکى دى، والله اعلم او فرمايلي دي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم ځخه وروسته وحى تشريعى بنده شوه ، لهذا کله به چې عيسى راکوز شي نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم د شريعت مطابق فيصلې به کوي، نه په جديده وحې ، نو پدې عبارت کې په (فان الوحى المتظمن للتشريع الخ) کې حرف فاء ده چې د مخکني دعوې لپاره دليل دى، مطلب يې داده چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم دين، وحې او شريعت په ټولو لازم دى دا معنى نده چې په تکويني امورو کې امداد کوي، نور تکويني أمور خو لاځه کوې خپله قطبيت چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم شان دى هم چاته نه شي ورکولى، اعطاء خو لا ځه کوې چې په دې باره کې د دوي د دعا قبليدل هم نه دى ضروري لکه ځرنګه چې علامه شعراني رحمه الله فرمايلي دي چې:

فانقلت: هل للقلب (الصحيح القطب) تصرف فى ان يعطى القطبية لمن شاء من اصحابه وا ولاده ؟

فالجواب: ليس له تصرف فى ذلک وقد بلغنا ان بعض الاقطاب سأل الله ان تكون القطبية من بعده لولده فاذا بالهاتف يقول له: ذلک لايکون الا فى الارث الظاهر واما الارث الباطن فذلک الى الله وحده (اليواقيت والجواهر ج۲صـ ۸۲)

که ته پوښتنه وکړې چې ايا قطب ته دا تصرف حاصل دی چې په خپل اولاد يا اصحابو کې چاته چې وغواړي قطبيت ورکړي؟ نوجواب دادی چې نه، قطب ته پدې کې هيڅ تصرف ندی حاصل او موږ ته دا خبر رارسيدلې دی چې بعضې اقطابو دالله تعالى څخه غوښتنه وکړه چې دده څخه وروسته دې قطبيت دده ځوی ته ورکړل شي، نو د غيبو څخه ورته اواز وشو چې دا سلسله په ظاهري وراثت کې چليږي په باطني وراثت کې نه چليږي دا باطني وراثت صرف الله تعالى ته حواله دی الله تعالى ښه پوهيږي چې د پيغام رسونې سلسله چيرته کيږدي، ددې څخه معلومه شوه چې قطبيت او دارنګې دنورو تکويني امورو اعطاء صرف الله تعالى کوي، او په تشريعي امورو کې انبياء رسل او اقطاب د روح محمدي يعنې دقران څخه استفاده کوي، روح په معنى دقران او وحې سره دی الله تعالى فرمايلي دي چې (وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا)، همدارنګه (يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ).

ابن عربي رحمه الله فرمايلي دي: فلايخلوا زمان من رسول يكون فيه وذلک هو القطب الذى هو محل نظر الحق تعالى من العالم كما يليق بجلاله ومن هذا القطب يتضرع جميع الامداد الالهية على جميع العالم العلوى والسفلى، قال الشيخ محى الدين ومن شرطه ان يكون ذا جسم طبيعى ور وح ويكون موجودا فى هذه الدار الدينا بجسده وروحه من عهد آدم الى يو م القيمة ولما كان الامر على ماذكرناه ومات رسول الله صلى الله عليه وسلم بعد ماقرر الدين اللذى لاينسخ والشرع الذى لايتبدل دخلت الرسل كلهم فى شر يعته ليقوموا بها فلا تخلوا الارض من رسول حیّ بجسمه اذ هو قطب العالم الانسانى ولو كانو افى العدد الف رسول فان المقصود من هؤلاء هو الواحد، فادريس فى السماء الرابعة وعيسى فى السماء الثانية والياس والخضر فى الارض ، ومعلوم ان السموات السبع من عالم الدنيا لكونها تبقى ببقاء الدنيا متفنى بفناءها صورة فهى جزء من دارالدنيا ا لى ان قال، قد ابقى الله فى الارض الياس والخضر

وکذلک عیسی اذا نزل ، وهم من المرسلین فهم القائمون بالدین الحنیفی فما زال المرسلون ولایزالون فی هذه الدار لکن من باطنیة شرع محمد صلی الله علیه وسلم ولکن اکثر الناس لایعلمون فالقطب هوالواحد من عیسی وادریس و الیاس والخضر علیهم السلام وهو احد ارکان بیت الدین وهو کرکن الحجر الاسود، واثنا ن منهم هما الا مامان واربعتهم هم الاوتاد فباالواحد یحفظ الله الایمان وبالثانی یحفظ الله الرسالة وبالمجموع یحفظ الله الدین الحنیفی فالقطب من هؤلاء واحد لابعینه (الفتوحات المکیه باب ۷۳)

هیڅ زمانه د پیغام رسونکي څخه نه خالي کیږي ،همدغه پیغام رسونکی همغه قطب وي چې دالله تعالی دشفقت لپاره لایق او محل وي او دهمدې قطب په ذریعه او برکت په ټول عالم (علوي وي او که سفلوي) دالله امداد متضرع کیږي .

محی الدین ابن عربي رحمه الله فرمایلي دي چې د دې قطب لپاره شرط دادی چې جسم طبعي او روح به لري او پدې عالم الدنیا کې به دخپل جسم او حقیقت سره موجود وي او کله چې معامله داسې ده لکه مونږ چې ذکر کړه نو کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ددې غیر منسوخ دین دثابتولو او د نه بدلیدونکي شریعت د نافذولو څخه وروسته وفات شو نو ټول پیغام رسونکي (اقطاب) د رسول الله صلی الله علیه وسلم په دین کې داخل شول تر څو چې همدا غیر منسوخ او غیر متبدل دین قائم کړي ،نو ځمکه د جسماً ژوندی پیغام رسونکي څخه (قطب) څخه نه خالي کیږي ، ځکه چې دا دټول عالم الانسان قطب وي اګر چې په شمار کې زر پیغام رسونکي وي، خو مقصود پکې یو وي، نو ادریس علیه السلام په څلورم اسمان کې او عیسی علیه السلام په دوهم اسمان کې او الیاس او حضر علیهما السلام به زمکه کې دی او دا خبره هم واضحه ده چې اووم اسمان هم دعالم الدینا څخه دی ځکه چې هغه صورةً ددنیا دبقاء سره باقي دی او ددنیا دفناء سره فناء کیږي، نو د دارالدنیا څخه جزء دی ، بیا مخکې لیکي چې او یقینا چې الیاس او خضر علیهما السلام همدارنګه چې کله عیسی علیه السلام ځمکې ته راکوز شي نو دوي به پدې ځمکه کې ددې حنیفي دین قایمونکي وي، نو دوي مرسلین دي او دهمیشه لپاره مرسلین دي او په دې دنیا کې اوسیږي لکن دمحمد صلی الله علیه وسلم د شریعت دباطن په لحاظ مګر اکثر خلک نه پوهیږي نو په عیسی ادریس، الیاس او خضر علیهم السلام کې یو قطب دی او دغه یو ددین

دکوریو رکن دی لکه حجر اسود او پدوي کې دوه امامان دي او دا څلور واړه او تاد دي، نو پدوي کې د یو سره د ایمان د دوهم سره د ولایت د دریم سره دنبوت اود څلورم سره د رسالت حفاظت کوي او پدې ټولو دین حنیفي محفوظ ساتي، نو قطب په دوي کې یو لا علی التعین دی.

خلاصه دا چې دا څلور پیغمبران په عالم الدنیا کې ژوندي دي (خیالي ص۱۴۲) او په دوي کې لا علی التعین یو قطب دی او دعالم علوي او سفلوی سره الله تعالی ددوي په ذریعه او وسیله امداد کوي، او دا ټول دمحمد صلی الله علیه وسلم دشریعت پابند دی د (دخلت الرسل کلهم فی شریعته - او- لکن من باطنیة شرع محمد صلی الله علیه وسلم ) الفاظ وربانديې دلالت کوي، لهذا د روح محمدي څخه قرآن، وحی او دین مراد دی،نو معنی دا شوه چې دا ټول د قران، وحی او دین محمدي څخه مستفیض دي.

## د دویوبند د اکابرو دعباراتو څخه استدلالات

**د امداد المشتاق عبارت:**

مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله لیکلي دي چې یو مرید دخپل پیر صاحب. مزار ته لاړو او وې ویل چې حضرت زه ډیر پریشان یم او ډوډۍ ته محتاج یم لږ لاس نیوي مې وکړه، نو حکم وشو چې تاته به زما د مزار څخه روزانه یوه نیمه یادوه أنې میلاویږي (امداد المشتاق ص۱۲۳)

قلنا: قبر ته تلل او صاحب القبر ته ویل چې ماته دعا وکړه نو مجوّزین دسماع الموتی دې ته جایز وایي دلته د دستګیرۍ څخه همدغه دعا مراده ده ، ممکنه ده چې دغې مرید ته کشف شوي وي او دتوسل او دعا په طریقه یې خپل پیر ته ویلي وي چې زما دغه مشکل دی او پیر صاحب دعا کړې وي او یا یې پخپله د پیر صاحب په توسل دعا کړې وي او الله تعالی ددې مزار څخه دغه کرامت ظاهر کړی وي.

## کشف القبور

کشف القبور ثابت دی په صحیحو احادیثو کې راغلي دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په قبرونو کې مړی په عذاب لیدلی وو، ابن کثیر دابن عساکر په حواله د سورة الاعراف (۲۰۱) نمبر ایت په تفسیر کې لیکلي دي چې دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې یو نو جوان په مسجد کې ډیر عبادت کولو د مسجد په څنګ کې دیو ښځې کور وو. هغه پرې عاشقه شوه، نو دخپلو نفسي خواهشاتو دپوره کولو لپاره یې را وغوښتلو، نوجوان یې دوهکه کړو، ور روان شو چې کورته ورننوځې شو نو ناڅاپه یې ذهن ته دا ایت راغلو چې (اِنَّ الَّذِیۡنَ اتَّقَوۡا اِذَا

مَسَّهُمْ طَٰٓئِفٌ مِّنَ الشَّيْطٰنِ تَذَكَّرُوْا فَإِذَا هُمْ مُّبْصِرُوْنَ﴾ او بې هوشه شو او چې کله يې بيا دا ايت تلاوت کړو، نو د الله تعالى له ويرې يې روح پرواز وکړو، خلکو د شپې دفن کړو، حضرت عمر رضى الله عنه چې سهر خبر شو نو قبر ته ورغلو اواز يې ورته وکړو چې (يا فتى ولمن خاف مقام ربه جنتان) نو د قبر څخه جواب راغلو چې: (يا عمر قد اعطانيهما ربى عز وجل فى الجنة مرتين) نو د حضرت عمر رضى الله عنه خبرې د صاحب القبر سره کشف القبور دى، حافظ ابن تيميه الحنبلي فرمايي چې: وقد انكشف لكثير من الناس حتى سمعوا صوت المعذبين فى قبورهم ورأوهم بعيونهم يعذبون فى قبورهم فى اثار كثيرة معروفة (فتاوى ابن تيميه ج ٤صـ ٢٩٦)

په ډير اثارو کې ثابته ده چې ډيرو خلکو مړو ته د عذاب اوازونه اوريدلي دي او د مړو عذاب يې په سترګو ليدلى دى، حافظ ابن القيم فرمايلي دي چې حضرت مطرف التابعى، قبرستان ته لاړو، (فرأى اهل القبور كل صاحب قبرٍجالساً على قبره فقالو هذا مطرف يأتى الجمعة قلت وتعلمون عندكم يوم الجمعة؟ فقالوا نعم ونعلم ما يقول فيه الطير، قلت وما يقولون؟ قالوا يقولون سلم سلم (كتاب الروح صـ ٢٢)

## دحضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله د اشعارو وضاحت

غير مقلدين د حضرت تهانوي رحمه الله په اشعارو اعتراض کوي او د شرک داعيانو ترينه استدلال کوي او وايي چې په د مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په اشعارو کې د غير الله څخه د استمداد ذکر دى،

(۱) هغه اشعار دا دي چې:

ياشـــــفيع العبـــــاد خــــذ بيـــــدى
انــــــت فى الاضـــــطرار معتمـــــدى
لـــــيس لى ملجــــأ ســـواک أغـــث
مسّـــــنى الــــضر ســـيدى وســـندى
غشّـــنى الدهـــر يـــا ابـــن عبـــدالله
كـــن مغيثـــا فأنـــت لى مـــددى

لـــــيس لی طاعـــــة ولا عمـــــلُ
بَيْـــدَ حُبّيْـــک فهـــو لی عتـــدی
يـــا رســـول الاله بابـــــک لی
مـــن غمـــام الغمـــوم ملتحـــدی

نشر الطيب صـ ۱۵۶)

الجواب: ددې څخه داستمداد معنى اخستل توجيه القول بما لا يرضى به قايله دى دهر شاعر او قايل دکلام او د شعر معنى به دهغه دعقيدې او دنظريې مطابق کوي.

اشرف علي تهانوي رحمه الله مافوق الاسباب نداء ته شرک وايي او ما فوق الاسباب استمداد ته شرک وايي او شوقيه نداءُ ته جايز وايي.

د دې اشعارو توضيع: مولانا اشرف على تهانوي رحمه الله په نشر الطيب کې صـ ۲۵۳) کې کړی ده چې په مطالعه کولويې شک ختميږي، حضرت مولانا أشرف علي تهانوي رحمه الله د توسل په حديث کې ديا محمد دلفظ په تشريح کې فرمايي چې: د ندا شبهه د دوو وجود څخه مه کوئ، يو خو ددې وجې څخه چې دا ندا په مسجد نبوي کې شوې ده، په مسجد نبوي کې ندا غايب ته نه راځي، دوهمه وجه دا ده چې سلف صالحين نيک اعتقاده وو، دهغوي دحال څخه ظاهره دا ده چې هغوي ندا په قصد دتبليغ الملائکه سره کړې وه، او دريمه وجه دا هم ده چې سلفو په دې ندا کې قصد ددې نه کولو چې نبي کريم ﷺ حاجت روا دی او دا حقر (اشرف على تهانوي رحمه الله) دخپل قول څخه چې ددې فصل په شروع کې يې ذکر کړو همدا مراد دی. (نشر الطيب صـ ۲۵۳).

په امداد الفتاوی ج ۵ صـ ۳۳۵، کې يې فرمايلي دي چې (۱) استعانت واستمداد بالمخلوق جو باعتقاد علم وقدرت مستقل مستمد منہ ہو وہ شرک ہے

۲۔اور جو باعتقاد علم وقدرت غير مستقل ہو مگر وہ علم وقدرت کسے دليل سے ثابت نہ ہو معصيت ہے۔

۳۔اور جو باعتقاد علم وقدرت غير مستقل ہو اور وہ علم وقدرت کسے دليل سے ثابت ہو جائز ہے خواہ وہ مستمد منہ زندہ ہو يا ميت الخ

همدا رنګه يې فرمايلي دي: پس اکابر ميں سے کسے کلام ميں ايسے ندا ہو تو اس کو يا مجاز پر محمول کيا جاوے يا ان کے طرف نسبت کرنے کو غير صحيح کيا جاوے .يا مثل اس کے کوئی اور مناسب توجيہ کی جاوےگے ،يہ تو ان کے تبريہ کے لئے ہے باقی عوام کو بوجہ متيقن مفسدہ کے جزماً وحتماً روکا جاوے گا (فتاوی امداديہ ص۔ ۳۱۶)

۳- امام رازي رحمه الله د (قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ نَفْعًا وَّلَا ضَرًّا) په تشريح کې فرمايلي دي چې: (والمراد أن انزال العذاب على الاعداء واظهار النصرة للاولياء لايقدر عليه أحد الا الله سبحانه) په دشمنانو باندې دعذاب په نازلولو او ددوستانو سره په امداد کولو صرف الله تعالى قادر دی ، همدارنګه د (قل لا أملك لكم ضرًّا ولا رشداً) لاندې يې ليکلي دي چې اما ان يفسر الرشد بالنفع حتى يكون تقدير الكلام لا أملك لكم غيا ولا رشدا ويدل عليه قراءة أبى غيّا ولا رشدا ، ومعنى الكلام أن النافع والضار والمرشد والمغوى هو الله تعالى و أن احدا من الخلق لاقدرة له عليه.
ضرر رسونکی او فايده رسونکی هدايت ورکونکی او ګمراه کونکی صرف الله تعالى دی، يهدی من يشاء ويضل من يشاء)

۴- معجزې او کرامتونه حق دي لکن پدوي کې د نبي او ولي د فعل او کسب هيڅ دخل نه وي مونږ دهغه تصرف څخه منکر يو په کوم کې چې د نبي يا د ولي د فعل او د کسب دخل وي.

## د شاه ولي الله رحمه الله د همعات عبارت

د شرک د اعيان وايي چې شاه ولي الله رحمه الله په همعات کې د حديث النفس په علاج کې فرمايلي دي: د مشايخو أرواحو طيبه وو ته متوجه شه د ايصال الثواب لپاره ورته سورة فاتحة ولوله يا دهغوي د قبر زيارت ته لاړ شه او دهغوي څخه د انجذاب سوال وکړه؟

قلنا: ۱- د رسالې په اول کې مونږ د شاه ولي الله رحمه الله ډير عبارات رانقل کړي دي په هغې کې صراحةً متنازع فيه استمداد ته شرک ويلى شوي دي، د هغو صريحو عباراتو په بناء باندې ددې مجمل عبارت مفهوم دا دی چې کوم سړی چې په حديث النفس کې مبتلى وي او په خپل اخلاص کې ورته کمې په نظر ورځي نو دمشايخو ارواحو ته دې متوجه شي، چې هغوي چې کله په دنيا کې وو نو دحديث النفس علاج يې څرنګه کولو؟ همغه رنګ علاج دې وکړي ، مشايخو ته دې د ايصال ثواب لپاره سورة فاتحه ولولي کله چې هغوي ته د عرض الاعمال د حديث مطابق ستا دا تحفه ورسيږي نو ستا لپاره به د عا وکړي او الله تعالى به دا خلاص صفت درکړي او يا د اولياوو دقبرونو زيارت ته ورشه او دهغوي څخه دانجذاب سوال وکړه يعنې دقبرونو په خوا کې د اولياوو په توسل دعا وکړه او يا دسماع الموتى د قايلينو په نيز دهغوي څخه دعا وغواړه چې الله تعالى دهغوي په شان اخلاص درکړي او دحديث النفس دشر څخه د

بچ کیدلو په صفت کې دی جذب کړي دأهل القبور څخه د استمداد معنی دهغوي څخه د دعا غوښتل دي
، شاه عبد العزیز رحمه الله فرمايي چې: استمداد از اهل قبور بطریق دعا است که از جناب الهی عرض کرده مطلب مرا برآرند آه (فتاوی عزیزي ج ۱صـ ۳۴).

په بل ځای کې يې فرمايلي دي: اذا تحيرتم فی الامور فاستعينوا بأصحاب القبور.

**حدیث نیست قول بزرگیست** : وله معانٍ شتی، منها اذا تحيرتم نظرا الى الدلايل المتعارضة فی حل بعض الاشياء وحرمتها فاتركوا اجتهادكم وتقلدوا بمن قدمات وهذا القول أشبه منقول عن عبد الله بن مسعود رضی الله عنه وسفيان الثوری ، ومنها انكم اذا تحيرتم فی الأمور الدونيوية وضاق بسبب ذلک قلبكم فانظروا الى اصحاب القبور كيف تركوا الدنيا واستقبلوا الآخرة واعلموا أنكم ايضا صائرون الى ما صاروا وهذا العلم يسهل عليكم صعايب الدنيا وشدائدها ، وبالجمله نص در معنی استمداد نیست. (فتاوی عزیزی ج ۱صـ ۱۲۱۲، صـ ۱۰۵)

د اذا تحيرتم فی الأمور فاستعينوا باصحاب القبور دوه معناګانې يې ذکر کړي دي، اول دا چې کله چې دحل او دحرمت دلایل متعارض وونو دخپل تحقیق په ځای د خپلوا اسلافو او اکابرو په تحقیق لاړ شه ، دوهم دا چې کله ددنیا مشکلات دربانديې راغلل نو داسلافو او اکابرو په نقش قدم لاړ شه چې هغوي څرنګه د نیا پریښې وه او اخرت ته متوجه شوي وو، دهغوي د حالاتو مطالعه د دنیا مصیبتونه دربانديې اسانه کوي ، لهذا دا عبارت په متنازع فیه استمدا کې نص ندی.

۲- دشاه ولي الله الدهلوي رحمه الله په عبارت کې د انجذاب لفظ یوه صوفیانه اصطلاح ده، حضرت قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله د علم التصوف په یوه رساله ارشاد الطالبین کې لیکلي دي چې: دا خبره دې واضحه وي چې دقرب الهي موجب جذب دی، یعنې چې الله تعالی یو انسان خپل طرف ته راکاږي، یا داجذب کله بغیر له کومې واسطې څخه وي هغې ته اجتباء وايي او اکثر دکومې واسطې په وجه وي او واسطه استقراءً دوه شیان وي کله ډیر عبادت وي او کله د یو کامل او مکمل انسان صحبت وي نو کوم جذب الهي چې دعبادت په واسطې سره وي هغه ته د عبادت ثمره وايي او کوم چې د صحبت په واسطې سره وي هغې ته تأثیر وايي (ارشاد الطالبین صـ ۳۱)

خلاصه دا چې جذب الهي یا داجتباء او یادثمرة العبادة اویا د تأثیر څخه عبارت دی، په صـ ۳۷ وصـ ۳۸، کې هم همدا تشریح ده ددې څخه معلومیږي چې جذب دالله تعالی فعل دی، کله بغیر د ابتداءً څخه

هم حاصليږي، د مشايخو کارپکې دادی چې دعا وکړي او يا درته دالله تعالی دقرب طريقه وښايي، نور د جذب د کيفيت ورکول نه ددوي کار دی او نه ددوي په طاقت کې دي.

## د شاه عبدالعزيز رحمه الله عبارات

(۱) شاه عبد العزيز رحمه الله فرمايلي دي چې د وفات شوو اولياوو او نورو صلحاوو مؤمنانو څخه استفاده او استعانت جاري أو ساري دی او ددې اولياوو او صلحاوو څخه افاده أو امداد هم متصور دی په خلاف دهغو مړو کوم چې سوزول شوي دي، ځکه چې دا کارونه دهغوي په مذهب کې هم جايز نه دي (تفسير عزيزي پاره ۳۰، ص ۵۰)

اهل بدعت وايي چې ددې عبارت څخه معلومه شوه چې بعدالوفات استعانت او اعانت دمسلمانانو خصوصيت دی او استعانت او اعانت نه کول د کافرانو خصوصيت دی، همدارنګه ددې عبارت څخه معلومه شوه چې دکومو أمواتو څخه چې استعانت نه دی جايز هغه سوزول شوي مړي دي.

(۲) همدارنګه شاه عبدالعزيز رحمه الله فرمايلي دي چې: هغه خواص اولياء چې ځانونه يې د انسانانو دهدايت لپاره وقف کړي دي هغوي د وفات څخه وروسته هم په دنيا کې د تصرف کولو طاقت لري دهغوي ادراک دومره وسيع دی چې د اخرت په کارونو کې استغراق يې د دنيا طرف ته د توجه څخه مانع نه دی د أويسي سلسلې حضرات خپل باطني کمالات ددوي طرف ته منسوبوي او حاجت مند خلک ددوي څخه خپل حاجات غواړي او مرادونه حاصلوي هغوي دحال په ژبه وايي چې که تاسو دبدن په زريعه زمونږ طرفته راځئ نو مونږ د روح په زريعه ستاسو طرفته پيش قدمي کوو (تفسير عزيزي پاره ۳۰، ص ۱۱۳)

۳- همدارنګه شاه عبد العزيز رحمه الله فرمايلي دي چې خواجه باقي بالله رحمه الله يو نانبائي ته توجه اتحادي وکړه او دځان په شان يې کړو (تفسير عزيزي پاره ۳۰- ص ۲۴۵)؟

قلنا: ۱- شاه عبد العزيز رحمه الله خپله دخپل عبارت معنی داسې کړې ده چې: استمداد از اهل قبور بطريق دعا است که از جناب الهی عرض کرده مطلب ما را برآرند الخ (فتاوی عزيزی ج ۱ ص ۳۴)

همدارنګه يې فرمايلي دي چې: اذا تحيرتم فی الامور فاستعينوا باصحاب القبور، حديث نيست قول بزرگيست: وله معانٍ شتی، منها اذا تحيرتم نظرا الی الدلايل المتعارضة فی حل بعض الاشياء وحرمتها فاترکوا اجتهادکم و تقلدوا بمن قدمات وهذ القول أشبه منقول عن عبدالله بن مسعود رضی الله

عنه وسفيان الثوري رضى الله عنه ومنها أنكم اذا تحيرتم فى الامور الدونيوية وضاق بسبب ذلك قلبكم فانظروا الى اصحاب القبور كيف تركوا الدنيا واستقبلوا الأخرة واعلمو انكم ايضا صائرون الى ما صاروا وهذا ا لعلم يسهل عليكم صعايب الدنيا وشدايد ها ، بالجمله نص در معنى استمداد نيست ، انتهى. (فتاوى عزيزى ج ١صـ ١٢١، صـ ١٠٥)

نو دشاه عبدالعزيز رحمه الله عبارت په متنازع فيه استمداد ور حملول توجيه القول بما لايرضى به قايله ده خلاصه دا چې دشاه عبدالعزيز رحمه الله په عبارت کې استعانت يا په معنى ١- دطلب د دعا سره دى ٢- يا په معنى د توسل سره دى ٣- يا متأهّلو خلکو ته په معنى داستفاضې سره دى ۴- يا په صورت د تعارض ددلايلو د حل او د حرمت کې دهغوي په تقليد او پيروى سره دى ۵- اويا په ترک د دنيا کې دهغوي په نقش قدم باندې دتللو په معنى سره دى.

٢- په اصل کې شاه عبد العزيز رحمه الله په هندوانو باندې رد کړى دى او دمړو د سوزولو مضرات يې بيان کړي دي دهغه اصل عبارت چې وګورئ نو دبدعتيانو په دجل په پوه شئ، شاه صاحب فرمايلي دي: ونيز در سوختن بأتش تفريق اجزاى بدن ميت است که بسبب آن علاقه روح از بدن انقطاع کلي مي پزيرد واثار اين عالم بأن روح کمتر مې رسد وکيفيات آن روح باين عالم کمتر سرايت مې کند و در دفن کردن چون اجزاى بدن بتمامه يکجا مى باشند ، علاقه روح بابدن از راه نظر وعنايت بحال مې ماند وتوجه روح بزائرين ومستأنسين ومستفيدين بسهولت مى شود که بسبب تعين مکان بدن گويا مکان روح هم متعين است واثار اين عالم از صدقات وفاتحه ها وتلاوت قران مجيد چون در آن بقعه که مدفن بدن اوست واقع شود بسهولت نافع مى شود پس سوختن گويا روح را بى مکان کردن است و دفن کردن گويا مسکنى براى روح ساختن بنا براين است که از اولياء مدفونين وديگر صلحاى مؤمنين انتفاع وفايده جارى است وآنها را افاده واعانت نيز متصوَر است بخلاف مردهاى سوخته که اين چيزها اصلا نسبت بآنها در مذهب آنها نيز واقع نيست آه( صـ ٦١صـ ٦٢، وفى العبض صـ ٥٠.)

٣-شاه عبد العزيز رحمه الله په متنازع فيه استمداد او عقايدو باطله وو باندې رد کړى دى او فرمايلي يې دي چې: ويا رتبه ايمه و أولياء رابرتبه انبياء ومرسلين گرداند وا نبياء ومرسلين را لوزم الوهيت از علم غيب وشنيدن فرياد هرکس در هرجا وقدرت برجميع مقدورات ثابت کند وملايکه وارواح

انبیاء و أولیاء را در پرده صور وتماثیل وقبور وتعزیه ها معبود سازد ورزق وفرزند وخدمت ومنصب از ا یشان بالاستقلال در خواست کند وشفاعت وعرض ایشان را در جناب او تعالی واجب القبول گو مکروه انجناب باشد بداند .( تفسیر عزیز ج ۱صـ ۴۰)

ګوره شاه عبد العزیز علم الغیب ته خواص د الوهیت وایي، همدارنګه دهر ځای څخه دهر چا د فریادونو اوریدلو ته خواص د ألوهیت وایي ، همدارنګه بالاستقلال ترینه د أولادونو أو رزقونو غوښتلو ته خواص د اولوهیت وایي ، همدارنګه أولیاء او أنبیاء واجب القبول شفاعت کونکی ګڼلو ته باطله عقیده وایي، شاه عبدالعزیز رحمه الله د –«ود»– «سواع».

«یغوث» او «یعوق» په باره کې فرمایي چې: هر چند این پنج اسم نامهای پسران ادریس علیه السلام اند که همه مردمان وادمیان بودندآه (تفسیر عزیزی ج ۲۹صـ ۱۳۱)

بیا فرمایي: ولایغوث یعنی ومگذارید بالخصوص یغوث را که مظهر فریاد رسی ومشکل کشائی او تعالی واین مظهر راقوم نوح علیه السلام بصورت أسپی ساخته بودند زیراکه اسپ در دویدن وزود رسیدن واعانت نمودن مثل است واین صفت را درشرع غیاث المستغیثین ومجیب دعوات المضطرین نامند وبزبان هندی این مظهر را أندر نامند، ویعوق یعنی ومگذارید یعوق را که مظهر منع وحمایت ودفع بلا است واین صفت را درشرع کاشف الضر ودافع البلاء گویند آه (تفسیر عزیزی صـ ۱۳۰) نو غیر الله ته مشکل کشا او فریاد رس ویل دمشرکانو عقیده وه چې نوح علیه السلام نهه نیم سوه کاله ددې عقیدې په خلاف تبلیغ وکړو.

۴- د شاه عبدالعزیز رحمه الله دوهم عبارت چې کومو اولیاوو چې د انسانانو د هدایت لپاره ځانونه وقف کړي دي، هغوي د وفات څخه وروسته هم تصرف کولی شي نو دهغې مطلب دادی چې دا اولیاء لکه څرنګه چې په عالم الدنیا او تکلیفي زندګۍ کې د دعا او دتبلیغ په وجه د خلکو د هد ایت ذریعې وې اوس په عالم البرزخ کې د تکلیفي زندګۍ مرحله ختمه شوه لهذا اوس د تبلیغ وخت لاړو ، لکن ددعا سلسله اوس هم جاري ده دعرض الاعمال په حدیث کې ددعا ذکر موجود دی ، لهذا اوس د دعا په طریقه دخلکو دهدایت ذریعې دي، او ددوي أخروي استغراق اهل الدنیا ته ددعا څخه مانع نه دی .

۵- د شاه عبدالعزیز رحمه الله د دریم عبارت څخه هم استدلال نه دی صحیح چې خواجه باقي بالله یو نانبائي ته توجه اتحادي وکړه او دځان په شان یې کړو، ځکه چې دا کرامت دی او په کرامت کې د ولي

فعل او کسب لره هيڅ دخل نه وي ،په دې واقعه کې د خواجه باقي بالله فعل دعا او توجه ده او دا کرامت ندی بلکې کرامت او امر خارق ددې نتيجه ده چې شکل بدلول دي او هغه د الله تعالی فعل دی ، يوکس دبل همشکله کولو ته دصوفيه وو په اصطلاح کې بروز او تاثير اتحادي وايي او بروز او تاثير اتحادي دالله تعالى د خواصو څخه دی ، شاه عبدالعزير رحمه الله فرمايلي دي چې: اين نوع تصرف يعنی بروز روح در روح حیّ يا ميت د ر اصل از خواص حقيقة الحقايق تعالى وتقدس استِ ، آه (فتاوی عزيزي ج ۱صـ۱۱۲)

د ژوندي يا دمړي په روح کې د روح بروز دالله تعالى د خواصو څخه دی او خاصه په غير کې نه موجوديږي ، دشاه عبدالعزير رحمه الله پوره عبارت داسې دی :

چهارم: تاثير اتحادی که شيخ روح خود راکه حامل کمالی است باروح مستفيد بقوت تمام متحد سازد تا کمال روح شيخ بروح تلميذ می رسد وبار بار حاجت استفاده نمی ماند ، در أولياء الله اين قسم تأثير به ندرت واقع شده از حضرت خواجه باقی بالله منقول است که روزی درخانه ايشان چند کس مهمان شدند وما حضر موجود نه بود اوقات حضرت خواجه در فکر ضيافت مشوش شده درتلاش ماحضر شدند، اتفاقا نانوايی متصل خانه ايشان دوکان داشت برين تشويش مطلع شد يک قرص نان خوب پخته بانهاری مکلف ومرغن بخدمت ايشان آورد،وقت ايشان باين سلوک او بسيار خوش شد فرمودند بخوا الخ (تفسير عزيزی پآره ۳۰صـ۳۰۸)

خواجة باقی بالله ته ميلمانه راغلي وو دخواجه صاحب په کور کې څه نه وو ، دکور په څنګ کې نانباي چې دا حالت وکتل نو ميلمنو ته يې ښه خواړه تيار کړل او خواجه صاحب ته يې راوړل ، خواجه صاحب ډير خوشحاله شو او ورته وې فرمايل چې وغواړه څه چې غواړې ؟هغه نانبايي ورته وويل چې زه ستا په شان کيدل غواړم خواجه صاحب ورته وويل چې بل څه شی وغواړه، نابنای ورته وويل چې بل څه شی نه غواړم بس ستا په شان کيدل غواړم ،نو خواجه صاحب خپلې خانقا ته بوتللو او توجه اتحادي يې ورته وکړه چې بهر راووتل نو د دواړو فرق نه کيدلو ، صرف دومره وه چې خواجه صاحب په هوش کې وو او هغه نانبای زنګيدلو (يو طرف بل طرف) بيا وفات شو الخ.

دا تصرف په پيريانو او شيطانانو کې ډير وي او په انسانانو کې دخارق العادة په طرقه واقع کيږي (فتاوی عزيزی ج ۱.۱۱۲)

۱- نو يو خو بروز او خوارق د الله تعالى فعل دى.

۲- دا د الله تعالى فعل ديو ولي په لاس ډير لږ صادريږي، د شاه عبدالعزيز رحمه الله په عبارت کې د «ندرت» کلمه ده.

۳- خپله خواجه باقي بالله رحمه الله دومره عاجز بنده وو چې ديو څو ميلمنو د اکرام او د ناشتې طاقت يې نه لرلو، نانباى ورسره کومک وکړو، نو څرنګه به د نانبايي لپاره مشکل کشا شي؟

## استمداد از ارواح

د شاه ولي الدهلوي رحمه الله او ابن عربي رحمه الله عبارات:

د شرک شيدايان د متنازع فيه استمداد لپاره د شاه ولي الله رحمه الله دا طيب النعيم يو عبارت رانقلوي چې: لا بدست از استمداد بروح انحضرت صلى الله عليه وسلم د رسول الله صلى الله عليه وسلم د روح د استمداد څخه بغير چاره نشته، علامه شعراني رحمه الله د ابن عربي رحمه الله قول رانقل کړى دى چې: و أما القطب الواحد فهو روح محمد صلى الله عليه وسلم المُمِدُّ لجميع الانبياء والرُّسل و الأقطاب من حين النشئ الانساني الى يوم القيمة، (کبريت احمر ج۱صـ۱۰، اليواقيت و الجواهر ج۲صـ۸۲)

قطب واحد د محمد صلى الله عليه وسلم روح دى چې د ټولو انبياؤ، رسولانو او اقطابو د پيدا ايښت څخه تر قيامته پورې مدد ګار دى؟

قلنا: ۱- د روح دوه معنى ګانې دي اول قران او دين محمدي، دوهم روح حقيقي، نو که د روح څخه مراد حقيقي روح شي نو بيا د استمداد من الارواح څخه روحاني فيض مراد دى يعنې بيا د استمداد از روح محمد صلى الله عليه وسلم دا معنى نه ده چې ټول انبياء، رُسل او اقطاب د رسول الله صلى الله عليه وسلم د روح مبارک څخه په تکويني او مافوق الاسباب امور کې مراد ونه غواړي، بلکې د استمداد از روح محمد صلى الله عليه وسلم معنى داده چې د نوُر القمر مستفاد من نور الشمس په طريقه د ټولو انبياؤ اولياؤ او اقطابو علمي او عملي کمالات د رسول الله صلى الله عليه وسلم فيض دى، بعضې محققين ددې څخه داسې تعبير کوي چې د محمد صلى الله عليه وسلم نبوت بالذات دى او د نورو پيغمبرانو نبوت بالعرض او د نبي عليه السلام د نبوت فيض دى د محمد صلى الله عليه وسلم د نبوت

فیض ټولو ته عام دی دفیض څخه مراد د تقرب الهی فیض دی په مافوق الاسباب کې دمدد فیض ندی مراد، یعنې د رزق د ورکولو د اولاد د ورکولواو د تکلیفونو د لرې کولو فیض نه دی مراد
۲- او که د روح څخه قرآن او دین محمدي مراد شي نو بیا د امداد معنی داده چې په تشریعي امورو کې ټول انبیاء رسولان او اقطاب د روح محمدي یعنې دقرآن څخه استفاده کوي، روح محمدي په معنی د قرآن سره دی، الله تعالی فرمایلي دي: (وَ كَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا[1])

## تشريح الجوابين

شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله فرمايي چې: فالنبوة عمت كل اصناف والاحمر والاسود مستويان فيما يرجع الى الفيض الذى هو من باب النبوة (تفهيمات ج ١صـ٢٠٣)
نبوت ټولو اقسامو ته شامل دی، د نبوت دباب څخه چې کوم فیض حاصلیږي په هغې کې سور او توریو برابر دی (رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې: **فَلَا فَضْلَ لِعَرَبِيٍّ عَلَى أَعْجَمِيٍّ، وَلَا أَحْمَرَ عَلَى أَسْوَدَ إِلَّا بِالتَّقْوٰى ،رواه البزار ورجاله رجال الصحيح، مجمع الزوايد ج٨صـ٨٤**)
او دتصوف په انداز سره یې د اقتراباتو خمسه وو تذکره کړی ده، فرمایلي دی چې: توسط الانبياء صلوة الله عليهم بين الله سبحانه وبين المقربين باحدى هذه الاقترابات الخمس ليس معناه ان يكونوا مفيضى الكمال عليهم بل ان يكون جهة اقترابهم وسمت توجههم ماتشخص به هذالنبى عند العود من اصناف الكمال (تفهيمات ج٢صـ ١٣٧، ١٣٨)
د الله تعالی او دمقربینو په مابین کې د انبیاوو توسط په یو ددې اقتراباتو خمسه وو څخه دی، ددې دامعنی نه ده چې انبیاء په مقربینو باندې فیض اچوي، بلکې معنی یې داده چې دکمالاتو د اقسامو څخه چې کوم قسم ددې مقربینو طرفته راجمع کیږي نو په متعینه او مشخصه طریقه باندې دغه نبي ددې مقربینو د اقتراب او د توجه سمت او جهت وي انتهی، یعنې په مقربینو باندې د پیغمبرانو د فیض معنی د انده چې پیغمبران مقربینو ته ددې فیض اعطاء کوي ،بلکې معنی یې داده چې پیغمبران ددې فیض لپاره ذریعه، وسیله او سبب وي او د رسول الله صلى الله عليه وسلم فيض د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وفات څخه وروسته هم جاري او ساري دی، اصحاب النسبة د قبرونو او د أرواحو څخه هم فیض حاصلوي، قاضي ثناء الله پاني پتي

رحمه الله فرمايلي دي چې: که صاحب د نسبت وي نو خپل زړه دې د نورو خيالاتو څخه فارغ کړي او د صاحب القبر څخه د فيض د حاصلولو لپاره دی مراقبه وکړي، (ارشاد الطالبين صـ ۲۴)

همدارنګه يې فرمايلي دي چې: څوک چې دکمال مرتبې ته رسيدلی وي هغه ته د الله تعالی له طرفه بغير له واسطې څخه فيض رسيږي او د عباداتو څخه هم ترقيات حاصلوي.

الله تعالی فرمايي: واسجد وا قترب، يعني سجده وکړه اود الله تعالی قرب حاصل کړه او درسول الله صلی الله عليه وسلم دقبر شريف او داولياء وو دقبرنو څخه هم فيض حاصلوي ، (ارشاد الطالبين صـ ۳۴)، لکن د افيض دعالم الدينا دفيض په شان نه وي، قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايلي دي چې: که څوک ووايي چې داولياوو فيض د وفات څخه وروسته هم باقي وي نو دبل شيخ طلبول فضول دي ، نو ورته ويلی شي چې د وفات څخه وروسته د اولياوو فيض دومره نه وي چې ناقص دکمال درجې ته ورسوي، مګر شاذ او نادر ، که د وفات څخه وروستنی فيض د عالم لدنيا د فيض په شان وی نو درسول الله صلی الله عليه وسلم د زمانې څخه تر ننه پورې ټول اهل مدينه به د صحابه کرامو سره يو برابروی، همدارنګه به هيڅوک هم د اولياوو صحبت ته محتاج نه وو (ارشاد الطالبين صـ ۱۷ صـ ۱۸)

لکن ددې فيض څخه دتقرب الهی فيض مراد دی ، د رزق ورکولو، اولا د ورکولو او دتکليفونو لرې کولو فيض نه دی مراد ، لکه څرنګه چې قاضي ثناء الله پاني پتي رحمه الله فرمايلي دي چې: که يو څوک ووايي چې الله تعالی او رسول الله صلی الله عليه وسلم پدې خبره شاهدان دي نو کافر شو ، اولياء دمعدوم په موجودلو او دموجود په معدومولو قادر نه دي ، نو اولياوو ته د پيد ا کولو، رزق ورکولو، اولاد ورکولو او دمرض څخه دشفاء ورکولو نسبت او ددوي څخه مدد طلبول کفر دی،( قُلْ لَّآ اَمْلِكُ لِنَفْسِيْ ضَرًّا وَّلَا نَفْعًا اِلَّا مَا شَآءَ اللّٰهُ ) ارشاد ا لطالبين صـ ۲۰.

همدارنګه يې فرمايلي دي چې: اولياء علم الغيب نه لري البته د بعضو غايبو شيانو علم ورته الله تعالی دکشف يا دالهام په ذريعه ورکوي او دا ويل چې اولياء علم الغيب لري کفر دی، (ارشاد الطالبين صـ ۲۰)

۲- داستمداد من الروح څه معنی ده ؟که د استمداد من الروح معنی دا وي چې صاحب النسبة خلکو ته د رسول الله صلی الله عليه وسلم د روح څخه فيض رسيږي ، نو ددې تحقيق خو وشو چې ددې د استمداد فی مافوق ا لاسباب سره تعلق نشته او که د امعنی يې وي چې رسول الله صلی الله عليه وسلم په مافوق

الاسباب کې رزق ورکوي، اولادونه ورکوي، مریضانو ته شفاء ورکوي، دخلکو مشکلات حل کوي نو دا بیا (توجیه القول بما لا یرضی به قایله) ده ځکه چې مخکې د شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله عبارات تیر شول چې هغوي استمداد فی مافوق الاسباب ته شرک ویلي وو ، همدارنګه د امعنی د نصوصو قطعیه وو او احادیثو متواترو څخه مخالفه ده.

۳- د شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله په عباراتو کې د استمداد معنی دانه ده چې خلک د رسول الله صلی الله علیه وسلم د روح څخه رزقونه، اولادونه ، اود مشکلاتو حل کول غواړي، بلکې دشاه ولي الله رحمه الله په عباراتو کې ددې معنی پدې طریقه باندې استفاضه هم راغلې ده چې دسکر یا بې هوشۍ په حالت کې ، یاهمداسې مراقبه وکړي او پدې مراقبه کې په مثالي طریقه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د روح سره ملاقات وشي او په علمي طریقه ورڅخه استفاده وکړي د رسول الله صلی الله علیه وسلم مثالي روح یې علمي اشکالات حل کړي، شاه ولي الله رحمه الله خپله فرمایلي دي چې: این فقیر از روح پر فتوح سوال کرد که حضرت چی می فرمایند در باب شیعه که مدعی محبت اهل بیت اند وصحابه را بدمی گویند؟ انحضرت بنوعی از کلام روحانی القاء فرمودند که مذهب ایشان از لفظ امام معلوم میشود چون از ان حالت افاقه دست داد درلفظ امام تأمل کردم معلوم شد که امام باصطلاح ایشان معصوم مفترض الطاعة منصوب للحق است ووحی باطنی در حق امام تجویز می نمایند پس در حقیقت ختم نبوت رامنکر آند گویا بزبان آنحضرت را صلی الله علیه وسلم خاتم الانبیاء مي گفته باشند (تفهیمات الهیه ج ۲ صـ ۲۴۴)

دغې فقیر درسول الله صلی الله علیه وسلم دروح پر فتوح څخه پوښتنه وکړه چې تاسو د شیعه ګانو په باره کې څه وایې چې داهل بیت سره دمحبت دعوه کوي ؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم راته په یو قسم روحاني کلام سره القاء وکړه چې دشیعه ګانو مذهب دامام دلفظ څخه معلومیږي، کله مې چې ددې حالت څخه افاقه وشوه نو دامام په لفظ کې مې فکر وکړو نو معلومه شوه چې امام د دوي په نیز معصوم وي اطاعت یې فرض وي او دحق لپاره نصب شوی وي او همدرانګه د امام په باره کې دباطني وحې تجویز کوي نو په حقیقت کې هغوي دختم نبوت څخه منکر دی نو صرف په ژبه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته خاتم الانبیاء وایې، انتهی نو دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د روح مبارک څخه روحاني سوال وو لکه

څرنګه چې خپله شاه ولي الله الدهلوي رحمه الله فرمايلي دي چې: سألته سؤالا روحانياً عن الشيعة الخ (تفيهمات ج ۲صـ ۲۵۰) ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه په روحاني طريقه پوښتنه وکړه دا معامله د سکر يا بې هوشۍ اويا دېرکالي په حالت کې کيږي(چون ازان حالت افاقه دست داد) وربانديې دلالت کوي او د رسول الله صلى الله عليه وسلم جواب هم يو قسم روحاني وو (بنو عی از کلام روحانی) وربانديې دلالت کوي ، خلاصه دا چې پدې کلام کې متنازع فيه استمداد نه دی مراد ، چې دغير الله څخه په مافوق الاسباب کې رزق اولادونه او دفع المضرات وجلب المنافع غوښتل دي.

## د ابن عربي رحمه الله د عبارت مزيد تشريح

د ابن عربي رحمه الله ټول عبارت داسې دی چې: واما لقطب الواحد فهو روح محمد صلى الله عليه وسلم الممد لجميع الانبياء والرسل والاقطاب من حين النشئ الانسانى الى يوم القيمة ، والله اعلم، وقال: فان الوحى المتضمن للتشريع قد اغلق بعد محمد صلى الله عليه وسلم ولهذا كان عيسى عليه السلام اذا نزل يحكم بشريعة محمد صلى الله عليه وسلم دون وحى جديد آه (الكبريت الاحمر على هامش اليواقيت والجواهر ج ۱صـ ۱۰)

او بهر حال هغه يو قطب دمحمد صلى الله عليه وسلم روح دی چې دانسان د پيدا ينښت څخه تر قيامته پورې دټولو انبياء وو رسولانو او اقطابو مدد کونکی دی، والله اعلم او فرمايلي دي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه وروسته وحی تشريعی بنده شوه ، لهذا کله به چې عيسى راکوز شي نو درسول الله صلى الله عليه وسلم دشريعت مطابق فيصلې به کوي، نه په جديده وحې ، نو پدې عبارت کې په (فان الوحى المتظمن للتشريع الخ) کې حرف فاء ده چې د مخکني دعوې لپاره دليل دی، مطلب يې داده چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم دين، وحې او شريعت په ټولو لازم دی دا معنی نده چې په تکويني امورو کې امداد کوي، نور تکويني أمور خو لاڅه کوې خپله قطبيت چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم شان دی هم چاته نه شي ورکولی، اعطاء خولا څه کوې چې په دې باره کې ددوي ددعا قبليدل هم نه دی ضروري لکه څرنګه چې علامه شعراني رحمه الله فرمايلي دي چې:

فانقلت: هل للقلب (الصحيح القطب) تصرف فى ان يعطى القطبية لمن شاء من اصحابه وا ولاده ؟

فالجواب: ليس له تصرف فى ذلک وقد بلغنا ان بعض الاقطاب سأل الله ان تكون القطبية من بعده لولده فاذا بالهاتف يقول له: ذلک لايكون الا فى الارث الظاهر واما الارث الباطن فذلک الى الله وحده (اليواقيت والجواهر ج۲صـ ۸۲)

كه ته پوښتنه وكړې چې ايا قطب ته دا تصرف حاصل دى چې په خپل اولاد يا اصحابو كې چاته چې وغواړي قطبيت وركړي؟ نو جواب دادى چې نه، قطب ته پدې كې هيڅ تصرف ندى حاصل او موږ ته دا خبر رارسيدلې دى چې بعضې اقطابو دالله تعالى څخه غوښتنه وكړه چې دده څخه وروسته دې قطبيت دده ځوى ته وركړل شي، نو د غيبو څخه ورته اواز وشو چې دا سلسله په ظاهري وراثت كې چليږي په باطني وراثت كې نه چليږي دا باطني وراثت صرف الله تعالى ته حواله دى الله تعالى بنه پوهيږي چې د پيغام رسونې سلسله چيرته كيږدي، ددې څخه معلومه شوه چې قطبيت او دارنگې دنورو تكويني امورو اعطاء صرف الله تعالى كوي، او په تشريعي امورو كې انبياء رسل او اقطاب د روح محمدي يعنې دقران څخه استفاده كوي، روح په معنى دقران او وحې سره دى الله تعالى فرمايلي دي چې (وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا)، همدارنگه (يُنَزِّلُ الْمَلٰٓئِكَةَ بِالرُّوْحِ مِنْ اَمْرِهٖ).

ابن عربي رحمه الله فرمايلي دي: فلايخلوا زمان من رسول يكون فيه وذلک هو القطب الذى هو محل نظر الحق تعالى من العالم كما يليق بجلاله ومن هذا القطب يتضرع جميع الامداد الالهية على جميع العالم العلوى والسفلى، قال الشيخ محى الدين ومن شرطه ان يكون ذا جسم طبيعى ور وح ويكون موجودا فى هذه الدار الدينا بجسده وروحه من عهد آدم الى يو م القيمة ولما كان الامر على ماذكرناه ومات رسول الله صلى الله عليه وسلم بعد ماقرر الدين اللذى لاينسخ والشرع الذى لايتبدل دخلت الرسل كلهم فى شر يعته ليقوموا بها فلا تخلوا الارض من رسول حيٍّ بجسمه اذ هو قطب العالم الانسانى ولو كانو افى العدد الف رسول فان المقصود من هؤلاء هو الواحد، فادريس فى السماء الرابعة وعيسى فى السماء الثانية والياس والخضر فى الارض ، ومعلوم ان السموات السبع من عالم الدنيا لكونها تبقى ببقاء الدنيا متفنى بفناءها صورة فهى جزء من دارالدنيا ا لى ان قال، قد ابقى الله فى الارض الياس والخضر

وكذلک عيسى اذا نزل ، وهم من المرسلين فهم القائمون بالدين الحنيفى فما زال المرسلون ولا يزالون فى هذه الدار لكن من باطنية شرع محمد صلى الله عليه وسلم ولكن اكثر الناس لا يعلمون فالقطب هوالواحد من عيسى وادريس و الياس والخضر عليهم السلام وهو احد اركان بيت الدين وهو كركن الحجر الاسود، واثنا ن منهم هما الا مامان واربعتهم هم الاوتاد فباالواحد يحفظ الله الايمان وبالثانى يحفظ الله الرسالة وبالمجموع يحفظ الله الدين الحنيفى فالقطب من هؤلاء واحد لابعينه (الفتوحات المكيه باب ۷۳)

هيڅ زمانه د پيغام رسونكي څخه نه خالي كيږي ،همدغه پيغام رسونكى همغه قطب وي چې دالله تعالى دشفقت لپاره لايق او محل وي او دهمدې قطب په ذريعه او بركت په ټول عالم (علوي وي او كه سفلوي) دالله امداد متضرع كيږي .

مجى الدين ابن عربي رحمه الله فرمايلي دي چې د دې قطب لپاره شرط دادى چې جسم طبعي او روح به لري او پدې عالم الدنيا كې به دخپل جسم او حقيقت سره موجود وي او كله چې معامله داسې ده لكه مونږ چې ذكر كړه نو كله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ددې غير منسوخ دين دثابتولو او د نه بدليدونكي شريعت د نافذولو څخه وروسته وفات شو نو ټول پيغام رسونكي (اقطاب) د رسول الله صلى الله عليه وسلم په دين كې داخل شول تر څو چې همدا غير منسوخ او غير متبدل دين قائم كړي ،نو ځمكه د جسماً ژوندى پيغام رسونكي څخه (قطب) څخه نه خالي كيږي ، ځكه چې دا دټول عالم الانسان قطب وي اګر چې په شمار كې زر پيغام رسونكي وي، خو مقصود پكې يو وي، نو ادريس عليه السلام په څلورم اسمان كې او عيسى عليه السلام په دوهم اسمان كې او الياس او حضر عليهما السلام به زمكه كې دى او دا خبره هم واضحه ده چې اووم اسمان هم دعالم الدينا څخه دى ځكه چې هغه صورةً ددنيا دبقاء سره باقي دى او دِدنيا دفناء سره فناء كيږي، نو د دارالدنيا څخه جزء دى ، بيا مخكې ليكي چې او يقينا چې الياس او خضر عليهما السلام همدارنګه چې كله عيسى عليه السلام ځمكې ته راكوز شي نو دوي به پدې ځمكه كې ددې حنيفي دين قايمونكي وي، نو دوي مرسلين دي او دهميشه لپاره مرسلين دي او په دې دنيا كې اوسيږي لكن دمحمد صلى الله عليه وسلم د شريعت دباطن په لحاظ مګر اكثر خلک نه پوهيږي نو په عيسى ادريس، الياس او خضر عليهم السلام كې يو قطب دى او دغه يو ددين

دکوریو رکن دی لکه حجر اسود او پدوي کې دوه امامان دي او دا څلور واړه او تاد دي، نو پدوي کې د یو سره د ایمان د دوهم سره د ولایت د دریم سره دنبوت او د څلورم سره د رسالت حفاظت کوي او پدې ټولو دین حنیفي محفوظ ساتي، نو قطب په دوي کې یو لا علی التعین دی.

خلاصه دا چې دا څلور پیغمبران په عالم الدنیا کې ژوندي دي (خیالي ص ۱۴۲) او په دوي کې لا علی التعین یو قطب دی او دعالم علوي او سفلوی سره الله تعالی ددوي په ذریعه او وسیله امداد کوي، او دا ټول دمحمد صلی الله علیه وسلم دشریعت پابند دی د (دخلت الرسل کلهم فی شریعته - او- لکن من باطنیة شرع محمد صلی الله علیه وسلم ) الفاظ وربانديې دلالت کوي ، لهذا د روح محمدي څخه قرآن، وحی او دین مراد دی،نو معنی دا شوه چې دا ټول د قران، وحی او دین محمدي څخه مستفیض دي.

## د دویوبند د اکابرو دعباراتو څخه استدلالات

### د امداد المشتاق عبارت:

مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله لیکلي دي چې یو مرید دخپل پیر صاحب مزار ته لاړو او وې ویل چې حضرت زه ډیر پریشان یم او ډوډۍ ته محتاج یم لږ لاس نیوي مې وکړه، نو حکم وشو چې تاته به زما د مزار څخه روزانه یوه نیمه یادوه آنې میلاویږي (امداد المشتاق ص ۱۲۳)

قلنا: قبر ته تلل او صاحب القبر ته ویل چې ماته دعا وکړه نو مجوّزین دسماع الموتی دې ته جایز وایي دلته د دستګیرۍ څخه همدغه دعا مراده ده ، ممکنه ده چې دغې مرید ته کشف شوي وي او دتوسل او دعا په طریقه یې خپل پیر ته ویلي وي چې زما دغه مشکل دی او پیر صاحب دعا کړې وي او یا یې پخپله د پیر صاحب په توسل دعا کړې وي او الله تعالی ددې مزار څخه دغه کرامت ظاهر کړی وي.

## کشف القبور

کشف القبور ثابت دی په صحیحو احادیثو کې راغلي دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم په قبرونو کې مړی په عذاب لیدلی وو، ابن کثیر دابن عساکر په حواله د سورة الاعراف (۲۰۱) نمبر ایت په تفسیر کې لیکلي دي چې دحضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې یو نو جوان په مسجد کې ډیر عبادت کولو د مسجد په څنګ کې دیو بنځې کور وو، هغه پرې عاشقه شوه، نو دخپلو نفسي خواهشاتو دپوره کولو لپاره یې را وغوښتلو، نوجوان یې دوهکه کړو، ور روان شو چې کورته ورننوځې شو نو ناڅاپه یې ذهن ته دا ایت راغلو چې (اِنَّ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا اِذَا

مَسَّهُمْ طَٰٓئِفٌ مِّنَ الشَّيْطَٰنِ تَذَكَّرُوا فَإِذَا هُم مُّبْصِرُونَ) او بيا هوښه شو او چې کله يې بيا دا ايت تلاوت کړو، نو دالله تعالى له ويرې يې روح پرواز وکړو ،خلکو د شپې دفن کړو ، حضرت عمر رضى الله عنه چې سهر خبر شو نو قبر ته ورغلو اواز يې ورته وکړو چې (يا فتى ولمن خاف مقام ربه جنتان) نو دقبر څخه جواب راغلو چې: (يا عمر قد اعطانيهما ربي عز وجل فى الجنة مرتين) نو دحضرت عمر رضى الله عنه خبرې دصاحب القبر سره كشف القبور دى، حافظ ابن تيميه الحنبلي فرمايي چې: وقد انكشف لكثير من الناس حتى سمعوا صوت المعذبين فى قبورهم ورأوهم بعيونهم يعذبون فى قبورهم فى اثار كثيرة معروفة (فتاوى ابن تيميه ج ٤صـ ٢٩٦)

په ډير اثارو کې ثابته ده چې ډيرو خلکو مړوته د عذاب اوازونه اوريدلي دي او دمړو عذاب يې پخپلو سترګو ليدلى دى، حافظ ابن القيم فرمايلي دي چې حضرت مطرف التابعى، قبرستان ته لاړو، (فرأى اهل القبور كل صاحب قبرجالساً على قبره فقالو هذا مطرف يأتى الجمعة قلت وتعلمون عندكم يوم الجمعة؟ فقالوا نعم ونعلم ما يقول فيه الطير، قلت وما يقولون؟ قالوا يقولون سلم سلم (كتاب الروح صـ ٢٢)

## دحضرت مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله د اشعارو وضاحت

غير مقلدين دحضرت تهانوي رحمه الله په اشعارو اعتراض کوي او دشرک داعيان ترينه استدلال کوي او وايي چې په د مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله په اشعارو کې د غير الله څخه د استمداد ذکر دى،

(۱) هغه اشعار دادي چې:

ياشـــــفيع العبــــاد خـــذ بيــــدى
انـــــت فى الاضـــــطرار معتمــــدى
لــــيس لى ملجــــأ ســــواک أغـــث
مسّــــنى الــــضر ســــيدى وســــندى
غشّــــنى الدهــــر يــــا ابــــن عبــــدالله
كــــن مغيثــــا فأنــــت لى مــــددى

لـــــــیس لی طاعـــــــة ولا عمـــــلُ
بَیْـــــدَ حُبِّیْـــــک فهـــولی عتـــــدی
یـــــا رســـــول الاله بابـــــک لی
مـــــن غمـــــام الغمـــــوم ملتحـــــدی

نشر الطیب صـ ۱۵۶)

الجواب: ددې څخه داستمداد معنی اخستل توجیه القول بما لا یرضی به قایله دی ده شاعر او قایل دکلام او د شعر معنی به دهغه دعقیدې او دنظریې مطابق کوي.

اشرف علي تهانوي رحمه الله مافوق الاسباب نداء ته شرک وايي او ما فوق الاسباب استمداد ته شرک وايي او شوقیه نداء ته جايز وايي.

د دې اشعارو توضیع: مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله په نشر الطیب کې صـ ۲۵۳) کې کړی ده چې په مطالعه کولو یې شک ختمیږي، حضرت مولانا أشرف علي تهانوي رحمه الله دتوسل په حدیث کې دیا محمد دلفظ په تشریح کې فرمايي چې: د ندا شبهه د دوو وجود څخه مه کوئ، یو خو ددې وجې څخه چې دا ندا په مسجد نبوي کې شوې ده، په مسجد نبوي کې ندا غایب ته نه راځي ، دوهمه وجه دا ده چې سلف صالحین نیک اعتقاده وو، دهغوي دحال څخه ظاهره دا ده چې هغوي ندا په قصد دتبلیغ الملائکه سره کړې وه ، او دریمه وجه دا هم ده چې سلفو په دې ندا کې قصد ددې نه کولو چې نبي کریم ﷺ حاجت روا دی او دا حقر (اشرف علی تهانوي رحمه الله) دخپل قول څخه چې ددې فصل په شروع کې یې ذکر کړو همدا مراد دی. (نشر الطیب صـ ۲۵۳).

په امداد الفتاوی ج ۵صـ ۳۳۵، کې یې فرمایلي دي چې (۱) استعانت واستمداد بالمخلوق جو باعتقاد علم وقدرت مستقل مستمد منہ ہو وہ شرک ہے

۲۔اور جو باعتقاد علم وقدرت غیر مستقل ہو مگر وہ علم وقدرت کسی دلیل سے ثابت نہ ہو معصیت ہے .

۳۔اور جو باعتقاد علم وقدرت غیر مستقل ہو اور وہ علم وقدرت کسی دلیل سے ثابت ہو جائز ہے خواہ وہ مستمد منہ زندہ ہو یا میت الخ

همدا رنګه یې فرمایلي دي: پس اکابر میں سے کسی کلام میں ایسے ندا ہو تو اس کو یا مجاز پر محمول کیا جاوے یا ان کے طرف نسبت کرنے کو غیر صحیح کیا جاوے .یا مثل اس کے کوئی اور مناسب توجیہ کی جاویگی ،یہ تو ان کے تبریہ کے لئے ہے باقی عوام کو بوجہ متیقن مفسدہ کے جزماً وحتماً روکا جاوے گا (فتاوی امدادیہ ص۔ ۳۱۶)

## ۲- دابو بکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره دبرابر والي دعوه:

مولوي عبدالعليم صديقي يوه ورځ احمد رضاخان ته په خطاب کې وويل چې: عیاں ہے شان صدیقی تمہاری شان تقوی سے کہوں اتقی نہ کیوں کر جب خیر الاتقیاء تم ہو (سوانح اعلی حضرت ص- ۱۴۸)

## ۳- دحضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ توهين:

حضرت عثمان غني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول الله د سنتو څخه مخالفت کړی وو. (ملخصا انوار رضا ص ۱۳)

## ۴- دعبدالله ابن أم مکتوم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ توهين:

عشاق اداب سے بی خبر ہوتی ہیں ان کی ایسے قصور معافی کی لایق ہیں اس لی انہیں نابینا فرمایا یعنی جو آپ کی عشق مین آداب سے نابینا ہے (نور العرفان ص- ۹۳۴)

## ۵- رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دصحابه وو څخه خفه وو:

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په یوه دونیوي معامله کې صحابه وو کرامو رضی الله عنهم ته وفرمايل چې (انتم أعلم بأمور دنياكم)

مفتي احمد يار خان ليکي: اظہار ناراضگی کے لیے فرمایا (انتم اعلم بأمور دنیاکم) (نور العرفان ص- ۳۳۸)

## ٦-دحضرت عبدالرحمن قاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ تکفير:

حضرت عبدالرحمن قاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صحابي دی او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په زمانه کې په بيت المال باندې مامور وو، احمد رضاخان بريلوي دې صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته کافر شيطان او خنزير ويلي دي او ليکلي يې دي چې د حضرت ابو قتادة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په لاس باندې ووژل شو.

احمد رضاخان په يو ځای کې ليکي چې: ایک بار عبدالرحمٰن قاری کہ کافر تہا آپنے ہمراہیون کی ساتھ حضور اقدس صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کہ اونٹون پر اپڑا (ملفوظات ج ۲ ص- ۴۴)

او بيا ليکي چې: اس محمدی شیر (حضرت ابو قتادہ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) نی خوک خوک شیطان (عبدالرحمٰن قاری رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) کودی (ملفوظات ص- ۴٦)

## ۷- دحضرت عايشې رضی الله عنها توهين:

احمد رضاخان ليکي چې: حضرت عايشه رضی الله عنها داسې تنګې او نرۍ جامې اغوستې وې چې، سينې يې ترينه ښکاريدلې:

تنگ وچست آن کالباس اور وہ جو بن کا ابھار مسکی جاتی ہے قبا سر سے کمر تک لی کر یہ پٹھا پڑتا ہے جو بن مرے دل کے صورت کہ ہوتی جاتی ہیں جامہ سے. بروں سینہ وبر (حدائق بخشش حصہ سوم ص- ۳۷)

مفتي مظهر الله بريلوي ددې ګستاخۍ لپاره توجيه کوي او ليکي چې دا معمولي غلطي ده او د ګرفت قابله نه ده او که حضرت عايشه رضی الله عنها دا ګستاخي معاف هم نه کړي نو د مسلمانانو ورسره څه کار دی دا خو داسې معامله ده لکه يو خطا کار بچی يې چې د خپلې مور سره کوي (فتاوی مظهري ص۳۸۸)

دا اشعار داحمد رضاخان دي او تشهير يې محبوب علی خان بريلوي کولو (الميزان احمد رضاخان نمبر ۴۴۸) د محبوب علی خان په خلاف احتجاجونه وشو، حتی چې دغازي علم الدين شهيد يونږدې خپلوان په دې احتجاجونو کې شهيد هم شو،نو بيا محبوب علی خان توبه وايستله، نو مفتي مظهر الله ليکي چې: یہ معاملہ قیامت کا ہے دنوی احکام تو توبہ پر ختم ہو جاتی ہیں (فتاوی مظہری ص- ۳۸۸)

عجيب کار دی چې اشعار احمد رضاخان وايي او توبه ترينه محبوب علی خان اوباسي، احمد رضاخان په يو بل ځای کې ليکي چې: حضرت عايشې رضی الله عنها دنبي کريم ﷺ داسې ګستاخي کوله چې که دا ګستاخي بل چا کړې وی نو د مرګ د سزا مستحق به وو.

ام المؤمنین صدیقہ رضی اللہ عنہا جو الفاظ شان جلال میں ارشاد کرگئ ہیں دوسرا کہی تو گردن ماری جائے (ملفوظات حصہ سوم ص_ ۲۸)

په يو ځای کې ليکي چې: انبیاء کے قبور مطہرہ میں ازواج مطہرات پیش کی جاتی ہیں اور وہ ان کی ساتھ شب باشی فرماتے ہیں (ملفوظات حصہ سوم ص- ۲۸)

دا دشيعه ګانو عقيده ده، دشيعه ګانو مشهور محدث محمد بن يعقوب الكليني په اصول کافی کې يو باب لګولی دی په نوم د(باب النهی عن الاشراف علی قبرالنبی ﷺ) او بيا يې دجعفر المثنی څخه يو روايت راوړی دی، چې زه په مدينه کې وم چې د روضې مبارکې چت راوغورزيدلو، نوما مهران بن أبی النصر اواسماعيل بن عمار الصيرنی امام جعفر الصادق ته ورولیږل چې پوښتنه ترينه وکړي چې ايامونږ دنبی کريم ﷺ قبر ته ورښکاره کيدلی

شو؟نو هغه په جواب کې فرمايلي وو چې : (ماأحب لأحد منهم أن يعلوا فوقه ولا أمنه أن يرى شيئا يذهب منه بصره او يراه قائما يصلى او يراه مع بعض ازواجه ) اصول الكافى ج ١ صـ ٤٥٢)

احمد رضاخان ددرغو حواله په محمد بن عبدالباقي الزرقاني رَحِمَهُ اللَّهُ ورکړې ده، حالانکه دا خبره غلطه ده، علامه زرقاني رَحِمَهُ اللَّهُ دحيات الانبياء په بحث کې دشيعه ګانو دعقيدې ذکر کړې دى او د شيعه ګانو عقيده يې داسې رانقل کړې ده چې : (والأنبياء يأكلون فى قبورهم ويشربون ويصلون ويصومون ويحجون واختلف هل ينكحون نسائهم أم لا ويثابون على صلوتهم وحجهم ولا كلفة عليهم فى ذلک) شرح مواهب اللدينة للزرقانى المالكى ج ٥ صـ ٣٣٤)

په مخکې صفحو کې علامه زرقانى دانبياوو د وراثت په بحث کې دشيعه ګانو سره اختلاف ذکر کړى دى نو دلته يې هم اختلاف مراد دى.

## بريلويان اولياء الله په شيطان باندې قياسوي:

دشيطان ددعا په وجه دشيطان عمر اوږد شو نو د أولياؤ ددعا په وجه هم اوږديږي (نور العرفان صـ ٦٨٨)

## شيطان هم غايبانه امداد کولی شي :

مولوي محمد عمر ليکي چې: شيطان غايبانه امداد کولى شي، ځکه چې الله تعالى فرمايي چې: إِنَّا جَعَلْنَا الشَّيَاطِينَ أَوْلِيَاءَ لِلَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ( مقياس حنفيت صـ ۴۸۲)

## شيطان هم عليم غيب لري :

مفتي احمد يار خان ليکي چې: شيطان ته هم د راتلونکو خبرو علم ورکړل شوى وو (نو رالعرفان صـ ۲۴۱)

خواجه ابوالحسن خرقاني دالله تعالى ښځه دوه کاله کشر وو: فوايد فريديه صـ ٧٨

الحمد لله وحده والصلوة والسلام علی من لا نبی بعده!

امابعد:

دداسې جلسو جوړول چې درسول الله ﷺ صورت او سیرت پکې بیانیږي یو غټ عبادت دی، تقریباً نیمه پیړۍ ددیو بند دمدرسې مهتمم قاری طیب رحمه الله دمیلاد النبی ﷺ په یوه جلسه کې په یو تقریر کې فرمایلي دي چې: دا جلسه لکه څرنګه چې تاسو ته معلومه ده دعید میلاد النبی په نوم باندې منعقده شوې ده، نو ددې موضوع داده چې دنبي کریم ﷺ بختور ولادت ذکر شي ځکه چې دنبی کریم ﷺ د ولادت ذکر کول عین عبادت دی، *خطبات حکیم الاسلام ج ا ص-٩٥) محمد بن عبدالله کی محمد الرسول الله تک )*

دالمهند علی المفند دیویشتم سوال په جواب کې راځي چې (ان ذکر الولادة الشریفة لسیدنا رسول الله ﷺ بروایات صحیحة فی اوقات خالیة عن وظایف العبادات الواجبة وبکیفیات لم تکن مخالفة عن طریقة الصحابة وأهل القرون الثلاثة المشهود لها بالخیر وبالاعتقادات التی لم تکن موهمة بالشرک والبدعة وبالاداب التی لم تکن مخالفة عن سیرة الصحابة التی هی مصداق قوله علیه السلام ما أنا علیه وأصحابی، وفی مجالس خالیة عن المنکرات الشرعیة موجب للخیر والبرکة الخ حاجي امداد الله مهاجر مکي رحمه الله فرمایلي دي چې: (پهلا مسئله مولود شریف کا) *اس می تو کسی کو کلام ہی نہین کہ نفس ذکر ولادت شریف حضرت فخر ادم سرور عالم* ﷺ *موجب خیرات برکات دنیوی واخروی ہی صرف کلام بعض تعینات وتخصیصات و تقلیدات مین ہی الخ کلیات امدادیہ 'فیصلہ ہفت مسئلہ ص-٧٨)*

لکن بریلویانو ورسره داسې شیان داخل کړي دي چې ددې جلسو دانعقاد أصل مقصد یې ختم کړی دی او دا جلسې یې دبدعاتو په ډله کې درولې دي لکه (١) ددولسم دربیع الأول تخصیص (٢) دمیلاد په محفل کې قیام (٣) په دې ورځ کې جلوس وغیره، دې ټولو شیانو ته بریلویان مستحب وایي وګوره (جاء الحق حصه اول بحث محفل میلاد شریف صـ ٢٣١) بلکې بعضې بریلویان قیام ته واجب وایي وګوره (انوار ساطعه دربیان مولود وفاتحه صـ ٥٠۴).

مفتي احمد يار خان ليكلي دي چې ميلاد شريف دقرآن، د احاديثو او دعلماوو دأقوالو، دملايكه وو او دپيغمبرانو څخه ثابت دی (جاء الحق، محفل ميلاد صـ ۲۳۱)

همدارنګه ليکي چې: دميلاد په محفل کې قيام دصحابه وو او دسلفو صالحينو سنت دی.

## دميلاد دمحفل باني

ددې محفل باني په سنـ ۶۰۴ هـق کې دموصل په ښار کې مظفر الدين کوکري المتوفی ۶۳۰ هـق وو، مظفرالدين يو مسرف او ددين څخه بې پروا بادشاه وو (ابن خلکان وغيره)

مظفرالدين به هر کال په ميلاد باندې تقريبا درې لکه روپۍ خرچ کولې (دول الاسلام ج ۲ صـ ۱۰۳)

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمايلي دي چې:

مظفر الدين ډير متکبر، بدزبانه، احمق او ددين دامامانو په باره کې سخت ګستاخ وو، ددين څخه ډير بې پروا او ددين په کارونو کې سست وو، همدارنګه يې فرمايلي دي چې خلک دده په ضعف او په کذب باندې متفق دي (لسان الميزان ج ۴ صـ ۲۹۵)

كان ملكا مسرفا يأمر علماء زمانه أن يعملوا باستنباطهم واجتهادهم و أن لايتبعوا مذهب غيرهم (فتاوى حقانيه صـ ٥٤٨ ج ١)

دبادشاه دخوشحالولو لپاره چې کوم دنيا پرست مولوي ددې جشن دجواز لپاره مواد راجمع کړل دهغه نوم عمر بن دحية ابو الخطاب المتوفى ۶۳۳) وو، چې ددې خدمت په عوض کې ورته مظفر الدين زر پونډه انعام ورکړو (دول لسلام صـ ۱۰۴)

حافظ ابن کثير رحمه الله دعمر بن دحيه په باره کې ليکلي دي چې: دروغژن وو ، خلکو دده په رواياتو باندې اعتماد پرېښی دی او دده يې ډير زيات تذليل کړی دی (البدايه والنهاية ج ۱۳ صـ ۱۴۵)

حافظ ابن حجر رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايلي دي چې: كان كثير الوقيعة فى الأيمة وفى السلف عن العلماء خبيث اللسان احمق، لسيان الميزان ج ٤ صـ١٩٦)

بيا وروسته ددې جشن نوم په «باره وفات» باندې مشهور شو، تر ډيره وخته پورې ددې جشن نوم «باره وفات» وو ،وروسته انجمن نعمانيه ټکسالی ګيټ لاهور داهتمام لاندې بريلوي مولويانو (پير سيد جماعت علی شاه مولوي محمد بخش مسلم او بالخصوص فروفيسر نور بخش توکلی ايم

ای) دانګریزي حکومت په کاغذونو کې د «باره وفات» نو م په «عید میلاد النبی» باندې بدل کړو. (تذکره اکابر أهل سنت صـ۵۵۹ لمولوی محمد عبدالحکیم بریلی)

## دعید میلاد النبی دجلوس ابتداء

دعید میلاد النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دجلوس ابتداء په (۱۹۳۴) ع یا په (۱۹۳۵) ع په لاهور کې شوی ده، دلاهور موچي ګیټ ځخه په مذکور تاریخ باندې اولنی جلوس راووتلو او ددې جلوس لایسنس انګریزي ګورنر ورکړی وو، دبریلویانو یو وفد چې په هغوي کې خلیفه شجاع الدین، محمد الدین، بیر سټرچو هدري فتح محمد، محمد فیاض، او میا فیروزالدین، احمد شامل وو انګریزي ګورنر سره یې ملاقات وکړو او دجلوس اجازت نامه یې ترینه واخیستله، بعضې بریلویانو ددې جلوس باني په لاهور کې عنایت الله قادري ګڼي، هرڅوک چې وي مونږ صرف دا ظاهروو چې دعید میلاد النبی صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جلوس عبادت نه دی، بلکې لاهوري بریلوي انګریزي ایجاد دی.

## محفل میلاد

## دمفسرینو، محدثینو او دفقهاوو په نظر کې

دکوم وخت ځخه چې میلاد شروع شوی دی، دهمغې وخت ځخه ترننه پورې پکې دعلماوو دوه رائې دي، بعضې یې دجواز قایل دي او بعضې ورته بدعت وایي، وروسته پکې یو ځه اضافات وشو، ددې اضافاتو له وجې حکم بدلیږي، له دې وجې دهرې زمانې علماوو دخپلې زمانې په محفل میلاد باندې بحث کړی دی.

## دعلماوو نظرونه

### ۱-امام ابو اسحاق شاطبی رحمه الله:

امام ابو اسحق شاطبی رحمه الله دبدعاتو ذکر کوي چې: کالذکر بهیئة الاجتماع علی صوت واحدٍ واتخاذ یوم ولادة النبی صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عیداً (الاعتصام ج ۱ صـ ۳۹)

### ۲-علامه تاج الدین الفاکهانی رحمه الله:

فرمایلي دي چې : لاجایز أن یکون عمل المولد مباحا، لان الابتداع فی الدین لیس مباحاً باجماع المسلمین (بحواله مجموع الفتاوی ج ١ ص ٣١٢)

**٣- ابن امیر الحاج رحمه الله :**

فرمایلي دي چې: وَمِنْ جُمْلَةِ مَا أَحْدَثُوهُ مِنَ الْبِدَعِ مَعَ اعْتِقَادِهِمْ أَنَّ ذٰلِكَ مِنْ أَكْبَرِ الْعِبَادَاتِ وَإِظْهَارِ الشَّعَآئِرِ مَا يَفْعَلُونَهُ فِي شَهْرِ رَبِيعِ الْأَوَّلِ مِنْ مَوْلِدٍ وَقَدْ احْتَوٰى عَلٰى بِدَعٍ وَمُحَرَّمَاتٍ جُمْلَةٍ (المدخل: ١/٧٥)

**٤- علامه ابوالحسن علی بن الفضل المالکي رحمه الله :**

فرمایلي دي چې: بې شکه چې دا محفل میلاد دسلفو صالحینو څخه نه دی رانقل شوی بلکې وروسته په شرا القرون کې راپیدا شوی دی. (جامع الفضایل بحواله تاریخ المیلاد ص ٨٦)

**٥- شیخ عبدالرحمن المغربي الحنفي رحمه الله :**

فرمایلي دي چې د محفل میلاد منعقدول بدعت دی، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خلفاء راشدینو او امامانو ددین نه داسې کړي دي او نه يې داسې فرمایلي دي (بحواله الجنة ص ١٧٧)

**٦-امام نصیر الدین الشافعي رحمه الله فرمایلي دي:**

چې میلاد دشرالقرون ایجاد دی (الاختیار ص ٢٠) بحواله الجنة ص ١٧٧)

**٧-قاضي شهاب الدین الحنفي رحمه الله :**

په تحفة القضاة کې فرمایلي دي چې دا جاهل خلک چې هر کال د ربیع الأول په میاشت کې میلاد کوي ددې هیڅ حقیقت نشته. (بحواله الجنه ص ١٧٧)

**٨-علامه احمد بن محمد المصری المالکی رحمه الله:**

فرمایلي دي چې دڅلورو واړو مذاهبو علماء ددې محفل میلاد په مذمت باندې متفق دي (بحواله الجنه ص ١٧٨)

**٩-حافظ ابو بکر البغدادی ر حمه الله :**

په خپله فتاوې کې فرمایي چې محفل میلاد دسلفو صالحینو څخه نه دی رانقل شوی (بحواله الجنه ص ١٧٨)

**١٠- حضرت مجدد الف ثانی رحمه الله:**

فرمايلي دي چې: بنظر انصاف به بينند كه اگر فرضاً حضرت ايشان (خواجه ما)درين اوان دردنيا زنده ميبودند واين مجلس واجتماع منعقد ميشد ايا باين امر راضى ميشدند واين اجتماع رامى پسنديد يا نه يقين فقير انست كه هرگز اين معنى راتجويز نميفرمودند بلكه انكار مينمودند مقصود فقير اعلام بود قبول كنيد يا نه كنيد هيچ مضايقه نيست وگنجايش مشاجره نه اگر مخدومزادهاى (پسران حضرت خواجه باقى بالله قدس سره )وياران انجايى برهمان وضع مستقيم باشند ما فقيران را از صحبت ايشان غير ازحرمان چاره نيست زياده چې تصديع دهد ، والسلام اولا وآخرا،(مكتوبات ج ١ صـ ٢٢، حصه ٥ مكتوب نمبر ٢٧٣)

**١١- فتاوى حقانيه:**

مولانا عبدالحق رحمه الله او دحقاني دمدرسې مفتيانو په اول جلد، كتاب البدع والرسوم صـ ٥٤٧) كې ورته بدعت ويلي دي او ليكلي يې دي چې دا بد ترين ډول بدعت دى ص( ٥٤٨)

١٢- **فتاوى فريديه:** مفتي اعظم محمد فريد رَحِمَهُ اللَّهُ ليكلي يې دي چې: كه مولود شريف د تبليغي اجتماع نوم وي نو جايز دى ، اوكه د ولادت وغيره ذكر كولو نوم وي نو دا بذات خو ديولوى عبادت دى ، لكن دخارجې عوارضو ، اسراف ، دبې ږيرې هلكانو نعت خواني، وغيره وجوهاتو له وجې دا مروجه دميلاد ،مجلسونه منعقد كول ممنوع دي (فتاوى فريديه ج ١صـ ٣٠٨) پښتو دميلادالنبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جلسه جايزه ده چې دمنكراتو نه خالي وي (ج ١صـ ٣١٤) .

**١٣- احسن الفتاوى :** مفتي رشيد احمد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې محفل ميلاد كه دمفسداتو څخه خالي وي نوبيا موجب دخير اوبركت او دثواب دى ، مفسدات لكه دا عقيده لرل چې نبي عليه السلام محفل ميلاد ته تشريف راوړي، يا ميلاد ته واجب ويل ، يا په معينه مياشت او مقرر تاريخ باندې يې ضروري ګڼل (احسن الفتاوى ج ١صـ٣١٩، باب رد البدعات )

**١٤- كفايت المفتى:** مفتي كفايت الله رَحِمَهُ اللَّهُ ډير تحقيق كړى دى ، اكثرو محفلو نو دميلاد النبى صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې بدعت ويلي دي ، صرف يو صورت ته يې جايز ويلي دي چې خلك په يوځاى كې راجمع شي او تخصيص دتاريخ او د ورځې ونكړي او د نبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سيرت بيان كړى (كفايت المفتى ج ١صـ ١٤٩، جواب نمبر ١٥٤،)

شیخ الاسلام مفتي محمد تقی العثماني رَحِمَهُ اللهُ لیکلي دي چې: دجشن عید میلاد النبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لپاره په شریعت کې هیڅ اصل نشته ،البته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مبارک ذکر او درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دسیرت دبیانولو او اوریدلو لپاره د ورځې او دتاریخ دتخصیص څخه بغیر منعقدول صحیح دي، په دې شرط چې مقصود دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دسیرت بیانول وي، ریا اوشهرت نه وي، ددې مقصد لپاره دمحفل میلاد منعقد ول صحیح دي(فتاوی عثماني ج١صـ١٠٦)

## دمروجه عید میلادالنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تردید لپاره دمولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله دلایل

### قرآني دلائل:

١-دمولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله د اول دلیل خلاصه داده چې: مروجه عید میلاد النبي بلا دلیله ددین خبره ګڼل کیږي (صغری) او بلا دلیله یوه کار دین ګڼل بدعت دی (کبري) نو مروجه عید میلادالنبي بدعت دی (نتیجه) دلیل دکبری دادی چې الله تعالی فرمایي چې (اَمْ لَهُمْ شُرَكٰٓؤُا شَرَعُوْا لَهُمْ مِّنَ الدِّيْنِ مَا لَمْ يَاْذَنْۢ بِهِ اللّٰهُ) ایا د دوي لپاره شرکاء دي چې په دین کې ورته داسې خبرې مقررروي دکومو چې الله تعالی اجازت ندی ورکړی ، ددې څخه صفا معلومیږي چې بغیر د اذن الهي څخه د دین خبره مقررول مذموم دی او غیر دین ته دین ویل بدعت دی او دلیل د صغری دادی چې جزئیًا خو د عبید میلاد النبي صلی الله علیه وسلم ذکر په أدله وو اربعه کې نشته او نه په خیر القرون کې موجود وو که احتمال وي ، نو دکومې کلیې لاندې به یې داخلوې ، لکن فقهاوو لیکلي دي چې د کوم عمل سبب او داعي چې په خیر القرون کې موجود وي او بیا هم متروک العمل وي ،نو هغه بدعت وي او د عید میلاد النبي صلی الله علیه وسلم سبب او داعي چې فرحه، یا اظهار دشوکت الاسلام دی ، قدیم دی ، خو بیا هم په خیر القرون کې هیڅا هم عید میلاد النبی د کومې کلیې لاندې ندی داخل کړی (اشرف الجواب صـ١١٦)

فائده: د دې تحقیق څخه معلومیږي چې که عید میلاد النبي صلی الله علیه وسلم دین ګڼي نو بیا بدعت دی ،ځکه چې بدعت همدې ته اویي چې ما لیس من الدین دې وګڼې او که ذریعه د تعلیم او وسیله د محبت الرسول صلی الله علیه وسلم ، طاعت الرسول او عظمت الرسول یې وګڼي لکه عامې دینې جلسې او اجتماعګانې نو بیا بدعت نه دی، ځکه چې په وسائلو کې بدعت نه راځي لکه دلمانځه لپاره په

خوله نیت کول په خیر القرون کې چانه کولو، خو بیا هم بدعت ندی، ځکه چې دا په لمونځ کې اضافه نده ،بلکې دلمانځه د توجه د برابرولو لپاره ذریعه او وسیله ده،عید میلاد النبي په هند، پنجاب او سند کې اکثر خلک او په پښتونخوا، بلوچستان او افغانستان کې بعضې خلک دین ګڼي نو دا طرف یې د بدعت والي دی او چې د عامو تعلیمي او تبلیغي جلسو په شان یې ذریعه د دین وګڼي نو دا طرف یې د استحباب دی، د دین ګڼلو علامه یې یوه داده چې تارک یې ملامته یا محروم وګڼي. نو د میلاد النبي صلی الله علیه وسلم جلسه نه مطلقاً مستحبه ده او نه مطلقاً بدعت دی.

**حدیث:**

دوهم دلیل: حاصله: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي چې: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ تعالی عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «لَا تَخْتَصُّوا لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ بِقِيَامٍ مِنْ بَيْنِ اللَّيَالِي وَلَا تَخْتَصُّوا يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِصِيَامٍ مِنْ بَيْنِ الْأَيَّامِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي صَوْمٍ يَصُومُهُ أحدكُم». (مشکوة ج ١ ص ١٧٩)

پدې حدیث کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې یوازې د جمعې په ورځ روژه مه نیسه، حالانکې په بل حدیث کې راځي چې: وَقَلَّمَا كَانَ يُفْطِرُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ (مشکوة ج ١ ص ١٨٠) نبي کریم صلی الله علیه وسلم به اکثر د جمعې په ورځ روژه وو، نو محدثین داسې تطبیق کوي چې د جمعې ورځ اګر چې افضله ورځ ده لکن بیا هم چې څوک د جمعې د ورځې په روژه کې د عامو ورځو څخه د زیات ثواب عقیده لري نو هغه ته د جمعې په ورځ روژه نیول نه دي جایز او څوک چې د جمعې د ورځې روژه د عامو ورځو سره په ثواب کې یو شان ګڼي نو هغه ته د جمعې په ورځ روژه نیول جایز دي، نو ددې حدیث څخه یو قانون رامعلومیږي چې کوم تخصیص چې منقول نه وي هغه منهي عنه دی،نو حاصل د دلیل دا شو چې څوک چې په یوم الولادت یا تاریخ الولادت کې عید میلاد النبي کوي نو هغوي غیر منقول تخصیص کوي(صغری) او څوک چې غیر منقول تخصیص کوي هغه بدعتي دی(کبری) نو څوک چې په یوم الولادت کې عید میلاد النبي کوي هغه بدعتي دی (نتیجه)

فائده: ددې دلیل څخه معلومیږي چې څوک چې د ولادت په ورځ جلسه جوړوي او یا صدقه ورکوي نو که د زیات ثواب عقیده یې وي بیا بدعت دی او که د زیات ثواب عقیده یې نه وي ،بلکې ټولې ورځې ورته په ثواب کې یو برابر ښکاري نو بیا بدعت نه دی.

خلاصه دا چې: یو تعین او تخصیص شرعي دی او بل تخصیص او تعین عرفي دی، که د ولادت په ورځ یې په عبادت کې د زیات ثواب عقیده وي نو دا بیا تخصیص او تعین شرعي دی تر څو چې د شارع څخه منقول نه وي بدعت دی او که دولادت په ورځ یې په جلسو او صدقو کې دزیات ثواب عقیده نه وي ،بلکې د کال دټولو ورځو دعبادت او صدقو په شان یې ثواب یو برابر ګڼي نو بیا بدعت نه دی، لکه د دستاربندی په جلسه کې چې تعین عرفي وي، همدارنګه په عامو اجتماعګانو کې تعین عرفي وی هره ورځ یو شان وي خو بیا هم د دونیوي ضروریاتو مطابق یوه ورځ متعینه کوي نو دا بیا بدعت نه دی ، نو تعین شرعي یې دبدعت والي طرف دی او فی نفسه محفل المیلاد مع التعین العرفی یې د استحباب طرف دی.

فائده: د ورځې فضیلت زیات ثواب لره مستلزم ندی، ګوره د جمعې دورځې فضیلت منصوصي دی خو بیا هم د جمعې د ورځې په روژه کې د زیات ثواب عقیده لرل ندي جایز او د ولادت د ورځې فضیلت منصوصي نه دی ،لکن بیا هم منلی شوی حقیقت دی، نو پدې ورځ په عبات کې د زیات ثواب عقیده لرل په طریق اولی ندی جایز ،علاوه لادا چې فضیلت خو یوم الولادت ته ثابت دی او یوم الولادت خو بیا نه راګرځي او د نورو کلونو همدا ورځ خو یوم الولادت نده ، بلکې سالګره او مثل یوم الولادت ده او مثل الشیء ته دعین شي حکم ورکول خلاف العقل دي په نص به ثابتیږي، د تاریخ الولادت یعنې د دولسم په باره کې خو نص نشته او یوم الولادت دوشنبه ده، نو که امثال یوم الولادت ته فضیلت ثابت شي، نو بیا خو په هره دوشنبه کې محفل میلاد کول او افضل ګڼل یې پکار دي.

## اجماع الامت:

امت مسلمه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د صحابه وو او دتابعینو د ترک څخه استدلال کوي:

تحقیق دادی چې داسې متروک دیني عمل چې د رسول الله په زمانه کې ترینه مانع نوي موجود ، بلکې د کولو داعي یې موجود وي لکه دعیدینو لپاره اذان، اقامت، همدارنګه د عیدینو څخه مخکې په عیدګاه کې نفلي لمونځ، همدارنګه دتراویحو لپاره اذان او اقامت، وغیره، نو په داسې تروکو کې هم د رسول الله صلی الله علیه وسلم اتباع لازمه ده، فقهاء فرمایي چې: فالفاعل لما ترک کالتارک لما فعل علامه زرقاني رحمه الله فرمایلي دي چې : فثبت ان الانقیاد له فی جمیع اقواله وافعاله وجودا وعدما الا ما خصصه الدلیل به طاعة له بالایة منطوقا (المواهب اللدنیه ج ٦ صـ ٢٧٨)

همدارنګه علامه قسطلاني رحمه الله فرمايلي دي چې: و تركه سنة فی حقنا يعنی ان مـا تركـه يسـن لنا تركه ان لم يقم دليل اخر علی طلبه منا كما ان فعله سنة يسن لنا اتباعـه فيـه الا لدليـل علی أنـه مـن خصائصه (بحواله نفحات التنقيح، للشيخ سليم الله خان رحمه الله ،ج ١صـ ٦٧٠، القسـطلاني ج ٧صـ ٣٣٥)، همدارنګه صاحب دهدايې هم فرمايلي دي چې: ان الزيادة علی اربع فی نوافـل النهـار مكـروة لانـه عليه السلام لم يزد علی ذلک ولو لا الكراهية لزاد تعليماً للجواز (الهداية ج ١صـ ١٧٣،باب العيدين)

په بل ځای کې يې فرمايلي دي چې: ولا يتنفل فی المصلی قبل صلوة العيد لانه عليـه السـلام لـم يفعل مع حرصه علی الصلوة (الهداية ج ١صـ ١٧٣) او ملا علي قاري رحمه الله د انما الاعمال بالنيات په تشريح کې فرمايلي دي چې: والمتابعة كما تكون فی الفعل تكون فی الترک ايضا فمـن واظـب علی فعل لم يفعلها الشارع فهو مبتدع (المرقات ج ١ص ٤١).

الشيخ المحدث عبدالحق الدهلوي رحمه الله فرمايلي دي چې: واتباع همچنانكـه در فعـل واجـب است در ترک نيز می بياد كرد پس انكه مواظبت نمايدهر فعل انچه شارع نكرده باشد مبتـدع بـود كـذا قاله المحدثون (اشعة اللمعات ج ١صـ ٣٣)

کله چې عمر رضی الله عنه ابوبکر صديق رضی الله عنه ته وفرمايل چې قران به راجمع کړو نو حضرت ابو بکر صديق رضی الله عنه وفرمايل چې څرنګه هغه عمل وکړو چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم ندی کړی؟ حضرت عمر رضی الله عنه بيا بيا مراجعه کوله تر دې چې الله تعالی د ابو بکر صديق رضی الله عنه شرح صدر وکړو، بيا يې حضرت زيد رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته حکم وکړو چې قران راجمع کړه، هغه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وويل چې څرنګه هغه عمل وکړو چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم ندی کړی؟ ابوبکر صديق رضی الله عنه بيا بيا مراجعه کوله تر دې چې الله تعالی د زيد بن ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ شرح صدر وکړو، ګورئ ابوبکر رضی الله عنه او زيد رضی الله عنه همدا خبره کوله چې څرنګه هغه عمل وکړو چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم نه دی کړی؟ يعنې د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تروک يې لازم الترک ګڼل، لکن وروسته يې شرح صدر وشو چې دا خو يو ضرورت او علاج دی او په علاجونو کې بدعت نه وي، مدارس د جهل علاج دي، خانقاګانې د رزايلو علاج دی اجتماعګانې د بې دينۍ علاج دی د دستاربندۍ جلسې علم ته د ترغيب يو علاج دی، لهذا دا يو هم بدعت ندی، همدارنګه د جمع القرآن لپاره د نبي کريم

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې داعي نه وو موجود، وروسته ورته داعي پيدا شو چې د قرآن د زياتي حصې ضايع کيدل دي او محفل ميلاد اکثر خلک علاج نه ګڼي بلکې ثواب او عبادت يې ګڼي، همدارنګه د محفل ميلاد داعي خو د نبي کريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې هم وو.

فائده: د دې دليل تعلق هم د امورو دينيه وو سره دی، نو که څوک يې دين نه ګڼي بلکې په علاج او وسائلو کې يې داخلوي او لکه د عامو تعليمي او تبليغي ديني جلسو او اجتماعګانو په شان يوه اجتماع يې ګڼي نو بيا بدعت ندی، لکن د نن سبا اکثر محافل ميلاد و نه خلک عين دين ګڼي، الا ماشاء الله.

## قياس

قياس په دوه قسمه دی: يو هغه قياس دی چې د مجتهد څخه منقول وي او دوهم هغه قياس دی چې د مجتهد څخه منقول نه وي، کوم واقعات چې د مجتهدينو په زمانه کې وو په هغې کې د مجتهد قياس معتبر دی، د غير مجتهد قياس ته پکې اعتبار نشته او کوم واقعات چې د مجتهدينو په زمانه کې نه وو موجود، بلکې نوي پيښيږي نو په هغوي کې بيا د غير مجتهدينو محقيقينو علماوو قياسونه هم معتبر دي او د عيد ميلاد النبي صلى الله عليه وسلم لپاره چې نن سبا خلک کوم سببونه ذکر کوي دا سببونه په خيرالقرون او د مجتهدينو په زمانه کې موجود وو، لکن بيا هم هيچا عيد ميلادالنبي د کومې کليې لاندې نه دی داخل کړی. (اشرف الجواب مع زيادات، ص ١٢٠)

## مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله د دې څخه وروسته د عيدميلادالنبي دموجدينو دلائل ذکر کړي دي او هغې ته يې جوابونه ورکړې دي:

١- اول دليل: الله تعالى فرمايي چې: (قُلْ بِفَضْلِ اللهِ وَبِرَحْمَتِهٖ فَبِذٰلِكَ فَلْيَفْرَحُوْا ۭ هُوَ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُوْنَ)

پدې ايت کې فرحت مأمور به دی او عيد ميلادالنبی هم اظهار د فرحت دی.

قلنا: يو فرحت مطلقه دی او يو هيئت خاصه دی، په آيت کريمه کې فرحت مطلقه ذکر شوی دی او په هغې کې نزاع نشته، نزاع په هيئت خاصه کې ده، فرحت مطلقه يعنې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په ولادت باندې هر وخت خوشحاليدل د اخو هر مسلمان ته پکار دي، د عيد ميلاد النبي د اکثرو خلکو فرحت، فرحت منقطعه دی، صرف په ربيع الاول کې په يوم الولادت کې وي، يعنې تحديد کوي، تحديد

په فرح کې تفریط دی ځوک چې محفل میلاد ته فرحت وایي او تخصیص کوي نو معنی یې همدا ده چې پدې میاشت کې فرحت کوئ په بله میاشت کې یې مه کوئ، پدې آیت کې د فرحت د تخصیص ذکر نشته.

## د ابو لهب خوشحالیدل

دوهم دلیل: کله چې ابو لهب د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ د ولادت خبر واروریدلو نو خوشحاله شو او په خوشحالۍ کې یې یوه وینځه ازاده کړه، ددې په وجه به د ابو لهب په عذاب کې تخفیف وي، نو معلومیږي چې په یوم الولادت کې فرحه موجبه د برکت ده.

مولانا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ په اشرف الجواب ص (۱۲۱) کې داسې جواب لیکلی دی چې: مونږ د نفس فرحت څخه منکر نه یو، بلکې پدې باندې هر وخت عمل کوو (هر وخت خوشحاله یو) خبره په دغې خاص هیئت کې ده.

او په امداد الفتاوی ج (۵) ص ۲۶۲) کې یې داسې جواب لیکلی دی چې: اول خو د ابو لهب خوشحالي د فعي او مفاجاتي وه او د داسې خوشحالۍ موقع په مونږ نده راغلې، د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ د ولادت نوی زیری په مونږ ندی شوی، په هغې باندې قصدي، اکتسابي او اهتمامي خوشحالي څرنګه قیاسیږي؟ البته قطع نظر د دې قیاس څخه زمونږ دا خوشحالي به هم جایزه وی که دلائل شرعیه وو د منکراتو څخه منع نه کولی او ظاهره ده چې د مباح او غیر مباح مجموعه غیر مباحه وي. انتهی.

۲- واقول: چې ابو لهب خو په یوم الولادت کې اظهار د فرحت کړی دی او هغه ورځ تیره شوې ده بیانه راګرځي په نورو کلونو کې خو سالګري او امثال د یوم الولادت دي، په دې ورځو کې خو نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ ندی پیدا شوی، نن سبا خو څوارلسمه صدی ده، نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ خو څوارلس سوه ځلې ندی پیدا شوی.

فائده: ددې جواب څخه هم معلومه شوه چې که په میلاد النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ کې مقصد د ورځې او د تاریخونو لمانځل نه وی نو بیا جایز دی، همدارنګه چې منکرات پکې نه وو، نو بیا جایز دی، هغه منکرات یې په امداد الفتاوی، ص (۲۵۸) او ص (۲۵۹) کې لیکلي دي: ۱- موضوعي روایات بیانول ۲- د ضروریاتو د دین په شان اهتمام او ډیر غیر ضروري امور ضروري ګڼل لکه جلسه په ګلانو

ځخه بغیر میلاد ته - میلاد نه وایي، ۳- غیر مقید، مقید، قالینو، کرسیو او بلفونو مزینه کول چې ددې ضروري ګڼي او په نورو ورځو کې یې فضیلت نه مني (او یا ګڼل چې پدې میاشت او پدې ورځو کې یې د زیات ثواب عقیده لري) ۴- د اهل بدعتو او فساقو راجمع کیدل ۵- په نعتونو کې پدې ورځ پکې دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ په شان کې غلو کول وغیره.

تنبیه: نن سبا په ټولو میلادونو کې دا منکرات او بدعات شته الا ماشاء الله.

## دعیسی علیه السلام دمایدې ورځ

قال الله تعالی (إِذْ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيعُ رَبُّكَ أَنْ يُنَزِّلَ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِّنَ السَّمَاءِ ۖ قَالَ اتَّقُوا اللَّهَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿١١٢﴾)

ددې ایت ځخه معلومه شوه چې د اعطاء النعمت د ورځې ځخه عید جوړول جایز دي او شرایع من قبلنا من غیر نکیر حجت دی او د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ او د نبي ولادت د ټولو نعمتونو ځخه غټ نعمت دی نو پدې ورځ عید جوړول جایز شو.

قلنا: د تکون ضمیر یوم نزول المائدی ته ندی راجع، بلکې مائدی ته راجع دی ای تکون المائدة ای نزولها سروراً لنا.

۲- دعید ځخه مراد جشن ندی، بلکې مطلق سرور مراد دی چې د مائدې په نازلیدلو موږ خوشحاله شو.

۳- شرایع من قبلنا من غیر نکیر حجت دی، لکن دلته نکیر شته چې د مانعینو په دلایلو کې ذکر شو.

## په یوم الولادت کې دنبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ روژه

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ د دوشنبې په ورځ روژه ونیوله او بیا یې وفرمایل چې: ذلک الیوم الذی ولدت فیه.

قلنا: ۱- یو دیوم الاثنین د روژې علت دی او بل یې حکمت دی، نو علت ددې روژې لپاره عرض الاعمال دي، په بل حدیث کې راځي چې په یوم الاثنین او یوم الخمیس کې الله تعالی ته عمل نامې پیش کولی شي نو زما زړه غواړي چې زما عمل نامه په داسې حالت کې پیش کړی شي چې زه روژه یم، نو کله چې علت عرض الاعمال شو نو دولادت ذکر محض د حکمت په طریقه دی او مدار د حکم علت وي حکمت نه وي.

۲- او که بالفرض علت ولادت شي نو بیا علت په دوه قسمه دی اول علت غیر متعدیه چې تر خپل مورده پورې خاص وي او دوهم علت متعدیه، نو که دا علت متعدیه وي نو بیا ولې پدې ورځ دقران تلاوت اطعام الطعام وغیره ندي رانقل شوي؟

۳- همدارنګه یو یوم الولادت دی چې یوم الاثنین دی او بل تاریخ الولادت دی چې مشهور دولسم د ربیع الاول دی، کله دولسم د ربیع الاول په نورو ورځو کې راځي، نو بیا په تاریخ د یوم الولادت باندې ولې روژه نه ده منقوله؟

۴- همدارنګه د اعطاء نعمت ورځې او شپې خو ډیرې دي لکه دهجرت، د فتح المکې، د معراج، وغیره ،نو دا ورځې ولې په عبادت نه لمانځئ؟ که تاسو وایئ چې یوم الولادت د نورو نعمتونو لپاره اصل دی نو بیا مونږ وایو چې بیا خو یوم الحمل د یوم الولادت لپاره اصل دی نو یوم الحمل ولې په عبادت نه لمانځئ؟

۵-یوم الولادت دوشنبه ده او تاریخ الولادت دولسم د ربیع الاول دی علی المشهور، او همیشه دولسم د ربیع الاول په دوشنبه نه راځي ،بلکې کله په سه شنبه وي، کله په چهارشنبه وي کله په نورو ورځو کې وي، نو که علت یوم الولادت وي، نو پکار دی چې هره هره دوشنبه په عبادت ولمانځئ او که علت تاریخ الولادت وي نو بیا په نورو ورځو کې ولې دنبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ څخه څه نه دي رانقل شوي؟ او بیا ولې پدې حدیث کې دتاریخ الولادت ذکر نه کیدلو؟ تاریخ الولادت خو کله په نورو ورځو کې هم راځي.

۶- که علت تاریخ الولادت وي، نو په کوم دولسم د ربیع الاول چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ پیدا شوی دی، هغه خو تیر شوی دی بیا نه راګرځي، په نورو کلونو کې چې کوم دولسمونه راځي، هغه خو امثال د تاریخ الولادت دي او امثال د تاریخ الولادت ته، دتاریخ الولادت دحکم ثابتول غیر مدرک بالعقل دي،لهذا نقل ته محتاج دي.

فانقیل: چې دا دلیل خو بعینه په یوم الولادت کې هم جاري کیږي، په کومه ورځ چې نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ روژه نیولې وه هغه خو مثل د یوم الولادت وو، عین یوم الولادت خو نه وو او نبي کریم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ په مثل د یوم الولادت حکم جاري کړو؟

قلنا: چې مثل ديوم الولادت ته ديوم الولادت حکم ورکول خو منقول شو، لهذا تاريخ الولادت پرې نه شي قياسولی.

علاوه لا دا چې مخکې ذکر شو چې د يوم الاثنين د روژې علت دا نه وو چې، دا يوم الولاذت ده کنه نو نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ خو هره دوشنبه روژه نيوله، نو تاسو ولې هره دوشنبه محفل ميلاد نه منعقدوئ؟

۷- همدارنګه چې په يوم الولادت روژه ونيول شي ،نو دا خو بيا د عيد ميلاد النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ ورځ نه شوه،ځکه چې د عيد په ورځ روژه نه وي.

الحاصل: علت د روژې لپاره به يا يوم الولادت وي يا به تاريخ الولادت وي، که علت تاريخ الولادت وي،نو بيا درې اعتراضه راځي، اول دا چې: تاريخ الولادت څوارلس سوه کاله مخکې تير شوی دی هغه تاريخ خو بيانه راګرځي ،نن سبا خو سالګرې او امثال د تاريخ الولادت دي،نو ددې امثالو فضيلت د کوم ځای څخه ثابتوئ؟

دوهم دا چې: تاريخ الولادت چې مشهور دولسم د ربيع الاول دی په بله ورځ، خالي، يکشنبه، سه شنبه، چهارشنبه وغيره هم راځي، پدې ورځ ولې روژه نده رانقل شوې؟

دريم دا چې: روژه خو د عيد سره منافي ده، نو د روژې ورځ د عيد ميلادالنبي ورځ څرنګه شوه؟ او که علت يوم الولادت وي نو بيا هم درې اعتراضونه راځي:

اول دا چې: يوم الولادت (يعني د دوشنبې، پير، ورځ) په مياشت کې څلور ځله او په کال کې (۴۸) ځله راځي، نو پکار دی چې بيا په مياشت کې څلور او په کال کې (۴۸) ورځې په عبادت ولمانځئ يعنې بيا پکار دی چې هره هره دوشنبه په عبادت ولمانځئ، لکه نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ چې هر دوشنبه روژه نيوله، نبی کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ خو يواځې د ربيع الاول صرف په يوه دوشنبه روژه نده نيولې.

دوهم دا چې: نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَعَلٰى آلِهٖ وَسَلَّمَ روژه نيولې ده ، جلسې، جشنونه او صدقې خو يې ندي ورکړې، نو جلسې جشنونه او صدقې څرنګه تاسو غير مجتهدين په روژه باندې قياسوې؟ مجتهد خو دا قياس نه دی کړی؟

دريم دا چې: روژه خو دعيد سره منافي ده، نو د روژې ورځ دعيد ميلاد النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَعَلَىٰ آلِهِ وَسَلَّمَ ورځ څرنګه شوه؟

معلوميږي دا چې د ورژې لپاره علت نه يوم الولادت دی او نه تاريخ الولادت بلکې علت عرض الاعمال دی او ولادت د حکمت په طريقه ذکر شوی دی.

## د ازاديو د ورځو لمانځل

بعضې خلک وايي چې د هرملک والا د خپل ملک ادازدې ورځ لمانځي، پاکستانيان ۱۴ اګست لمانځي، افغانان ۲۸ داسد لمانځي، نو که مونږ د يوم الولادت ورځ ولمانځله نو دا څرنګه بدعت شو؟ پکار دی چې د جشن ازادی د ورځو لمانځل هم بدعت شي.

قلنا: بدعت دې ته وايي چې ماليس من الدين، دين وګڼې او د ملکونو دازدايو د ورځو لمانځل يعنې دازادی جشنونه ديني محافل ندي، بلکې وطني محافل دي، دا جشنونه څوک دين نه ګڼي او د ميلاد جلسه خلک دين ګڼي.

## دحاجي امدادالله رَحِمَهُ اللهُ دهفت مسائل تحقيق

بريلوي عالم مفتي احمد يار خان ليکلي دي چې: د ديوبند د اکابرو پير او مرشد حاجي امداد الله رَحِمَهُ اللهُ په خپله رساله هفت مسئله صـ(۸) کې محفل ميلاد د خير او برکت باعث ګڼلی دی (محصل جاء الحق صـ۲۲۷)

قلنا: مولنا سرفراز خان صفدر رَحِمَهُ اللهُ په(راه سنت) صـ(۱۶۶) کې جوابونه ورکوي چې ۱-د هفت مسايل مضامين د حاجي امداد الله رَحِمَهُ اللهُ دي، لکن خپله يې ندي ليکلي، بلکې مولنا اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ اللهُ ليکلي دي، هامش فتاوی رشيديه ج اصـ(۱۰۱) او حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللهُ د خپلې زندګۍ په ابتدائي دور کې ددې د جواز قايل وو، بيا يې رجوع وکړه ۲- د حاجي صاحب رَحِمَهُ اللهُ الفاظ داسې دي چې نفس ذکر مندوب دی او قيود بدعت دی، هامش مذکور صـ(۱۰۲) (او نفس ذکر او د محفل ميلاد په مابين کې فرق دی از ناقل) ۳- د حاجي صاحب په ذهن کې هغه مفاسد هم نه وو کوم چې په خلکو کې مرّوج دي، (فتاوی رشيديه ج اصـ۱۰۱).

۴- همدارنګه مولنا رشید احمد ګنګوهي رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې: حاجي صاحب د کوم شرعي دليل نوم نه دی، لهذا په شرعي سوالاتو کې د حاجي صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ ذکر کول بې ځايه دي، فتاوی رشیدیه ج اصـ۹۸)، راسنت صـ(۱۶۶)

## درې اويا علماء

امام اهل سنت والجماعت مولنا سرفراز خان صفدر رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايي چې: مولوي عبدالسميع بريلوي دخپل زړه د تسلی او دخپلو حوارينو دتشفی لپاره د درې (۷۳) نومونو فهرست پیش کړی دی چې محفل میلاد ته يې مستحسن ويلي دي (انوار ساطعه صـ۲۴۸، صـ۲۵۰)

۱- مګر په دې يې فکر ندی کړی چې ايا پدې علما وو کې دصحابه وو او تابعينو نومونه هم شته او که نه؟ د مجتهدينو يا د مستندو محدثينو ذکر پکې شته او که نه؟ بيا يې پدې هم فکر ندی کړی چې په دوي کې اکثر صوفيه کرام دي او د صوفيه وو عمل د مجدد الف ثانی د قول مطابق حجت نه دی: عمل صوفيه درحل وحرمت سند نيست.

۲- په دوي کې چې کوم محققين علماء دي هغوي د فاسد قياس ښکار دي.

۳- پدوي کې بعضې صرف پدې تاريخ باندې فقراء وو ته د ډوډی د ورکولو قايل دي او بعض نفس ذکر الولادت ته مستحب وايي (او زمونږ خبره په محفل ميلاد کې ده) او بعضې صرف په زړه کې دخوشحالی د ظاهرولو قايل دي. (راه سنت صـ۱۶۵)

## المهند على المفند

هلته يې ميلاد ته مسحب ويلي دي.

قلنا: هلته يې ذکر الولادت ته مستحب ويلي دي، محفل ميلاد ته يې مستحب نه دي ويلي، او نفس ذکر الولادت هر وخت او په هره مدرسه کې کيدلی شي، ټول د سيرت درسونه، ذکر الولادت دی دشمائلو درس ذکر الولادت دی او دا په هر وخت او په هر ځای کې ثواب دی، زمونږ بحث په مروّج محفل ميلاد کې دی.

**اقول الحاصل:** د ميلاد النبي صلی الله عليه وسلم په مسئله کې درې خبرې دي:

اول: د رسول الله صلی الله عليه وسلم دصورت او سيرت د بيانولو لپاره جلسه جوړول او صدقې ورکول.

دوهم: د ولادت د ورځې فضیلت.

دريم: تعين شرعي او تخصيص، يعنې پدې ورځ په جلسه، صدقه او بل عبادت ضروري ګڼل او يا په کې دزياد ثواب عقيده لرل.

اوله مسئله: يعنې د رسول الله صلى الله عليه وسلم دصورت او سيرت د بيانولو لپاره جلسه جوړول او صدقې کول جايز عمل دى او د ډير ثواب ذريعه ده.

دوهمه مسئله: چې ددې ورځې فضيلت دى، نو دا هم يو منلى شوى حقيقت دى، لکن منصوصي نه دى ،علامه سيوطي رحمه الله او ملاعلى قاري رحمه الله د دې ورځې د فضيلت په باره کې فرمايلي دي چې:

هـــذا الشـــهر فى الاســلام فضـــلُ
ومنقبـــة تفـــوق على الشـــهور
ربيـــع، فى ربيـــع فى ربيـــع
ونـــور فـــوق نـــور فـــوق نـــور

مولنا اشرف علي تهانوي رحمه الله فرمايلي دي چې زه پکې دا شعر اضافه کوم چې:

ظهور فى ظهور فى ظهور — سرور فى سرور فى سرور

دريمه مسئله: چې تعين شرعي او تخصيص شرعي دى، نو تعين شرعي او تخصيص شرعي په عقيده محفل ميلاد کول، بدعت او ناجايز دى، يعنې پدې ورځ جلسه يا صدقه يا عبادت ضروري ګڼل چې پدې مياشت او پدې ورځ کې يې جايز ګڼي او په بله مياشت او بله ورځ کې يې ناجايز ګڼي، يا يې ضروري نه ګڼل، لکن د زيات ثواب عقيده پکې لرل چې پدې مياشت يا پدې ورځ کې دصورت او سيرت دبيانولو لپاره جلسه جوړول د نورو ورځو څخه زيات ثوب لري، په دې ورځ کې صدقه ياعبادت کول د نورو ورځو څخه زيات ثواب لري او دزيات ثواب عقيده ځکه بدعت دى چې د شارع څخه ندى ثابت او ماليس من الدين ته دين ويل بدعت دى.

خلاصه دا چې محفل ميلاد النبي صلى الله عليه وسلم نه مطلقاً بدعت دى او نه مطلقاً مستحب دى ،بلکې د محفل ميلاد النبي لپاره دوه طرفه دي، يو طرف يې دبدعتوالي دى او دوهم طرف يې د

مستحبوالي دی، د مستحبوالي طرف يې دنبي كريم صلى الله عليه وسلم دصورت او سيرت د بيانولو لپاره جلسه جوړول دي، د نبي كريم صلى الله عليه وسلم دصورت او سيرت د بيانولو لپاره او دصدقو د وركولو لپاره دكال ټولې ورځې يو برابر دي، په هره مياشت كې چې وي او په هره ورځ كې چې وي د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د صورت او سيرت دبيانولو لپاره جلسه جوړول او صدقې وركول جايز دي، دهيڅ كومې ورځې جلسه او صدقه دبلې هيڅ كومې ورځې په جلسې او صدقې زيات ثواب او فضيلت نه لري، همدغه د سيرت جلسه او صدقه د صفر المظفر او ربيع الاول وغيره مياشتو كې يو برابر ثواب لري او د بدعتوالي په طرف كې يې ډېرې خبرې دي، مثلاً:

١- تعين شرعي او تخصيص شرعي پكې بدعت دی چې دا عقيده ولري چې پدې تاريخ يا پدې ورځ د جلسو جوړول زيات ثواب لري او دكال په نورو ورځو كې كم ثواب لري، يا پدې تاريخ او پدې ورځ جايز دی او په بل تاريخ او بله ورځ ناجايز دی، نو دا بدعت دی دتعين عرفي او تعين شرعي په مابين كې دا فرق دی چې كوم شی چې په تعين شرعي سره معين وي په هغې كې عبادت د نورو ورځو دعبادت سره فرق لري، د محفل ميلاد النبي صلى الله عليه وسلم په جلسه كې بعض خلك پدې مياشت او پدې ورځ كې د زيات ثواب عقيده لري د نورو ورځو سره يې برابر نه ګڼي او تعين عرفي دادی چې په ټولو ورځو كې جلسه او صدقه درته يو شان ښكاري خو ته په يو تاريخ وزګاريې نو تا يو تاريخ معين كړو، نه دې تاريخ ته ضروري وايې او نه دا وايې چې پدې تاريخ كې دبل تاريخ څخه زيات ثواب لري، نو په ميلادونو كې اكثر خلك تعين شرعي كوي او دستاربندۍ او په عامو جلسو كې تعين شرعي نه وي بلكې تعين عرفي وي، نو دا د محفل ميلاد النبي صلى الله عليه وسلم او دعامو جلسو په مابين كې فرق دی.

٢- يا ورته موقّت عبادت ووايي، لكه دماسپښين د لمونځ لپاره چې شرعاً يو معين وقت دی نو همدارنګه د محفل ميلاد النبي صلى الله عليه وسلم والا دا خيال وی چې د محفل ميلاد النبی دجلسو او صدقو لپاره شرعاً د ربيع الاول مياشت يا دولادت ورځ معينه ده نو داهم بدعت دی.

٣- دريم دا چې دا جلسه عبادت وګڼي نو دا بيا بدعت دی او كه عبادت يې نه ګڼي، بلكې ذريعه د تعليم، دمحبت، تعظيم او طاعت يې ګڼې لكه عامې جلسې، نو بيا بدعت ندی، بلكې بيا يو علاج دی.

۴- څلورم دا چې مقصد دی د ولادت د ورځې یا د تاریخ لمانځل وي ، لکه اکثر وایي چې د اتاریخ یا دا ورځ په عبادت لمانځم،نو دا بدعت دی ځکه چې په شریعت کې د ورځو لمانځل نشته ،کنه بیا به اکثرې ورځې لمانځې،د کال اکثره ورځې داسې دي چې الله تعالی پکې مؤمنانو ته د یو غټ نعمت اعطاء کړې وي، بعضې خلک وایي صرف دا ورځ مونږ په عبادت ځکه لمانځو چې ولادت د ټولو نعمتونو لپاره اصل دی ، لکن دا خبره غلطه ده ځکه چې: ۱- بیا ولې د حملُ أمنةً بالنبي صلى الله عليه وسلم ورځ نه لمانځي؟ د حمل ورځ خو د ولادت لپاره هم اصل دی.

۲- همدارنګه تاریخ الولادت او یوم الولادت خو یو وو، چې څوارلس سوه کاله مخکې تیر شوی دی هغه خو په مونږ نه راځي نو څرنګه یې په عبادت لمانځئ؟ نن سبا خو سالګري او امثال یوم الولادت دی مثل الشئ ته د عین شی حکم خلاف العقل په نص ثابتیږي او په دې باره کې نص نشته، امثال یوم غرق فرعون ته د یوم غرق حکم ورکول خو خلاف العقل په نص ثابت دی او امثال تاریخ الولادت او امثال یوم الولادت ته د یوم الولادت حکم ورکول خو په نص کې نشته .

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد واله وصحبه اجمعین

## په قبرونو باندې گنبد جوړول

مفتي احمد يار خان ليكلي دي چې د أولياوو په قبرونو باندې گنبدې جوړول شرعاً جايز دي بلكې دصحابه وو د سنتو څخه ثابت دي (ملخصا جاء الحق صـ ٢٨٢)

حالانكې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دقبر دپخولو، په قبر باندې دكيناستلو او په قبر باندې دعمارت جوړولو څخه منع كړې ده (مسلم، كتاب الجنايز)

فقهاوو همدارنګه فرمايلي دي چې: (١) (فان كتب عليه شىء او وضع الاحجار فلابأس به عند البعض، ولا يجصص القبر ولا يطين ولا يرفع عليه بناء (خلاصة الفتاوى ج ١ صـ ٢٢٦)

٢- البناء على المقابر مكروه (عالمګيري ج ٤ صـ ١١٠) ج ١ صـ ١٦٦)

٣- يكره الدفن فى الأماكن التى تسمى الفساق وهى كبيت متعدد بالبناء )ددې په تشريح كې راځي چې (الرابع تجصيصها والبناء عليها (طحطاوي شرح مراقى الفلاح صـ ٣٥٧)

۴- په قبر باندې ابادي كول مكروه دي (كتاب الأثار صـ ۴۹)

۵- اصل مذهب عدم جواز دى ددې په مقابل كې دقيل هيڅ حيثيت نشته، وعن ابى حنيفة رحمه الله يكره أن يبنى عليه بناء من بيت اوقبة (فتاوى محموديه ج ١٣ صـ ۴٢١، احكام الجنايز.

٧- مفتي محمد فريد رحمه الله فرمايلي دي چې: (ګنبد جوړول دحديث او فقهې دتصريح مطابق ناجايز دي (فتاوى فريديه ج ٣ صـ ٣١۴)

٦- امام محمد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې: وَلَا نَرَى أَنْ يُزَادَ عَلَى مَا خَرَجَ مِنْهُ، وَنَكْرَهُ أَنْ يُجَصَّصَ أَوْ يُطَيَّنَ، أَوْ يُجْعَلَ عِنْدَهُ مَسْجِدٌ، أَوْ عَلَمٌ، أَوْ يُكْتَبُ عَلَيْهِ، وَنَكْرَهُ الْآجُرَ أَنْ يُبْنَى بِهِ أَوْ يَدْخُلَ الْقَبْرَ، وَلَا نَرَى بِرَشِّ الْمَاءِ عَلَيْهِ بَأْسًا، وَهُوَ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ (كتاب الاثار ج ٢ صـ ١٩١ باب تسنيم القبور وتجصيصها، مكتبة دار الفكر بيرت)

فانقيل: صاحب دروح البيان ليكلي دي چې په قبر باندې ګنبد جوړول جايز دي: هغه فرمايي فبناء القباب على قبور العلماء والأولياء والصلحاء ووضع الستور والعمائم والثياب على قبورهم أمر جائز اذا كان القصد بذلک التعظيم فى أعين العامة حتى لايحتقروا صاحب هذا القبر وكذا ايقاد القناديل والشمع عند قبور الأولياء والصلحاء من باب التعظيم والاجلال ايضا للاولياء

فالمقصد فيها مقصد حسن.(روح البيان ج ٣ضـ ٤٠٠، الجزء العاشر سورة توبه ايت ، ١٨، مطبوعة دارالفكر بيروت).

قلنا: ١- تفسير روح البيان غير معتبر تفسير دی ، په ده کې ډير غير معتبر مسايل موجود دي.

٢- ددې د جواز دپاره يې هيڅ سند هم نه دی نقل کړی ، صرف په قصد دتعظيم او اجلال يې اعتماد کړی دی او بل طرفته دا مسئله منصوصه ده او په مسائلو منصوصه وو کې دهيچا قول هم دنص په خلاف بې سنده نه قبليږي.

٣-د روح البيان دا مسئله داجماع څخه خلاف ده ، صاحب د رد المحتار فرمايلي دي چې: وَأَمَّا الْبِنَآءُ عَلَيْهِ فَلَمْ أَرَ مَنِ اخْتَارَ جَوَازَهُ. وَفِي شَرْحِ الْمُنْيَةِ عَنْ مُنْيَةِ الْمُفْتِي: الْمُخْتَارُ أَنَّهُ لَا يُكْرَهُ التَّطْيِينُ. وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله: يُكْرَهُ أَنْ يَبْنِيَ عَلَيْهِ بِنَآءً مِنْ بَيْتٍ أَوْ قُبَّةٍ أَوْ نَحْوِ ذٰلِكَ، لِمَا رَوٰى جَابِرٌ ﷺ «نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-عَنْ تَجْصِيصِ الْقُبُوْرِ، وَأَنْ يُكْتَبَ عَلَيْهَا، وَأَنْ يُبْنٰى عَلَيْهَا»(رواه مسلم:ج١صـ٣١٢، كتاب الجنائز، فصل فی النہی عن تجصيص القبور وابوداؤد، والترمذی، وصححه وزادوأن توطأ، رد المحتار: ج١صـ٨٣٩)

٤- په روح البيان كې خو يې دا هم ليكلي دي چې:ونذر الزيت والشمع للاولياء يوقد عند قبورهم تعظيما لهم ومحبة فيهم جائز ايضا لاينبغی النهی عنه . (روح البيان ج ٣صـ ٤٠٠ الجزء العاشر سورة توبه ايت ١٨ ) حالانكې نذر لغير الله بالاجماع حرام دی ، فقهاوو ليكلي دي چې : وَاعْلَمْ أَنَّ النَّذْرَ الَّذِي يَقَعُ لِلْأَمْوَاتِ مِنْ أَكْثَرِ الْعَوَّامِ وَمَا يُؤْخَذُ مِنَ الدَّرَاهِمِ وَالشَّمْعِ وَالزَّيْتِ وَنَحْوِهَا إِلٰى ضَرَائِحِ الْأَوْلِيَاءِ الْكِرَامِ تَقَرُّبًا إِلَيْهِمْ فَهُوَ بِالْإِجْمَاعِ بَاطِلٌ وَحَرَامٌ (الدر المختار على رد المحتار ج ٣ص صـ ٤٢٧، قبل الاعتكاف، بحر ج ٢ صـ ٢٩٨، قبيل باب الاعتكاف، طحطاوی علی المراقی صـ ٥٧١، كتاب الصوم، باب مايلزم الوفاءبه الخ، مطبوعه مصر)

فانقيل: صاحب دتحرير المختار هم ورته جايز ويلي دي هغه فرمايلي دي چې: فی روح البيان فی قوله تعالى انما يعمر مساجد الله الخ الى قوله فبناء القباب على قبور العلماء والأولياء والصلحاء ووضع الستور والعمائم والثياب على قبورهم أمر جائز ، التحرير المختار ج ١صـ ١٢٣، باب صلوة الجنائز، الطبعة الكبرى الأميريه ببولاق المصر المحمية)

قلنا: تحرير المختار دفتوی كتاب نه دی، بلكې په دې كې لطائف او غرائب دي او په بعضو ځايونو كې اضات دي او يا داعتراضاتو څخه جوابات دي، په بعضې ځايونو كې پكې طبي نكتې دي او په بعضو ـو كې پكې تاريخي لطايف دي ، له همدې وجې د مصنف دا خوښه نه وه چې چاپ شي او عامو خلكو ته په

لاس ورشي ، او دده دا تقاضي پوره هم شوه، چې دده په ژوند کې دا کتاب چاپ نشو ، لکه څرنګه چې ناشر په ابتداء کې ليکلي دي چې: ولم يشأ رحمه الله أن يخرج تقريره للناس فى حياته مع شدة الحاجة اليه وتواتر الطلاب عليه تواضعا منه فى جانب الله تعالى الى اخره، (تحرير المختار ج ١صـ ٢، مطبوع كراچي)

فانقيل: په الدر المختار کې يې ليکلي دي چې: **ولايطين ولايرفع عليه بناء وقيل لابأس به وهوالمختار كمافى كراهية السراجية (شامي ج٢ صـ٢٣٧، مطلب فى دفن الميت)**

قلنا: چې صاحب ددر مختار دلته خطا شوى دى ، او شامي په دې خطايي باندې تنبيه ورکړې ده شامي فرمايلي دي چې: قوله وقيل لابأس به. الخ المناسب ذكره عقب قوله ولا يطين لان عبارة السراجية كما نقله الرحمتي ذكر فى تجريد ابى الفضل ان تطيين القبورمكروه والمختار أنه لا يكره، نو اختلاف په تطيين القبور کې دى، په بناء القبور کې نه دى ، صاحب ددر المختار دسراجيه په عبارت کې تقديم او تاخير کړى دى او شامي په دې تنبيه کړې ده او وروسته يې په صراحت سره پرې رد هم کړى دى لکه څرنګه چې فرمايي : (واما البناء عليه فلم أرى من اختار جوازه)

فانقيل: شامي ليکلي دي چې: **أَىْ يَحْرُمُ لَوْلِلزِّينَةِ، وَيُكْرَهُ لَوْلِلْإِحْكَامِ بَعْدَ الدَّفْنِ، وَأَمَّا قَبْلَهُ فَلَيْسَ بِقَبْرٍ إِمْدَادٌ. وَفِى الْأَحْكَامِ عَنْ جَامِعِ الْفَتَاوٰى: وَقِيلَ لَايُكْرَهُ الْبِنَاءُ إِذَاكَانَ الْمَيِّتُ مِنَ الْمَشَايِخِ وَالْعُلَمَاءِ وَالسَّادَاتِ. (باب صلوة الجنازة، مطلب فى دفن الميت)**

قلنا: مفتي محمود حسن ګنګوهي رحمه الله فرمايلي دي چې:

(١) اول خو يې دا قول په قيل سره نقل کړى دى ، چې دلايرفع په مقابل کې ضعيف دى.

(٢) شامي رحمه الله د ذرمختار د(لايرفع) ترجمه په يحرم سره کړې ده او محرم ته په مبيح باندې ترجيح وي.

(٣) لايرفع په متن کې دى او لايكره په شرح کې دى او متن مقدم وي.

(۴) شامي رحمه الله خپله مخکې ليکلي دي چې: واما البناء عليه فلم أر من اختار جوازه (فتاوى محموديه ج ١٣صـ ٤١٩).

فانقيل: چې کله چې حضرت حسن رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفات شو نو بي بي رحمه لله يې په قبر باندې خيمه ووهله، بيا يې يو کال وروسته لرې کړه، ددې په تفسير کې ملا على القاري رحمه الله فرمايلي دي چې: فسمعت المرأة صايحاً اى هاتفا غيبياً يقول: ألا هل وجدوا مافقدوا.

فاجابه أخر بل يئسوا والظاهر سئموا، ولكن لما كان فى صورة اليأس قال يئسوا فانقلبوا اى رجعوا الى اخره (مرقات ج ٤صـ ١٠٥)

بيا يې فرمايلي دي چې دا خيمه يې دذکر او دقرائت وغيره داجتماع لپاره لګولې وه او دحافظ ابن حجر په شان دې فعل ته عبث ويل مناسب نه دي.

قلنا: اول: خو دنصوصو په مقابل کې ددې قول هيڅ حيثيت نشته.

دوهم: دا چې هلته خو متعارفه ګنبده نه وه صرف خيمه وه.

دريم: دا چې هغه يې هم يو کال وروسته لرې کړې وه.

څلورم: دا چې که ملا على القاري رحمه الله دګنبدې دجواز قايل وي، نو په شرح نقايه (ج ١صـ١٣٩) کتاب الصلوة، باب فى الجنايز کې به يې ترينه منع نه کوله. ملاعلي قاري رحمه الله دبدعاتو په بيان کې فرمايي: هى ما انكره أيمة المسلمين كالبناء على القبور وتجصيصها(مرقاة،كتاب الايمان، باب الاعتصام بالكتاب والسنة تحت تشريح حديث بلال بن الحارث المزنى ، رقم ١٦٨)

علامه عيني رحمه الله فرمايلي دي چې: په قبر باندې دخيمې دلګولو په باره کې مختلف اقوال دي، بعضې ورته حرام وايي او بعضې ورته جايز وايي او امام احمد رحمه الله ، ابن عمر رضى الله عنهما اوسعيد بن المسيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورته مکروه ويلې دي ،ابن حبيب فرمايلي دي چې: دنبش القبر لپاره تر دوو يا تر دريو ورځو پورې جايز دي ، لکن پخوا يې هيڅ څخه هم ندي رانقل شوي.(عينى شرح بخاري ج ۴صـ۱۴۹).

حافظ ابن حجر رحمه الله : په فتح الباري کې ددې بي بي په فعل باندې رد کړی دی ج ۳صـ۱۶۱)

فانقيل: درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قبر مبارک باندې ګنبد ولې جوړه شوې دی؟

قلنا :رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله حجره مبارکه کې خښ شوی دی ،داسې نه ده چې وروسته يې په قبر ابادي شوې ده ، بيا دخلفاء اربعو په زمانه کې هيڅ تغير پکې رانغلو ، دوليد ابن عبدالملک په زمانه کې يې هغه خامه حجره را ونړوله او دمنقشو تيګو څخه يې جوړه کړه، په هغه وخت کې حضرت عروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ منع هم وکړه، لکن چا يې خبره ونه منله ، بيا وقتاً فوقتاً په کې تغير او تزيين کيدلو ، حتى

چې په سنه (۶۷۸) د قلاوون صالحي په بادشاهۍ کې شنه ګنبد جوړه کړې شوه (جذب القلوب الى ديار المحبوب صـ ۱۰۸، فتاوی محمودیه جلد ۱۳ صـ ۴۲۲)

مفتي محمد فريد رَحِمَهُ اللهُ فرمايلي دي: په قبر ګنبد جوړول د حديث او د فقهې د تصريح مطابق ناجائز دی او چار دېوالي د ضرورت په وخت کې جائز ده، وعن جابر قال نهى رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان يجصص القبر و أن يبنى عليه وان يقعد عليه ،(رواه مسلم، مشكوة المصابيح، ج١صـ ١٤٨، باب دفن الميت) وفى فتاوى الهنديه: ويكره أن يبنى على القبر مسجد او غيره كذا فى السراج الوهاج، (فتاوی عالمګیریه ج۱صـ ۱۶۶، الفصل السادس فى القبر والدفن) (فتاوی فریدیه ج ۳صـ ۳۱۴)

## په قبرونو باندې څادرونه أچول

مفتي احمد يار خان ليکلي دي چې د أولياوو په قبرونو باندې د څادرونو أچول جايز دي (جاء الحق صـ ۲۹۶)

حالانکه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې: الله تعالى مونږ ته ددې حکم نه دی کړی چې خټو او تيږو ته ټوټې ورواغوندو (مسلم ج ۲صـ ۲۰۰)

فقهاوو فرمايلي دي چې (۱) وأما ارتكاب محرمات أز روشن كردن چراغها وملبوس ساختن قبور بدعت شنيعه اند. (فتاوى شاه رفيع الدين صـ ١٤)

۲- كره بعض الفقهاء وضع الستور والعمايم والثياب على قبور الصالحين والأولياء ، قال وفى الفتاوى الحجة وتكره الستور على القبور (رد المحتار ج ٥ صـ ٢٣٢)

۳- هغه أمور چې بالاتفاق ناجايز دي يو په هغوي کې (تعليق الستور عليها) دي (مجالس الأبرار صـ ۱۱۸)

۴- په کعبه شريفه باندې خپله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څادر غوړلی دی، ځکه چې د هغې تعظيم مفضي الى الشرک نه دی، له دې وجې کعبې طرفته استقبال ضروري دی او قبرونو ته مخ کولو سره لمونځ مکروه دی، لهذا په قبرونو باندې څادر غوړول د ايهام د شرک او د غير الله د تعظيم له وجې ناجايز دی (احسن الفتاوی پښتو ج ۱صـ ۳۴۴)

۵- مفتي محمد فريد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايلي دي چې: دپردې په باره کې دفقهاء کرامو څخه کراهيت هم نقل دی او دځينو نورو فقهاوو څخه جواز هم مروي دی، نو دقاعدې مطابق به محرم ته ترجيح ورکولی شي، لکن په مخالفينو باندې سختي نه ده پکار (فتاوی فريديه ج ۳ص ۳۳۴، احکام الجنايز).

۶- په فتاوی حقانيه کې سوال او جواب داسې دی چې: سوال داولياوو قبرونه سپينول او په هغو باندې دګلدارو څادرونو غوړول، غلافونه خورول، ښکلول او دڅراغونو بلول شرعا جايز دي او که نه؟ بينوا وتوجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: دا ټول کارونه بد او مفضی الی الشرک دي، ځکه چې دا کارونه دتعظيم په طريقه کيږي، په داسې حال کې چې له الله تعالی څخه پرته دهيچا هم داسې تعظيم ناجايز دی، او په دې کې دمال ضايع کيدل هم دي او په بې فايدې کارونو کې دمال مصرفول شرعا منع دي، لهذا له داسې بدو کارونو څخه ځان ساتل ضرور دي او کوم کار چې دمحمدي طريقې څخه ثابت وي هغه بايد اختيار کړی شي (فتاوی حقانيه ج ۱ص ۱۶۱).

## په قبرونوباندې ډيوې بلول

مفتي احمد يار خان ليکلي دي چې دأولياوو په قبرونو باندې دډيوو بلول جايز دي (جاءالحق ص ۳۰۰)

حالانکې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په قبرونو باندې د ډيوو او دشمعو په بلوونکو باندې لعنت ويلی دی (ابو داؤد ج ۲ص ۱۰۵)

او فقهاوو فرمايلي دي چې: لايجوز ما يفعله الجهال بقبور الأولياء والشهداء من السجود والطواف حولها واتخاذ السروج اليها ومن اجتماع بعد الحول كالعياد ويسمونه عرسا (تفسير مظهري ج ۲ ص ۶۵۰)

۲- وايقاد النار على القبور فمن رسوم الجاهلية والباطل والغرور (فتاوی عالمګيری ج ۱ص ۸۶)

همدارنګه يې فرمايلي دي چې: وأخراج الشموع الى رأس القبور فى الليالي الأولى بدعة (فتاوی عالمګيري ج ۴ص ۱۱۰).

۳- النهى عن اتخاذ السرج اما لما فيه من تضيع المال لأنه لانفع لأحد من السراج ولأنها من أثار جهنم واما للاحتراز عن تعظيم القبور (مرقات ج ۱ ص ۴۷۰)

۴- په قبرونو باندې ډيوې بلول او بيرغونه ښخول بدعت دی (فتاوی فريديه ج ۱ص ۲۸۸، ص ۳۱۵)

## په قبرونو باندې ګلان أچول

مفتي احمد يار خان ليکلي دي چې: د هر مسلمان په قبر باندې د ګلانو أچول جايز دي ولې وي او که ګناهګار (جاء الحق صـ ٢٩٦)

حالانکې دا کار نه د نبي کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ معمول وو او نه د صحابه وو او نه د امامانو او علاوه لا دا چې اکثرو اکابرو د دين دا عمل رد کړی دی، نو بهتره دا ده چې د دې عمل ځخه ځان وساتل شي.

١-امام خطابي رحمه الله فرمايلي دي چې: د خلکو د دې عمل لپاره هيڅ اصل نه شته (معالم السنن ج ١صـ١٩)

٢-علامه عيني رحمه الله فرمايلي دي چې دا عمل ليس بشئ دی.

٣- شيخ محدث عبدالحق دهلوي رحمه الله فرمايلي دي چې د دې عمل لپاره هيڅ اصل نشته (اشعة اللمعات ج ١صـ ٢٠٠)

٤-مفتي محمد فريد رَحِمَهُ اللّٰهُ فرمايلي دي چې: په قبرونو باندې ګلان کيښودل روا دي، البته د قيمت تصدق کول يې اولی دي (رساله قبريه صـ ٤٠، فارسي) په بل ځای کې يې ليکلي دي چې په قبر باندې شنه ځانګه کيښودل جايز دي خو په قبر کې دننه د ځانګې کيښودل بدعت دی (فتاوی فريديه ج ١صـ٣٢٩)

٥- په فتاوی حقانيه کې ليکلي يې دي چې: تازه ګلان او شنې پاڼې يا ښاخونه او داسې نور په قبرونو باندې په دې نيت سره أچول چې د قبر عذاب سپک شي او د دغو شيانو په حمد او ثنا باندې مړي ته نفع ورسيږي اګر چې شرعاً جايز دي، لکن د شر او د فساد او د فتنو په دې دوړ کې چونکې په نيتونو کې اکثر فتور پيدا شوی دی، نو ځکه علماء کرامو د أولياوو په قبرونو باندې ګلان او ځادرونه أچول د شرعي خلاف ګرزولی دی، لما قال العلامه اشرف علی تهانوي رحمه الله : ايا د عوامو دغه نيت وي؟ که چيرته يې دا نيت وي نو د فساقو، ګناهګارانو په قبرونو باندې به يې ګلان شيندل او که چيرته د چا همدا نيت هم وي بيا هم دا فعل د عوامو لپاره د فساد موجب ګرځي نو د دې وجې د هغوي لپاره هم منهي عنه دی (امداد الفتاوی ج ٥صـ ٣٤٠) کتاب البدعات، قال العلامه محمد يوسف البنوري رحمه الله فتر العامة يلقون الزهور على القبور وبالأخص على قبور الصلحاء والأولياء، والجهلة منهم اذدادوا

اصراراً على ذلک وتغالوا فيه (الى أن قال) وبالجملة هذه بدعة مشرقية منكرة (معارف السنن باب التشديد في البول ج ١ صـ ٢٦٥)

٦-دګلاب ا چولو رسم بدعت دی شريعت کې ددې هيڅ ثبوت نشته (احسن الفتاوی ج١صـ٣٤٢)

مه په قبر باندې ګلان اچوئ او مه په کفن باندې (فتاوی محموديه ج ١٣صـ٤١٢، باب نهم)

قال العلامه عبدالحق الدهلوي : اين قدر تعظيم قبر در شرع آمده که برآن جلوس نکند وپانهند ونغل برآن نه دارند واز غايط وبول برآن احتراز سازد، وتعظيم قبر، بوسته دادن، ودست ماليدن، وسجده وطواف، وتقبيل نمودن ، ومنحني شدن درويخاک ماليدن درست نيست، چناچه روايات اين مورد درجوابات سابقه ګذ شته،واز آن جمله درکتاب کشف الغطاء شيخ ألاسلام مذکور است، دست ننهد برقبر ، ومسح نکند، وبوسه نده،ومنحنی نشود، وبخاک او نمالد زيراکه اين عادت نصارا است ومشايخ در منع آن تشديد بسيار دارند، وآنچه عوام مردم آلان کنند از بدعتهای منکر است شرعا وبالجملة شک نيست (مأة مسايل صـ٦٨ سوال چهل وچهارم)

## په قبرونو باندې هر کال عرس کول

مفتي احمد يار خان يو عنوان لګولی دی په نوم د (بحث عرس بزرګان) همدارنګه يې باب لګولی دی په نو د (باب ثبوت عرس ميں)

بيا يې ليکلي دي چې: عرس کے حقيقت اس قدر ہے کہ ہر سال تاريخ وفات پر قبر کے زيارت کرنا اور قرآن خوانی وصدقات کا ثواب پہنچانا (جاء الحق ص- ٣٢٢)

حالانکه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې زما قبر عيد مه جوړوئ (مشکوة ج ١ صـ ٨٦)

ددې حديث په تشريح کې شاه ولی الله الدهلوي رحمه الله فرمايلي دي چې: پدې کې اشاره ده چې دتحريف دروازه بنده کړئ ځکه يهودو او نصاراوو دخپلو پيغمبرانو قبرونه دحج په شان اخترونه او موسمونه جوړ کړي وو (حجة الله البالغة ج ١ صـ ٢٢)

٢- په تفسير مظهري کې يې ليکلي دي چې: لا يجوز مايفعله الجهال بقبور الأولياء والشهداء من السجود والطواف حولها واتخاذ السروج اليها ومن اجتماع بعدالحول کالعياد ويسمونه عرسا ج ٢ صـ ٦٥٠)

٣- شاه ولی الله رحمه الله فرمايلي دي چې: په غټو بدعاتو کې يو دادی چې دقبرونو څخه ميله جوړه شي (تفهيمات الهيه ج ٢ ص- ٦۴)

۴- شاه اسحق رحمه الله فرمايلي دي چې: دعرس لپاره ورځ مقررول نه دي جايز (مسايل اربعين صـ ٣٨)

۵-مفتي محمد فريد رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايلي دي چې: دديوبند او دسهارنپور علماء دعرس کولو څخه متنفر دي اګر چې امربالمعروف اونهی عن المنکر په کې کيږي، ځکه چې دکوم عرس اختيار دبې علمه خلکو سره وي نو يوه ورځ به خامخا په هغې کې ټنګ ټکور، دحاضر او ناظر عقيده کيږي (فتاوی فريديه ج اصـ ٣٢٧)

۶- مفتي تقی عثماني رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايي چې دعرس لپاره په شريعت کې هيڅ أصل نشته بلکې بدعت دی (فتاوی عثمانی ج اصـ ١٠٨)

## څلويښتي:

بريلويان څلويښتي ته جايز وايي (جاء الحق صـ ٢٦١)

په فتاوی حقانيه کې دي چې: دمړي وارثانو ته د ايصال ثواب لپاره صدقات هر وخت جايز دي، لکن دوخت دتعين چې کوم صورتونه په عوامو کې مروج دي لکه جمعګي، دريمه، لسمه، څلويښتمه او د اسې نور نو ددې تخصيص لَه وجې شرعا ناجايز دي ځکه چې دتخصيص او دالتزام له وجې کله کله مباح او جايز افعال هم ناجايز ګرځي.

قال العلامه النووي رحمه الله والطعام فی الأيام المخصوصة كالثالث، والخامس، والتاسع، والعشرين، والاربعين، والشهر السادس، والسنة ممنوعة (شرح منهاج بحواله راه سنت صـ ٢٦٥) قال العلامه ابن البزاز رحمه الله ويكره اتخاذ الطعام فی اليوم الأول، والثالث، وبعد الأسبوع، والأعياد.

الفتاوی البزازيه علی هامش الهنديه ج ۴ صـ ٨١ ومثله فی رد المحتار ج ١ صـ ٦٠٣ مطلب فی كراهة الضيافة من أهل الميت.

مفتي محمد فريد رَحِمَهُ ٱللَّهُ فرمايلي دي چې: دڅلويښتمې وغيره خاص کول په دين کې نوی شی پيدا کول دی او ممنوع دی، اګر چې صرف خيرات غوره عبادت دی (فتاوی فريديه ج ٣صـ ٣٠٠ احکام الجنايز)

## په أذان کې ګوتې ښکلول

مفتي احمديار خان ليکلي دي چې کله چې مؤذن اشهد أن محمد رسول الله ته ورسيږي نو په دغه وخت کې دګوتو ښکلول مستحب دي او په دې کې ډيرې ديني او دونيوي فايدې دي (جاء الحق صـ ٣٩٤)

پدې موضوع چې بريلويان کوم روايات پيش کوي هغه ټول سخت ضعيف او يا موضوعي دي.

امام زرقاني رحمه الله فرمايلي دي چې: مسح العينين بباطن أعلى السبابتين بعد تقبيلها عند قول المؤذن أشهد أن محمد رسول الله لايصح (مختصر المقاصد الحسنة صـ ١٨٢)

## دجنازې دلمانځه څخه وروسته بالالتزام دعا کول

بريلويان دجنازې څخه وروسته دعا ضروري ګڼي او تارک يې ملامته کوي، حالانکې افضل ددې دعا نه کول دي، په فتاوى حقانيه کې يې داسې ليکلي دي چې دجنازې په لمانځه کې چې صفونه جوړوي په ولاړ حالت دعا بدعت ده، او که چيرته دصفونو له ړنګولو وروسته او له التزام پرته وي نو ممنوع نه ده، البته له سلام څخه مخکې په دعا باندې اکتفاء کول أفضل او منصوصي دي.

دليل: له رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او سلفو صالحينو رضى الله عنهم څخه ددې دعا دکولو او دنه کولو هيڅ حديث مروي نه دی (کما لا يخفى على من راجع الى کتب الحديث)

او علامه ابن همام او نورو محققينو تصريح کړې ده چې أصل په اشياوو کې اباحت دی، ويؤيدهم ما رواه ابوداؤد أنّ ما سکت عنه فهو عفوٌ، له دې وجې دجنازې تر لمانځه وروسته دعا مباح او جائز ده ځکه چې جنازه پخپله يو لوی عبادت دی په خلاف داختر د أذان ځکه چې دهغه دنه کولو په اړه روايت راغلی دی، وهو ما رواه ابو داؤد أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الْعِيدَ بِلَا أَذَانٍ، وَلَا إِقَامَةٍ، وَأَبَا بَكْرٍ، وَعُمَرَ، أَوْعُثْمَانَ رضي الله عنهم». (ابوداؤدج ١ صـ ١٦٤، باب ترک الأذان فى العيد)

يعنې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صديق اکبر او عمر فاروق رضى الله عنهما د أختر لمونځ له آذان او اقامة پرته ادا کړ، پس په عدم الروايت او روايت العدم او عدم ذکر او ذکر العدم کې فرق نه کول غباوت يا جهالت دی.

يو سوال او دهغه جواب: كه چيرته يو څوک دا ووايي چې له جنازې وروسته ددعا په اړه حديث وارد دى يعنې كله چې تاسو په مړي باندې جنازه كوئ نو دهغه لپاره په دعا كې ښه اخلاص كوئ او امام كاساني رحمه الله بدائع الصنائع ج ١ص ٣١١) كې له حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت كړى دى چې له حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه يو ځل دجنازې لمونځ فوت شوى وو نو ددوهم ځل د أداكولو اراده يې وكړه نو پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې: الصلوة على الجنازة لاتعاد ولكن أدع للميت واستغفر له (بدائع الصنائع ج ١ صـ ٣١١، كتاب الجنائز).

يعنې دجنازې لمونځ بيانه راګرځول كيږي ليكن دمړي لپاره دعا او استغفار كوه.

وَرُوِيَ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ وَابْنَ عُمَرَ - رَضِيَ اللهُ تَعَالَى عَنْهُمْ - فَاتَتْهُمَا صَلَاةٌ عَلَى جِنَازَةٍ فَلَمَّا حَضَرَا مَا زَادَا عَلَى الِاسْتِغْفَارِ لَهُ وَرُوِيَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلَامٍ رضي الله عنه أَنَّهُ فَاتَتْهُ الصَّلَاةُ عَلَى جِنَازَةِ عُمَرَ رضي الله عنه فَلَمَّا حَضَرَ قَالَ: إِنْ سَبَقْتُمُونِي بِالصَّلَاةِ عَلَيْهِ فَلَا تَسْبِقُونِي بِالدُّعَاءِ لَهُ. انتهى. (بدائع الصنائع: ٣١١/١، فصل الكلام في صلوة الجنازة)

دابن عباس او دابن عمر رضى الله عنهما نه په يوه مړي باندې دجنازې لمونځ فوت شويوو نو هغوي چې كله حاضر شول نو يوازې يې دنوموړي مړي لپاره په استغفار باندې اكتفاء وكړه او دحضرت عبد الله بن سلام رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دى چې له حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه دجنازې لمونځ قضاء شو نو خلكو ته يې وويل چې كه چيرته تاسو دجنازې په لمانځه كې له مانه وړاندې والى حاصل كړ لكن ددعا په كولو كې له مانه وړاندې والى نه شئ حاصلولى.

نو ددې په ځواب كې دا ويل كيږي چې په حديث مرفوعه كې له دعا څخه مراد هغه دعا ده چې له سلام څخه مخكښې ده، محدثينو او فقهاوو همدا معنى ترې مراد كړې ده او كوم روايتونه چې صاحب دبدائع الصنائع ذكر كړي دي په هغو كې دهغه سړي دعا كول ذكر دي چې له چا څخه جنازه تيره شوې وي او دا دنزاع محل نه دى.

## دسلفيه وو ددليل جائزه

او كه چيرته دا تسليم كړو چې پيغمبر صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او سلف صالحينو رضى الله عنهم دجنازې تر لمانځه وروسته دعا نه ده كړې كه چيرته يې كړې واى نو منقول او مروي به واى او په ظاهر هم دا معلوميږي، نو له دې څخه ددې دعا بدعت او مكروه والى نه لازميږي او كه نه نو له فرائضو نه وروسته په اجتماعي هيئت سره دعا او دقرآن مجيد په پښتو او فارسي او اردو سره ترجمه كول هم بايد بدعت واى

پداسې حال کې چې دا أمور بدعت نه دی، پس همدارنګه له جنازې وروسته دعا هم بدعت او مکروه نه ده، زمونږ کومو مشائخو فقهاوو او مفسرینو چې دا دعامکروه ګڼلې ده ؟ هیڅا هم دا کراهیت په دې سلفي دلیل باندې نه دی بنا کړی، هغوي په نورو دلائلو سره دا مدعا په ښکاره تو ګه معلومه کړې ده.

## دیوه وهم ازاله:

ځینې هغه خلک چې ددیوبندیت او دحنفیت په جامه کې دنجدیت او سلفیت اشاعت کوي او دصاحب هدایې او ملا علی القاري رحمه الله په ځینو مختصرو عبارتونو باندې تمسک کوي چې کوم کار نبي کریم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وي کړی هغه به بدعت وي دا دهغو خلکو خود غرضي او مطلب پرستي ده، ځکه چې حدیث یواځې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فعل ته نه وایي، بلکه حدیث دپیغمبر صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فعل، قول او تقریر دریواړو ته ویل کیږي دده عبارات، اشارات، دلالات، اقتضاء او اعتبار یو شی هم بدعت نه دی، دزیات تفصیل لپاره التعلیق الممجد ص ۱۴۴، باب القنوت فی الفجر ته رجوع وکړئ)

## دفقهاؤ کرامو رائې

داکثرو فقهاؤ کرامو له عباراتو څخه له جنازې نه وروسته ددعا ممانعت څرګندیږي، البته د امام فضلي بخاري څخه یې جواز مروي دی (کما فی البحرج ۲ص ۱۸۳، کتاب الجنائز وعن الفضلی لابأس به انتهی)

او څرګنده دې وي چې په دغو مشایخو (مانعینو) کې ځینو یې د دلیل تذکره نه ده کړې او ځینو بیا دملا علی قاري زیادت علی الجنازه مبنی ګرځولې ده حیث قال فی المرقات ج ۴ ص ۶۴، کتاب الجنائز ) لانه یشبه الزیادت فی صلوة الجنازة او ځینو (صاحب دهدائې ) دجنازې دتکرار دمبنی کیدو خواته اشاره کړې ده، حیث قال لانه دعا مرةً لأن أكثرها دعاء (البزازیه علی هامش الهندیه ج ۴ص ۹۰، کتاب الجنائز) ځینو ویلي دي چې دجنازې دلمانځه څخه مقصد دعا وي، نو ګواکه د جنازې لمونځ عبارت له دعا څخه ده نو ددعا په کولو سره دجنازې تکرار لازمیږي، ځکه چې ددعا تکرار پخپل ذات کې ممنوع نه ده او که نه نو په پنځو وختونو کې له سلام څخه مخکې ددعا په کولو سره ددعا بعد السلام تکرار لازمیږي پس بناء پردې تحقیق دا کراهیت په تشبیه باندې مبني ده چې په دې دعا سره دجنازې په لمانځه کې د زیاتوالي او تکرار تو هم لازمیږي، لکه څرنګه چې له فرائضو نه وروسته پیوسته په هم هغه ځای کې سنت کول هم له دې وجې مکروه دي او دا تشبیه په هغه وخت کې لازمیږي چې کله په صفوفو کې

ودريږي او دعا وكړى شي او چونكه دصفوفو له ړنګولو نه وروسته دا تشبيه نه پاتې كيږي نو له دې وجې كراهيت به هم نه وي، (ويشير اليه تعبير هم بلايقوم بالدعاء مع كون التعبير بلايدعوا خصر).

**التزام بدعت دى :**

چونكه دا دعا نه لازمه ده او نه واجبه او نه سنت مؤكده ده اونه زائده ، له دې وجې ددې دعا سنت يا واجب ګڼل او تارک ته يې بښه نه ويل به بدعت وي، لكه څرنګه چې دهغه مطلق فاعل ته مبتدع ويل منكر دي ، ولاحول ولاقوة الا بالله العلى العظيم (فتاوى حقانيه ج ١ ص ٥١۶،وهكذا فى الفتاوى الفريديه)

## دجنازې پسې شاته ذكر بالجهر او نعت خواني

مفتي احمد يار خان عنوان لګولى دى چې: باب جنازه كى اگے كلمه طيبه يانعت خوانى كا ثبوت (جاء الحق ص ۴۰۴)

حالانكې امام طحطاوي رحمه الله فرمايي چې: ويستحب لمن تبع الجنازة أن يكون مشغولا بذكر الله اى سرا ، والتفكر فى ما يلقاه الميت وان هذا عاقبة أهل الدنيا وليحذر عما لا فايدة فيه (الى ان قال) ولايرفع صوته بالقراءة ولا بالذكر ولا يغتر بكثرة من يفعل ذلک واما مايفعل الجهال فى القراءة على الجنازة من زفع الصوت والتمطيط فيه فلا يجوز بالاجماع ولايسع احداً يقدر على انكاره أن يسكت عنه ولاينكر عليه (طحطاوي على مراقى الفلاح ص ٢٥٣) علامه شامي هم فرمايلي دي چې وكره فيها رفع الصوت بذكرٍ او قراءةٍ ) ردالمحتار باب الجنائز)

## ددفن څخه وروسته په قبر باندې أذان

مفتي احمد يار خان ددې دثبوت لپاره باب لګوي (جاء الحق ص ٣١١)

حالانكې فقهاوو ترينه منع كړې ده ، علامه ابن عابدين شامي رحمه الله فرمايي چې: لايسن الاذان عند ادخال الميت (الى ان قال) قد صرح ابن حجر فى فتاواه بأنه بدعة (رد المحتار ج ١ ص ٦٥٩)

## داولياوو په نوم حيوانات ذبح كول

بريلويان ورته جايز وايي وګوره (جاء الحق ص ٣٥٨، ص ٣٥٩) حالانكې فقهاوو ددې كار څخه منع كوي.

حضرت مجدد ألف ثاني شيخ احمد سرهندي رحمه الله فرمايي چې: وحيوانات را كه نذر مشايخ مى كنند و بر سر قبرهاى ايشان رفته آن حيوانات را ذبح مى نمايند در روايات فقهيه اين عمل را نيز داخل شرك ساخته آند (مكتوبات شريف، دفتر سوم، مكتوب نمبر ۴۱)

په فتاوى حقانيه كې يې داسې ليكلي دي چې: كوم څناور چې دكوم ولي دتعظيم او تكريم يا دكوم بادشاه دخوشحالولو لپاره ذبح شي، يا په دې نيت باندې يې څوك ذبح كړي چې دبادشاه په دربا كې مقبول شي او ماته كومه عهده يا دنده را وسپاري، يا مې پخپله عهدې باندې پريږدي ، نو په دې ټولو صورتونو كې حلال شوى څناور حرام او مرداريږي ، اګر كه يې دذبح په وخت كې زر واري دالله تعالى نوم پرې ياد كړى وي ، او اكثره فقهاء كرام دې فعل ته دكفر موجب وايي.

البته ځينو په كافر كولو كې دا حتياط اړخ غوره كړى دى ، په هر حال داسې مذبوحه د (ماأهلّ به لغير الله ، ماذبح على النصب، او لعن الله من ذبح لغير الله ) كې دمفسرينو ،محدثينو او فقهاوو په نيز داخله ده ، البته كه چيرته دالله تعالى د رضا او دهغه دنعمتونو دشكريې په بدل كې ذبح كړى شي ،يعنې په دې نيت باندې چې دنيك او خيرخواه بادشاه په مونږ باندې مقرريدل يو لوى نعمت دى ، يو اځې ددې نعمت دشكريې په خاطر كوم څناور څوك ذبح كړي او دبادشاه دخوشحالولو مقصد يې نه وي.

نو دا صورت جائز دى او دغوښې خوړل يې جائز دي او كه چيرته دبادشاه او داسې نورو ددعوت په خاطر يې حلال كړي نو بيا هم جائز او حلال دي: لما قال العلامه علاؤالدين الحصكفى رحمه الله: (ذُبِحَ لِقُدُومِ الْأَمِيرِ) وَنَحْوِهِ كَوَاحِدٍ مِنَ الْعُظَمَاءِ (يَحْرُمُ) لِأَنَّهُ أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللهِ (وَلَوْ) وَصْلِيَّةٌ (ذُكِرَ اسْمُ اللهِ تَعَالَى) (وَلَوْ) ذُبِحَ (لِلضَّيْفِ) (لَا) يَحْرُمُ لِأَنَّهُ سُنَّةُ الْخَلِيلِ وَإِكْرَامُ الضَّيْفِ إِكْرَامُ اللهِ تَعَالَى. وَالْفَارِقُ أَنَّهُ إِنْ قَدَّمَهَا لِيَأْكُلَ مِنْهَا كَانَ الذَّبْحُ لِلهِ وَالْمَنْفَعَةُ لِلضَّيْفِ أَوْلِلْوَلِيمَةِ أَوْلِلرِّبْحِ، وَإِنْ لَمْ يُقَدِّمْهَا لِيَأْكُلَ مِنْهَا بَلْ يَدْفَعُهَا لِغَيْرِهِ كَانَ لِتَعْظِيمِ غَيْرِ اللهِ فَتَحْرُمُ، وَهَلْ يَكْفُرُ؟ قَوْلَانِ بَزَّازِيَّةٌ وَشَرْحُ وَهْبَانِيَّةٍ.

قُلْت: وَفِي صَيْدِ الْمُنْيَةِ أَنَّهُ يُكْرَهُ وَلَا يَكْفُرُ لِأَنَّا لَا نُسِيءُ الظَّنَّ بِالْمُسْلِمِ أَنَّهُ يَتَقَرَّبُ إِلَى الْآدَمِيِّ بِهَذَا النَّحْرِ، وَنَحْوُهُ فِي شَرْحِ الْوَهْبَانِيَّةِ عَنِ الذَّخِيرَةِ، وَنَظَمَهُ فَقَالَ: وَفَاعِلُهُ جُمْهُورُهُمْ قَالَ كَافِرٌ... وَفَضْلِيٌّ وَإِسْمَاعِيلُ لَيْسَ يُكَفِّرُ (الدر المختار على صدر رد المحتار: ج ۶ صـ ۳۰۹، كتاب الذبائح)

قال العلامه ابن نجيم المصرى رحمه الله: وَفِي التَّتِمَّةِ رَجُلٌ ذَبَحَ لِلضَّيْفِ شَاةً فَذَكَرَ اسْمَ اللهِ عَلَيْهَا فَقَالَ: يَحِلُّ أَكْلُهُ وَلَوْ ذَبَحَ لِأَجْلِ قُدُومِ الْأَمِيرِ أَوْ قُدُومِ وَاحِدٍ مِنَ الْعُظَمَاءِ وَذَكَرَ اسْمَ اللهِ يَحْرُمُ أَكْلُهُ لِأَنَّهُ ذَبَحَهَا لِأَجْلِهِ تَعْظِيمًا لَهُ.

(البحر الرائق: ج ۸ صـ ۱۶۸، كتاب الذبائح) ومثله في البزازيه على هامش الهنديه ج ۶ صـ ۳۰۲، نوع من كتاب الصيد)

## دځناورو قبر ته بيول او هلته يې دحلالولو حکم

سوال: ځينې خلک قبرونو ته ځناور يعنې وزې، ميږې، او داسې نور بيا يې او هلته يې ذبح کوي شرعا دداسې ځناورو حکم څه دی؟ بينو وتوجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: ديوه بزرګ يا ولي دايصال ثواب لپاره کوم ځناور حلالول او غوښه يې په غريبانو او مسکينانو باندې ويشل يو جايز صورت دی ،ليکن وزې او داسې نور مالونه دهغو قبرونو ته بيول او دهغوي په نومونو يې حلالول حرام دي او له دې څخه ذبيحه حراميږي اګر که دذبح په وخت کې يې ډير واري بسم الله الله اکبر ويلی هم وي.

قال العلامه ابن نجيم رحمه الله: ذبح القدوم الأمير اوالواحد من العظماء يحرم ولو ذكرالله تعالى (الاشباه والنظائر ج ٣ صـ ٢٣٠، كتاب الصيد والذبائح) قال العلامه ابن نجيم المصرى رحمه الله : وفى التتمة رجل ذبح للضيف شاة فذكر الله تعالى عليها فقال يحل أكله ولو ذبح لأجل قدوم واحد من العظماء وذكر اسم الله تعالى يحرم أكله لأنه ذبح لأجله تعظيما له : (البحرالرائق ج ٨صـ ١٦٨، كتاب الذبائح) ومثله فى البزازيه على هامش الهنديه ج ٦ ص( ٣٠٢، فتاوى حقانيه ج ١ صـ ١٦٠)

## قضاء عمري

## مروجه قضاء عمري بدعت دی

په فتاوی حقانيه کې ليکي چې سوال: څه فرمايي علماء کرام ددې مسئلې په باره کې چې په ځينو علاقو کې خلق په يوې خاصې طريقې سره د رمضان المبارک په آخري جمعې کې په جمع باندې لمونځ په دې عقيدې سره ادا کوي چې په دې سره دټول عمر قضايي لمونځونه ادا کيږي او په عرف عام کې دې ته قضاء عمري ويل کيږي او داثبات دپاره دليلة التعريس او دخندق احاديث وړاندې کوي، نو شرعا دقضاء عمري څه حکم دی؟

الجواب باسم ملهم الصواب: قضاء عمري کوم چې په ځينو علاقو کې په متعارفې طريقې سره ادا کيږي نه د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ له احاديثو څخه ثابته ده، او نه حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله دا لمونځ ادا کړی دی او نه يې ددې ترغيب ورکړی دی، همدارنګه دا لمونځ دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه وو رضى الله عنهم تابعين او تبع تابعينو له قول او فعل څخه هم ثابته نه ده، د أئمه اربعه وو دمذهب په معتبرو

کتابونو کې یې هم ذکر، نوم او نښان نشته، نو په دې بنا سره دا لمونځ په یقیني توګه بدعت دی او فاعل یې دشریعت له مخې مبتدع دی، د أحنافو کتابونو ته یې منسوب ول کذب او په أیمه وو د دین باندې افتراء ده، دحنفي فقهې په کتابونو کې دقضائي لمونځونو دا اداکولو چې کومه طریقه بیان شوې ده هغه بل ډول ده، او مروجه قضاء عمري بیل شی دی، په دې کې خو یواځې پنځه لمونځونه درمضان المبارک په آخري جمعې کې په آذان او اقامت سره په جماعت سره اداکول دټول عمر یا د اویا او اتیا وو کلونو دقضاء شوي لمونځونو قائم مقام او دهغوي جبیره او کفاره ګڼل کیږي، دفقه حنفي په کتابونو کې دټول عمر دټولو لمونځونو دقضاء په ډول سره د اداکولو طریقه داسې راغلې ده یعنې که چیرته دټول عمر دقضایي لمونځونو تعداد یو زر وي نو زر لمونځونه به اداکوي او که چیرته یو لک وي نو یو لک لمونځونه به ادا کوي، په دغو دواړو طریقو کې دزمکې او اسمان فرق دی، پاتې شو هغه حدیث چې له هغه څخه یې مروجه قضاء عمري ثابت کړې ده، په هغه باندې أئمه وو جرح او تعدیل کړی دی او محدثینو ورته موضوعي حدیث ویلی دی چې له ځانه جوړ شوی یعنې موضوعي حدیث دی کوم چې استدلال پرې جایز نه دی (۱) ملا علی القاری رحمه الله فرمایي چې (حدیث من قضی صلوة من الفرائض فی اخر جمعة من رمضان کان جابرا لکل صلوة فائتة فی عمره الی سبعین سنة باطل قطعا لانه مناقض للاجماع علی أن شیئا من العبادات لایقوم مقام فائتة سنوات آه (الموضوعات الکبری صــ ۲۴۲ رقم حدیث ۹۵۳، حرف المیم) (۲) قاضی شوکاني رحمه الله فرمایي (حدیث من صلی فی أخر جمعة من رمضان خمس صلوة من الفرائض فی الیوم واللیلة قضت عنه ما أخل به من صلوة سنة آه (هذا موضوع لا اشکال فیه ولم أجده فی شیء من الکتب التی جمع مصنفوها صنعا فی عصرنا هذا وصار کثیر منهم یفعلون ذلک ولا أدري من وضعه لهم فقبح الله الکذابین، انتهی، الفوائد المجموعة فی الاحادیث الموضوعة / ۵۴، النوع الثامن صلوة المفیدة بایام الشهور ولیالي منها) (۳) شاه عبدالعزیز دهلوی رحمه الله فرمایي: الخامس أن یکون الحدیث مخالفا لمقتضی العقل والنقل وتکذبه القواعد الشرعیة مثل قضاء العمري ونحوه انتهی (العجالة النافعة صــ ۳۰ فی بیان قرائن وضع الحدیث. (۴) علامه ابن حجر مکي فرمایي: واقبح من ذلک ما اعتید فی بعض البلاد من الصلوة الخمس فی آخر جمعة من رمضان عقب صلوتها زاعمین ان تکفر صلوة العام او العمر المتروکة وذلک حرام بوجوه لاتخفی انتهی: (تحفة منهاج النووي)

له دغو تصريحاتو څخه دنو موړي حديث موضوعيت اظهر من الشمس غوندې ثابت شو او س له دې سره سره چې کوم خلک دا حديث د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حديث ګڼي او د قضاء عمري دا ثبات لپاره يې د دليل په توګه وړاندې کوي نو معامله يې الله ته سپارل کيږي، ځکه چې د معاند علاج ممکن نه وي، همدارنګه دا مروجه قضاء عمري له څو نورو مفاسدو څخه هم خالي نه ده، بې کيدل تري ډير ضروري دي او هغه دا چې د دې لمانځه په اړه عوام او ځينې کم علمه خواص هم دا عقيده لري چې په دې لمانځه سره د ټول عمر ياد او يا او يا اتيا وو کلونو يا کم تر کمه ديوه کال د قضائي لمونځونو څخه مو غاړې خلاصيږي لکه څرنګه چې د دې لمانځه له نامه څخه هم څرګنديږي.

همدا وجه ده چې دا خلک د دې لمانځه څومره کوشش او سعې کوي او د دې لمانځه څومره اهتمام کوي د نورو فرايضو او واجباتو دومره نه کوي او د هغوي څخه په ډير معمولي طريقې سره ځان خلاصوي، دا خيال کوي او دا اعتقاد لري چې د ټول عمر قضاء شوي لمونځونه يې په يوه لمونځ سره اداکيږي، حالانکې دا اعتقاد د اسلام د فقهاوو د تصريح مطابق موجب د کفر ګرځي.

په فتاوى هنديه کې دي چې: رجل يصلى فى رمضان لاغير ويقول: اين خو بسيار است او يقول: زيادت ميايد لأن كل صلوة فى رمضان تعدل سبعين صلوة يكفر انتهى (الفتاوى الهنديه، ج ٢ ص ٢٦٨، باب التاسع فى أحكام المرتدين، ومنها مايتعلق بالصلوة والصوم والزكوة، ومثله فى جامع الفصولين ج ٢ ص (٢٢٣)

همدارنګه فقهاء کرامو دا هم ليکلي دي چې قضائي لمونځونه په دا ډول کول چې خلکو او کتونکو ته دا څرګنده شي چې نوموړي قضايي لمونځونه کوي مکروه تحريمي دي که په جوماتونو کې وي او که د جوماتونه د باندې وي.

قال العلامه الحصكي رحمه الله: ويكره قضاءها فى المسجد لأن التاخر معصية فلايظهرها وفى رد المختار: ويظهر من تعليها ان المكروه قضاءها مع الاطلاع عليها ولو فى غيرالمسجد آه (رد المحتار على الدر المختار ج ١ ص ٤٩٥: قبل باب السجودباب قضاء الفوايت)

علامه خصكي رحمه الله مخکې ليکي: وينبغى ان لايطلع غيره على قضاءه لان تاخره معصية.

او علامه ابن عابدين د دې عبارت په شرح کې فرمايي: قلت والظاهر ان (ينبغى) ههنا للوجوب وأن الكراهة تحريمية لأن اظهار المعصية لحديث الصحيحين كل أمتى معافى الا المجاهرين وان من الجهار ان يعمل الرجل بالليل عملا ثم يصبح وقد ستره الله عليه فيقول عملت البارحة كذا وكذا

وقد بات يستره ربه ويصبح يكشف ستره الله عنه ، (رد المختار على الدرمختار ج ١ صـ ٤٩٥ ، قبل باب السجود باب قضاء الفوائت) چونکه دقضاء عمري په دې مروجه لمانځه کې نورو خلکو ته اطلاع او اعلان دی له دې وجې دا به هم مکروه تحريمي وي ، باقي دغزوه خندق او د ليلة التعريس په احاديثو سره هم ددې اثبات صحيح نه دی، ځکه چې په هغو احاديثو کې يو اځې دا راغلي دي چې له حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه دعارضه نوم (خوب) او يا په جنګ کې دمشغوليت له وجې يو يا څو لمونځونه قضاء شوی وو او له خوب څخه تر ويښېدو او له دې څخه تر فارغيدو يې وروسته فوراً ټول لمونځونه ادا کړل، کوم چې نه پکې د رمضان ذکر راغلی دی او نه د رمضان دآخری جمعې او نه دا چې هغه يې دټول عمر دقضائي لمونځونو لپاره کافي ګڼلي دي .

په هر حال مقدس شريعت ددې قضاء لمونځونو په اړه خپله قطعي فيصله دا کړې ده چې څومره لموځونه قضاشوي وي دهغوي د ټولو پوره پوره ادا کول فرض دي او له ادا کولو پرته يې غاړې نه خلاصيږي ،حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي : من نام عن صلوة او نسيها فليصلها اذا ذكرها لا كفارة لها الا ذلك (صحيح البخاري ج ١ ص ٨٤، باب من نسی صلوة فليصل اذا ذكرها لايعيد الا تلك الصلوة) دفقهاوو کرامو أيمه وو دجرح او دتعديل ، د محدثين کرامو ددغو تصريحاتو په رڼا کې مروجه قضاء عمري ته مونږ بدعت قبيحه وايو او په دين کې يې مداخلت ګڼو فقط والله اعلم.

مفتي محمد فريد رَحِمَهُ اللَّهُ ليکي چې: مروجه قضای عمري نه دحديثو څخه ثابته ده او نه دفقې څخه،بلکې د قواعدو حنفيه وو څخه مخالفه ده پس دا مونځ بدعت سيئه دی(فتاوی فريديه ج ١ص ٢٨٨)

## دحيلة اسقاط شرعي حيثيت

په فتاوی حقانيه کې يې داسې ليکلي دي :

سوال: نن صبا په اکثرو علاقو کې دا رواج دی چې له مړي سره قرآن مجيد قبرستان ته وړي او له مجيد سره څه نقدې روپۍ وړدي او څو کسان يې پخپل منځ کې سره ګرځوي او دې ته طريقه اسقاط ئيږي او په جواز کې دې دقران مجيد دا يت چې : (وابتغوا اليه الوسيلة )الايه دی وړاندې کوي انې وکړئ ددې مسئلې دجواز يا نه جواز په اړه مکمل وضاحت وکړئ؟ بينو وتوجروا.

الجواب باسم ملهم الصواب: ځرګنده دې وي چې کـه چيرتـه لـه يـو عاقـل او بـالغ مسـلمان څخه لمونځونه او روژې عمداً او يا سهواً فوت شوي وي نو په هغه باندې فرض دي چې قضايې راوګرځوي او د قضايي دنه ګرځولو په صورت کې به نوموړی ګنهګار وي او له ژوند څخه د مايوسۍ په وخت کې به پرې وصيت لازم وي، يعنې وصيت دې وکړي چې د هغه له جائداد منقوله او غير منقوله څخه به د هغه د مال له دريمې حصې څخه د هر لمانځه او روژې په بدل کې دوه دوه کيلو غنم او يا يې قيمت مسکينانو ته په فديه کې ورکوي او د وصيت د نه کولو په صورت کې هم ګنهګار له دنيا څخه ځي، البته که چيرته يې مال نه وي او يا يې د مال له دريمې حصې څخه د روژې او لمونځونو فديه نه ادا کيدله او يا د جهل او فسق او يا سستۍ له وجې يې د فديه په باره کې وصيت نوي کړی نو وارثان او خپلوان يې دده له خوا څخه په باقاعده توګه سره حيله اسقاط کولی شي (رد المحتار ج ۱ صـ ۴۹۱، باب صلوة الجنائز مطلب فی اسقاط الصلوة عن الميت)

## دحيلة اسقاط تشريح

حيله هغه مباح کار و ګفتار ته ويل کيږي چې د هغه په ذريعې سره په پټه سره مقصود ته ورسيږی (کما فی المفردات صـ ۱۳۸، الحيلة ما يتوصل به الى حالة ماخفية انتهى، وفى فتح البارى ج ۱۲ صـ ۲۷۴هي ما يتوصل به الى مقصود بطريق خفي انتهى.

## دحيلې اقسام

د حيلې ډير قسمونه دي چې ځينې يې په لاندې ډول دي:

الف: هغه حيله چې د حرامو دتحليل لپاره وي او دشريعت دابطال لپاره وي لکه چې اصحاب السبت دښکار دتحليل لپاره کړی وه او ځينو يهوديانو دشحم (وازدې) دتحليل لپاره کړې وه (رواه البخاري) دا حيله پرته له شک او شبهې حرامه او ناجائزه ده.

ب: يو هغه حيله ده چې کوم چې له حرامو څخه دبچ کيدو او دغاړې دخلاصولو لپاره او د واجب اسقاط لپاره وي لکه څرنګه چې حضرت ايوب عليه السلام کړې وه او لکه څرنګه چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم ديو ناواده شوي لپاره کړې وه (رواه ابو داؤد) صـ ۶۲۴)

وَقَالُوا: مَارَأَيْنَا بِأَحَدٍ مِنَ النَّاسِ مِنَ الضُّرِّ مِثْلَ الَّذِي هُوَ بِهِ، لَوْ حَمَلْنَاهُ إِلَيْكَ لَتَفَسَّخَتْ عِظَامُهُ، مَا هُوَ إِلَّا جِلْدٌ عَلَى عَظْمٍ، «فَأَمَرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنْ يَأْخُذُوا لَهُ مِائَةَ شِمْرَاخٍ، فَيَضْرِبُوهُ بِهَا ضَرْبَةً وَاحِدَةً» (ابوداؤدج ٢ ص ٢٥٧، كتاب الحدود باب اقامة الحد على المريض)

خلاصه دا چې صحابه کرامو رضی الله عنهم دهغه سړي په حق کې (کوم چې زنا ترې صادره شوې وه او واده يې نه وو کړی) بارگاه رسالت ته عرض وکړو چې دده غونډې په تکليف کې مبتلا موږ هيڅوک ندی ليدلی که چيرته يې مونږ دلته راوړو نو هډوکي يې ميده ميده کيږي او په هډوکو يې يواځې پوستکی پاتې شوی دی، پس حضور ﷺ وفرمايل چې دخرماوو وږی چې سل ښاخونه يې وي را واخلئ او يو ځل يې پرې باندې ووهئ نو داسې حيله جايزه ده، نه منسوخ ده او نه مخصوص او دا له عطاء او امام شافعي رحمه الله څخه هم مروي ده او دې ته احنافو، شوافعو، او حنابله وو، مختار ويلي دي په خلاف د مالکيه وو او سلفيه وو چې دهغوي په نزد دا حيله هم مشروع نه ده، (فليراجع الی تفسير القرطبی ج١ ص ٢١٣، وشرح الاشباه للحموی ص ٤١٨، فتح الباری ج ١٢، ٢٧٥، کتاب الحيل)

## دفقهاء کرامو رئې

د اسقاط حيله لکه څرنګه چې پخپل اصل سره ثابته ده همدارنګه فقهاء کرامو (خصوصا هغه فقهاء چې دهغوي فتوی اکابرو ديوبنديان نقل کوي) په مشروعيت باندې تصريح کړې ده (فليراجع الی ردالمحتار ج ٢ ص ٩١، والاشباه والنظائر ص ٤١٨) وهکذا فی غير واحد من الفتاوی، له دې وجې ددې حيلې په مشروعيت کې هيڅ شک او شبه نشته :

## شرائط

البته ددې حيلې دمشروعيت لپاره څو شرائط هم شته چې رعايت کول يې ډير ضروري دي :

الف: دا چې په وارثانو کې يې غائب او بالغ دنه وصيت په صورت کې نه وي ځکه چې دهغوي له مالونو څخه تبرع جائز نه ده.

ب: دا چې په دائره کې به يواځې مسکينان کښيني او غني په يې به هبه کولو غاړه نه خلاصيږي.

ج: دا چې مسکین ته یې په رښتیا سره تملیک وکړي فرضي او لساني نه او که نه نو په داسې حیلې سره به یې مقصود حاصل نه شي (کما فی منة الجلیل ج ١ صـ ٢٢٥) ویجب الاحتراز من أن یلاحظ الوصی عند دفع الفقیر الهزل والحیلة ان یدفعها حقیقة لا تخیلا ملاحظا ان الفقیراذ أبی عن الهبة الی وصی کان له ذلک ولا یجبر علی الهبة . انتهی .

خلاصه دا چې په وصي او نورو باندې ضروري دي چې مسکین ته دهغه شي په ورکولو کې دهزل او دحیلې اراده ونه کړي کومه غوټه او یا پنده چې ورسره ده دمسکین ملک ته به یې په واقعي او حقیقي توګه ورسپاري، تر دې پورې که چیرته دا مال په کافي اندازې سره وي او د حیلې په وخت کې دحج دداخلې اعلان شوي وي نو په نوموړي مسکین باندې حج فرض کیږي اوبل سړي ته یې هبه کولو سره دحج له فرضیته غاړه نه خلاصیږي او ددې لحاظ به هم پکې ساتي چې چیرته مسکین یې له بیرته ورکولو څخه انکار وکړي نو هغه لپاره به صحیح وي او بیرته ورکولو باندې به یې نه مجبور وي.

## دفقهاوو کرامو حیله اسقاط او په مروجه اسقاط کې فرق

(١)فقهاء کرامو خپل حیله په حیله اسقاط باندې تعبیر کوي چې له دې څخه په څرګنده توګه معلومیږي ددوي په نیز دا اسقاط نه فرض دی نه واجب دی، نه سنت دی او نه مستحب ،ځکه چې دحیلې شرعي حیثیت داسې نه وي بلکې دزیات نه زیات حیثیت یې اباحت وي، هغه هم په هغه وخت کې چې دشرعي محرماتو ارتکاب پکې نه وي بلکه دمروجه اسقاط حیثیت په عوامو کې له فرض او واجب څخه هم تیر شوی دی بلکه په پوره کولو کې یې دقطعي فرایضو دپریښودلو پر واهم نه کوي.

وَنَصَّ عَلَيْهِ فِي تَبْيِينِ الْمَحَارِمِ فَقَالَ: لَا يَجِبُ عَلَى الْوَلِيِّ فِعْلُ الدَّوْرِ وَإِنْ أَوْصَى بِهِ الْمَيِّتُ لِأَنَّهَا وَصِيَّةٌ بِالتَّبَرُّعِ، وَالْوَاجِبُ عَلَى الْمَيِّتِ أَنْ يُوصِيَ بِمَا يَفِي بِمَا عَلَيْهِ إنْ لَمْ يَضِقْ الثُّلُثُ عَنْهُ... الخ (رد المحتار ج ١ صـ ٤٩٢، باب الفوایت، تحت مطلب فی بطلان الوصیة بالختمات والتهالیل)

(٢) فقهاء کرامو رحمهم الله دا تصریح هم کړې ده چې د دورې په توګه حلیه اسقاط یو اځې دهغو مردګانو لپاره ده چې فقیران او مسکینان وي یعنې دهغه په ترکه کې دومر شی پاتې نه وي چې په شرعي توګه دقضا شوي لمونځونو او روژو فدیه چې نیمه صاع غنم ده پوره کړي او د أمراؤ او اغنیاؤ لپاره دا حیله نه ده ایجاد شوې لیکن په عوامو کې دا حیله یواځې دفقراؤ او غریبانو مړو لپاره نه بلکه د أمراوو او تر

سلاطينو پورې په يوې طريقې سره حيله اسقاط ادا کيږي، په داسې حال کې چې دکومو مړو له ترکې ځخه چې فديه پوره کيږي د هغو له ترکې ځخه د پوره لمونځونو او روژو فديه ورکول ضروري وي.

(۳) دا هم دفقهاؤ کرامو په کتابونو کې په صراحت سره راغلي دي چې که چيرته مړی مالدار وي او وصيت يې نه وي کړی نو دمړي په اولياوو باندې حيله اسقاط لازم نه ده او نه په هغو کې يو وارث دنور وارثانو له اجازې پرته په ترکې کې داسې ډول تصرفات او مصرفونه کولی شي، ځکه چې شرعا د داسې کولو حق نه لري او که چيرته يو وارث دنور وارثانو له اجازې پرته داسې وکړي نو شرعا به دنورو وارثانو دحق ضامن وي په فتاوی بزازيه کې تصريح موجوده ده په داسې حال کې چې په مروجه اسقاط کې د دې خيال اصلا نه کيږي بلکه په هر حال کې لازم او ضرور ګڼل کيږي، تر دې پورې چې که چيرته په وارثانو کې څوک نابالغ او غير حاضر وارثان هم موجود وي او يا حاضر وارثان ناراض هم وي نو په دې وخت کې هم په هغو کې چې کوم يو مشر وارث وي خامخا داسې اسقاط کوي او دټولو وارثانو بې ځايه حق تلفي کوي او خرچ کړل شوی روپۍ ټول وارثان په مشترکه توګه سره اچوي حالانکه دا دمقدس شريعت سراسر خلاف ورزي ده.

(۴)فقهاء کرامو داسقاط دمال مصرف يوائې فقراء او مساکين ګرځولي دي، کومه خاصه طبقه خلک يې ورته نه دي مخصوصه کړي او نه يې کوم وخت ورته مقرر کړی دی، لکن دعوامو په اسقاط کې يوې خواته مخصوص طبقه ورته مقرره وي چې که چيرته له ټاکل شوې طبقې نه پرته داسقاط مال دبنار نورو فقراوو مسکينانو يا يتيمانو باندې تقسيم کړی شي نو داسې اسقاط ددوي په نيز جايز کيدلی هم نشي او بلې خواته يې خاص دجنازې وخت ورته مقرر کړی وي چې ددوي په نيز نه له ټاکل شوي وخت نه مخکې کيدلی شي او نه وروسته او نه يې مخکې کول او ورسته کول دوي جائز بولي حالانکې په شريعت کې دا ډول يو قيد هم نشته.

(۵)فقهاء کرامو دا هم ليکلي دي چې ددورې له فعل نه مخکې دمړي قضا شوي لمونځونه او روژې ګڼل کيږي هم، بيا چې څومره مال دفديې لپاره يعنې څومره اسقاط چې وټاکل شي هغه اندازه کيږي چې دڅومره لمونځونو لپاره فديه ګرځيدلی شي او ددوي فعل تر هغه وخته پورې جاري ساتل کيږي چې تر څو دټول عمر دقضاء شوو لمونځونو لپاره فديه وګرځي يعنې ددوی فعل دپوره لمونځونو داندازې او تعداد مطابق کيږي نه کم او زيات په داسې حال کې چې دعوامو دوره درې وارې کيږي اګر

دا درې ځله دوره دټولو لمونځونو لپاره کافي نه وي بلکه د ټولو لمونځونو دفديې له پوره کيدو څخه کمه وي همدارنګه مړي دلمونځونو شمار نه کيږي او نه دفديې اندازه معلومه وي.

(۶) فقهاء کرامو دا هم ليکلي دي چې: په کومې دورې او حلقې کې چې د اسقاط مال دوره کيږي په هغه کې به مالدار او غني نه کښيني ځکه چې دغني او مالدار لپاره د واجبې فديې مال اخستل جايز نه دي بلکه حرام دي، لهذا ددورې په حلقه کې به غني سړی هيڅکله نه کيني لکن دعوامو په اسقاط کې چې کوم خلک په دورې کې شريک وي هغوي اکثره غنيان وي کوم چې دهغو لپاره د واجبو صدقاتو اخيستل په قطعي توګه حرام دي، لهذا دامروجه اسقاط هيڅکله دفقهاؤ کرامو اسقاط نشي کيدلی.

(۷) دعوامو په اسقاط کې قران کريم د فديې جز ګرځول کيږي او له قرآن مجيد نه پرته څوک حيله اسقاط هم نه کوي، حالانکې دفقهې په معتبر کتابونو کې چيرته چې د اسقاط مسئلې راغلي دي هلته دقرآن مجيد په اړه ددې خبرې نوم او نشان هم نشته چې قرآن مجيد دی ددې اسقاط دمال يو برخه وګرځول شي او په دوره کې دې وګرځول شي، په دې موقع کې دجوماتونو ځيني امامان دقرآن کريم سره د بيع معامله کوي کوم چې ډيره غلطه خبره هم ده او دوکه هم ده، لهذا که چيرته دمړي دوارث خپل قران کريم نه وي نو امامان حضرات په هغه باندې دبل سړي قرآن مجيد په زر، دوه زره روپۍ هزلاً پلوري، په دې کې ددوي غرض دا وي چې کله په زر دو زرو رپيو باندې قرانکريم پلوري او بيا هغه په فديه مال کې ورسره يو ځای کړی شي او دفديې جز وګرځول شي نو دفديه تعداد زياتيږي، ځکه چې له فديې سره ددوو زره روپيو قرآن کريم هم شامل کړی شو، حالانکه دا بيعه خو لومړی بيع نه ده، ځکه چې دا بيع هزلا ده جدا نه ده او دفقهې او اصولو ټولو علماوو ليکلي دي چې هزلاً بيع بيع شرعي نه ده، نه په دې بيعې سره يوشی دچا په ملک کې راتلی شي تر څو پورې چه له هزل څخه اعراض ونه کړی او دوباره دجداً په توګه بيعه ونکړي، دوهم دا چه که چيرته فرض يې کړی دا بيع منعقد هم شي نو له فديې سره دقرآن کريم په ايښودو کې دفديې تعداد زر دوه زر څنګه زياتيږي؟ په داسې حال کې چې زر دوه زره خو يې قيمت نه دی بلکه يوازې دمشتري په ذمې باندې يې پيسې مقررې کړي دي نو که په فديې کې شامليدلی شي نو دقرآن کريم يوازې اصلي قيمت او ماليت شامليدلی شي کومه چې ظاهر خبره ده چې زر دوه زره نه ده

بلکه یو اځې پنځوس یاشپيته روپي دي، دفقهاوو کرامو په اسقاط کې دداسې له فريب ډکو چلونو اصلا هيڅ یادونه نشته دا یو اځې په مروجه عوامي اسقاطونو کې موجود دي.

(۸) دفقهاوو کرامو په نيز اسقاط هغې دورې ته وايي چې دحلقې دننه وشي په دې سره ددوي په نيز اسقاط پوره کيږي او له دينه وروسته دمال ويشل په وارثانو باندې فرض یا واجب نه وي او نه په هغو باندې دټاکل شوي اسقاط ويشل شته که پخپلې خوښې سره غواړي چې صدقه يې کړي نو کولی يې شي، لکن دا ضروري نه ده چې ټول مال دې صدقه کړي او هغو خلکو ته صدقه ورکول پرې لازم وي چې دکټ شاه وخواناست وي او حلقه يې جوړه کړې وي بلکه که په هغو کې لږ هم مصرف کړي او له دغو حلقې جوړوونکو خلکو نه پرته نورو مسکينانو او فقيرانو ته يې ورکړي نو بيا يې هم ثواب کيږي او په اسقاط کې هيڅ نقصان او کمی نه راځي ددې برعکس په مروجه حيله اسقاط کې له اسقاط نه وروسته دمال ويشل هم ضروري وي او له ويشلو پرته ددوي په نيز اسقاط بيخي نه کيږي او يا مکمل نه وي او دا تقسيم او ويش هم په هغو خلکو باندې ضروري وي چا چې محنت کړی وي او دوره يې کړې وي له دونه پرته که چيرته په نورو مسکينانو او فقيرانو باندې وويشل شي نو دخپل اسقاط تماشا بيا وکړه چه څه ورنه جوړيږي.

(۹) ددغو ټولو شيانو برسيره ۹۹ فيصده خلکو دا اسقاط يو رسم او رواج جوړ کړی دی او د ريا او ځان ښونې لپاره يې کوي، چې په خلکو کې بدنام نه شي او خلکو بد ورته ونه وايي دداسې خلکو نيت په اصل کې ثواب نه وي او که چيرته د ريا او ځان ښوونې او دخلکو له بد ويلو څخه دبچ کيدلو لپاره په لکونو روپۍ ولګوي نو يو زره ثواب يې هم نه ورپسې رسيږي لهذا دداسې اسقاطونو ثواب مړي ته نفع نه ورکوي، البته په خلکو کې داسقاط کونکي نيک نامي جوړيږي او له هغه څخه خلکو ته دونياوي ګټه رسيږي چې د اسقاط يو څو روپۍ ورکول کيږي او مړي غريب ته دداسې اسقاطونو څخه هيڅ شی هم نه حاصليږي.

(۱۰) له دې پرته دعوامو په اسقاط کې مال هم په ډير غلطې طريقې سره ويشل کيږي يعنې کوم خلک چې عزت مند او دمشهور جومات امام وي هغو ته ډيرې ډيرې روپۍ ورکول کيږي او غريب يا محتاج خلکو ته يا طالب العلم او يانور مسکينانو او فقيرانو ته او يا کوم چې دجوماتونو امامان نه وي هغو ته لږ لږ روپۍ ورکول کيږي او س په انصاف سره ووايي چې دا ټول ذکر شوي شيان دعوامو په اسقاط کې شته او که نه؟ او که چيرته وي په کې او يقينا چې شته نو مهرباني وکړئ دا وايئ چې دمروجه

اسقاط څه مناسب دفقهاء کرامو له اسقاط سره شته او که نه؟ بیا څنګه دا دعوه کیدلی شي چې چونکه فقهاوو پخپلو کتابونو کې د اسقاط ذکر کړی دی نو په عوامو کې چې کوم اسقاط رائج دئ دا به هم جایز وي ځکه چې ددې نوم هم اسقاط دی، کلا وحاشا.

نو ددې لپاره داسقاط په باره کې زمونږ رأیه دا ده چې که چیرته دا اسقاط دفقهاؤ کرامو داسقاط موافق وي او له پورته ذکر شوو مفاسدو څخه یوهم پکې نه وي نو جائز او دثواب کار دی خو په دې شرط چې دا ونه وایي چې دا فرض ده یا واجب ده، یعني د فرضیت یا د وجوب عقیده به پرې نه لري او که چیرته دپورته ذکر شویو څخه یو هم پکې موجود وي نو داسې اسقاط به دهغو مفاسدو له وجې ناجائز وي دا خو پریږده چې دثواب کار به وي نو داسې حضراتو ته په کار دی چې اول دقانون وراثت له مخې دمړي له تره کې څخه دهغه قرضې ادا کړي او بیا دې پاتې شوی ترکه چې دشرعي قانون له مخې د وارثانو ترمنځ وویشی او هریو وارث ته دې خپله خپله حصه ورکړی او بیا له وارثانو څخه چې کوم یوه پخپلې خوښې سره دمړي دایصال ثواب لپاره څومره مال چې غواړي مصرف دې یې کړي دا صحیح او شرعي طریقه ده کومه چې له سلف صالحینو څخه منقوله او ترننه پورې چلیږي او دقرآن او داحادیثو له احکاماتو سره مطابقت هم لري. والله اعلم بالصواب. (فتاوی حقانیه ج۱ص ۵۲۱، الی ص ۵۲۷)

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وآله وصحبه اجمعین

الحمد لله وحده والصلوة والسلام على من لا نبي بعده !

اما بعد :

بریلویان د ډیر وخت څخه داهل حقو پسې یو څو افتراءات کوي اوددې افتراءاتو په وجه ورته دکفر نسبتونه کوي ددې افتراءاتو څخه مسکت جوابونه زمونږ اکابرو ورکړي دي او ډیرې رسالې یې پرې لیکلي دي لکه :۱-سیف یمانی برمکاید فرقه رضاخانی ،۲- سیف علي برگردن غوی ،۳- فیصله خصومات از محکمه دارالقضاة ، ۴-المهند على المفند،۵- الشهاب الثاقب ، ۶-السحاب المدرار ، ۷-توضیح البیان ، ۸-تزکیة الخواطر، ۹-الکوکب الیمانی ، ۱۰-اینه رضاخانیت ، ۱۱-الجنة لأهل السنة ،۱۲- مقاطع الحدید، ۱۳-نی مجدد کانیا ایمان ، ۱۴-فتح بریلی کادلکش نظاره ، ۱۵-قطع الوتین ، ۱۶-فیصله کن مناظرهو ۱۷-صاعقه اسمانی برفرقه رضاخانی ، ۱۸ -البراهین القاطعه،۱۹- الختم على لسان الخصم ، ۱۹-البرهان فی رد البهتان، ۲۰-عبارات اکابر لمولنا سرفراز خان صفدر رحمه الله تعالى .

دپوره تفصیل لپاره مذکورو کتابونو ته رجوع وکړئ، زه به دالله تعالى په توفيق باندې اجمالی جوابات رانقل کړم .

## شاه اسماعیل شهید رحمه الله

شاه اسماعیل شهید رحمه الله بن شاه عبدالغنی رحمه الله، بن شاه ولی الله رحمه الله، دحدیثو دوره یې دشاه عبدالعزیز رحمه الله سره کړې ده او دشپاړسو کالو په عمر کې فارغ شوی دی، شاه شهید رحمه الله به اکثره په جهادي ټریننګ کې مصروف وو لکن بیا به هم په امتحان کې دټولو ملګرو څخه مخکې وو ، دمولانا سید احمد شهید رحمه الله مرید وو او دتصوف په باب کې یې یو کتاب هم لیکلی وو په نوم د (حقیقة التصوف) دسید احمد شهید رحمه الله په لاس باندې څلوېښت زره هندوانو ایمان راوړی دی لو په لکونو مسلمانانو دده په لاس باندې دګناهونو څخه توبه ایستلې ده یو وخت دپنجاب او دپېښور په مسلمانانو باندې دسکهانو حکومت وو او مسلمانان دسخت ظلم لاندې وو ، ښځې او بچې به یې ورته په بازارونو کې لیلامول او په اور کې به یې ژوندي سوزول ، دلاهور په شاهي مسجد کې داسونو غوجل وه رنجیت سنګه دمسلمانانو په مساجدو کې أذانونه بند کړي وو ، مسجدو نه یې نړول، د امر تر سر لس فیصده مساجد دسکهانو په قبضه کې وو ، چې اسونه به یې پکې تړل، حتی چې په بعضو ځایونو کې یې

مسلمانان مجبور كړي وو چې د حيوان د ذبح كولو په وخت كې د الله اكبر په ځاى دګورونانک نوم واخلي، بل طرفته دومره جهالت وو چې مسلمانانو به په مانځه كې دالله اكبر په ځاى باندې ياغوث ا غثنى ويلى، ددې ظلمونو په ليدلو باندې دا دواړه حضرات دبلوچستان په لاره باندې قندهار او بيا كابل ته لاړل هلته يې دجيد عالم (پير ملا محمد) رحمه الله سره ملاقات وشو، هغه په لكونو مريدان او شاګردان لرل دهغه ځخه يې يو ځو كسان او دعاګانې واخستلې او پيښور ته راغلل، په سنـــــه ١٢۴٢ھ كې يې دنور ښار سره نزدې دخيشكو په علاقه كې دسكهانو سره سخت جنګ وكړو، (٧٠٠) سكهان يې ووژل اوصرف (٣٧) مجاهدين شهيدان شول، بيا يې په شيدو كې دوه زره سكهان ووژل، په ډيرو ميدانونو كې دمقابلو ځخه وروسته بالاكوټ ته ورسيدل او هلته دواړه په سنـ ١٢۴٦ھ كې شهيدان شول، ددوي دمجاهدو او دمظلوميت دتفصيل لپاره دتاريخ كتابونو ته رجوع وكړئ دلته به صرف هغو ځلورو اعتراضونو ته جواب وليكو كوم چې بريلويانو دانګريزانو په لمسون باندې دجهاد دبدنامولو او دناكامولو لپاره په شاه شهيد رحمه الله باندې كول.

**شاه صاحب حنفي وو:**

شاه اسماعيل أباً عن جدٍ حنفي وو، سيرت سيد احمد شهيد ص٢١٩، از ابو الحسن ندوي، يوه ورځ ورته يو ځو طالبان راغلل، او ورته وېويل چې ته دامام صاحب رحمه الله په باره كې ځه نظر لرې؟ شاه صاحب ورته وفرمايل چې امام صاحب، سخت فقيه او فخر المسلمين وو.

طالبان: ايا دامام صاحب دفقهې مسايل منې؟

شاه صاحب: اكثره يې منم مګر بعضې هغه مسايل چې په حديث كې موجود وي.

طالبان: ددې معنى خو دا ده چې دامام صاحب اكثر مسايل خوښوې او بعضې يې نه خوښوې؟

شاه صاحب: نه، نه كلا وحاشا ما داسې نه دي ويلي، بلكې زه دا وايم چې په كوم ځاى كې امام صاحب ته حديث نه وي رسيدلې او دخپلې رأي ځخه يې يو خبره كړې وي او دهغې په خلاف حديث موجود وي نو بيا په مونږ فرض ده چې دحديث نبوي ﷺ په مقابل كې دامام صاحب رأيه پرېږدو.

طالبان: او ځوک چې ستا ددې طريقې ځخه خلاف كوي دهغوي په باره كې ځه وايئ؟

شاه صاحب: تر اوسه ما په دې خبره غور نه دی کړی ، لکن بیا هم وایم چې ښه نه کوي ، ځکه چې امام صاحب رحمه الله پخپله فرمايلي دي چې دصحيح حديث په مقابل کې زما قول مه نيسئ.

طالبان: ایا امام صاحب په احادیثو نه پوهیدلو ؟

شاه صاحب: ولې نه پوهیدلو ، لکن په هغه کې وخت ذځان ځخه دااحاديثو جوړونکي ډيرو و ،امام صاحب بې تحقيقه هر حديث نه شو منلی (حيات طيبه صـ ٧٤) لکن دعربو په زمکه محمد بن عبدالوهاب الحنبلي دظلم قتل او غارت بازار کړی وو چې دهغې په وجه ترینه مسلمانانو سخت نفرت کولو ، دمولانا شهيد رحمه الله دمجاهدانه تحريک، دوهابيانو سره هيڅ تعلق نه وو ، ددوي اصل مقابله دشرک، بدعت ، سکهانو او انگريزانو سره وه، انګريزانو (ډاکټر هنټر) ددوي دبدنامولو لپاره وربانديې دوهابي ټاپه ولګوله (سيرت سيد احمد صـ ٢٧٤) دانګريزانو د ډاکټر هنټر دا ټاپه ددوي روحاني اولا دبريلويانو هم زمزمه کوله لکه دافغانستان مجاهدينو ته چې روسانو، اشرار ويلي او نن سباصليبيان ورته دهشتګر او تروريستان وايي

## اول اعتراض

شاه شهيد رحمه الله فرمايلي دي چې درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مرتبه مونږ ته داسې دہ لکه دمشر ورور حالانکې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې: انما انا لکم بمنزلة الوالد (اعلاء الاعلام صـ ١٥، مقياس حنفيت صـ ٢٠٢)

اول جواب: دمظلوم شهيد رحمه الله دأصل او دپوره عبارت ترجمه واورئ، په مشکوة باب عشرة النساء کې حديث دی، چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه ورځ ناست وو چې يو اوښ راغلو او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يې سجده وکړه، نو صحابه وو رضى الله عنهم وفرمايل چې يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ونې او حيونات تاته سجده کوي، نو زمونږ سره خو زياته مناسبه ده چې سجده درته وکړو، رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې (اعبدوا ربکم واکرموا أخاکم) دالله تعالى بندګي کوئ او دخپل ورور احترام کوئ.

ددې په تشريح کې دفايدې دعنوان لاندې شاه صاحب ليکلي دي چې:

ف: یعنی انسان سب آپس مین بہائی ہین جوبڑا بزرگ ہو وہ بڑا بہائی ہے سو اس کی بڑا ہے بہائی کی سے تعظیم کیجی اور مالک سب کااللہ ہے بندگی ایسے کو چا ہی اس حدیث سے معلوم ہو کہ اولیاء وانبیاء علیہم السلام

وامام زادہ پیر و شہید یعنی جتنی اللہ تعالی کی مقرب بندی ہیں وہ سب انسان ہے اور بندی عاجز اور ہماری بہائی مگر ان کو اللہ تعالی نی بڑائی دی وہ بڑی بہائی ہوی ' ہم ان کی چھوٹی ہیں ' سو ان کی تعظیم انسانون کی سی کرنی چاہی نہ خدا کی سی الخ

فایده: یعني انسانان ټول پخپلو کې ورونه دي، څوک چې مشر وي دهغه د مشر ورور په شان احترام پکار دی، او مالک دټولو الله تعالیٰ دی، بندګي صرف دالله تعالی پکار ده، ددې حدیث څخه معلومه شوه چې (اولیاء انبیاء، امام زاده، پیر او شهید یعنې ټول مقرب بندګان انسانان دي او عاجز بندګان دي او زمونږ ورونه دي) لکن هغوي ته الله لويي ورکړې ده ،هغوي مشران ورونه دي، مونږ ته دهغوي دفرمان برداری حکم دی، مونږ دهغوي کشران یوو نو دهغوي داسې تعظیم پکار دی لکه دانسانانو، نه داسې لکه دخدای تعالی (تقویة الایمان ص ۱۰۱، ۱۰۲) پدې عبارت کې شاه شهید رحمه الله د رسول الله ﷺ ددې جملې ترجمه کړې ده چې: (اکرموا أخاکم) تاسو دخپل ورور عزت کوئ، بیا یې دفایدې لاندې ددې اجمال تفصیل وکړو، چې دا مقربین مشران ورونه دي په مونږ باندې یې تعظیم او تکریم لازم دی، لکن بندګي کول یې نه دي صحیح او داسې تعظیم یې هم ندی صحیح کوم چې دالله تعالی دشان سره مناسب دی، نو شاه صاحب دحدیث دجملې ترجمه لیکلي ده أخ یعنې ورور په دې کې دتوهین ځای کوم دی ؟ رسول الله ﷺ ابو بکر صدیق رضی الله عنه ته فرمایي چې: أنت أخی فی دین الله وکتابه ( صحیح بخاری ج ۲ص ۶۰) په یو حدیث کې رسول الله ﷺ دصحابه وُ څخه وروسته ترقیامته پورې دنالیدلي أمت په باره کې فرمایلي دي چې: وددت أنا قدر رأینا اخواننا) مسلم ج ۱ص ۱۲۸) فهؤلاء أخوة صحابة، والذین لم یأتوا اخوة لیسو بصحابة کما قال الله تعالی انما المؤمنون اخوة (نووي، شرح مسلم ج ۱ص ۱۲۸)

رسول الله حضرت زید بن حارثه رضی الله عنه ته فرمایلي دي چې: أخونا ومولانا، (صحیح البخاری ج ۱ص ۳۷۲)

رسول الله ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه ته فرمایلي دي چې: (أشرکنا یا أخی فی دعاءک، ابو داؤد ج ۱ص ۲۱۰)

ددې څخه علاوه الله تعالی د ډیرو انبیاوو په باره کې د أخ لفظ استعمال کړی دی، حالانکې ددوي په قومونو کې اکثر خلک کافران او مشرکان وو صرف دقومي او انساني درجې أخوت وو الله تعالی فرمایلي دي چې (والى عاد أخاهم هودا، الايه والى ثمود أخاهم صالحا، الايه، والى مدين أخاهم شعيباً)

نو دانبیاوو د أخوت څخه انکار دقرآن او دحدیث څخه انکار دی، پاتې شو دبریلویانو دا استدلال چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې: (انما أنالكم بمنزلة الوالد) او په قرآن کریم کې راځي چې (وازواجه أمهاتهم) نو ددې څخه روحاني پلار والی او مور والی مراد دی دکومو څخه چې دې په کرورونو او کربونو جسماني پلاران او مورګانې قربان شي، رسول الله ﷺ روحاني پلار هم دی او په دیني لحاظ باندې ورور هم دی، رسول الله ﷺ حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته دیني ورور هم وویلو او دده دلور سیدتنا حضرت عایشې رضی الله عنها سره یې نکاح هم وکړه، دحقیقي ورور دلور سره خو نکاح حرامه ده، همدارنګه که نبي کریم ﷺ دخپل امت لپاره حقیقي پلار وي نو بیا خو دحقیقي لور سره هم نکاح حرامه ده، په حدیث کې راځي چې (حق كبير الأخوة على صغيرهم حق الوالد على ولده،مشكوة ج ٢صـ ٤٢١)

## دوهم اعتراض

بریلویانو افتراء کړې ده او لیکلي یې دي چې: شاه صاحب ویلي دي چې: رسول الله ﷺ دوفات څخه وروسته په قبر کې خاورې شوې دي، حالانکې په حدیث کې راغلي دي چې (ان الله حرم على الارض أن تأكل اجساد الانبياء) (كوكب الشهابيه على كفريات ابى الوهابيه صـ ٢٧، مقياس حنفيت صـ ٢٠٦)

الجواب: دشاه صاحب د أصل عبارت ترجمه واوره: په مشکوة باب عشرة النساء کې دحضرت قیس بن سعد رضي الله عنه حدیث دی، هغه فرمایي چې زه دحیرې مقام ته لاړم هلته خلکو خپل مشر ته سجدې کولې مانبی کریم ﷺ ته وویلې چې یارسول الله ﷺ ته خو ډیر لایق ددې یې چې سجده درته وکړلی شي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې: أرأيت لو مررت بقبرى أكنت تسجدله

؟ فقلت لا، فقال: لاتفعلوا) ماته خبر راکړه چې که چیرته زما په قبر تیر شئ، نو ایا ته به ورته سجده کوئ؟ ما ورته وویل چې نه ،نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې مه یې کوئ.

فایده: یعنی میں بھی ایک دن مرکز مٹی میں ملنے والا ہوں تو کب سجدہ کے لائق ہوں؟

یعنې زه به هم یوه ورځ دخاورو سره میلاویږم ، نو زه کله دسجدې لایق یم؟ سجده داسې ذات ته پکار ده چې هیڅکله نه مري. انتهی.

د (مٹی میں ملنی) دوه معنی ګانې دي، اول: چې خاورې شي او دزمکې سره خلط شي دا معنی دلته غلطه ده، دوهم: دزمکې او دخاورو سره ملاقي کیدل او متصل کیدل، دلته دوهمه معنی مراده ده ځکه چې شاه صاحب رَحِمَهُ اللَّهُ ددې قایل نه دی چې نبی علیه السلام خاورې کیږي(فتاوی رشیدیه ج ا صـ۹)

(ملنا) پیوسته کیدل، ملحق کیدل، یوکیدل، دفن کیدل(نور اللغات ج ۴ صـ ۶۳۲، جامع اللغات ج۲صـ ۵۶۵)

## دریم اعتراض

په شاه شهید رحمه الله باندې دا اعتراض کیږي چې انبیاوو او اولیاوو ته یې د موچیانوڅخه هم زیات ذلیل ویلي دي (کوکب الشهابیه صـ۲۹)

الجواب: شاه صاحب د صحیح بخاري او دصحیح مسلم حدیث رانقل کړی دی، عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فرمایي چې یارسول الله دالله تعالی په نیز کومه ګناه لویه ده؟ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې دټولو څخه غټه ګناه دا ده چې دغیر الله څخه کومکونه وغواړئ حال دا چې الله پیدا کړي یې (شاه صاحب بیا دفایدې عنوان لګولی دی او دهغې لاندې یې لیکلي دي چې) یعني الله تعالی په هرځای کې حاضر او ناظر دی او ټول کارونه دالله تعالی په اختیار کې دي، نو دهر مشکل په وخت کې دهمغه الله تعالی څخه کومک غوښتل پکار دي ، نو بل څوک داسې ګڼل او رابلل یې غټه ګناه ده ، اول خو دا خبره فی نفسه غلطه ده چې بل څوک حاجت روا یاحاضر او ناظر وګڼئ ، دوهم دا چې کله چې زمونږ خالق الله تعالی دی نو مونږ ته هم پکار ده چې صرف دالله تعالی څخه کومک وغواړو ، دبل چاسره زمونږ څخه کار دی ؟ څوک چې دیو معین بادشاه غلام وي نو دهغه دټولو کارونو تعلق صرف دهمدې معین بادشاه سره وي ،دهغهِ تعلق دبل بادشاه سره نه وي ، نوکوم مو چې

خو بالکل دیا دولو نه دی ہمارا جب خالق اللہ ہے اور اس نے ہم کو پیدا کیا تو ہم کو بھی چاہے کہ آپنے ہر کامون میں اس کو پکارین اور کسے سے ہم کو کیا کام؟ جیسی جو کوئی ایک بادشاہ کا غلام ہو چکا تو وہ آپنی ہر کام کا علاقہ اسی سے رکھتا ہی دوسری بادشاہ سی بھی نہیں رکھتا اور کسی چوہڑی چمار کا تو کیا ذکر ہے. ( تقویۃ الایمان ص- ۳۴)

بدعتي احمد رضاخانه ! دشاه صاحب په دې تول عبارت کې بالخصوص دانبیاوو او داولیاوونوم په کوم ځای کې راغلی دی ؟ شاه صاحب خو عمومي الفاظ استعمال کړی دی (سو کسے اور کو اس طرح سمجھ کر پکارنا' اور کسی سے ہم کو کیا کام؟

دا الفاظ مجمل دي او بدعتیان دا مجمل الفاظ علی التعین والخصوص په انبیاوو او په اولیاوو باندې ورچسپانوي.

فانقیل: چې انبیاء او اولیاء هم په دې عموم او اجمال کې داخل دي.

قلنا: ډیر ځلي داجمال حکم جدا وي او دتفصیل حکم جدا وي، اجمالي حکم جایز وي او تفصیلي حکم حرام او ناجایز وي ، الشیخ کمال الدین محمد بن محمد المعروف بابن ابی الشریف رحمه الله المتوفی سنـــــه ۹۰۵) لیکلي دي چې: قالوا وما ذکرناه من صحة الاطلاق اجمالاً لاتفصیلاً کما یصح بالاجماع والنص أن یقال خالق کل شیء ،ولایصح أن یقال خالق القاذورات وخالق القردة والخنازیر مع کونها مخلوقة له اتفاقا وکما یقال له ما فی السموات والارض ای مالکها، ولایقال له الزوجات والاولاد لایهامه اضافة غیر الملک الیه (مسامره ج ۲صـ ۳)

داسې اجمالاً ویل صحیح دي چې الله تعالی دتمامو کایناتو خالق دی ، لکن داسې تفصیلا نه شي ویلی چې الله تعالی دغایطو، شادوګانو او خنزیرانو خالق دی ، حالانکې غایط، شادوګان او خنزیران هم په کایناتو کې داخل دي ، همدارنګه داسې ویلی شي چې: له مافی السموات والارض ، لکن داسې نه شي ویلی چې له : الزوجات والاولاد) ځکه چې دلته دغیر الملک یعني دبلې فاسدې معنی توهم راځي، همدا قاعده حضرت شیخ سرهندی مجدد الف ثانی رَحِمَهُ اللهُ هم په معارف لدنیه صـ ۵۷، او ملا علی القاری په شرحې دفقه اکبر صـ ۶۲، کې ذکر کړې ده.

علامه احمد بن موسی الخیالی الحنفی فرمایلي دي چې : ولاشک فی صحة اطلاق مثل خالق کل شیء ویلزمه خالق القردة والخنازیر مع عدم جواز اطلاق اللازم (الخیالی صـ ۷۲)

همدې ته ورته اعتراض مولوي عمر بریلوي هم کړی دی چې: شاه صاحب فرمایلي دي چې: هر مخلوق وړوکی وي او که غټ وي هغه دالله تعالی دشان په مخکې دموچي څخه هم زیات ذلیل دی (تقویة الایمان ص ۱۶)

الجواب: دتقویة الایمان پوره عبارت داسې دی چې: الله تعالی فرمایي چې: وَاِذْقَالَ لُقْمٰنُ لِابْنِهٖ وَهُوَ يَعِظُهٗ يٰبُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ)

فایده: یعنې الله تعالی لقمان ته زیات عقل ورکړی دی، نو په دې پوه شئ چې دا ډیره غټه بې انصافي ده چې دیو حق بل چاته ورکړئ، دالله تعالی حق دالله مخلوق ته ورکړئ دټولو څخه دلوی ذات حق دټولو څخه زیات ذلیل ته ورکړئ لکه دبادشاه تاج چې موچي ته وریه سر کړئ نو ددې څخه بله غټه بې انصافي کومه ده ؟ او دا یقین ساتل پکار دي چې هر مخلوق وړوکی وي او که غټ وي دالله تعالی دشان په مخ کې دموچي څخه هم ذلیله دی اور یہ یقین کر لینا چاہئے کہ ہر مخلوق بڑا ہو یا چھوٹا وہ اللہ کی شان کی آگے چمار سی بھی ذلیل ہی الخ (تقویة الایمان ص ۲۶)

نو دشاه صاحب مقصد دشرک دقباحت بیانول دي، د بزرګانو توهین یې مقصد نه دی، یعنې لکه څرنګه چې دبادشاه په مخ کې موچي بې وسه او بې چاره، کمزورې او ضعیفه وي نو مخلوق ددې څخه زیات دالله په مخکې بې وسه بې چاره کمزوري او ضعیفه وي.

۱–نو دذلیل څخه بې عزته ندی مراد، بلکې بې وسه او کمزورې او ضعیفه ترینه مراد دی، الله تعالی فرمایلي دي چې: ﴿وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ﴾ال عمران.

الله تعالی په بدر کې ستاسو سره کومک وکړو حال دا چې تاسو بې وسه وئ.

۲–همدارنګه دا حکم اجمالاً دی دانبیاوو او د اولیاوو په نوم باندې پکې تصریح نه ده شوې او مخکې ذکر شو چې داجمال او دتفصیل حکم جدا وي، په حدیث کې اجمالاً انسان ته دپچې حیثیت بیان شوی دی، (لایکمل ایمان المرء حتی یکون الناس عنده کالاباعر) ، عوارف المعارف علی هامش احیاء العلوم ج ۴ ص ۳۶۰)

حضرت خواجه نظام الدین اولیاء رحمه الله فرمایلي دي چې: ایمان کسی تمام نه شود تا همه خلق نزد او این چنین نه نماید که پشک شتر (فواید الفواید ص ۶۱)

## څلورم اعتراض

احمد رضاخان لیکلي دي چې کفریه عــ ۲۸، په شاه صاحب باندې یې اعتراض کړی دی چې شاه صاحب لیکلي دي چې: ( دشیخ او دنورو بزرګانو اګر چې دنبی کریم ﷺ وي همت کول ، ددې څخه په غواګانو او په خروکې استغراق بهتر دی)(الکوکب الشهابیه صـ ۲۹، وهکذا فی مقیاس حنفیت صـ ۲۱۴)

الجواب: اول د(صراط مستقیم) دعبارت خلاصه واوره: دوهم هدایت په عبادت کې دخلل اچونکو شیانو تفصیلي ذکر او دهغوي دعلاجونو په بیان کې دی په دې کې درې فایدې دي.

اوله فایده: نفس او شیطان دواړه په لمونځ کې خلل اچوي، نفس داسې خلل اچوي، چې سستي او ارام غواړي ، همدارنګه د لمانځه په ارکانو کې تیزي کول غواړي، ترڅو چې زر زر فارغه شي، همدارنګه په اعضاوو کې سستي او استرخاء پیدا کوي ، اوشیطان په لمونځ کې وسوسې اچوي، دشیطان په بد ترینو وسوسو کې بعضې وسوسې دلمونځ څخه دبې پرواهۍ او معمولي ګڼلو وسوسې دي او دا وسوسه دفرضو داستخفاف او دهغې څخه دانکار په وجه ډیر زرکفر ته مفضي کیږي او دشیطان ادنی وسوسه داده چې دالله تعالی دمناجات دلذت څخه دې غافله کړي، وروسې عبارت یې داسې دی چې: (بمقتضائی ظلمت بعضها فوق بعض از وسوسه زنا خیال مجامعت زوجه خود بهتر است ، وصرف همت بسوی شیخ وامثال آن از معظمین ګوجناب رسالت مآب باشند به چندین مرتبه بد تراز استغراق در صورت ګاو وخر خود است که خیال آن باتعظیم واجلال بسوید ای دل انسان می چسپد بخلاف خیال ګاو وخر که نه آن قدر چسپیدګی می بود ونه تعظیم بلکی مهان ومحقر می بود ، واین تعظیم واجلال غیر که درنماز ملحوظ ومقصود می شود بشرک میکشد (طراط مستقیم صـ ۸۷)

دتیارو خپل مراتب دي، بعضې دبعضو څخه او چتې دي، دزنا څخه دخپلې بي بي سره دمجامعت خیال بهتر دی او خپل شیخ اویا نورو لویانو اګر چې رسول الله ﷺ وي ددوي طرفته دخپل همت واړول، دا دغوا او دخرو په صورت کې داستغراق څخه ډیر بد تر دی، ځکه چې دشیخ خیال دتعظیم سره دانسان په زړه کې ننبلي او دغوا اودخره خیال نه دومره ننبلي او نه پکې تعظیم وي، بلکې حقیر او سپک وي او دغیر داسې تعظیم چې په لمانځه کې ملحوظ او مقصود شي دشرک طرفته مفضي کیږي.

## دجواب تفصيل

۱-صراط مستقيم دشاه اسماعيل شهيد رحمه الله تصنيف نه دى، بلكې دا دسيد احمد شهيد رَحِمَهُ اللَّهُ ملفوظات دي (صراط مستقيم سر ورق)

۲-ددې ملفوظاتو راجمع كونكي دوه كسان دي، يو شاه اسماعيل شهيد رَحِمَهُ اللَّهُ او بل دشاه عبدالعزيز رَحِمَهُ اللَّهُ زوم مولانا عبدالحى رحمه الله (صراط مستقيم مترجم اردو ص ۳)

۳- كه بريلويان دا عبارت دكفر سبب ګرځوي نو پكار دى چې اول تكفير دسيد احمد شهيد رَحِمَهُ اللَّهُ وكړي او كه دجامع تكفير كوي، نو بيا پكار دى چې دمولانا عبدالحى رحمه الله تكفير هم وكړي، ځكه چې احتمال لري چې ددې عبارت راجمع كونكى مولانا عبدالحى رحمه الله وي، حالانكې بريلويان ددې عبارت له وجې يوائې دشاه اسماعيل شهيد رَحِمَهُ اللَّهُ تكفير كوي.

۴-پدې عبارت كې د (ګاو وخر) ښخه على التعين غواء او خر ته دى مراد، بلكې تمام كاينات ترينه مراد دى لكه ځرنګه چې دهمدې عبارت پسې داسې عبارت دى چې (غوا او خر يو مثال دى دالله تعالى ښخه ماسوى خر وي، كه غوا وي، كه اوښ وي، او كه پيل وي دټولو همدا حكم دى ) نو ددې ښخه على التعين غوا او خر مرادول توجيه القول بمالايرضى به قايله ده.

۵-پدې عبارت كې دا هم ذكر شوي دي چې (بلاقصده د ارواحو او دملايكو كشف او خيال او په غير اختياري طريقه باندې زړه ته دمسايلو راتلل لمونځ ته نقصان نه رسوي، مثلاً كه دمحمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ روح مبارک او يا دنورو انبياوو او اولياوو ارواح او يا دملايكو ظهور كشف او خيال پخپله بلاقصده په مانځه كې راشي او يا بلا قصده غريبې او عجيبې مسئلې په زړه كې راشي، نودا لمونځ ته نقصان نه رسوي، بلكې دايو لوى نعمت دى چې كاملينو ته حاصليږي) لهذا دبريلويانو داخبره چې په (صراط مستقيم) كې يې دخيال راتللو ته دلمونځ مخل ويلي دي، قطعا غلط او توجيه القول بمالايرضى به قايله ده.

۶-پاتې شوه دقصد او د ارادې خبره، نو په دې عبارت كې دا بيانوي چې په لمونځ كې به قصداً او ارادةً صرف دالله تعالى تعظيم او اجلال ملحوظ وي، په دې صوفيانه عبارت كې يې ددې حديث مفهوم بيان كړى دى چې: (أن تعبد الله كأنک تراه) نو دصراط مستقيم دعبارت خلاصه حضور قلبي دى

(صرف همت) يعنې قصدا خپله توجه د ماسوى الله طرفته ګرځول په مونځ کې خلل راولي ځکه چې دا په عبادت کې د معبود څخه بې پرواهي ده.

٧-(صرف همت، شغل برزخ، شغل رابطه) دبعضې صوفيايې کرامو په نيز يو خاصه اصطلاح ده يعنې دخپل شيخ طرفته داسې متوجه کيدل چې دنورو هر قسم خيالاتو او خطراتو څخه خپل زړه او ذهن خالي کړي او صرف شيخ ته په زړه کې ځای ورکړې، خپله په صراط مستقيم کې ددې بيان داسې شوی دی چې (بأدب وتعظيم تمام به همگی همت خود متوجه بآن صورت ميشود که گويا با آداب وتعظيم بسيار روبروی شيخ نشسته آند ودل بالکل بآن سو متوجه می سازد ) فارسی صراط مستقيم ص١١٨)

دداسې تصور الشيخ په باره کې دأهل فتواو اختلاف دی، بعضې حضراتو فرمايلي دي چې دخپلو شرايطو سره جايز دی او بعضو پکې داهل او دغير اهل فرق کړی دی او بعضو ترينه منع کړې ده، نو په مانځه کې د (صرف همت) معنى داده چې پدې وخت کې قصداً دالله تعالىٰ طرفته توجه نه ده پاتې نو په داسې لمونځ کې به چې تولـه توجه پکې غير الله تعالى ته وي او الله تعالى ته پکې هيڅ توجه نه وي ځرنګه خلل نه راځي.

٨- دصراط مستقيم پدې عبارت کې دخطر په اعتبار سره د وسوسو مختلف مراتب ذکر شوي دي يعنې دبعضو خطر لږ او دبعضو زيات دی، مثلا دزنا د وسوسې خطر ډير دی، ځکه چې زنا حرامه ده اودخپلې منکوحې سره دجماع خيال دهغې په نسبت لږ خطر لري، ځکه چې دخپلې منکوحې سره جماع حلاله ده، همدارنګه کامل مسلمان ته په لمانځه کې دخرا ودغوايي خيال لږ خطر لري ځکه چې دا حقير اوبې قيمته شيان دي، پدې شيانو کې هيڅ سرور او لذت نشته، بلکې ددوي څخه طبعيت يو قسم نفرت کوي، نو خامخا مونځ کونکی دا خيالات ډير زر دزړه اود ذهن څخه وباسي، او په لمونځ کې ددې لويو هستيو خيال خصوصا د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خيال او ددوي طرفته (صرف همت) ډير خطر لري ځکه چې د مسلمانو ددوي سره بې حده مينه او محبت، بې حده تعظيم او تکريم ددې تقاضى کوي چې په همدې کې منهمک شي اودتوجه الى الله څخه محروم شي ،نو تاسو اوس سوچ وکړئ چې دصراط مستقيم په دې عبارت کې توهين دی او که مدحه؟

خلاصه دا چې په لمانځه کې دې لويو هستيو ته صرف همت دير خطر لري په نسبت سره هغه صرف همت ته چې نورو کايناتو ته وي .

## مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله

بدعتيانو په مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله باندې هم اعتراضونه کړې دي، مونږ به د الله تعالى په توفيق باندې دوو مشهورو اعتراضونو ته جواب وليکو .

### اول اعتراض: دختم نبوت زمانې څخه دانکار اعتراض:

الجواب: دمولانا قاسم نانوتوى رحمه الله دختم نبوت دبحث خلاصه داده چې: دختم نبوت لپاره درې مرتبې دي ، اول ختم نبوت رتبي، دوهم ختم نبوت مکاني ، دريم ختم نبوت زماني او دا دَرې واړه مرتبې دختم نبوت ثابتې دي ، لکن په دوي کې اعلى مرتبه دختم نبوت رتبې ده ځکه چې ختم نبوت رتبي دعلت په مرتبه کې دی او ختم نبوت زماني دمعلول په مرتبه کې دی ، ختم نبوت رتبي دا معنى چې دنبوت ټول درجات ، مراتب اوکمالات په رسول الله ﷺ باندې ختم دي، د رسول الله ﷺ دپاسه په مخلوقات کې دبل چا مرتبه نه شته ، درسول الله ﷺ دپاسه صرف دخالق کاينات مرتبه ده ، بيا يې فرمايلي دي چې دا درې واړه مراتب ددليل مطابقي په طور ثابت دي، داسې نه ده چې يواځې ختم نبوت زماني ددليل مطابقي په طريقه باندې ثابت دی، لکه څرنګه چې دعوا مو زعم دی، چې ختم نبوت يواځې په زماني کې منحصر دی، حالانکې ددې څخه پوره فضيلت نه ثابتيږي، ځکه چې ختم نبوت زماني دمعلول په مرتبه کې دی، نو دا څرنګه کيدلی شي چې معلول دی مطابقي وي او علت يې مطابقي نه وي ؟ البته که ددې دريو واړو مراتبو څخه يوه مراده کړی شي نو بيا به دخاتم النبيين لفظ په ختم نبوت رتبي باندې ددلالت مطابقي په طريقه باندې دلالت کوي اودختم نبوت زمانې ثبوت ددليل التزامي له وجې متحقق دی ، مولانا نانوتوي رحمه الله بيا دختم نبوت رتبي دمضبوطوالي لپاره يو تعبير کړی دی، چې داسې خو نه کيږي چې دنبی کريم ﷺ څخه وروسته بل نبي راشي لکن بالفرض که دنبي کريم ﷺ په زمانه کې او يا دنبی کريم ﷺ دزمانې څخه ورسته بل نبی راشی بيا هم دنبي ﷺ ختم نبوت ته نقصان نه رسيږي، ځکه چې دنبوت ټول مراتب په نبي کريم ﷺ باندې تمام دي ، نو دا دختم نبوت رتبې

دمضبوتيا يو تعبير دى ، نو د قاسم نانوتوي رحمه الله په نيزباندې دختم نبوت زمانې څخه منكر داسې قطعي كافر دى لكه څرنګه چې دنورو ضرورياتو ددين څخه منكر قطعي كافر دى ، مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله فرمايلي دي چې خاتميت زماني زمونږ دين او ايمان دى (مناظره عجيبه ص ٣٩، (خاتميت زماني مسلمه اجماعي عقيده ده (مناظره عجيبه ص٦٩) زما دين او ايمان دادى چې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه وروسته دبل نبى احتمال هم نشته، څوک چې په دې کې شک کوي هغه كافر دى (مناظره عجيبه ص١٠٣)

## دمولانا قاسم نانوتوي رحمه الله دعبارت تشريح

مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله په يو ځاى کې داسې ليکلي دي چې: يعنی آپ (محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) موصوف « بوصف نبوت بالذات» ہے اور سوا آپ کی اور نبی موصوف «بوصف نبوت بالعرض» اور ان کی نبوت آپ کا فیض ہے' پرآپ کی نبوت کسی اور کا فیض نہین آپ پہ سلسلہ نبوت مختتم ہو جاتاہے غرض آپ جیسی نبی الأمت ہیں ویسے ہی نبی الانبیاء ہیں تحذیر الناس ص-۴)

يعنې محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بالذات نبي دى او نور تير شوي انبياء عليهم السلام بالعرض انبياء دي، دبالذات معنى داده چې الله تعالى محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته دنبوت كمالات دبل چا په واسطه نه دي وركړي او دبالعرض معنى داده چې نورو انبياوو ته چې الله تعالى دنبوت كوم كمالات وركړي دي نو هغه يې د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په بركت باندې وركړي دي ، دنورو انبياوو نبوت درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دفيض څخه دى او د محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبوت په مخلوق کې دبل چا له فيض څخه نه دى لكه نور القمر او نور الشمس

## دبريلويانو دجل

مفتي احمد يار خان ليكلي دي چې مولوي قاسم نانوتوي په تحذير الناس کې دنبي كريم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دأخري والي څخه انكار كړى دى او ليكلي يې دي چې: كه دمحمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څخه وروسته بل نبي راشي نو بيا هم په خاتميت کې څه فرق نه راځي ، ځكه چې دخاتم معنى ده اصل نبى ، نور انبياء عارضي دي، همداسې مرزا قادياني وايي چې زه بروزي نبي يم (جاء الحق ص ۶، طبع نوري كتب خانه لاهور«

حالانكې تاسو دمولانا قاسم نانوتوي رحمه الله خپل عبارت وكتلو او دهغې صحيح تشريح موهم وكتله.

## دمولانا قاسم نانوتوي دعبارت تشريح

مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله فرمايي چې: بعد حمد و صلوۃ کے قبل عرض جواب یہ گزارش ہے کہ اول معنی خاتم النبین معلوم کرنی چاہیں تا کہ فہم جواب میں کچھ دقت نہ ہو سو عوام کی خیال میں تو رسول اللہ ﷺ کا خاتم ہونا بائں معنی ہیں کہ آپ کا زمانہ انبیاء سابق کی زمانہ کی بعد اور آپ سب میں آخر نبی ہیں مگر اہل فہم پر روشن ہوگا کہ تقدم یا تاخر زمانی میں بالذات کچھ فضیلت نہیں پھر مقام مدح میں ولکن رسول اللہ ﷺ وخاتم النبیین فرمانا اس صورت میں کیون کر صحیح ہو سکتا ہے الخ (تحذیر الناس ص-۲)

مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله فرمايي چې: يو ختم نبوت رتبي دی او بل ختم نبوت زماني دی او دريم ختم نبوت مکاني دی، ختم نبوت رتبی دعلت په مرتبه کې دی او ختم نبوت زماني دمعلول په مرتبه کې دی،نو يا به دخاتم النبيين څخه درې واړه مراتب مراد وي او يا به يو مرتبه مراده وي که درې واړه مرادې وي نو درې واړه به ددليل مطابقې په طريقه ثابتې وي، داسې نه لکه څرنګه چې دعوامو خيال دی چې د رسول الله ﷺ ختم نبوت يوازې په زمانې کې منحصر دی او که يوه مرتبه مراده وي نو بيا به ختم نبوت رتبي ددليل مطابقي په طريقه باندې ثابت وي او ختم نبوت زماني به ددليل التزامي په طريقه الخ أوس،عوام څوک دي؟

مولانا قاسم صاحب فرمايي چې: وجز انبياء عليهم السلام يا راسخين فی العلم همه عوام اند (قاسم العلوم نمبر اول مکتوب دوم ص ۴)

## دبريلويان دجل

احمدرضاخان بريلوي ددې اوږد عبارت څخه په عربی کې داسې تعبير کړی دی :(وانما يتخيل العوام أنه ﷺ خاتم النبين بمعنى اخر النبيين مع أنه لافضل فيه اصلا عند أهل الفهم (حسام الحرمين ص ۱۰۰)

او په اردو کې ليکلي دي چې: نبی ﷺ سب سے پچھلی نبی نہین ان کی بعد اور نبی ہو جائی تو حرج نہیں (حسام الحرمین ص-۶۷)

لعنت الله على الكاذبين ، مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله څه وايي او احمد رضاخان ترينه څرنګه تعبير کوي. ؟

احمد رضاخان یو عبارت د(تحذیر الناس صـ ۱۲، څخه را أخلی بل د صـ ۲۴) څه راغلی او بل د صـ ۲، څخه را أخلي درې واړه سره یو ځای کوي او په خپل منافقانه انداز باندې ترینه نتیجه دختم نبوت څخه انکار جوړوي.

احمد رضاخان وایي چې مولانا قاسم صاحب رَحِمَهُ اللهُ نبی کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او صحابه ټول په عوامو کې داخل کړل حالانکې تا مخکې دعوامو تعریف واوریدلو.

## دمولانا قاسم نانوتوي عبارت

*اگر بالفرض بعد زمانہ نبوی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کوئی نبی پیدا ہو تو پھر بھی خاتمیت محمدی میں کچھ فرق نہ آئے گا (تحذیر الناس ص- ۲۴)* دلته مولانا دختم نبوت زماني څخه انکار نه کوي او دا څرنګه ممکنه ده چې علت ومني او دمعلول څخه انکار وکړي؟ ختم نبوت رتبي علت دی او ختم نبوت زماني معلول دی او اخبار بالعلت مکذب لپاره داخبار بالمعلول نه وي، دلته دا جمله دختم نبوت رتبي داستحکام لپاره پیش کوي، ختم نبوت رتبي دومره قوي دی، چې کیږي خو نه، خو بیا هم بالفرض که دنبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې اویا وروسته بل نبي پیدا هم شي نو ختم نبوت رتبي ته څه نقصان نه شي رسولی (اګر چې وروسته دبل نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په راتللو باندې عقیده ساتل کفر دی حتی شک پکې کول هم کفر دی (مناظره عجیبه صـ ۹)

## دوهم اعتراض: په اعمالو کې امتیان دانبیاوو سره برابریدلی بلکې ترینه او چیدلی شي

مقیاس حنفیت صـ ۲۱۰،

الجواب: اول دمولانا قاسم نانوتوي رحمه الله بعضې عبارات واورئ: د ذوي العقولو کمالات په دوه قسمه کمالاتو کې منحصر دي، یو علمي او بل عملي او دمدح مدار په همدې دوو خبرو باندې دی، په قرآن کریم کې دڅلورو فرقو تعریف کیږي، چې نبیین، صدیقین، شهداء، اوصالحین دي، دانبیاوو اوصدیقینو کمال علمي دی او دشهدوو او دصالحینو کمال عملي دی أنبیاء منبع العلوم او دفاعل په مرتبه کې دي، صدیقین مجمع العلوم او دقابل په مرتبه کې دي، او شهداء منبع الاعمال دي او دفاعل په مرتبه کې دي او صالحین مجمع الاعمال دي او دقابل په مرتبه کې دي، ددې دعوې لپاره دلیل دادی چې که انبیاء دخپل امت

څخه ممتاز وي نو په علومو کې ممتاز دي، پاتې شو عمل نو په ډيرو وختونو کې په ظاهر کې امتي ورسره مساوي بلکې ترينه زيات وي (باقی رہا عمل اس میں بسا اوقات بظاہر امتی مساوی ہو جاتی ہیں بلکہ بڑا جاتی ہے)

اوکه په قوة العمل او په همت کې انبياء دا متونو څخه زيات هم وي نوددې به دا معنی وي چې دشهادت مقام او وصف هغوي ته هم حاصل دی ، لکن خلک په خپلو اوصافو غالبه وو باندې ملقب کيږي ، (ميرزا مظهر جانان رحمه الله ، شاه غلام علی رحمه الله ، شاه ولی الله رحمه الله او شاه عبدالعزيز رحمه الله) څلور واړه جامع بين العلم والفقر وو لکن مرزا صاحب او شاه غلام علي رحمه الله په فقيری کې مشهور شول او شاه ولی الله رحمه الله او شاه عبدالعزيز په علم کې مشهور شول، ددې وجه دا وه چې په هغوي باندې فقيري غالبه وه او په دوي باندې علم غالب وو اګر چې ددوي دعلم څخه د هغوي علم او دهغوي دفقيری څخه ددوي فقيري کمه نه وه، نو په انبياوو کې علم په عمل باندې غالب دی، اګر چې دانبياوو عمل او همت اوقوت دنورو خلکو په عمل په همت او په قوت باندې غالب دی ، بهر حال انبياء دنورو خلکو څخه په علم کې ممتاز دي، (تحذير الناس ص۴ ص۵)

۳-خود انبیاء ہے کو دیکھوا متی بسا اوقات مجاہدہ وریاضت میں ان کی بڑھے ہوے نظر اتی ہین مگر مرتبہ میں انبیاء کی برابر نہین ہوسکتی وجہ اس کی بجز شرف علم و تعلیم اور کیا ہے (حجۃ الاسلام ص- ۲۸)

مابه الامتياز په مابين دانبياوو او أمتونو کې علم او جهل دی ، عمل او عدم عمل نه دی په ظاهر کې په اعمالو کې اکثر امتيان دانبياوو سره برابر وي بلکې زيات وي لکه څرنګه چې دانبياوو او دامت داعمالو دموازنې څخه معلوميږي او باطني فرق يعنې داخلاص دتفاوت لپاره غټ سبب دذات او دصفاتو معرفت اودعباداتو او دسيئاتو دعواقبو معرفت دی چې خلاصه يې همغه کمال علمي دی (آب حيات ص۱۵۲)

## دجواب تفصيل

داعمالو دتفاوت مدار په باطني اخلاص باندې دی څومره چې معرفت او اخلاص وي همغومره داعمالو مرتبه وي، په يو حديث کې راغلي دي چې: صحابه وو ته بد مه وايئ، که تاسو دأحد دغره په مقدار سره زر خرچه کړئ نو دصحابه وو دمد (يعنې ۱۴، چيټا کيو) ته هم نه شئ رسيدلی (صحيح البخاری مشکوة ج ۲ ص ۵۵۳)

نو چې دامتیانو داعمالو په خپل مابین کې دومره تفاوت وو نو بیا به دامتي او دنبي دعملونو په مابین کې څومره فرق وي؟ خصوصاً دامتیانو او دانبیاوو دسردار ﷺ دعملونو په مابین کې به څومره تفاوت وي؟ له دې وجې مولانا قاسم نانوتوي رحمه الله په یو ځای کې لیکلي دي چې: (تو پھر امید مساواۃ مابین سرور کائنات اور مابین مؤمنین ومؤمنات منجملہ اضغاث احلام اور خیال واہیات ہے) اب حیات ص ۱۸۳)

البته ظاهرا دکم په اعتبار سره کله دامت اعمال ډیر ښکاري مثلا: پنځه مونځونه دمعراج په شپه باندې فرض شول او دمعراج واقعه دنبوت په یوولسم کال باندې پیښه شوه، نو نبی کریم ﷺ پنځه وخت فرض لمونځ تقریبا دیارلس کاله وکړو، حالانکې زمونږ په کمزورې زمانه کې اکثر خلک پنځوس پنځوس شپیته شپیته حتی سل سل کاله پنځه وخته فرض لمونځ کوي، همدارنګه دجمعې مونځ په اول کال دهجرت باندې فرض شو، نو نبي کریم ﷺ تقریباً لس کاله دجمعې لمونځ کړی دی او په امت کې اکثرو خلکو پنځوس، شپیته، حتی سل سل کاله دجمعې لمونځ کړی دی.

درمضان روژې په دوهم کال دهجرت باندې فرض شوی نو تقریبا نهه کاله نبي کریم ﷺ درمضان روژې نیولې دي او دامت حال ته ګوره چې څو څو کاله یې درمضان روژې نیولي دي؟

امام رازي رحمه الله فرمایلي دي چې: قد نجد فی الأمة من هو اطول عمرا وأشد اجتهادا من النبی ﷺ) بحواله مقامع الحدید صـ ۷۸)

## حضرت مولانا رشیداحمد ګنګوهي رحمه الله

بریلویانو په رشید احمد ګنګوهي رحمه الله باندې اعتراض کړې دی چې رشید احمد ګنګوهي رحمه الله: الله تعالی ته دروغ مسنوب کړي دي (حسام الحرمین صـ ۱۰۱)

الجواب: دا خالص دروغ او سخته دوهکه او افتراء ده، رشید احمد ګنګوهي رحمه الله فرمایلي دي چې امکان الکذب په دې معنی چې الله تعالی چې څه فرمایلي دي نو دهغې په خلاف کولو باندې قادر دی، لکن خلاف یې نه کوي مثلاً: دفرعون لپاره دنار وعید راغلی دی نو الله تعالی یې جنت ته په داخلولو باندې قادر دی، لکن هیڅکله یې جنت ته نه داخلوي، ددې قدرت او عدم ایقاع څخه کله په امکان ذاتي او ممتنع بالغیر باندې تعبیر کیږي (فتاوی رشیدیه ج ا صـ ۱۱)

ځوک چې دا عقیده وساتي چې الله تعالی په کذب باندې متصف دی او یا په خوله باندې داسې
وایي نو هغه قطعاً کافر او ملعون دی، دقرآن ، حدیث اوداجماع ځخه مخالف دی ، البته دا دټولو
مسلمانانو عقیده ده چې مثلاً الله تعالی دفرعون ، هامان ،قارون، او دابو لهب وغیره په باره کې
فرمایلي دي چې دوي به جهنم ته ځي اوس دا حکم قطعي دی، الله تعالی هیڅکله دوي جنت ته نه
داخلوي ، لکن الله تعالی په دې باندې قادر دی چې جنت ته یې داخل کړي عاجز نه دی..

بیضاوي شریف دالله تعالی ددې قول په تشریح کې چې (ان تغفر لهم الایه) دی فرمایلي دي چې
عدم غفران دشرک دوعید تقاضی ده، امتناع ذاتي پکې نشته : وعدم غفران الشرک مقتضی الوعید
فلاامتناع فیه لذاته والله اعلم بالصواب) فتاوی رشیدیه ج ۱صـ ۱۸)

احمد رضاخان وایي چې زما سره دمولانا ګنګوهي رحمه الله مهري دستخطي فتوی ده چې په هغې
کې یې بالفعل الله تعالی ته دکذب نسبت کړی دی ، نو مولانا خلیل احمد سهارنپوري رحمه الله فرمایلي
دي چې دا په رشید احمد ګنګوهي پورې بهتان او جعل سازي ده او احمد رضاخان په جعل سازی کې
دجعلسازانو داستاذانو استاذ دی (المهند علی المفند صـ ۳۷)

## مولانا خلیل احمد سهارنپوري رحمه الله

احمد رضاخان اعتراض کړی دی چې خلیل احمد سهارنپوري په البراهین القاطعه کې لیکلي دي
چې دشیطان علم درسول الله صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دعلم ځخه زیات دی (حسام الحرمین صـ ۱۰۳)

الجواب: البراهین القاطعه دمولانا خلیل احمد سهارنپوري رحمه الله کتاب دی چې د (انوار
الساطعه دربیان مولود وفاتحه) په جواب کې یې لیکلی دی، انوار الساطعه مولوي عبدالسمیع
رامپوري بدعتي لیکلی دی ، نو محترمو ورونو اول دانوار الساطعه مسایل ولولئ بیا دمولانا خلیل
احمد سهارنپوري رد ولولئ، بیا خپله محاکمه وکړئ.

## انوار الساطعه دربیان مولود وفاتحه

۱-دحاضر او دناظر صفت دالله تعالی پورې خاص نه دی، ځکه چې خاصه دیته وایي چې (مایوجد
فیه ولایوجد فی غیره ) او په تفاسیرو کې راغلي دي چې ملک الموت ، شیطان ،لمر او سپوږمی په هر
ځای کې حاضر او ناظر دي، په احادیثو کې راځي چې دملک الموت توجه هر کور او هر سړي ته وي او

تهول پیژني (ان احادیث سے معلوم ہوا کہ ملک الموت ہر جگہ موجود ہے ) همدارنګه یې لیکلي دي چې: ( کوئی ادمی مشرق سے مغرب تک ابادی دنیا کی اگر سیر کرے جہاں جاوی گا چاند کو موجود پاوی گا اور سورج کو بھی پاوی گا پر اگر وہ کہے کہ ایک چاند سب جگہ موجود ہے اور ایک سورج سب جگہ موجود ہے' تمہاری قاعدی سے چاہی وہ کافر ہو جاوے )

۲-ابو الحسن شاذلی رحمه الله فرمایلي دي چې: لواحتجبت رؤیة رسول الله ﷺ طرفة عین ما اعدد نا انفسنا من جمله المسلمین.

۳- د رسول الله ﷺ په نسبت ابلیس لعین او ملک الموت زیات حاضر او ناظر دی ځکه چې ابلیس په هر پاک او ناپاک ځای کې حاضر او ناظری دی او ملک الموت دهر کافر او غیر کافر سره حاضر او نا ظر دی ، (اور تماشا یہ کہ اصحاب محفل میلاد تو زمین کی تمام جگہ پاک ناپاک 'مجالس مذہبی وغیر مذہبی میں حاضر ہونا رسول اللہ کا 'نہیں دعوی کرتہی 'ملک الموت اور ابلیس کا حاضر ہونا اس سے بھی زیادہ تر مقامات پاک ناپاک کفر غیر کفر میں پایا جاتا ہے )

## پدې مسایلو باندې رد

۱-بدعتي نام نهاد ملا، رسول الله ﷺ په شیطان باندې قیاس کړو.

۲-په صفت د حاضر او د ناظر کې یې شیطان ته په رسول الله ﷺ باندې مزیت ورکړو.

۳- بریلویان لیکلي دي چې شیطان حاضر او ناظر دی، نو رسول الله ﷺ به په طریق اولی حاضر او ناظر وي نو اوس که یو سړی ووایي چې احمد رضاخان (په خپله عقیده کې) د شیطان ځخه بهتر دی نو چې شیطان حاضر او ناظر دی نو احمد رضاخان خو به په طریق اولی سره حاضر او ناظر وي او یا یو سړی ووایي چې احمد رضاخان خو د تپوس ځخه بهتر دی نو چې تپوس الوزي نو احمد رضاخان خو به په طریق اولی سره الوزي ،نو ایا دا قیاس به صحیح وي؟

## البراهین القاطعة

۱-د الله تعالی هیڅ صفت په بنده کې نشي راتللی.

۲- الله تعالی د بعضو حقیقي صفاتو ظل بنده ته ورکړی دی لکه : سمع تقیقي ، علم حقیقي ، بصر حقیقي ، د الله صفات دي لکن د دوي ظل ،علم ،سمع، بصر مجازي یې بنده ته هم ورکړي دي .

۳- بنده ته یې چې څومره علم، قدرت وغیره ورکړي دي ،نو بنده دهغې څخه دیوې زرې په مقدار هم زیادت نه شي کولی.

۴- الله تعالی چې شیطان ته کوم مقدار وسعت ورکړی دی او ملک الموت ته یې چې په کوم مقدار باندې وسعت ورکړی دی ، او لمر او سپوږمۍ چې یې په کومه وضعه باندې پیدا کړي دي ، نو دوي ددې خپل مقدار څخه هیڅ زیادت نه شي کولی.

۵- ددې زیادت او قلت پورې هیڅ فضیلت نه دي موقوف ،موسی علیه السلام په نظر سره خضر علیه السلام ته دیر اعلی او أفضل وو ، حالانکې دموسی علیه السلام علم مکاشفه دخضر علیه السلام په نسبت کمه وه ، لکن خضر علیه السلام ته چې څومره علم مکاشفه ورکړل شوی وه نو دهغې مقدار څخه یې زیادت نه شو کولی .

۶- ملک الموت او شیطان ته چې الله تعالی کوم مقدار وسعت ورکړی دی او لمر او سپوږمۍ ته یې چې څومره وسعت دنور ورکړی دی نو هغه دمشاهدې او دقطعي نصوصو څخه ثابت دی ، اوس په دوي باندې دیو افضل (محمد ﷺ) قیاسول دعالم او دعاقل کار نه دی ځکه چې اول خو په عقایدو کې قیاسونه نه چلیږي ،بلکې دعقایدو داثبات لپاره دقطعي نص ضرورت دی دوهم: دا چې دا قیاس دقطعي نصوصو څخه مخالف دی، خپله رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې: (والله لا أدري ما يفعل بی ولا بکم) او شیخ محدث عبد الحق دهلوی رحمه الله فرمایي چې: او نیز فرموده است کی من بشر آم نمیدانم که درپشت این دیوار چیست یعنی بی دانیدن حق سبحانه ،(آه اشعة اللمعات ج ١ صـ ٣٦۵)

۷- که ددې لپاره سبب فضیلت وي نو بیا خو ټول مسلمانان اګر چې فاسقان وي او خپله مؤلف (عبدالسمیع بریلي) دشیطان څخه بهتر دی، نو پکار ده چې که دشیطان څخه زیات نه وي نو دده په مقدار علم الغیب خو دې ولري، داسې غیر مناسبې خبرې څومره بی عقلي او بی علمي ده ؟

خلاصه دا چې شیطان او ملک الموت ته کتل او بیا فخر عالم محمد ﷺ ته دزمکې علم محیط دقطعي نصوصو په خلاف صرف دفاسد قیاس څخه ثابتول چې شرک نه دی نو بل څه شی دی ؟ دشیطان او دملک الموت دا وسعت خو دنص څخه ثابت دی ،(دکمالاتو دنبوت څخه بغیر بعضې جزئي حوادثو ته ) درسول الله ﷺ دعلم وسعت دکوم قطعي نص څخه ثابت دی؟

۸-مؤلف چې د (حضرت حسن شاذلي رحمه الله) کومه واقعه ليکلې ده نو اول خو واقعات حجج شرعيه نه شي کيدلی، خصوصاً دعقايدو په باب کې او دوهم دا چې که دا واقعات ومنو نو جواب دادی چې دې اولياوو ته الله تعالی کشف ورکړی وي، دا ممکنه ده چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته الله تعالی ددې ځخه يو لک چنده زيات ورکړی دی ، لکن ددې ثبوت (فعلي چې ورکړی يې دی) دکوم نص ځخه ثابت دی ؟ (البراهين القاطعه ص ۵۰، ملخصا)

محترمو لوستونکو دالبراهين القاطعه کومه جمله دقرآن ، حديث او داجماع ځخه مخالفه ده ؟ پدې کې دتوهين الفاظ کوم دي؟ په کومه جمله کې مولانا خليل احمد سهارنپوري رحمه الله دنبی کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ علم دابليس په علم باندې قياس کړی دی ؟ بالعکس تاسو وليدل چې عبدالسميع بريلوي ابليس ته حاضر او ناظر وويلو او نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يې ورباندې قياس کړو او بيا يې ابليس ته په دې صفت کې برتري ورکړه، چې هغه په هر پاک او ناپاک ځای کې حاضريږي ، باقي دحاضر اوناظر مسئله مخکې پوره واضحه شوې ده، هلته رجوع وکړئ اوډيره دخوند خبره داده چې مولانا خليل احمد سهارنپوري رحمه الله د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ځخه دزمکې دعلم محيط دنفی جمله ذکر کړې ده (علم محيط زمين) ددې ځخه صفا معلوميږي چې خبره يوائې دزمکې په علم کې ده په علومو عاليه وو کماليه وو کې نه ده ، په کومو باندې چې دانساني فضيلت مدار وي ، همدارنګه خليل احمد سهارنپوري رحمه الله داسې ليکلي چې: (شيطان وملک الموت کو يه وسعت نص سی ثابت هی الخ ) پدې کې لفظ د (يه) دې خبرې ته اشاره ده چې دشيطان لپاره دمطلق وسعت دعوه نه ده شوی، بلکې جزئي حقيرو حوادثو ته اشاره شوې ده ،او په دې باندې دفضيلت مدار نه دی ، لکه دسليمان عليه السلام هدهد ته ديوې حادثې علم موجب دفضيلت په سليمان عليه السلام باندې نه دی، په البراهين القاطعه ص ۳ص کې يې ليکلي دي چې دا عقيده ديو ادنی مسلمان دشان سره هم نه ده مناسبه چې هغه په تقرب او په شرف او په کمالاتو کې بل څوک دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مماثل وګڼي الخ

اوس داخمد رضاخان ددې جملې حکم تاسو بيان کړې احمد رضاخان ليکلي دي چې: *براہین قاطعہ مین تصریح ہے . . . کہ آن کے پیر ابلیس کا علم نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کی علم سے زیادہ ہے الخ ( حسام الحرمین ص- ۱۰۳)*

## دوهم اعتراض

خليل احمد سهارنپوري رحمه الله ليکلي دي چې: (رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ديوبندي علماوو څخه د أردو ژبه زده کړې وه)؟

الجواب: مخکې ذکر شو چې البراهين القاطعة دعبدالسميع بريلوي دکتاب په رد کې ليکل شوي دي په نوم د (الانوار الساطعه) په الانوار الساطعه کې يې په ديوبنديانو اعتراض کړی وو دالانوار الساطعه عبارت داسې دی: (واضح ہو کہ اس جواب پر دہلی کے تین صاحبون کے مہر ہی الٰہی بخش' حفیظ اللہ' شریف حسین یہ صاحب دہلی میں غیر مقلد ہیں سب ان کو جانتے ہیں ان کا یہ جواب لکھنا کچھ تعجب نہ تھا لکن اصحاب دیوبند بھی اس فتوی میں انکی تابع ہوگئ مدرسہ دیوبند کے طلباء اور مدرسین کے پانچ مہرین چند دستخط ہیں' ایسی آبی مفتی کہ آن میں سی ایک صاحب کے عبارت یہ ہے ہذا مسئلہ جواب صحیحۃ حسن علی عفی اللہ عنہ' سبحان اللہ' عبارت ان مفتی صاحب کے دیکھنی کی قابل ہے الخ (الانوار الساطعہ مع البراہین القاطعہ ص- ٢٦)

١- دد ې په جواب کې خليل احمد سهارنپوري رحمه الله وليکل چې: دحسن علي په نوم باندې کوم مدرس نه په ديوبند کې شته او نه مخکې تير شوی دی.

٢- بيايې دديوبند دمدرسې صفت کړی دی، چې دديوبند دمدرسې عظمت دالله تعالى په دربار کې ډير دی، ډيرو علماوو دلته سبق ويلی دی او ډير خلک يې دګمراهۍ دتيارو څخه را ايستلي دی. (یہی سبب ہے کہ ایک صالح فخر عالم علیہ السلام کی زیارت سے خواب میں مشرف ہوئی تو آپ کو اردو میں کلام کرتی دیکھ کر پوچھا کہ آپ کو یہ کلام کہاں سے آگئ؟ آپ تو عربی ہیں فرمایا جب سے علماء دیوبند سے ہمارا معاملہ ہوا ہے کو یہ زبان آگئ) يو نيک سړي په خوب کې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليدلو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اردو باندې خبرې کولې، دې نيک سړي ترينه پوښتنه وکړه چې يا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خو عربي يې دا اردو دې څنګه زده کړې ده؟ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې دکوم وخت څخه چې زما دديوبند دعلماوو سره معامله راغلې ده نو دا ژبه مې زده کړې ده (البراهين القاطعه صـ ٢٦)

## دجواب تفصيل

١-په البراهين القاطعه کې ديو خوب ذکر دی او خوب دتعبير قابل وي .

٢-بيا په دې خوب کې هم داندي ذکر شوي چې (معاذ الله ) دديوبند علماء استاذان دي او رسول الله ﷺ (معاذ الله )ددوي شاګرد دی ، بلکې په دې خوب کې داسې راغلي دي چې دکوم وخت څخه چې زما دديوبند دعلماوو سره معامله راغلې ده ، داسې نه دي راغلي چې نبي کريم ﷺ ددوي څخه څه لوستلي دي او يا دديوبند علماوو څه ورښودلي دي .

٣-د رسول الله ﷺ په منصب کې دانه وه داخله چې ټولې ژبې يې دې زده وي، يو څو حبشو د رسول الله ﷺ په مخکې خبرې کولې رسول الله ﷺ وفرمايل چې: (مايقولون؟ قال يقولون محمد عبدصالح ) موارد الظمأن صـ ٤٩٣)

او په يو روايت کې راغلي دي چې نبي کريم ﷺ دحبشو سره بعضې حبشي کلمات فرمايلي مثلاً سنه سنه يعنې حسن حسن ،(بخاری ج ١صـ٤٣٢)

شاه عبدالعزيز رحمه الله فرمايلي دي چې: واول کسيکه قرآن بر آو نازل ميشد، يعنى ذات مطهر انحضرت ﷺ هرگز معانى ولغات اقوام ديگر بلکه مخارج حروف ولهجه کلام هر فرقه نميداستند (فتاوى عزيزى ج ١صـ ١٣٢)

ددې څخه وروسته دمولوي عمر بريلوي ددې زاروان عبارت په باره کې تاسو فيصله وکړئ ، مولوي عمر ليکلي دي چې الله تعالى فرمايلي دي چې: (وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا بِلِسَانِ قَوْمِه )، (وَمَآ اَرْسَلْنٰک اِلَّا كَافَّةً لِّلنَّاسِ ) تَبٰرَکَ الَّذِیْ نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِه لِيَكُوْنَ لِلْعٰلَمِيْنَ نَذِيْرًا)

جب آپ کو تمام جہانوں کا نذیر اور رسول بنا کر بھیجا تو قانون خداوندی مذکورہ سے نبی ﷺ کو تمام عالمین کی زبانیں سکھا کر بھیجا' دیوبندی کہیں کہ اردو نبی ﷺ کو ہماری علماء دیوبند سے حاصل ہوا تو یہ قرآن کریم کی صراحةً خلاف ہے اور آپنی استاذ بنی کے فخر میں قرآن مجید کا انکار ہے' اور رسول اللہ کے بجائی رسول دیوبند قرار دیتے ہیں اللہ تو آپنے رسولوں کی علم کو اپنے طرف منسوب فرمادیں اور یہ علماء دیوبند کے طرف یہ ہے فرقہ دیوبندیہ کا ایمان جو معلم کر کو او تمام جہانوں کی حکیم ساز کو آپنا شاگرد تصور کرتے ہیں' تو اکابریں دیوبند کا خدائی دعوی ظاہر ہو گیا (مقیاس حنفیت ص ٢٠٩)

لعنت الله على الكذبين، ١- دبراهين قاطعه په کوم ځای کې دخدای دعوه ده ؟

٢- په کوم ځای کې ديوبنديانو ته معلمين ويلي شوي دي ؟

۳- په کوم ځای کې نبي کريم ﷺ ته شاګرد ويلی شوی دی؟

۴- په کوم نص کې راغلي دي چې دنبي کريم ﷺ تولې ژبې زده وی؟ تا چې کوم اول ايت ليکلی دی په هغې کې خوستاد دعوې عکس دی، ځکه چې هر پيغمبر د خپل قوم په ژبه باندې راليږل شوی دی نو دنبی کريم ﷺ قوم عربي وو نو نبي کريم ﷺ هم عربي دی او ددوو نورو ايتونو تعلق خو بالکل ددې موضوع سره نه دی.

۵- قوم مکلف دی چې رسمي ژبه زده کړي؟ او که حاکم مکلف دی چې دخپل رعيت تولې ژبې زده کړي؟ مخکې مونږ دلايل وليکل چې دنبی کريم ﷺ تولې ژبې نه وې زده.

## مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله

بريلويان په حکيم الأمت مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله باندې هم اعتراضونه کوي حتی چې (معاذ الله) کافر ورته وايي دلته به دالله تعالی په توفيق باندې دوه وو مشهورو اعتراضونو ته جواب ليکو.

### اول اعتراض:

رسول الله ﷺ ته چې دغيبي خبرو څومره علم ورکړل شوی وو، نو دومره خو هرماشوم، هرليونی، بلکې هرحيوان ته ورکړل شوی دی. (حسام الحرمين ص۱۰۹)

الجواب: احمد رضاخان داشرف علی تهانوي رحمه الله عبارت داسې رانقل کړي دي چې: (آپ کے ذات مقدسہ پر علم غیب کا حکم کیا جانا اگر بقول زید صحیح ہو تو دریافت طلب امر یہ ہے کہ اس غیب سے مراد بعض غیب ہے یا کل غیب؟ اگر بعض علوم غیبیہ مراد ہیں تو اس میں حضور کی کیا تخصیص ہے ایسا علم غیب تو زید وعمر بلکہ ہر صبی ومجنون بلکہ جمیع حیونات وبہایم کی لئے بھی حاصل ہے' (الی قولہ) کیوں کہ ہر شخص کو کسے نہ کسے ایسے بات کا علم ہوتا ہے جو دوسری شخص سے مخفی ہے تو چاہے کہ سب کو عالم الغیب کہا جاوی الخ. (حفظ الایمان ص- ۹)

### دجواب تفصيل

۱-دمولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله دعبارت خلاصه دا ده چې علم الغيب بلاواسطه صرف دالله تعالی صفت دی، په مخلوقاتو کې دهيچا سره نشته او علم الغيب بالواسطه دمخلوق سره شته، لکن ددې په وجه ورته عالم الغيب ويل جايز نه دي، بيا يې ددې لپاره دوه دليله ذکر کړي دي، مذکور عبارت دوهم دليل دی، ددې دليل خلاصه داده چې که نبي کريم ﷺ ته دعلم الغيب بالواسطه له وجې دعالم الغيب ويل جايز شي، نو ددې څخه که کل غير متناهيه علوم مراد وي نو دا خو

عقلاً او نقلاً محال دي او که بعض علوم مراد وي ، نو دبعضې مصداق خو يو هم کيدلی شي دوه هم کيدلی شي او درې هم کيدلی شي .... نو پدې کې بيا دنبي ﷺ دتخصيص وجه څه ده؟ دمطلق بعضو علم خو دزيد او عمر وغيره سره هم شته نو هغوي ته هم بيا عالم الغيب ووايه.

۲- دمولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله په عبارت کې مشارکت په مطلق بعض کې ذکر شوی دی اګر چې بيا په مقدرا کې فرق وي، مثلاً دزيد سره يو وي دعمر سره دوه وي او دبکر سره لس وي..

۳- دمولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله په عبارت کې داسې راغلي دي چې (ایسا علم غیب تو زید وعمرو الخ) بريلويان د (ایسا) ترجمه په برابروالي او يا تشبيه سره کوي، حالانکې داسې نه ده بلکې ددې لفظ ډير معنی ګانې دي لکه اس قسم کا ، اس شکل کا ، اس قدر ، (امير اللغات ج ۲ص۳۰۲)

## دبريلويانو دوه افتراګانې

۱-دمولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله پورې يې دا افتراء کړې ده چې نبي کريم ﷺ ته يې عالم الغيب ويلي دي ، حالانکې اشرف علي تهانوي رحمه الله داسې عقيدې ته دکفر عقيده وايي (بسط البنان الحاقيه حفظ الايمان)

احمد رضاخان ليکلي دي چې: کہ غیب کے باتوں کا جیسا علم رسول اللہ ﷺ کو ہے ایسا تو ہر بچی اور ہر پاگل بلکہ ہر جانور اور چارپای کو حاصل ہے ) حسام الحرمین ص- ۱۰۹)

يعنی نبی کريم ﷺ ته هم علم غيب حاصل دی او هر ماشوم او ليونی او حيوان ته هم .

لعنت الله علی الکاذبين : مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله په کوم ځای کې ويلي دي چې علم الغيب رسول الله ته هم حاصل دی او هر ماشوم وغيره ته هم حاصل دی ؟ اشرف علی تهانوي رحمه الله خو ددې دعوې لپاره دليل پيش کوي چې نه نبي ﷺ عالم الغيب دی او نه بل مخلوق.

۲-دمولانااشرف علی تهانوي په عبارت کې يې د(ايسا) ترجمه په برابروالي سره کړې ده حالانکې ددې معنی داده چې که مطلق بعض علم مجوز لپاره داطلاق دعالم الغيب شي نو دمطلق بعض مصداق خو يو هم دی اګر چې ډير دادنی درجې والا وي او هر سړي ته دداسې خبرې علم وي چې دبل چا څخه مخفي وي.

خلاصه دا چې اشرف علی تهانوي رحمه الله نه ددې قایل دی چې لکه څرنګه چې نبي کریم ﷺ عالم الغیب دی همداسې دا شیان هم دي او نه ددې قایل دی چې دنبي کریم ﷺ علم ددې شیانو سره برابر دی.

داشرف علی تهانوي رحمه الله دمذکور عبارت په شان عبارت په مواقف کې هم شته: قلنا ما ذکرتم مردود بوجوه اذ الاطلاع علی جمیع المغیبات لایجب للنبی اتفاقاً منا ومنکم ولهذا قال سیدالانبیاء: ولوکنت اعلم الغیب لاستکثرت من الخیر وما مسنی السوء والبعض ای الاطلاع علی البعض لایختص به ای بالنبی ﷺ (مواقف مع الشرح صـ ۱۷۵)

۳-مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله دحفظ الایمان په آخر کې همدا عبارت په بل تعبیر باندې داسې ذکر کړي دي چې: *اگر بعض علوم غیبیه مراد ہیں تو اسمیں حضور کی کیا تخصیص ہے؟ مطلق بعض علوم غیبیه تو غیر انبیاء کو بھی حاصل ہیں تو چاہئے کہ سب کو عالم الغیب کہا جاوی الخ* صـ ۱۸ تحت تغیر العنوان)

منافق بدعتیان نه دحفظ الایمان په عبارت ځان نه پوهوي او نه ورېسې دتوضیح لپاره دحفظ الایمان په آخر کې (بسط البنان) او (تغیر العنوان) مطالعه کوي.

دا دواړه مولانا اشرف علی تهانوي رحمه الله دخپل عبارت دتوضیح لپاره لیکلي دي او دحفظ الایمان سره یو ځای چاپ شوی دی.

## دوهم اعتراض

### دیوخوب تعبیر او دیو مرید خطائی:

دمولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله یو مرید خوب ولیدلو چې دلا اله الا الله محمد رسول الله کلمه لولي، لکن دمحمد الرسول الله په ځای باندې داشرف علي نوم اخلي (یعنې په خوب کې داسې وایي چې لااله الا الله اشرف علي رسول الله) مرید فرمایي چې زه پوه شوم چې دکلمې په لوستلو کې راڅخه غلطي وشوه، نو اراده مې وکړه چې په صحیح طریقه باندې لااله الا الله محمد رسول الله ولولم، لکن بې اختیاره مې بیا دژبې څخه درسول الله دنوم په ځای باندې اشرف علي ووتلو، حالانکې زه په دې پوهیدم چې داسې صحیح نه ده، لکن بې اختیاره مې دژبې څخه همداسې راوتل، دوه درې وارې چې همدا صورت پېښ شو نو رسول الله ﷺ مې خپلې مخې ته ولیدلو یو څو نور کسان هم وو لکن ما ځان تېنګ نکړی شو

په ز مکه باندې راوغورزیدم او په زوره زوره مې چیغې کړې چې په همدې حالت کې راویښ شوم، دبیدارۍ په حالت کې مې چې کله خیال ته راغله چې تا خو په خوب کې غلط کلمه لوستله نو اراده مې وکړه چې دا خیال دزړه څخه وباسم هسې نه چې بیا غلطه نه شم په همدې خیال باندې کیناستم او په خوب کې چې رانه کومه غلطي شوې وه دهغې دتدارک لپاره مې په رسول الله ﷺ باندې درود شروع کړو لکن بیا مې هم دخولې څخه داسې جمله راوتله چې (اللّٰهُمَّ صل علی سیدنا ونبینا مولانا اشرف علی) حالانکې ویښ ووم لکن بې اختیاره وم، مجبور وم، ژبه مې په کنټرول کې نه وه دا ورځ همداسې تیره شوه په دوهمه ورځ په ویښه باندې را باندې ډیر رقت طاري شو ښه مې وژل، نورې هم ډیرو جی دي چې دمولانا اشرف علي تهانوی رحمه الله سره دمحبت باعثي دي (الامداد صـ ۳۵)

۱-دا دخوب واقعه ده، ۲-او ددې خوب په وجه هم دخوب لیدونکی ډیر خفه وو. ۳-په خوب کې ورته دخپلې غلطۍ احساس وشو ۴-لکن بې اختیاره یې دژبې څخه دا غلطه جمله وتله ۵- په ویښه باندې یې چې په غلطه طریقه باندې درود لوستلو نو هلته فرمایي چې بې اختیاره وم مجبور وم ژبه مې په کنټرول کې نه وه ۶- او بیا یې ددې غلطۍ په وجه ښه ډیر ژړلي هم دي ۷- دخوب تعلق دتعبیر سره وي، کله خوب ظاهرا ښه ښکاري لکن تعبیر یې ډیر خراب وي او کله خوب ډیر بدښکاري لکن تعبیر یې ډیر ښه وي ابو هریرة رضی الله عنه فرمایلي دي چې: (احب القید واکره الغل والقید ثبات فی الدین) صحیح البخاري ج ۲صـ ۱۰۳۹) په خوب کې مې زولنې خوښیږي او دغاړې طوق مې نه خوښیږي زولنې ددین په معامله کې ثبات قدمي ده ۸- دخوب په حالت کې انسان مرفوع القلم وي رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې: رفع القلم عن ثلاثة: عن النائم حتی یستیقظ، وعن المبتلی حتی یبرأ وعن الصبی حتی یکبر (حم دن ہ ک) صحیح الجامع الصغیر ج ۲صـ ۲۴) أنه لیس فی النوم تفریط انما التفریط فی الیقظة (ترمذي ج ۱صـ ۲۵) ۹- په ویښه چې کومې خبرې غیر اختیاري دخولې څخه ووزي هغه موجبې دکفر او دارتداد نه دي الله تعالی فرمایلي دي چې: ( رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِيْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا) رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې: ان الله تجاوز عن أمتی الخطاء والنسیان وما استکرهوا علیه (مشکوة ج ۲صـ ۵۸٤)

قاضي خان فرمايلي دي چې: والخاطئ من يجرى على لسانه من غير قصدٍ كلمة مكان كلمة (قاضى خان صـ ٨٨٣)

همدارنګه يې فرمايلي دي چې: الخاطئ اذاجرى على لسانه كلمة الكفر خطأ بأن كان اراد ان يتكلم بماليس بكفرٍ فجرى على لسانه كلمة الكفر خطأ لم يكن ذلک کفرا عند الکل (قاضى خان ج ٤صـ ٨٨٣)

١٠- مولانا اشرف على تهانوي رحمه الله ورته دخوب تعبير وركړو چې په دې كې تاته تسلي ده، چې دچا طرفته چې ته رجوع کوې هغه متبع دسنتو دى، ددې تعبير سره يې ورته وفرمايل چې زما پدې تعبيراصرار نشته کيدى شي چې دا شيطاني خوب وي، يا دكومې دماغي مريضى څخه راپيدا شوى وي.

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمدٍ وآله وصحبه اجمعين



بسم الله الرحمن الرحیم

# د بندي خانې حالات

له څلور کاله ازادۍ څخه وروسته په دوهم ځل سنه ۱۴۳۳هق د شعبان په اول، تاریخ د ماښام په اتو بجو د لغمان د علیشنګ په لاره د اسلام اباد له پول سره د یو مرتد صلیبي غلام قومندان زمریالي د کسانو لخوا چې دوه ځایه یې راته کمین نیولی وو، ونیول شوم او د نیولو سره یې د ډېرو سختو وړیو لیوانو په شان رابانديې له هر طرفه حملي شروع کړې، د کلاشنکوفونو په ګنداغونو یې رابانديې په ډېره بې رحمۍ سخت سخت ګذارونه کول، چې عینکې مې ماتې شوې، د مخ او سترګو په شمول مې ټول بدن تک شین او زخمي زخمي شو، چې یوې چپې سترګې مې ترډېره وخته پورې بیا کار هم نه کاوه، بل خوا ته همدغو وږیو لیوانو زما په جامو او جیبونو بانديې هم حمله وکړه، د نغدو روپیو، د اغوستلو د جامو، عطرو او نورو شیانو په شمول یې هر څه را څخه چور کړل، تقریباً د یوې ګینټې وهلو او ټکولو څخه وروسته یې زما لاسونه د څو ساعتونو لپاره په اوسپنیزو ولچکونو بانديې شاته دومره کلک وتړل، چې یو څو دقیقې وروسته تک شنه شول او وپړسیدل، چې بیا تقریبا ترشپږو میاشتو پورې د ولچکونو داغونه پکې ښکاریدل، تقریباً د شپې لس بجې یې خپل قومندان زمریالي ته په داسې حالت کې وروستلم چې لاسونه مې په اوسپنیزو ولچکونو لا هماغسې کلک تړلي شوي وو او د پړسېدو سربېره یې له ډېره درده سختې څړیکې کولې او نور پخپلو وینو لمبیدلی وم، پښې مې له حرکت څخه غورزیدلې وې، په غاړه جامې مې ټولې شکیدلې شکیدلې وې، په سترګو راته هیڅ نه ښکاریدل، صلیبي مرتد غلام زمریالي د خپلو بادارانو انګریزانو د خوشالولو لپاره او د دوي څخه د شرابو وغیره پسخوردو د زیاتو لاسته راوړلو لپاره بیا خپلو مرتدو مزدورانو ته امر وکړ چې [به ګنداغ بزنیش] په کنداغونو یې ووهئ! صلیبي لیوانو زما په زخمي زخمي ازورده بدن بانديې یو ځل بیا د کنداغونو سوکانو او لغتو باران شروع کړو او ترهغې یې ووهلم ترڅو چې دوي ستړي شول او زه بې هوښه شوم.

څو ساعته وروسته چې په هوش شوم، نو د سرک په غاړه د تیلو د پمپ په یوه مُرداره کوټه کې پروت ووم، چې زمریالي به ترینه د موقتي بندیخانې کار اخیست او دوه صلیبي غلامان مې د کلاشنکوفو سره

سر ته ولاړ وو، چې د په هوش کېدلو سره يې د سختو څپېړو ګذارونه راکړل او د کلاشنکوف په برچه يې په ملا او سر باندې سوری کړم او د ډېرو زورولو له پاره يې شخصاً ماته او عموماً اسلام او طالبانو ته فاحشې کنځلې کولې. آخر تقريباً د شپې په دولسو بجو يې ددې ځای څخه د کنداغونو د يو يو ګذار سره سره د زمريالي د کور په طرف روان کړم، هلته چې ورسيدم، نو ومې ليدل چې زمريالی له خپلو بادارانو سره په ټيلفون خبرې کوي او د يو افغان مسلمان په نيولو او تعذيبولو ورته د خپلې وفادارۍ ثبوت پيش کوي او د نورو پسخوردو په طمعه ورته د لازياتې خو نخوارۍ اطمينان ورکوي. کله چې له ټيلفون څخه فارغ شو، بيا زما طرفته راغلو او يو څو بې رحمه څپېړې او لغتې يې بيا هم ووهلم، چې دده لاسونه جامې او پښې هم زما په وينو ولړل شوې، کله چې زمريالی د خوب لپاره ددې ځای څخه لاړو، نو دده کسان را باندې راټول شول، په دوی کې يو تن زما د جيب څه ټولې پيسې ايستلې وې، هغه نورو غلامانو ته منکر وو او ونه يې ورسره تقسيمولې، په دې لانجه کې که به يې له ما څخه پوښتنه وکړه چې چا در څخه روپۍ اخيستې دي او کنه؟ او څو روپۍ وې؟ نو که ما به په اثبات جواب ورکړو، چې را څخه يې اخيستې دي، نو هغه صليبي به سخت سخت ووهلم چې روپۍ يې را څخه اخستې وې او که ددې صليبي ډاکو د وهلو له وېرې به مې په نفي جواب ورکړو نو هغه نورو صليبيانو به سخت سخت ووهلم. اخر بيا بې هوشه شوم او د هر قِسم جواب ورکولو څخه عاجز شوم، سهار لس بجې يې لوڅې پښې د تيلو د پمپ همغې مردارې کوټې ته په داسې حال کې ورو ستلم چې ټول بدن مې تک شين، پړسيدلی وو او په وينو لړلې جامې مې په بدن پورې وچې شوې او نښتې وې. کوټې ته يې په ډېره بې عزتۍ ورډيکه کړم، دروازه يې راپسې وتړله او دوی د تيلو د پمپ څخه لاندې د خوړ په اوبو مخونه ومينځل او بيا راغلل، تر لسو بجو پورې همدلته وم، څه د پاسه دولس بجې د لغمان د خيانت ملي[امنيت ملي] نور خونخواراز راغلل او په ډېره بې رحمۍ سره يې موټر ته وروغورزولم، د سوکانو او د لغتو ګذارونه يې را باندې وکړل، سترګې يې را باندې وتړلې او د لغمان د مرکز په طرف يې روان کړم، په لاره کې يې ځای په ځای امنيت نيولی وو، دې وحشي لېوانو به په موټر کې يو بل ته اشاره کوله (چې سر ته د را اغوستل شوې کڅوړې په کونج کې به ماته ښکارېدله) او بيا به يې د سوکانو او څپېړو باران را باندې شروع کړو، اخرېي دلغمان د امنيت ملي په جهنم ورننويستم، هلته ١٧ ورځې او شپې د بې رحمه تحقيق او تعذيب لاندې ووم، د لغمان د امنيت ملي مستنطقينو په سينو کې د غوښې زړونه نه وو، د افغانيت او اسلاميت

بوي پکې نه وو. الله جل جلاله. حضرت محمد صلی الله علیه وسلم. اسلام او قران کریم ورته یو عبث او مضحکه شیان وو. د ورځې څو څو ځله به یې زما د زورولو لپاره الله جل جلاله. قران او اسلام ته کنځلې کولې. د هغه ځای د تعذیب تفصیلي بیان زړونه لړزوي. زما د قلم له وس او طاقت څخه بهر دي، خو اجمالاً به دومره ووایم چې هلته مې ۱۷ ورځې مکمل د تعذیب لاندې تیرې کړې.

په پړي به یې راته دواړه پښې کلکې کلکې وتړلې، یوه توره مرداره تو ته به یې راته په خوله کې راتخته کړه، په دریو څلورو کسانو به یې زه او هغه پړی نیولي وو، چې زما پښې به یې وربانديې تړلې وې او هره ورځ به کم از کم [٦٠٠] لختې وهل کیدلم، هره ورځ به مې په وینو لړلې پړسیدلې بدن په نوو وینو لمبیدلو او چې کله به بې هوشه شوم بیا به الله تعالی ته معلومه وي، چې څو مره به یې وهلی یم، پښې مې تکې شنې او دومره پړسېدلې وې چې په پښو باندې تشناب ته نه شوم تللی، بلکې په ګونډو او په څنګلو به تلم او هر وخت به یې دومره سخت زندی کولم چې مرګ ته به نږدې شوم، هلته په ۱۷ ورځو کې ۲۱ ځلې بې هوشه شوم او همغلته یې زما د وه نو کونه هم اوویستل او عجیبه لا داده چې یوه ورځ نظارت خانې ته د نقیب الله په نوم څارنوال سره د حقوق بشر په نوم یو هیئت راغلو، د امنیت ملي کارمندانو زر زر زما له پښو څخه پلسترونه تاؤ کړل او هیئت ته یې وروستلم. کله چې هغوي ولیدلم د دې په ځای چې زما غم وخوري د امنیت ملي کسانو ته یې وویل چې پلسترونه ترینه لرې کړئ! هسې نه چې څوک وو ایي چې دا یې وهلی دی.

۱۷ ورځې وروسته یې د لغمان جهنم مرکزي [محبس مرکزي] ته نقل کړم، هلته یې اول د سر وېښتان را باندې په زړه او پخه پاکۍ (چاړه) باندې داسې په زور زور وخرېیل چې ځای په ځای غوښ او وینې شوم. او د دې کار یې را څخه سل روپۍ وغوښتلې، خو زما سره چې هر څه وو، هغه را څخه د دوي مخکنیو همجنسو غلامانو چور کړي وو، چې دوي ته څه شی نه وو پاتې، نه دې وجهې مې ورته وویل چې که کوم پای وازی راته راغی بیا به یې درکړم. هلته مې لا یو څو شپې نه وې تیرې کړې. چې د کابل خونخوارانو ترینه کابل ته وغوښتم. یو سهارېې زا باندې سترګې وتړلې او د ډیر سخت امنیت لاندې یې کابل ته ورسولم او هلته یې د هغه د اوسني ریاست ۴۰ ته حواله کړم. هلته یې تورچکې ناولې دتهرانې څخه جوړه شوې درویشي را واغوستله او تنها په یوه داسې کوټه کې یې پنځه شپې واچولم، چې نه پکې فرش و، نه پکې توشک کمبل او بالخت وو، تردې چې یوه ورځ مې ترینه قران کریم وغوښتلو، نو دوي په ډیرو سختو الفاظو راته وویل چې: په تا باندې قران بند دی، په دې پنځو شپو کې هر ساعت د تحقیق سوکانو، لغتو او زړ پندولو د تعذیب لاندې وم او دا به راته ویل کیدل چې: دلته مونږ داسې تعذیب

درکوو چې وردېږي او داغ درباندې جوړ نشي. چې بیا یې چاته وښایي، کله چې دلته دې غلامانو ته زما د خولې څخه داسې خبره په لاس ورنغله چې د خپلو بادرانو څخه ورباندې کړېدت واخلي او یو غړپ شراب پرې وکتي، نو سترګې یې راباندې وترړلې او راته یې وویل چې: ته حال نه وایې نو بګرام ته دې امریکایانو ته سپارو، زه په زړه کې یو څه ځکه خوشحاله شوم چې د بادار تعذیب د غلام په نسبت یو څه کم وي، ځکه چې غلام د بادار د خوشالولو له پاره د هر قانوني او غیر قانوني کار هېڅ پروا نه لري. بلکې د هغه د ژوند مقصد دا وي چې بادار ورته وفادار ووایي. او په یو څه پسخوردو یې ونازوي او د بادار سره بیا د چا د خوشحالولو فکر نه وي او د چا د پسخوردو په طمع نه وي، له دې وجهې نسبتاً خوشاله وم. لکن دا خبره دروغ وه، بلکې دوي د خپلو بادارنو په امر باندې یوه بله قصابخانه لرله چې د (نود) په نوم باندې یادېدله. چې داسې تعذیبونه پکې وو چې د انسان په فکر کې هم نه راتلل. نو زه یې هم د نود(۹۰) قصابخانې ته نقل کړم، هلته د زمکې لاندې یو دهلیز و چې کله یې لاندې ورکوز کړم. نو د محشر ورځ مې پکې ولیدله، څه بندیان د یو لاس او څه د دواړ لاسونو څخه زوړند وو، څوک د جمعې د علامې په شان دلاسونو او پښو دواړو څخه زوړند وو، څوک د دوو اوسپنو په مینځ کې په سر ودرول شوي وو، څوک به دسختو وهلو لاندې وو، څوک به بې هوشه پراته وو، چا به ژړل، چا به زګیروي کول اوچا د وینو قیونه کول او د چا دآلې تناسلي پورې به وزن ترړل شوی وو، تردې چې وروسته بیا یو تن دپکتیا دسید کرم اوسیدونکي راته وویل چې یو څو ورځې مخکې یې زما په مخکې زما درې زامن د وهلو لاندې شهیدان کړل.

زما د ورکوزولو سره یې راباندې د وهلو ناتار جوړ کړو، د خولې او پوزې څخه مې وینې روانې شوې او[۱۳] شپې یې ووهلم، د شپې ناوخته به یې په ځمکې پورې په کلک زنځیر تړلو او د سهار آذان څخه مخکې به یې راپاڅولو، بنده کټوره به یې سرته را واغوستله او دیوال ته به مو مخ واړولو او په هره دقیقه کې به مو داسې کړیکه اوریدله چې [پاین کو کولا را] یعنې سرته اغوستل شوی کڅوره په سترګو باندې را کوزه کړه سهار به یې څوک تحقیق ته بیولو او د چا به چې تحقیق پوره شوی وو، نو د سهار له آذان څخه به د شپې تر دولسو بجو پورې په داسې حال کې دیوال ته مخامخ ناست وو، چې په بنده کڅوره کې به مو سر او سترګې پټې وې چې ملا به مو سخته وچه او شخه شوه او له ډېره درده به کله بې اختیاره یو طرفته وغورځېدلو، چې بیا به د لغتې له یو ګذار او یو څو کنځلو او کړیکو څخه وروسته بیا کینولی شو.

کله چې به د تشناب ضرورت پېښ شو نو ډېر ځله به مو ګوته ورته د اجازې اخیستلو له پاره پورته کوله، چې کارمندانو به هېڅ پروا ندکوله، آخر به یې د ډېرو ځورولو او تکلیفونو څخه وروسته کله اجازه

راکړه. تشنابونه دوه وو، نو کله به چې هر یو تشناب ته یو یو بندي ننوتلو، لا پر تو ګانې به یې نه وو خلاص کړی او او دس ماتي ته به لا ناست نه وو، چې دروازې ته به یې لغتې بندې کړې او په زوره کړیکې او چیغې به یې کولې چې: (چه میکني؟ شما دو تا) کله به او دس ماتی پاتې شو او بیرته به په خپل ځای کینولی شو.

۱۳ شپې بعد یې بیا د (۴۰) چهل ریاست ته نقل کړم او جزایي بلاک او وم نمبر کوټې ته یې ورکړم، هلته لس کسان وو چې زه یې یوولسم شوم، د شپې د خوب لپاره پکې ځای نه و، بلکې نمبر په نمبر به ویده کیدلو، د چهل (۴۰) په ریاست کې د ویده کیدو ځای نه وو، د تشناب تکلیف دومره وو چې ځینو بندیانو به د اوسیدلو په کوټه کې په سطل کې او دس ماتولو، د خوراک هیڅ انتظام نه وو، بلکې د اوبو یو سپین ګروبی به یې راوړ، چې کله به یو خام آلو او کله به یو خام شلغم پکې له یو طرف څخه بل طرف ته د ماهي په شان غوپې وهلې، له هغې سره به مو یو څو کپه ډوډۍ وخوړله، زما ورور مولوي نقیب الله او زما اوښی مولوي صاحب عبدالسلام شهید رحمه الله د ننګرهار د پارلمان وکیلانو ته یوه عریضه لیکلې وه، په هغې کې یې زما د هغه زخمونو، نوکونو ویستلو وغیره تعذیبونو ذکر کړی وو چې دوي ماته راکړي وو، نو پارلمان والاوو، زما دلیدلو لپاره یو هیئت ټاکلی وو، کیدی شي چې کوم خبر یا له هم ورسره وو، نو ددې هیئت څخه د ورکولو او پټولو لپاره یې یو ورځ مخکې د وروکي اختر په پنځلسم تاریخ باندې د ډیر تعذیب څخه وروسته جهنم مرکزي د پل چرخي محبس ته نقل کړم، او هلته یې دوهم بلاک ته ورکړم، هلته هم صلیبي غلامانو ډیر بد وضعیت کاوه، د اسلام او د قرانکریم توهین یې کاوه، تردې چې زه یې د قران کریم تفسیر او د مشکاة شریف د درس په جُرم دوه میاشتې جزایي کړم، یوه ورځ یې په ډیره بې رحمۍ د قرانکریم په شمول ټول دیني کتابونه راڅخه ویوړل، اخر مې خپلې غواګانې او د کورنور سامانونه کتابونه وغیره خرڅ کړل او قرضونه مې وکړل او قاضي عظیم وردګ، قاضي احمد نور او ناشنازې زنانه قاضی ته مې ورکړل او د لوی الله جل جلاله په فضل په سنه ۱۴۳۳ هق) د رمضان په نهه ویشتم تاریخ راخلاص شوم، او ان شاء الله چې د وینې تر اخري قطرې پورې به د صلیبي ښکیلاک مقابله کوم. (ان شاء الله تـعالـی).

## دصليبي زندانونو دتعذيبونو اجمالي بيان

دصليبيانو په زندانونو کې داسې تعذيبونه دي چې قلم يې دليکلو توان نه لري، لکه غير انساني او غير اخلاقي چلند، دبنديانو دېرو خريل، دبنديانو بربنډول، دبنديانو تر ډيره وخته پورې سترګې تړل، په اوسپنيزو تفصونو کې اچول، قضا حاجت ته پخپله خوښه نه پرېښودل، لاسونه او پښې په ولچکونو باندې کلک تړل، دبنديانو څخه غاښونه ويستل، نو کونه ويستل، سترګې ويستل، رازوړندول، په بدن ميخونه وهل دغوښو غوڅول، په کيبل دومره وهل چې دغوښو ټکړې تر هډوکو پورې څيري شي، دمقدساتو توهين دبې خوبۍ تعذيب ورکول په يخنۍ کې ټوله شپه بهر ته په ولاړه تړل، مسلسل څو څو ورځې او شپې په ولاړه ودرول، په سپيو داړل، په بنديانو او ددوي په مخ کې په زنانه وو جنسي تيری کول، په دسيسه يې توګه دبندي څخه دومره رشوت اخستل چې کور زمکه او پټې په کې خرڅ کړل شي ، هيڅ قسم علاج نه کول، لکن الحمد لله چې مجاهدين دا هر څه برداشت کوي ،لکن دسترګو د رپ په اندازه هم دښمن ته سر نه ټيټوي.

## د زندان يو څو خاطرې او قيصې

(١)په لومړي ځل زما د نيولو سازش داسې جوړ شوی وو چې: زمونږد ولسوالۍ ديوې بدنامې کورنۍ يو تن جاسوس وو ، مخکې يې ديني سبقونه ويلي وو ، چې يو څو کتابونه يې له ما څخه هم ويلي وو ، دصليبي غلام کرزي د استخباراتو په اداره کې يې پټ کار شروع کړی وو ، دده يو د تره زوی د پېښور په يوه مدرسه کې تدريس کاوه ، دهغه په ذريعه يې ماته دا پيغام را ورساوه چې د جلال آباد د امنيې قوماندان (بصير سالنګي) وژلی شم. (بصير سالنګي پخواني غل، ټوپک سالار، د زرګونو علماوو، طالبانو او حافظانو قاتل وو ، چې اوس هم خپلو صليبي بادارنو ته ډېر وفادار وو ) . زه چونکې د بارې د هاشميې په مدرسه کې مُدرِّس وم او فی الحال مصروف وم ، نو دې خبرې ته مې ډېره توجه و نه کړه. لکن دا صليبي جاسوس ډېر خپل کار ته متوجه وو او تر يو کال پورې يې بيا د خپل تره زوی په ذريعه باندې دا پيغام را استولو ،آخر يې همدغه د تره زوی را باندې ډېر باعث شو . زه د امير المجاهدين ملاّ دادالله تقبل الله شهادته سره د يو چا په ذريعه په رابطه کې شوم ، هغه د اکمال له پاره پوره وعده وکړه او يو څه مواد او نغدې روپۍ يې هم را ولېږلې.

له دې څخه وروسته مې د ده د تره د زوی په ذریعه باندې راوغوښت. د محترم امیر رحمه الله پیغام
مې ورته ورسولو، نغدې روپۍ مې ورکړې. لکن دغه لعین د مواد و د وړلو څخه عاجزي وښودله او ویې
ویل چې دا مواد زه نه شم وړلای، دا به تاسو ماته په جلال آباد کې حواله کوئ! یوه ورځ وروسته ما د ده د
تره زوی له ځان سره مبلګری کړ او هغه مواد مو په څه حکمت باندې جلال آباد ته ورسول، په جلال آباد کې
د ګمرک جومات ته ولاړو او ده ته مو ټیلیفون وکړ، ده وویل چې زه د سرخرود په دو سرکه کې یم او در
روان یم، لږ وخت وروسته د قاري په شکل یو کس راغلو زمونږ په څنګ کې ودریدلو مونږ ته یې زیر زیر
وکتل، بیا لږ لرې لاړو او ټیلیفون یې را ویستلو غالباً د معلوماتو لپاره یې راالیږلی وو، چې رشتیا هم
مونږ د ګمرک په جومات یې یو او که نه؟ جاسوس د استخباراتو ریاست ته ورغلی دی او تقریباً څه د
پاسه یو ساعت پس راغئ، زه ورته د ځنډ په وجه په غوسه شوم او ورته مې وویل چې له دې ځای څخه
ځو، لکن ده د دلته زمونږ د مصروفولو لپاره د ځان سره ګنډیرۍ را اخیستې وې او په دې یې ټینګار کاوه
چې لږ کینو او دا ځکه چې ده د استخباراتو کسانو ته همدا ځای ښودلی وو، ما په ډېر ټینګار په زوره
روان کړ او دی هم زړه نازړه راسره روان شو، شاته به یې بیا بیا کتل مونږ د تالاشۍ چوک ته په رسیدلو
کې وو چې د استخباراتو موټر راغلل او د جومات له دروازې سره ودریدل، مسلح کسان ورڅخه په ډېره
بیړه ښکته شول او مسجد ته ننوتل. ما مزل لږ تیز کړ، لکن تر څو چې په ځان باندې پوهېدلم نو همدا
خلک له جومات څخه بیرته راوتلي وو، له مونږ څخه راتاو شول او درې واړه یې ونیولو، چې بیا درې
ورځې وروسته یې هغه صلیبي جاسوس خوشې کړ او مونږ دواړه د سختو تکلیفونو او کړاوونو څخه
وروسته یو کال پس الله تعالی په خیر را خلاص کړو، هغه جاسوس مې بیا تر ننه پورې نه دی لیدلی، یوه
ورځ یې زه د پیښور د بورډ په بازار کې لیدلی وم، ما نه وو لیدلی، لکن ده لیدلی وم او تر تاج اباد پورې
یې منډې وهلې وې زما یو شاګرد قاري صاحب جان محمد شهید رحمه الله زما پسې منډې او تړې
وهلې، ډېر وخت وروسته یې یوه ورځ زما سره ملاقات وشو، ما ورته د دې جاسوس نښاندهي وکړه، هغه
ساده وو، راته یې وویل چې هغه خو ژاړي او قسمونه کوي چې ما جاسوسي نه ده کړې، ما ورته وویل
چې هر څرنګه وي ځان ترینه ساته، لکن هغه رحمه الله بیا هم سادګي کړې وه، زما د لیدلو څخه وروسته
سیده جلال اباد ته تللی وو او د همدې جاسوس سره بې لیدلي وو، د جلال اباد د استخباراتو په ریاست

کې يې زما څخه يو مبايل اخستی وو. هغه موبايل شهيد ملا داد الله رحمه الله راليږلی وو او دانفجار سستم پکې فعال وو، داستخباراتو والا هغه موبايل بيرته همدې جاسوس ته ورکړی وو. جاسوس بيا قاري صاحب جان محمد رحمه الله ته ورکړی وو. ددې موبايل په لومه باندې يې قاري صاحب رحمه الله هم ورباندې ونيولو چې هغه هم بيا راسره په پلچرخي کې يو ځای بندي وو.

(۲) په دومره سختو وحشتونو او ظلمونو کې په خپل وينو لړلي بدن، پړسيدلو او په وينو باندې سرو پښو او او غلبېل غلبېل بدن دومره نه وم خفه، لکه څومره به چې د سپين ږيري پلار او د سپين سرې مور، او د خويندو، وروڼو او د بچيانو وير او بوږنونکو کړيکو او اوږدو اوږدو حسرتونو او ارمانونو خفه کولم، ځکه چې د صليبيانو د يرغل له شروع د دوي ټول ژوند د غم يو داستان وو چې زما د نيولو په وجه يې غمونه يو په سل شوي وو.

(۳) ددوهم ځل نيول کيدلو څخه وروسته زما ملګرو، شاګردانو او خپلوانو زما د راخلاصولو کوشش شروع کړی و، څه روپۍ په کور کې وې او څه يې له چا څخه قرض کړې وې او څه نورو خلکو کومک کړی وو، چې دا هر څه ترينه صليبيانو او ددوي انډيوالانو په يو نوم او په بل نوم باندې اخيستې وې.

يو پخوانی طالب چې اوس اربکی شوی دی (د نـوَد پـه نوم) زما لـه ملګرو سره يې زما د راخلاصولو کلکه وعده کړې وه. حالانکې دوهکه يې کوله، نو چې څه ورسره وو هغه ترينه ده اخيستي وو. بيا يې چې يو څه نور راپيدا کړل نو د يو بل خونخوار سره مخ شوي وو، چې زړګی نوميده او د قرغيو د مندراوړ او سېدونکی و. هغه ترېنه زما د راخلاصولو د دروغو وعدې په مقابل کې ده اخيستي وو. په آخر کې يې چې کله زه کابل ته نقلولم نو هماغه د حاجي وکيل په نوم د تحقيق مدير چې زه يې سخت تعذيب کړی وم، زما د يو خپلوان سره په رابطه کې شوی وو او د اعتبار جوړولو له پاره يې زه ورسره په تيلفون هم وغږولم، هغه هم زما د ورخوشې کولو د دروغژنې وعدې په مقابل کې په لکونو روپۍ په دوهکه ورڅخه اخيستې وې.

(۴) په رياست چهل کې چې زه په کومه کوټه کې وم. هلته مې بنديانو ته د قرآن کريم د سورة انفال ترجمه شروع کړې وه، يوه ورځ د معمول مطابق رياست چهل ته حکومتي درباري مُلايان راغلي وو او دا ځل زمونږ د اُطاق د درس نمبر و، د درس طريقه يې دا وه چې اول به يې کوم آيت مبارک او يا حديث

شريف ولوستلو، دهغې ترجمه او تشريح به يې وکړه، بيا به يې سياسي بحث شروع کړو، د مجاهدينو بدي او د امريکايانو او د دوي د افغاني غلامانو صفت به يې کاوه. آخر به يې کمپيوټر ولګاوه او د کابل بانک، چارصد بستريا هم کومه بله فدايي حمله به يې ښودله او دا به يې په ظلم تعبيروله.

کله چې د بلعم بن باعور په ګډۍ ناست مُلا درس شروع کړ، نو د حديث الفاظ يې داسې وويلې چې: (لِکُلِّ سهوٍ سجدتين) ما ورته وويل چې: مُلا صيب غلط شوې ! داسې ووايه چې: (لِکُلِّ سهوٍ سجدتانِ) ځکه چې سجدتان مبتداء مؤخره ده، جالت رفعي يې په الف سره دی، هغه راته وويل چې: همداسې يې په هدايه کې ليکلي دي او ما له هدايې څخه په کاغذ رانقل کړي دي، ما ورته وويل چې: په هدايه کې هيڅکله داسې نه دي، خو ملا وارخطا شو، په آخر کې يې ماته وويل چې: ته خو فارغ شوی يې ! نو په کوټه کې دې خپلو ملګرو ته ترجمه کوه او درس ورته وايه ! ما په دې پوهه نه کړو چې ما خو ترجمه شروع کړې ده، بلکې ورته مې وويل چې: ترجمه خو ځکه نه شم کولای ځکه چې په ترجمه کې د يهودو او د نصاراوو ذِکر راځي او د دې په وجه بيا ماته دوسيه نوره هم غټيږي، نو هغه بلعم بن باعور راته وويل چې: خير دی ! دا آيتونه چې پکې راتلل په منځ کې يې پرېږده. (معاذالله) او نور آيتونه وايه.

## دوهم ځل نيول کېدلو قيصه

په دوهم ځل داسې ونيول شوم چې: د افغانستان د اسلامي آمارت د مرکزي کميسيون په هيئتې باندې زه د حاجي هاشم روزګاني سره ملګرې وم، لومړې مو د ننګرهار د مجاهدينو مشکلات واورېدل او بيا د اسلامي امارت د لغمان ولايت له والي سره په رابطه کې شو او لغمان ته روان شو. چونکې قانون داوو چې د هر ولايت د هيئتې سفر به د هغه ولايت د يو رهبر په ملګرتيا کې کيږي، نو والي حاجي بشير زمونږ سره يو رهبر ملګرې کړ، د هغه په رهبرۍ کې د لغمان له بازار څخه ووتلو او هلته يې بل رهبر ته حواله کړو چې کاوون نومېده. کاوون د عليشنګ په لاره کې د اسلام اباد پول ته نارسيده په يو کور کې د مابنام په انتظار کينولو او راته يې وويل چې: له مابنام څخه وروسته به په تياره کې پياده په چريکي لارو باندې د حکومت له ساحې تېر شو. لکن مونږ بيا پوهه نه شو. کاوون له خپل ځان سره خپل پروګرام بدل کړی وو، له مابنام څخه وروسته يې دوه موټر سايکلان راوستل، په يو تن پسې زه کښېناستم او په کاوون پسې حاجي هاشم کښېناست او په پوخ سړک زمونږ موټرسايکل په مخ روان وو

او کاوون او حاجي هاشم شاته را روان وو، سم سيده د استخباراتو په کمين ورغلو چې د پُل يو سر او بل سر ته راته ناست وو، مونږ په سختو دزو کې له کمين څخه تير شو، کله چې لږ مطمئن شو، نو ما خپل موټرسايکل چلوونکي ته وويل چې: مونږ خو مخکې وو، له کمين څخه خلاص شو، لکن حاجي هاشم خو به يې خامخا نيولى وي، نو ته خو د همدې ساحې اوسېدونکى يې، که له چا سره بلد يې نو ورشته چې خبره ورسره وکړو او پيسې ورکړو چې همدا اوس يې راخلاص کړو، ځکه چې وروسته بيا حکومت خبرېږي او خبره به سخته شي. هغه راته وويل چې: زه بالکل بلد يم، موټر سايکل يې ودرولو او ماته يې وويل چې: ته کوز شه! زه چې څنګه کوز شوم نو سمدستي يې راڅخه په موټر سايکل وتښتېدلو او له شا څخه يې آواز وکړ چې ته يو پنځه دقيقې انتظار وکړه، زه راځم، هغه لاړو، زه لا ولاړ وم چې حاجي هاشم هم د کاروان سره راتښتېدلى و او په موټر سايکل باندې ډېر په سرعت سره تير شو، چې دى يې هم بيا په لاره کې پرېښى وو، زه چې کله له ده څخه مطمئن شوم، نو بيې طرف ته د وتلو اراده مې وکړه، د نابلدتيا له وجهې نه پوهېدم چې کوم طرف ته ولاړ شم؟ آخر له سړک څخه ليرې د ورو ورو جوار و په يو پټي کې په دې طمعه غلى څملاستم، چې کېدى شي رهبر به د خپلې کړې وعدې مطابق هماغه ځاى ته راپسې راشي په کوم ځاى کې يې چې زه کوز کړى او په طمعه وم. نو داسې پټي ته لاړم چې پناه وو، لکن همدا ځاى ترينه ښکارېده. خو له بده مرغه هغه رانه غى او د هغه په ځاى يو خرکار د پټي په څنګ کې تير شوى او زه يې ليدلى يم او د حکومت خلک چې په مونږ پسې رامخکې شوي وو، هغوي ته يې ښودلى وم، لږ ساعت وروسته پټي محاصره شو او د سختو دزو څخه وروسته د صليبي لېوانو په لاس کې داسې وغورځېدلم لکه حضرت حُسـين رضي الله تعالى عنه چې د ظالمو يزيديانو په لاس کې غورځېدلى وو.

(۵) د دوهمې محکمې له فيصلې څخه وروسته راته قاضيانو په توقه کې وويل چې: دا خو دې دوهم ځل دى، که دا ځلې خلاص شوې بيا به څه کوې؟ چونکې فيصله شوې وه او پيسې مې هم ورکړې وې او مطمئن شوى وم، نو ما ورته وويل چې: د مسجد او د کليسا جنګ وي نو ته به څه کوې؟ هغوي وشرمېدل او په ټيټ سر يې وويل چې: زه به د مسجد طرف ته کېږم. ما ورته وويل چې: دروغ وايې! اوس خو د کليسا په طرف او څنګ کې ولاړ يې! د کليسا څخه تنخوا اخلې! او د مسجد د خادمانو په خلاف فيصلې کوې! نو هغه يو قاضي نورو ته وويل چې: رشتيا وايي. او دغسې ترلې زمريان حقه خبره کولى شي.

(۶) د لوی اختر څخه مخکې یوه ورځ راته زندان ته د کور ټول غړي او واړه د ملاقات له پاره راغلل، کله چې د ملاقات وخت ختم شو او شپېلۍ ووهل شوه، نو د هر بندي پورې ددوي ماشومان نښتي وو او نه ترېنه بېلېدل. په ما پورې وړوکی ۴ کلن زوی ابراهیم او شپږ کلنه لور نښتي وو په سختو چیغو یې ژړل او هېڅ راڅخه نه جُدا کېدل بل طرفته پولیسو نه پرېښودلو دبې عزتۍ خطر وو، چې دا دردوونکې صحنه مې هېڅکله له زړه څخه نه وتله.

(۷) د ډېرو وهلو له لاسه زما سترګو کار نه کاوه، یوه چپه سترګه مې بالکل د وینو په شان تکه سره وه، چې نورو بندیانو به راته وکتل نو سترګې به یې وبرېښېدلې او مخ به یې بل لوري ته واړاوه. د بندیانو له پاره تش په نوم یوه شفاخانه وه، چې ډاکټران پکې د (نـود) د مستنطقینو څخه هم ډېر ظالمان وو، خصوصاً د علماوو او طالبانو سره یې دومره ورانه وه لکه څومره چې د هندو له کلمې سره ورانه ده. زه هم د سترګو د علاج له پاره ورغلم. لکن هلته هېڅ ډاکټر راته نه کتل. آخر مایوسه شوم. بیا مې داسې کار شروع کړ چې یو سطل صفا اوبه به مې دم کړې او په هغې کې به مې مخ ډوب کړو او سترګې به مې پکې وغوړولې، چې د الله تعالی جل جلاله په فضل مې نظر بیرته خای ته راغی.

(۸) موږ په دوهم بلاک کې وو، په دې بلاک کې دوه نیم زره بندیان وو. ددې بلاک له نورو بلاکونو سره د بند او بدتر فرق و، یعنې نور بلاکونه بدتر وو او دا بلاک بد و، او له دې څخه علاوه په بندیخانه کې د هر بندي یوه بده خاطره دا هم وي چې د یو ځای څخه یې بل ځای ته بدل کړي. زه یې هم د دوه نیم زره بندیانو په منځ کې د پنځو مجاهدینو سره یو ځای د لا زیاتو ځورولو له پاره د ریم جزایي بلاک ته نقل کړم او موږ پنځه واړه یې په اول منزل کې په یو وینګ کې واچولو، زموږ څخه مخکې پکې دومره نور داسې لېونیان هم پراته وو چې په هېڅ نه پوهېدل، حتی چې اودس ماتي یې هم په پرتوګ کې کولو. دغه بلاک ته یې د قندهار د محبس ټول مجاهدین هم په دې جرم رانقل کړل چې هلته یې د خپلو حقوقو غوښتنه کوله. بیا ورو، ورو ددې بلاک څلور واړه منزلونه له بندیانو څخه ډک شول. نوي نوي بندیان یې هم بیا همدې بلاک ته راوړل، چې په دې بندیانو کې یو یو غیر مقلد هم راتلو او اتفاقي هر وینګ ته یو یا دوه غیر مقلدین رسیدلي وو. د دوي د شرارت رګ خو په یو ځای کې هم نه درېږي. هلته به یې دم کله په یوه مسئله او کله په بله مسئله کې شرارت جوړولو. کله چې یې بندیان ډېر په تنګ کړل،

نو بنديانو په شريکه باندې د بلاک قومندان ته يو څو روپۍ ورکړې او په دې يې راضي کړ چې زه هر وينګ ته د يو يو ساعت درس او تقرير له پاره ورشم، چې بيا د لوی الله تعالی جل جلاله په فضل به هر وينګ ته ورتلم او د غير مقلدينو ګمراه کوونکي عقايد به مې ورته بيانول او د حنفي مسايلو له پاره به مې دلايل ورته بيانول. د بيان په وخت کې به غير مقلدين په خپلو کوټو ننوتل، دروازې به يې په ځان پسې بندې کړې او ترهغې به خاموش وو تر څو به چې زه بېرته نه وم تللی.

وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد وعلى آله وأصحابه أجمعين

# فهرس

## فسق يزيد

## دمماتيت فتنه

**دعذاب قبر او حیات فی القبر**

## حيات الانبياء او سماع النبى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عند القبر

## د نبوت او ختم نبوت عقیده



## د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د روضې مبارکې زیارت



## د روضې مبارکې د فضیلت عقیده

**د شهیدانو جسماني ژوند**



**كرامت بعد الوفات**



**عرض الأعمال**



**ايصال الثواب**

**مسئلة الاستشفاع عند قبر النبی صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**



**مسئلة سماع الموتی**

رسالة التوسل



دأمت دعلماوو څخه دتوسل ثبوت



حکم التعوید

**د مودوديت فتنه**

## تصوف



## دبريلويت فتنه



## مسئلة العلم الغيب

**د حاظراو ناظر مسئله**



**د مختار الكل مسئله**

**معجزات او كرامات صرف دالله تعالى په اختيار كې دي**



**د نوراوبشرمسئله**



**داستمداد مسئله**

**دبريلويانو خطرناك عبارات**

**ارشاد العباد فی محفل المیلاد**

**عملي بدعات**

**عبارات الأكابر**

